# تسهیلات

## پښتو شرح

# مشکوٰة


تالیف مولانا شاه فیصل

فاضل دار العلوم اسلامیه چارسده و امداد العلوم پشاور


داوويشت (۲۷) خصوصياتو سره چې پولس (۱۱) په کښې دا دي

1. پېښوري پښتو سره بين القوسين د قندهاري پښتو د کرانو ټکو اضافه
2. د مشکاة د عربي او اردو متداولو ټولو شروحاتو مجموعه
3. په ترجمه کښې بين القوسين د مرقاة المفاتيح د اضافي قيوداتو ترجمه
4. د حديث هرې جملې او د هغې ترجمې ته د آسانتيا د پاره نمبرې ورکول
5. د فقهي اختلافي مسئلو مدلل او آسان حل
6. د اوږدو احاديثو د متن ارو ترجمې تقسيم
7. د هر حديث د صحاح سته وغيره نه تخريج
8. د حل اللغات په عنوان سره د مرقاة المفاتيح نه د مشکلو لغاتو حل
9. د قوله په عنوان سره د حديث [illegible] تشريح
10. د هر باب په اول کښې [illegible]
11. د کتاب په اول کښې [illegible]



# تسهیلات

## پښتو شرح

# مشکوٰة

تالیف:- مولانا شاه فیصل فاضل دارالعلوم اسلامیه چارسده

شپږم جلد (۶)

د شلو (۲۰) خصوصیاتو سره چې لس (۱۰) په کښې دا دي

① پیښوري پښتو سره بین القوسین د قندهاري پښتو د گرانو ټکو اضافه

② د مشکاة د عربي او اردو متداولو ټولو شروحاتو مجموعه

③ په ترجمه کښې بین القوسین د مرقاة المفاتیح داضافي قیوداتو ترجمه

④ دحدیث هرې جملې ته اود هغې ترجمې د آسانتیا دپاره نمبرې ورکول

⑤ په فهقي اختلافي مسئلو کښې مدلل او آسان مباحث

⑥ د اوږدو احادیثو د متن او ترجمې تقسیم

⑦ دهرحدیث د صحاح سته وغیره څخه تخریج

⑧ د حل اللغات په عنوان سره د مرقاة المفاتیح څخه د مشکلو لغات حل

⑨ دقوله په عنوان سره دحدیث د هرې مشکلې جملې تشریح

⑩ دهرباب په اول کښې دهغې د احادیثو خلاصه

⑪ د کتاب په اول کښې د علوم الحدیث مفیده مقدمه

خورنکي

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

موبائل ۰۳۱۵-۹۵۹۵۷۱۷

دکتاب نوم تسهیلات شرح مشکواة
شارح مولانا پروفیسر شاه فیصل
فاضل وفاق المدارس، امدادالعلوم، جامعه اسلامیه چارسده
معاون مترجم:: عبدالکریم صدیقی

د ملاویدو پتي

جدید اسلامی کتب خانه خوست
المصباح کتب خانه کابل
روغانیوال کتب خانه جلال آباد
رحیمی کتب خانه خوست
حرم کتب خانه کابل
دیلی کتب خانه تیمرگره
تاج کتب خانه صوابي
مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
مکتبه دارالاخلاص کابل
مکتبه رحمانیه قندهار
مکتبه رحمانیه کوئټه
انوری کتب خانه قندهار
نعمت کتب خانه کابل
مکتبه علمیه اکوړه خټک
حقانیه کتب خانه گردیز
وطن دوست کتب خانه گردیز
إقرأ کتب خانه جلال آباد
مکتبه معروفیه کوئټه
مکتبه عمریه چمن
مکتبه عباسیه تیمرگره
مکتبه امیرحمزه قندهار

# اجمالی فہرست

| شمار | مضمون | صفحہ |
|---|---|---|

## د احاديثو د عنوانانو فهرست

# فهرست اختلاف مذاهب

# [٦] بَابُ الإِسْتِعَاذَةِ

## د الله ﷻ د پناه غوښتلو بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه اربعة وعشرون حديثاً مشتملة على اثنين وسبعين من الأشياء يستعاذ منها (بحذف التكرار) ومشتملة على أربع مسائل:**

① تعوذ النبي ﷺ: ١، ٢، ٣، ٤، ٥، ٦، ٧، ٨، ٩، ١٠، ١١، ١٢، ١٣، ١٤، ١٦، ٣٣، ٣٤۔

② الأمر بالتعوذ ١. ١٥، ١٧، ١٨، ١٩، ٢٠۔

③ فائدة الاستعاذة من النار: ٢١۔

④ تعوذ بعض السلف: ٢٢

**د لفظ الاستعاذه مفهوم او تحقيق:** دالله تعالى نه دَ دعا غوښتلو عام مفهوم هم دغه دې چه سړې دَخپل مقصود او مطلوب او دَخپلې خوښې څيز دَالله تعالى نه غواړي انسان سره يو ضعفي معامله داسې هم وي چه دې دَخپل ناخوښه څيزنه لرې تختي او يو دَ پناه خائې ته خې اوتيږي استعاذه او تعوذ هم دَ دغه پناه دَ خائې نوم دې بيا دَ دغه انسان يو ظاهري مدې دښمن دې چه په سترګو سره ښکاري دَ ده دَپاره جدا دَ پناه خايونه دي دَ کوم دَتحفظ چه خن له انتظام او انداز دې کوم چه دَتعوذ نه علاوه وي

دې نه علاوه دَ انسان يو داسې دښمن هم دې چه پټ او نه ښکاره کيدونکې دښمن دې کوم چه ابليس او دَهغه اولاد دې ددې نه دَ بچ کيدو دَپاره يوجدا نتظام وي چه هم دغه تعوذ او استعاذه ده په دې باب کښې دَ اکثر احاديثو تعلق هم دغه استعاذه سره دې اوچونکه دَ دې دښمن وجود دَ نظر نه پټ دې په دې وجه دَ دې نه دَ بچاؤ خائې دَالله تعالى ذات ګرځولې شوې دې او اووئيلې شو "اعوذبالله من الشيطان الرجيم" يعنى زه دَ شيطان مردود نه دَالله تعالى په پناه کښې راځم

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [٢٤٥٧] دَ ناموافق څيزونو نه دَ الله پناه

٢٣٥٤- [١] (١)① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② («تَعَوَّذُوا بِاللّٰهِ مِنْ جَهْدِ الْبَلَاءِ ③ وَدَرَكِ الشَّقَاءِ ④ وَسُوءِ الْقَضَاءِ ⑤ وَشَمَاتَةِ الْأَعْدَاءِ») مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

(١) اخرجه البخاري في كتاب القدر/باب: العمل بالخواتيم (رقم ٦٦٠٧) ومسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب في التعوذ من سوء القضاء ودرک الشقاء وغيره (رقم ٥٣ (٢٧٠٧) واحمد في المسند ٢/٢٤٦

**ترجمه:** ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۱] د الله تعالی پناه غواړئ د بلا ازمېښتا د مشقت څخه، [۲] د بدبختۍ د رسېدو څخه، [۳] د خراب تقدیر څخه [۴] او د دښمنانو د خوشحالېدو څخه. بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① تعوذوا: صیغه د امر ده. حو دا امر استحبابي دی. معنی ئې ده پناه غواړئ. ② جَهْدِ الْبَلَاءِ أَيْ مَشَقَّتِهِ: د مصیبتونو مشقت. جهد مشقت ته وائي او بلاء هغه حالت ته وائي کوم سره چه داسړی ازمېښت کولی شي لکه اهل وعیال زیات وي او مال ورسره نه وي. ③ دَرْك: درک د إدراک په معنی دی. هُوَ الْوُصُوْلُ إِلَى الشَّيْءِ: یو څیزته رسېدل یا دهغي حاصلېدوته وائي ④ الشَّقَاءِ: په معنی د شقاوت یعني بدبختۍ سره. ددي ضد سعادت دي یعنی نیک بختی. ⑤ سُوءِ الْقَضَاءِ: د تقدیر په معنی کښي دي مراد دا چه داسې فیصلې نه ستا پناه چه زما په حق کښې ښه نه وي ⑥ شَمَاتَةِ الْأَعْدَاءِ وَهِيَ فَرَحُ الْعَدُوِّ بِبَلِيَّةٍ: داسې ازمانښ چه دشمن پرې خوشحاله شي

**تسهیلات: قوله: جَهْدِ الْبَلَاءِ:**

**د جهد البلاء په مفهوم کښې دوه اقوال:** په جیم باندې فتحه او ضمه دواړه دي ملاعلي قاری رحمه الله ددې جملې مطلب داسې بیانوي چه د هغه مصائبونوم دې چه دیني او دنیوي اعتبار سره انسان ته رسیږي اوانسان نه دا دفع کولی شي اونه په هغې باندې صبرکولی شي علامه طیبی رحمه الله فرمائي ددې نه مراد دداسې حالت پیښیدل دي دکوم نه پس چه انسان مرګ خوښوي بلکه ددې خواهش کوي. حضرت ابن عمر رضی الله عنه ددې تفسیر داسې بیان کړې چه داهغه حالت دې چه دانسان مال کم شي او بال بچ زیات شي

**قوله: الشَّقَاءِ:**

**دمذکوره جملې مفهوم:** درك مصدر دې راء باندې فتحه هم ده اوسکون هم دې ادراك د موندلو په معنی کښې دې الشقاء بدبختی خراب انجام اود هلاکت په معنی کښې دې یعنی د بدبختی شقاوت او هلاکت کیدلونه ستا پناه غوارم

**د مذکوره دعا جامعیت او کاملیت:** په دې حدیث کښې دا څلور کلمات داسې عام دي چه دانسان د ژوند ټولو شعبوته شامل دي لهذا دا دعا کامله ده

**[۲٤٥۸] جامع استعاذه**

۲٤٥۸-[۲] ( )[۱] (وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ ([۲] «اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحَزَنِ، [۳] وَالْعَجْزِ وَالْكَسَلِ، [۴] وَالْجُبْنِ وَالْبُخْلِ وَضَلَعِ الدَّيْنِ، [۵] وَغَلَبَةِ الرِّجَالِ» ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الدعوات/باب الاستعاذة من الجبن (رقم - ۶۳۶۹) وابو داود فی کتاب الصلاة،باب فی الاستعاذة (رقم-۱۵٤۱) والترمذی فی السنن رقم الحدیث ۳۵۵۱ واحمد فی المسند:۳/۲۲۶

**ترجمه** : انس رضي الله عنه وايي چې نبی کريم ﷺ به دا دعا غوښتله ۞ اللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُبِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحُزْنِ وَالْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَالْجُبْنِ وَالْبُخْلِ وَضَلَعِ الدَّيْنِ وَغَلَبَةِ الرِّجَالِ، ترجمه: ای الله ﷻ زه ستا پناه غوارم د پریشانی څخه. د غم څخه،۞ او د عاجزه کيدو او څخه د سستی څخه.۞ د نامردی څخه، د بخل څخه، د قرض د بوج څخه ۞ او د خلقو یعني د ظالمانو، د غلبي څخه (بخاري، مسلم)

**حل اللغات** ① ضَلَعِ الدَّيْنِ أي ثقله: بوجنتیا ماتونکي قرض یعنی د قرض د بوج نه دومره ډير قرض وی چه د ادا کولو وس نې نه وی. ② غَلَبَةِ الرِّجَالِ أي قهرهم: زور او غلبه د خلقو. ددې نه مراد یا د بدشه ظلم وستم دې یا د قرض غوښتونکو زبردستی ده.

**تسهيلات:**

**قوله الهم:**

**په هم او حزن کښې فرق:** داهغه غم ته وائی چه دَ يوراتلونکی مصیبت دَ ویرې نه وی هغه غم ته وائی چه دَمصیبت راتلونه پس راځی یعنی "هم" په متوقع غم باندې کیږی اوحزن په مافات باندې کیږی لکه چه دَ یومریض مرګ کوم چه دَ ویرې دَ وجې نه کیږی دا "هم" او ویره ده لیکن چه کله مړ شی اودَ هغې نه پس غم راځی هغې ته حزن وائی

**[۲٤٥٩] د نبی علیه السلام یوه جامع دعا**

|  |
|---|
| ۲٤٥٩—[۳] (¹) ① وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ② «اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَالْهَرَمِ ③ وَالْمَغْرَمِ وَالْمَأْثَمِ، ④ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ النَّارِ وَفِتْنَةِ النَّارِ ⑤ وَفِتْنَةِ الْقَبْرِ، وَعَذَابِ الْقَبْرِ ⑥ وَمِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْغِنَى، وَمِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْفَقْرِ ⑦ وَمِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ، ⑧ اللّٰهُمَّ اغْسِلْ خَطَايَايَ بِمَاءِ الثَّلْجِ وَالْبَرَدِ، ⑨ وَنَقِّ قَلْبِي كَمَا يُنَقَّى الثَّوْبُ الْأَبْيَضُ مِنَ الدَّنَسِ، ⑩ وَبَاعِدْ بَيْنِي وَبَيْنَ خَطَايَايَ ⑪ كَمَا بَاعَدْتَ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |

**ترجمه** ① بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې نبی کريم ﷺ به دا دعا غوښتله ② اللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُبِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَالْهَرَمِ وَالْمَغْرَمِ وَالْمَأْثَمِ اللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُ مِنْ عَذَابِ النَّارِ وَمِنْ فِتْنَةِ النَّارِ وَفِتْنَةِ الْقَبْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ وَمِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْغِنٰی وَمِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْفَقْرِ وَمِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْمَسِيْحِ الدَّجَّالِ اللّٰهُمَّ اغْسِلْ خَطَايَايَ بِمَاءِ الثَّلْجِ وَالْبَرَدِ وَنَقِّ قَلْبِيْ كَمَا يُنَقَّى الثَّوْبُ الْأَبْيَضُ مِنَ الدَّنَسِ وَبَاعِدْ بَيْنِيْ وَبَيْنَ خَطَايَايَ كَمَا بَاعَدْتَ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ،
**ترجمه** اي الله ﷻ زه ستا پناه غوارم (په طاعت کي) د سستی څخه، د بوداتوب (په سبب بدحواس کيدو او د اعضاء د ناکاره کيدوا څخه.③ د تاوان یا قرض څخه. او د ګناه څخه، ④ اي الله ﷻ زه ستا پناه غوارم د اور د عذاب څخه. او د عذاب د فتني څخه.⑤ د قبر د

¹) اخرجه البخاري في كتاب الاستئذان/باب من أسرع في مشيه لحاجة أو قصد (رقم-٦٢٧٥) ومسلم في كتاب المساجد/باب ما يستعاذ منه في الصلاة )(رقم) ١٢٩ - (٥٨٩) والترمذي في السنن رقم الحديث ٣٥٦٠ واحمد في المسند: ١٨٥/٢

فتني او د قبر د عذاب څخه،[٦] د دولت د فتني او خرابۍ څخه، د فقر د خرابۍ څخه[٧] او د مسيح دجال د فتني څخه.[٨] اې الله ﷻ د واوري او ږلۍ په اوبو سره زما ګناه اوينځې (يعني د قسم قسم مغفرتونو په ذريعه زما ګناهونه پاك کړي. څرنګه چې د واوري او ږلۍ په اوبو خيري صفا کيږي،[٩] او زما زړه (د خرابو اخلاقو او خرابو خيالاتو څخه، پاك کړي څرنګه چې سپينه کپړه په اوبو سره صفا کول کيږي،[١٠] او زما اود ګناهونو په مينځ کې داسې لرې والى پيدا کړي،[١١] څرنګه چې تا دمشرق او مغرب په مينځ کې لرې والى پيدا کړې دې (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① الْهَرَمِ: أَيْ: كِبَرِالسِّنِّ: بوډاتوب، چه د زيات عمر په وجه ئې عقل او حواس کمزوري شي ② الْمَغْرَمِ: هغه تاوان ته وائي چه په يوانسان باندې په مفت کښې راشي يا هغه قرض ته وائي چه يوانسان ئې په خپله ذمه باندې واخلي. ③ الْمَأْثَمِ: أَيْ: الإِثْمِ: ګناه. ④ الْغِنَى: مالداري (کوم سره چه غرور اوسرکشي پيدا شي چه په حرام ئې پيدا کوي اوپه حرام او نافرمانئ کښې ئې لګوي) ⑤ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ: دجال ته مسيح ځکه وائي چه دې به تولو زمکه مسح کوي اوګرځيدو راګرځيدو سره به مري يا په دې وجه دجال ته مسيح وائي چه دهغه يوه سترګه ختمه کړې شوې ده ⑥ الدَّجَّالِ: په دجل کښې مبالغه ده دهوکه او فريب ته وائي يعنې ډير زيات فساد خورونکې ⑦ الثَّلْجِ: واوره. ⑧ الْبَرَدِ: ګلئ. ⑨ نَقِّ: باب تفعيل نه امردې، پاک کړي ⑩ الدَّنَسِ: أَيْ: الْوَسَخِ: خيري (يعنى دګناهونو خيري).

**تسهيلات:**

**قوله:** وَفِتْنَةِ النَّارِ، وَفِتْنَةِ الْقَبْرِ، وَعَذَابِ الْقَبْرِ:

**د حديث د بعضې جملو وضاحت:**

① فِتْنَةِ النَّارِ: يعنى چه داسې فتنه راشى چه سرې دَ اور قابل جوړ کړی.

② فِتْنَةِ الْقَبْرِ: يعنى دَ منکر نکير په جواب کښې لاجواب کيدونه ستا پناه.

③ وَعَذَابِ الْقَبْرِ: يعنى دَ قبر دَ عذاب نه ستا پناه غواړو کوم چه ګرزونه اوپلکونه دی لړمانان دی اوماران دی دَ قبر نه مراد دَعالم برزخ دَ شروع اهمه حصه ده کومه چه دې قبرته شامل ده ملا علی قاری رحمه الله دَ قبر تعريف کولوسره ليکی "اوکل ما اتقر اجزائه فيه فهوقبر"

④ فِتْنَةِ الْغِنَى: هغه مالداری مراد ده چه دَ کبر تفاخر اوبغاوت سبب وی، بل په حرامه طريقه سره ئی مال حاصل کړې وی اودَ ګناه په کارونوکښې خرج کوی.

**قوله:** فِتْنَةِ الْفَقْرِ:

**د فقره فتنې څخه مراد:** دَ فقر اوغربت فتنه داسې چه مالدارانوسره حسد کوی بغض اوعناد ساتی اودَ بعض مالدارانو په مخکښې ذليل اوخوارکيدوسره غوښتنه کوی دَ ده په دې

عمل باندې په دين باندې داغ لګی اودې د تقدير په ليك باندې صبر نه كوی لكه چه په حديث كښې دی ،، كاد الفقر ان يكون كفرا،، حضورپاك دا تعوذ د امت د تعليم دپاره كړې دې ګنی حضورپاك ته هيڅ خطره نه وه

**د حديث مطلب او مقصد:** د حديث مطلب دادې چه د مغفرت د ټولو قسمونونه د دغه سړی مغفرت اوشی نود اوبود قسمونونه د مغفرت اقسام مراد اخستې شوی دی

**[۲٤٦۰] يوشو تعويذونه**

۲۳۷۰-[٤] ()[۱] وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: [۲] «اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْعَجْزِ وَالْكَسَلِ [۳] وَالْجُبْنِ وَالْبُخْلِ وَالْهَرَمِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ، [۴] اللّٰهُمَّ آتِ نَفْسِي تَقْوَاهَا [۵] وَزَكِّهَا أَنْتَ خَيْرُ مَنْ زَكَّاهَا [۶] أَنْتَ وَلِيُّهَا وَمَوْلَاهَا، [۷] اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عِلْمٍ لَا يَنْفَعُ [۸] وَمِنْ قَلْبٍ لَا يَخْشَعُ [۹] وَمِنْ نَفْسٍ لَا تَشْبَعُ [۱۰] وَمِنْ دَعْوَةٍ لَا يُسْتَجَابُ لَهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [۱] زيد ابن ارقم ﷛ راوي دي چې نبی كريم ﷺ به دا دعا غوښتله [۲] اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَالْجُبْنِ وَالْبُخْلِ وَالْهَرَمِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ اللّٰهُمَّ آتِ نَفْسِي تَقْوَاهَا وَزَكِّهَا أَنْتَ خَيْرُ مَنْ زَكَّاهَا أَنْتَ وَلِيُّهَا وَمَوْلَاهَا اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عِلْمٍ لَا يَنْفَعُ وَمِنْ قَلْبٍ لَا يَخْشَعُ وَمِنْ نَفْسٍ لَا تَشْبَعُ وَمِنْ دَعْوَةٍ لَا يُسْتَجَابُ لَهَا، ترجمه اې الله ﷻ زه ستا څخه پناه غوارم د عاجزي (يعني په طاعت باندې د نه قادر كيدو) څخه. په نيكو كارونو كې د سستي څخه، [۳] د نامردی (بزدلی) څخه. د بخل څخه. د بوډاتوب (په سبب د اعضاؤ د ناكاره او حواس باخته كيدو) څخه. او د قبر د عذاب (يعني د قبر د تنګی. د هغې د وحشت او د ګروزونو د وهلو څخه، د لړمانانو او مارانو د چيچلو څخه او د دې قسم نورو هولناكو، سختو) څخه [۴] اې الله! ﷻ زما نفس ته پرهيزګارې وركړې [۵] او پاك يې كړې، څكه چې د دې پاك كونكو كې ستا ذات بهترين دې. [۶] ته د هغه كارساز او مالك يې. [۷] اې الله ﷻ زه ستا پناه غوارم د هغه علم څخه، چې نفع بخش نه وي. [۸] د هغه زړه څخه چې نه يريږي (يا هغه ته په ذكر الله سره تسكين نه وي) [۹] د هغه نفس څخه چې موړ نه وي (يعني حريص وي. الله ﷻ چې څه وركړي وي، په هغې قناعت نه كوي) [۱۰] او د هغې دعا څخه چې د قبوليت مرتبې ته اونه رسی (مسلم)

**حل اللغات:** ① وَلِيُّهَا: أَيْ: نَاصِرُهَا: كارساز او مددګار دهغې نفس. ② مَوْلَاهَا: أي مَالِكُهَا: مالک ددې نفس. ③ لَا يَخْشَعُ: أَيْ: لَا يَسْكُنُ: چه نه ويريږی (يعنی دالله په ذكر ورته سكون او اطمينان نه راځی) ④ لَا تَشْبَعُ: نه مړيږی (په خوراک يا په موجوده رزق باندې قناعت نه كوی يعنی حريص او اوږ ستركې وی)

() اخرجه مسلم فی كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب التعوذ من شر ما عمل ومن شر ما لم يعمل (رقم-۷۳ - (۲۷۲۲)

**تسهیلات: قوله وَالْهَرَمِ:**

**هرم څخه مراد:** ددې نه مراد د اندامونو ناکاره کیدل دی څنګه چه په أرذل العمر کښې وی ددې په باره کښې قرآن کښې دی ((لِكَيْلَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ شَيْئًا)) (نحل ٧٠)

**قوله: وَعَذَابِ الْقَبْرِ**

**د عذاب قبر څخه مراد:** ددې نه مراد د قبر وحشت، تیاره، تنګ والې، د مارانو، لړمانو چیچل او نور عذاب قبر

**قوله: اللّٰهُمَّ آتِ نَفْسِي تَقْوَاهَا**

**د نفس د تقوی څخه مراد:** امام طیبی فرمائی چه مناسبه دا ده چه تقوی نه مراد هغه څه شی چې د فجور مقابل کښې وی کما ورد فی القرآن فألهمها فجورها و تقوها ددې څخه د خواهشاتو د پیروی کولو او ګناهونو د ارتکاب څخه بچ کیدل دی مراد دی

**قوله: مِنْ عِلْمٍ لَا يَنْفَعُ**

**دعلم غیر نافع مصداق:** امام طیبی فرمائی چه ددې نه مراد هغه علم دې چه په هغې پخپله هم عمل نه وی او نه نورو خلقو ته رسول وی او نه د خلقو اخلاقو. افعالو او اقوالو دپاره فائده مند وی یا داسې علم چه دین ته ئ څه فائده نه وی

**[٢٤٦١] دابن عمر په روایت سره مسنون دعا**

[٥] ()[1] ١ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ «كَانَ مِنْ دُعَاءِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ) ٢ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ زَوَالِ نِعْمَتِكَ ٣ وَتَحَوُّلِ عَافِيَتِكَ وَفُجَاءَةِ نِقْمَتِكَ ٤ وَجَمِيعِ سَخَطِكَ» ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** ١ عبد الله ابن عمر رضی الله عنه وایي چې د نبی کریم ﷺ په دعاګانو کې یوه دعا دا هم وه ٢ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ زَوَالِ نِعْمَتِكَ وَتَحَوُّلِ عَافِيَتِكَ وَفُجَاءَةِ نِقْمَتِكَ وَجَمِيعِ سَخَطِكَ، ترجمه اي الله جل جلاله زه ستا پناه غواړم ستا د نعمت د تلو څخه (او د نعمت څخه مراد ایمان او اسلام او نیکي او د الله معرفت دي) ٣ ستا د عافیت د تبدیلی څخه (مثلاً د صحت په بدله کې د بیماري او د غناء په بدله کې د محتاجه کیدو څخه) ستا د اچانك عذاب څخه ٤ ستا او د ټولو غصو څخه (مسلم)

**حل اللغات:** ① تَحَوُّلِ: أَيْ: انْتِقَالِهَا: د بدلیدو او منتقل کیدو د عافیت (زوال د نعمت خمیدو ته دپاره راځی او تحول په نعمت کښې د صفت بدلیدو دپاره راځی لکه صحت په بیماریٔ بدل شي) ② فُجَاءَةِ: بِمَعْنَى الْبَغْتَةِ: ناڅاپی، اچانک. ③ نِقْمَتِكَ: أَيِ الْمُكَافَأَةُ بِالْعُقُوبَةِ: یعنی عذاب او سزا ستا. ④ سَخَطِكَ: غضب او خفګان

---

[1] ) اخرجه مسلم فی کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب أکثر أهل الجنة الفقراء وأکثر أهل النار النساء وبیان الفتنة بالنساء (رقم-٩٦ - (٢٧٣٩) وابوداود فی کتاب الصلاة باب فی الاستعاذة (رقم-١٥٤٥)

**تسهيلات**:

**قوله**: مِنْ زَوَالِ نِعْمَتِكَ:

**د نعمت مصداق**: ددې نه مراد د اسلام نعمت دې يا د ايمان نعمت

**[٢٤٦٢] د عمل د شر څخه پناه غوښتل**

---[٦] ()[١] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [٢] («اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا عَمِلْتُ [٣] وَمِنْ شَرِّ مَا لَمْ أَعْمَلْ»). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [١] بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې نبی کريم ﷺ به دا دعا غوښتله [٢] اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا عَمِلْتُ وَمِنْ شَرِّ مَا لَمْ أَعْمَلْ، اي الله جل جلاله! زه ستا پناه غواړم د هغه کار د خرابۍ څخه چې ما وکړو [٣] او د هغه کار د خرابۍ څخه چې مانه دې کړې (مسلم)

**تسهيلات**:

**قوله**: وَمِنْ شَرِّ مَا لَمْ أَعْمَلْ:

**دمذکوره جملې مطلب**: هغه کار چې د هغې په وجه په عذاب کښې مبتلا شم داسې بد عمل دې معاف کړې شی او چه کوم کار مې نه وی کړې د هغې څخه هم پناه غواړم چه هغه کار او کړم چه ستا د ناراضګۍ سبب جوړ شی.

**[٢٤٦٣] دابن عباس په روايت سره مسنون دعا**

---[٧] ()[١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَقُولُ: [٢] (اللّٰهُمَّ لَكَ أَسْلَمْتُ وَبِكَ آمَنْتُ وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ [٣] وَإِلَيْكَ أَنَبْتُ وَبِكَ خَاصَمْتُ [٤] اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِعِزَّتِكَ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ أَنْ تُضِلَّنِي [٥] أَنْتَ الْحَيُّ الَّذِي لَا يَمُوتُ [٦] وَالْجِنُّ وَالْإِنْسُ يَمُوتُونَ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [١] ابن عباس رضي الله عنه وايي چې نبی کريم ﷺ به دا دعا کوله [٢] اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِعِزَّتِكَ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ أَنْ تُضِلَّنِي أَنْتَ الْحَيُّ الَّذِي لَا يَمُوتُ وَالْجِنُّ وَالْإِنْسُ يَمُوتُونَ، اي الله جل جلاله! ما ستا اطاعت وکړو، ما په تا ايمان راوړو، ما په تا توکل وکړو، [٣] ما ستا طرف ته رجوع وکړه (يعني ګناهونو پرېښودلو سره ستا د اطاعت طرف ته متوجه شوم) او زه ستا په مدد سره (د کافرانو سره) جنګيږم، [۴] اي الله جل جلاله! زه ستا د عزت په واسطه ستا پناه غواړم، ستا څخه ماسوا بل معبود نشته، د دې څخه پناه غواړم چې ته ما ګمراه کړې، [۵] ته ژوندې يې، داسې چې ته نه مرې [۶] او ټول جنات او انسانان به مرې (بخاري، مسلم)

---

(١) اخرجه مسلم فی کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب التعوذ من شر ما عمل ومن شر ما لم يعمل (رقم-٦٥ - (٢٧١٦) وابوداود فی کتاب الصلاة باب فی الاستعاذة (رقم-١٥٥٠) واحمد فی المسند: ١٣٩/٦

(٢) اخرجه البخاری فی کتاب الدعوات /باب الدعاء إذا انتبه بالليل (رقم-٦٣١٧) ومسلم فی کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب التعوذ من شر ما عمل ومن شر ما لم يعمل (رقم-٦٧ - (٢٧١٧) واحمد فی المسند: ٩٥/١

**حل اللغات** ① أَنَبْتُ أَيْ رَجَعْتُ رجوع كوم د نافرمانۍ نه اطاعت ته، ② خَاصَمْتُ أَيْ حَارَبْتُ جنګ كوم ستا د دښمنانو سره

**تسهيلات: قوله وَإِلَيْكَ أَنَبْتُ:**

**دمذكوره جملې په مفهوم كښې دوه اقوال،**

① يعنى د نافرمانۍ نه طاعت طرف ته رجوع كول

② د غفلت نه د ذكر طرف ته رجوع كول مراد دى

**قوله: وَالْجِنُّ وَالْإِنْسُ يَمُوتُونَ:**

**د جناتو او انسانانو تخصيص وجه،** جنات او انسان چونكه مكلف دى په دې وجه په خاص توګه دَهغوى دَمرګ ذكر اوكړې شو ګنې مرګ هر يو سا والا ختاور سره لګيدلې دې

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [٢٤٦٤] دَ څلورو څيزونو نه پناه

٣٣ـ[٨] (١) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: (٢ «اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْأَرْبَعِ ٣ مِنْ عِلْمٍ لَا يَنْفَعُ، وَمِنْ قَلْبٍ لَا يَخْشَعُ، ٤ وَمِنْ نَفْسٍ لَا تَشْبَعُ، ٥ وَمِنْ دُعَاءٍ لَا يُسْمَعُ»). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُودَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** ١ ابوهريره ﷺ وايي چه نبى كريم ﷺ به داسې دعا كوله: ٢ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْأَرْبَعِ مِنْ عِلْمٍ لَا يَنْفَعُ وَمِنْ قَلْبٍ لَا يَخْشَعُ وَمِنْ نَفْسٍ لَا تَشْبَعُ وَمِنْ دُعَاءٍ لَا يُسْمَعُ، ترجمه اې الله ﷻ زه د څلور څيزونو څخه ستا پناه غواړم ٣ ① د هغه علم څخه چې نفع ورنكړي ② د هغه زړه څخه چې عاجزي نه كوي ٤ ③ د هغه نفس څخه چې سيربږي (مړيږي) نه ٥ ④ او د هغه دعا څخه چې نه قبليږي (احمد، ابوداؤد، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① لَا يَخْشَعُ: أَيْ: لَا يَسْكُنُ: چه نه ويريږي (يعنى دالله په ذكر ورته سكون او اطمينان نه راځي، ② لَا تَشْبَعُ: نه مړيږي (په خوراک يا په موجوده رزق باندې قناعت نه كوي يعنى حريص او اوږ ستركې وى، ③ لَا يُسْمَعُ: أَيْ: لَا يُسْتَجَابُ: چه اوريدلې كيږي نه يعنى نه قبليږي

**تسهيلات:**

**قوله: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْأَرْبَعِ:**

- **د رواياتو په مينځ كښې دفع د تعارض،** دَ څلورو څيزونو ذكر په دې حديث كښې دې مګر دا څه تحديد او حصر نه دې دې سره روايت كښې دَ پنځو څيزونو ذكر دې. دَدې نه دَ زياتو ذكر

---

[١] اخرجه الترمذى فى السنن رقم الحديث ٣٥٤٩ وابن ماجة فى كتاب الدعاء /باب دعاء رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-٣٨٣٧) واحمد فى المسند: ١٦٧/٢

هم شته نو د اهميت په اعتبار سره کله حضورپاك د کم ذکر کړي دي او کله د زيات ذکر د غه ش ن راوي نو د مختلف احوال په رنړا کښې کله زيات کله کم ذکر کړي دي

**د مذکوره څيزونو څخه د پناه غوښتلو وجوهات:** ① د علم نه د پناه غوښتلو مطلب دا دي چه کوم علم قابل انتفاع نه وي هغه وبال جوړيږي

② د نه يريدونکي زړه نه مراد دا دي چه که داسې حالت نه وي نو هغه زړه سخت شي لقوله تعالى ((فَوَيْلٌ لِّلْقَاسِيَةِ قُلُوبُهُم مِّن ذِكْرِ اللَّهِ))

③ داسې نفس نه چه مړيږي نه څکه پناه اوغستې شوه چه که نفس نه مړيږي نو په دې کښې د دنيا حرص موجود وي او چه کوم نفس کښې د دنيا حرص وي نو هغه د دعا په قبليدو کښې رکاوټ وي

④چه کله ما قبل درې څيزونه وي نو دعا چرته قبليږي لهذا د دعا د قبليدو د پاره ددې درې شرطونو کيدل ضروري دی دا حديث په دې دلالت کوی چه کومه دعا بغير د سجع نه د تکلف طبعي په بنا وي نو هغه منع نه ده

( )[١]((وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو وَالنَّسَائِيُّ عَنْهُمَا)).

**ترجمه** [١] او دا روايت ترمذي د عبد الله ابن عمرو ﷺ څخه او نسائي د ابوهريره او عبد الله بن عمرو ﷺ دواړو څخه روايت کړي دي.

**[٢٣٦٦] د پنځو څيزونو څخه پناه غوښتل**

[٩] ( )[١]وَعَنْ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَتَعَوَّذُ مِنْ خَمْسٍ [٢]مِنَ الْجُبْنِ وَالْبُخْلِ وَسُوءِ الْعُمُرِ[٣]وَفِتْنَةِ الصَّدْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه** [١] حضرت عمر ﷺ فرمايي چې نبی کريم ﷺ به د پنځو څيزونو څخه د الله پناه غوښتله.[٢] ① د نامردی (بزدلۍ) څخه ② د بخل څخه ③ د عمر د خرابی څخه (يعني د عمر د دومره زياتوالی څخه چې په آخر کې په قوٰی او حواسو کې فرق راشي، او د عبادت او طاعت طاقت پاتې نشي)[٣] ④ د سيني د فتني څخه (يعني د هغه څيز څخه چې په سينه کې دننه خراب اخلاق او خراب عقائد ځای ونيسي يا حق خبره نه قبلوي او د مصيبتونو متحمل نه وي) او ⑤ د قبر د عذاب څخه (ابوداؤد، ونسائي)

---

[١] اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ٣٥٤٩ وابن ما جة فی کتاب الدعاء /باب دعاء رسول الله صلی الله عليه وسلم (رقم-٣٨٣٧) واحمد فی المسند: ٢/١٦٧

[٢] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب فی الاستعاذة (رقم-١٥٤٠) وابن ما جة فی کتاب الدعاء /باب ما تعوذ منه رسول الله صلی الله عليه وسلم (رقم-٣٨٤٤) واحمد فی المسند:٢٢/١

**حل اللغات** ① الْغَنِيٰ: دا د شجاعة ضد دي. وَهُوَ الْخَوْفُ عِنْدَ الْقِتَالِ: په جهاد کښې ويره کول يعنې بزدلي ② الْبُخْلُ: کنجوسي په کومو ځايونو کښې چه د مال خرچ کولو حکم دي هلته مال نه خرچ کولو ته بخل وائي ③ سُوءِ الْعُمُرِ أَيْ سُوءِ الْكِبَرِ: خراب عمر يعنې دومره بوډاتوب چه عقل او حواس پکښې بېکاره شي ④ فِتْنَةِ الصَّدْرِ أَيْ مِنْ قَسَاوَةِ الْقَلْبِ: د سينې فتنه يعنې د زړه سخت والي چه د حق فکر پکښې نه وي ⑤ عَذَابِ الْقَبْرِ أَيِ الْبَرْزَخِ: د قبر عذاب، د برزخ عذاب

**تسهيلات:**

**قوله: يَتَعَوَّذُ مِنْ خَمْسٍ:**

**ديو اعتراض جواب:** په دې حديث کښې د پنځو ذکر دې دا د اقل منافي نه دي او د سينې نه مراد زړه دې

**[۲٤٦٧] د فقر او ذلت څخه پناه غوښتل**

[۱۰] ( )① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَقُولُ: ② (اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْفَقْرِ وَالْقِلَّةِ وَالذِّلَّةِ ③ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ أَنْ أَظْلِمَ أَوْ أُظْلَمَ» ). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه** ① ابو هريره رضي الله عنه وايي چې نبي کريم ﷺ به دا دعا کوله ② اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْفَقْرِ وَالْقِلَّةِ وَالذِّلَّةِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ أَنْ أَظْلِمَ أَوْ أُظْلَمَ، اى الله! جل جلاله زه ستا پناه غواړم د محتاجۍ څخه، د قلت لږوالي څخه، د ذلت څخه، ③ او ستا پناه غواړم د دې خبرې څخه، چې زه په چا ظلم وکړم يا څوک په ما ظلم وکړي، ابوداؤد، نسائي.

**حل اللغات:** ① الْفَقْرِ: محتاجي (زړه دومره حريص شي چه ناشکري پکښې پيدا شي) ② الْقِلَّةِ: کموالي (دمال يا د نيکو اخلاقو او ښه صفاتو) ③ الذِّلَّةِ: ذلت (چه دخلقو په نظر کښې سپک شي دخه ګناه په وجه يا د محتاجۍ په وجه) ④ أَظْلِمَ: د متکلم معلوم صيغه ده. يعنې چه زه په چا ظلم اوکړم ⑤ أُظْلَمَ: د متکلم مجهول صيغه ده. يعنې چه څوک په ما ظلم اوکړي (په ناحقه باندې زياتي کولو ته ظلم وائي)

**تسهيلات:**

**قوله: مِنَ الْفَقْرِ:**

**د فقر په مصداق کښې درې اقوال:** ① د فقر نه مراد د زړه فقر دې

② د فقر نه مراد د مال جمع کولو حرص دې

③ د فقر نه مراد داسې فقر چه په هغې سره دې کفران نعمت ته اورسي

---

) اخرجه ابوداود في كتاب الصلاة باب في الاستعاذة (رقم-١٥٤٤) والنسائي في كتاب الاستعاذة /باب الاستعاذة من الذلة(رقم-٥٤٦١د) وابن ماجة في كتاب الدعاء /باب ما تعوذ منه رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم - ٣٨٤٢) واحمد في المسند:٣٠٥/٢

**قوله** وَالْقِلَّةِ:

**د قلة په مفهوم کښې درې اقوال:** ① د نیکو کم والي مراد دې لکه چه د نبي علیه السلام په باره کښې راغلي دي چه کان یؤثر الاقلال في الدنیا ویکره الاستکثار من الأغراض الفانیة چه نبي علیه السلام به د مال او زرو کمې خوښولو او د مال کثرت او زیادت ئې نه خوښولو

② د قلة څخه د مال دومره کمې مراد دې چه قوت لا یموت د پاره هم کافي نه وي چه د عبادت د اداکولو نه هم سړې عاجزه کوي

③ د قلة څخه د صبر کمې یا د مال کمې مراد دې

**قوله** وَالذِّلَّةِ:

**د ذلة په مصداق کښې دوه اقوال:** ① د خلقو په نظر کښې ذلیل کیدل مرادي دې

② د نافرمانۍ او معصیت په وجه ذلت ترې مراد دې خکه چه ګناه ګار کس د الله په دارباره کښې ذلیل وي بلکه د خناورو نه هم بد تر وي کما ورد في القرآن أُولَٰئِكَ كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ

**[۲٤٦٨] د بدو اخلاقو څخه پناه غوښتل**

[۱۱] (۱) وَعَنْهُ أَنَّ «رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَقُولُ: (۲) اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الشِّقَاقِ وَالنِّفَاقِ وَسُوءِ الْأَخْلَاقِ»). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه** (۱) ابو هریره رضي الله عنه وايي نبي کریم ﷺ به دعا کوله: (۲) اللَّهُمَّ إِنِّي...الخ، اې الله: ستا زه ستا پناه غواړم.د اختلاف څخه، د منافقت څخه او د خرابو اخلاقو څخه، ابوداؤد، نسائي

**حل اللغات** ① الشِّقَاقِ: أَيْ: مِنْ مُخَالَفَةِ الْحَقِّ: د حق مخالفت کولو ته شقاق وائي ② النِّفَاقِ: أَيْ: إِضْمَارِ الْإِسْلَامِ وَإِبْطَانِ الْكُفْرِ: چه په ژبه خان ته مسلمان وائي او په زړه کښې ئې کفروي دې ته نفاق وائي. چه په ژبه یوڅه وائي او په زړه کښې ئې بل څه وي دې ته هم منافقت وائي

**تسهیلات:**

**قوله**: مِنَ الشِّقَاقِ:

**د شقاق په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① د شقاق څخه د حق مخالفت مراد دې لقوله: تعالی ((بَلِ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي عِزَّةٍ وَشِقَاقٍ))

② امام طیبي فرمائي چه د شقاق نه مراد عداوت او دشمني ده

**قوله**: وَالنِّفَاقِ

**د نفاق څخه مراد:** یعنی چه څوک اسلام ظاهروي او کفر په زړه کښې پټ ساتي بعضې

(۱) اخرجه ابوداود في کتاب الصلاة،باب في الاستعاذة (رقم-۱۵٤۶)

حضراتو ونيلي دي چه دا د نفاق تولو قسمونو او علاماتو ته شامل دي ((كما ورد في الحديث آية المنافق ثلاث إذا حدث كذب وإذا وعد أخلف وإذا ائتمن خان))

**[٢٤٦٩] د اولږې او خيانت څخه نه پناه**

٢٤٦٩-[١٢] (١) [١] وَعَنْهُ «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ يَقُولُ: [٢] اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْجُوعِ [٣] فَإِنَّهُ بِئْسَ الضَّجِيعُ، [٤] وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخِيَانَةِ فَإِنَّهَا بِئْسَتِ الْبِطَانَةُ»). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** [١] ابوهريره رضي الله عنه وايي چې نبي كريم ﷺ به دا دعا كوله [٢] اللّٰهُمَّ إِنِّي..الخ، اى الله! جل جلاله زه ستا پناه غواړم، د لوږې څخه، [٣] چې هغه بدترين هم خواب دى، [٤] او ستا پناه غواړم د خيانت څخه، چې هغه د باطن بدترين خصلت دى، (ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① الْجُوعِ: لوږه (داسې لوږه چه معده بالكل خالي شي چه د مرض يا د مرګ سبب ګرځي) ② الضَّجِيعُ: وَهُوَ مَا يُلَازِمُ صَاحِبَهُ فِي الْمَضْجَعِ: چه په ملاسته كښې هم ورسره ملګرې وى هغې ته ضجيع وائي (دالوږه هم د انسان سره هم خواب وى ورپورې لګيدلې وى). ③ الْبِطَانَةُ: أَيِ: الْخَصْلَةُ الْبَاطِنَةُ: باطني صفت، چونكه د خيانت تعلق د بدن دننه حصې سره دې يعنى زړه سره دې په دې وجه د انسان بدترين خصلت اوګرځولي شو.

**تسهيلات:**

**قوله:** مِنَ الْجُوعِ:

**د اولږې نه پناه د غوښتلو وجه:** د اولږې نه خكه پناه غوښتلې شوې ده كه د انسان ظاهرى اندامونه كمزورې شو نوانسان د يوعبادت اهل نه پاتې كيږى حلانكه د انسان د پيدا كولو مقصد د الله تعالى عبادت كول دى

**قوله:** فَإِنَّهُ بِئْسَ الضَّجِيعُ

**د مذكوره جملې مفهوم:** يعنى بعض وخت يو څيز انسان پورې لګى اوداسې ورپورې نخلى چه انسان پخپله حيران شي. اولګه هم دغه شان نوې راتلونكې ميلمه دې تركومې پورې چه ورسره دې د هغې پورې تنګول كوى اخوا كيږى نه نو ډير خراب ملګرې دې.

**[٢٤٧٠] د خلورو څيزونو څخه پناه غوښتل**

٢٤٧٠-[١٣] (٢) [١] وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ يَقُولُ: [٢] اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْبَرَصِ وَالْجُذَامِ [٣] وَالْجُنُونِ وَمِنْ سَيِّئِ الْأَسْقَامِ»). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه** [١] انس رضي الله عنه وايي چې نبى كريم ﷺ به دا دعا كوله [٢] اى الله! جل جلاله زه ستا پناه

(١) اخرجه ابوداود في كتاب الص لاة،باب في الاستعاذة (رقم-١٥٤٧) وابن ما جة في كتاب الأطعمة/باب التعوذ من الجوع (رقم-٣٣٥٤)

(٢) اخرجه ابوداود في كتاب الص لاة،باب في الاستعاذة (رقم-١٥٥٤) واحمد في المسند: ١٩٢/٣

عوارم د برص او جزام څخه.[۳] د ليونتوب څخه او خرابو بيماريو څخه. ابوداؤد. نسائي

**حل اللغات** ① الْبَرَص: بَيَاضٌ يَحْدُثُ فِي الْأَعْضَاءِ: بركي مرض دي چه په بدن باندې په څرمن سپين چاپونه پيدا شي. خارښ پرې اولګي اود جوړونو د ردونه ورسره پيدا شي ② الْجُذَام: يو مرض دي چه اندامونه ورسره کار پريږدي ترديې چه د اندامونو ريبدل او رجيدل شروع شي ③ الْجُنُون: أَيْ زَوَالُ الْعَقْلِ: ليونتوب چه عقل ئې کار نه کوي ④ سَيِّئِ الْأَسْقَامِ: خرابې بيمارئ. بې علاجه بيمارئ

**تسهيلات:**

**قوله:** اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُبِكَ مِنَ الْبَرَصِ وَالْجُذَامِ:

**د حديث خلاصه او مقصد:** دَحديث شريف خلاصه داده چه کوم مرض داسې وی چه خلق دَ مريض نه ډډه کوی پخپله مريض چرته په نيک کارباندې قادرنه وی مريض دَ حقوق الله او حقوق العباد په اداکولو باندې قادرنه وی نودَ داسې تباه کونکی مرض نه پناه غوښتل جائز دی بلکه ضروری دی.

## [۲٤٧١] دَخرابو اخلاقو څخه پناه

[۱٤] ()[۱]وَعَنْ قُطْبَةَ بْنِ مَالِكٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- «كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ:[۲] اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُبِكَ مِنْ مُنْكَرَاتِ الْأَخْلَاقِ[۳] وَالْأَعْمَالِ وَالْأَهْوَاءِ»). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** [۱] قطبه بن مالك ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ به فرمايل [۲] اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُبِكَ..الخ، اې الله ﷻ زه ستا پناه غوارم، د خرابو اخلاقو څخه،[۳] د خرابو اعمالو څخه او د خرابوخواهشاتو څخه. ترمذي

**حل اللغات:** ① مُنْكَرَات: دا د منکر جمع ده. الْمُنْكَرُ مَالَا يُعْرَفُ حُسْنُهُ مِنْ جِهَةِ الشَّرْعِ: منکر هغې ته وائی کوم چه شريعت هغه په نيکئ کنبې نه بلکه په بدئ کنبې شميرلې شوې وی ② الْأَخْلَاق: الْأَعْمَالُ الْبَاطِنَةُ: د اخلاقونه مراد باطنی اعمال دی لکه کينه. بغض او حسد وغيره دَ زړه باطنی امراض دی ③ الْأَعْمَال: أَيْ: الْأَفْعَالُ الظَّاهِرَةُ: د اعمال نه ظاهری ناکاره اعمال مراد دی ④ الْأَهْوَاء: دا د هَوْي جمع ده. خراب خواهشات. د اهل باطل عقائد او نظريات اودَ اهل بدعت بدعات مراددی

**تسهيلات:**

**نوټ:** د حديث مطلب آسان دې باقی د ګرانو لغاتو معانی د حل اللغات په عنوان سره واضح شوی دی

[۱]) اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۳۵۹۱

## [٢٤٧٢] د ښځو اندامو د شر څخه پناه غوښتل

٢٤٧٢-[١٥] (١)⃝١ وَعَنْ شُتَيْرِ بْنِ شَكَلِ بْنِ حُمَيْدٍ عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ⃝٢ «قُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللّٰهِ عَلِّمْنِي تَعْوِيذًا أَتَعَوَّذُ بِهِ قَالَ: ⃝٣ قُلِ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ سَمْعِي وَشَرِّ بَصَرِي ⃝٤ وَشَرِّ لِسَانِي وَشَرِّ قَلْبِي وَشَرِّ مَنِيِّي» ). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه** ⃝١ شتير بن شكل بن حميد د خپل پلار (حضرت شكل ﷺ) څخه روايت كوي چې هغه اوويل⃝٢ چې ما عرض وكړ يا رسول الله ﷺ ماته څه داسې تعويذ (يعني داسې دعا) وښايه، چې د هغه په ذريعه زه پناه غواړم؟⃝٣ نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل چې دا دعا وايه اې الله ﷻ زه ستا پناه غواړم، د خپل سماعت (آوريدو) د خرابۍ څخه (چې په خپل غوږ سره خرابې خبرې وانه ورم) د خپلې بينائي د خرابۍ څخه (چې په خپلو سترګو سره خراب ځيزونه ونه وينم)⃝٤ د خپلې ژبې د خرابې څخه (چې د خپلې ژبې څخه خرابې او بې فائدې خبرې اونه باسم) د خپل زړه د خرابۍ څخه (چې زما په زړه كې د خرابې عقيدې او حسد او كينې وغيره تيريدنه نه وي او په خراب كار كې پخه اراده ونه كړم) او د خپلې منۍ د خرابۍ څخه. چې هغه په حرام كارۍ كې صرف نشي، او زه د شهوت په نظر سره څوك ونه وينم. ابوداؤد، ترمذي، نسائي.

**حل اللغات**: ① تَعْوِيذًا: أَيْ: مَا يَتَعَوَّذُ بِهِ: څه سره چه پناه غوښتلې شي هغې ته تعويذ وائي (دلته مراد دا ستعذي او د پناه دعا ده). ② شَرِّ سَمْعِي: سمع غوږ ته وائي مطلب دا چه زه داسې خبرې وانورم په كوم سره چه الله تعالى ناراض شي. ③ شَرِّ بَصَرِي: بصر نظر ته وائي، يعني زه داسې ځيز ته اونه ګورم د كوم په كتوسره چه الله تعالى ناراضه كيږي. ④ شَرِّ لِسَانِي: د ژبې شر، يعني په ژبه مې داسې خبره رانه شي كومه چه فضول وي ⑤ شَرِّ قَلْبِي: د زړه شر، يعني داسې عقائد خپل نه كړم په كوم سره چه ته ناراض كيږې ⑥ شَرِّ مَنِيِّي: د منې د اوبو شر، يعني چه منى غالب راشى او په زنا كښې مې واقع كړى

**تسهيلات**:

**نوټ**: د دې حديث تشريح د تسهيلات په شرح كښې په بل ځائې ذكرشوې ده

## [٢٤٧٣] داته ځيزونو څخه پناه غوښتل

٢٤٧٣-[١٦] (٢)⃝١ وَعَنْ أَبِي الْيَسَرِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَدْعُو⃝٢ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَدْمِ، ⃝٣ وَأَعُوذُ مِنَ التَّرَدِّي، ⃝٤ وَمِنَ الْغَرَقِ وَالْحَرَقِ وَالْهَرَمِ، ⃝٥ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ أَنْ يَتَخَبَّطَنِي الشَّيْطَانُ عِنْدَ الْمَوْتِ، ⃝٦ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ أَنْ أَمُوتَ فِي سَبِيلِكَ مُدْبِرًا، ⃝٧ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ أَنْ أَمُوتَ لَدِيغًا» ). ⃝٨ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَزَادَ فِي رِوَايَةٍ أُخْرَى وَالْغَمِّ.

---

(١) اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة،باب فى الاستعاذة (رقم-١٥٥١) واحمد فى المسند: ٤٢٩/٣

(٢) اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة،باب فى الاستعاذة (رقم-١٥٥٢) واحمد فى المسند: ٤٢٦/٣

**ترجمه** [١] ابو اليسر رضي الله عنه ويلي دي چې نبی کريم ﷺ به دا دعا غوښتله [٢] اې الله! ﷻ زه ستا پناه غواړم د مکان د غورځيدو څخه (يعني يو مکان يا ديوال په ما راونه لويږي. چې د هغه په وجه زه هلاك شم) [٣] او ستا پناه غواړم د يو اوچت ځاى د لويدو څخه، د ډوبيدو څخه، د سوزيدو څخه، د زيات بوډاتوب څخه، [٥] او ستا پناه غواړم د دې خبرې څخه، چې د مرګ په وخت شيطان ما حواس باخته کړي (يعني په وسوسو پيدا کولو سره زما دين تباه کړي) [٦] ستا پناه غواړم، د دې خبرې څخه، چې ستا په لار کې شا ګرځولو سره (يعني په جهاد کې د کفارو په مقابله کې تښتيدو سره) مړ شم، [٧] او ستا پناه غواړم، د دې خبرې څخه چې مار، لړم او د نورو زهرجنو ځناورو خوړلو سره مړ شم، [٨] ابوداؤد، نسائي. د نسائي په يوه روايت کې وَالْغَمِّ هم ليکلی دی (يعني د غم څخه ستا پناه غواړم)

**حل اللغات**: ① الْهَدْمِ: وَهُوَ سُقُوطُ الْبِنَاءِ: آبادى ديوال وغيره راغورزيدو ته وائى. ② التَّرَدِّي: أَيْ: السُّقُوطِ مِنْ مَكَانٍ عَالٍ: دَ اوچت ځائي نه دَ راغورزيدو په معنى کښې دې لکه د غر نه. ③ الْغَرَقِ: أَى فِي الْمَاءِ: په اوبوکښې غرقيدل. ④ الْحَرَقِ: أَيْ: بِالنَّارِ: په اورکښې سوزيدو ته حرق وائى. ⑤ الْهَرَمِ: أَيْ: كِبَرِ السِّنِّ: بوډاتوب، چه د زيات عمر په وجه ئې عقل او حواس کمزوري شى. ⑥ يَتَخَبَّطَنِي: أَى إِفْسَادُ الْعَقْلِ وَالدِّينِ: يعنى شيطان په خپلو اغوا کولوسره زما عقل کښې فساد پيدا کړى او خبطى اوليونى رانه جوړنه کړى. ⑦ مُدْبِرًا: په شا تختيدل (په ميدان جنګ کښې دَ شرعى عذر نه بغيردشمن نه تختيدل). ⑧ لَدِيغًا: فعيل په معنى د مفعول سره يعنى چيچلې شوې (د زهريله حيواناتو يعنى د لړم، مار وغيره د چيچلو دپاره لديغ لفظ استعماليږى).

**تسهيلات**: **نوټ**: د حديث مطلب آسان دې باقى د ګرانو لغاتو معانى د حل اللغات په عنوان سره واضح شوى دى.

## [٢٤٧٤] دَ طمع څخه دَپناه غوښتلو حکم

٢٤٧٤-[١٧] ()[١] وَعَنْ مُعَاذٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] «اسْتَعِيذُوا بِاللَّهِ مِنْ طَمَعٍ يَهْدِي إِلَى طَبَعٍ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ.

**ترجمه** [١] حضرت معاذ رضي الله عنه د نبی کريم ﷺ څخه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] په الله سره پناه غواړي د هغه طمع څخه چې انسان طبع (په زړه مهر) ته رسوي احمد، بيهقي.

**حل اللغات**: ① طَمَعٍ: وَهُوَ نُزُوعُ النَّفْسِ إِلَى الشَّيْءِ شَهْوَةً لَهُ: يوځيز طرف ته دخواهش په وجه مائل کيدلو ته طمع وائى. ② يَهْدِي: أَيْ: يُوَصِّلُ: رسوى، نزدې کوى، ③ طَبَعٍ: أَيْ: عَيْبٍ: طبع عيب وائى، دَ اوسپنې زنګ ته هم وائى، خيرى وغيره ته هم وائى او مهر ته هم وائى، بلکه ټولو ګناهونو دپاره استعماليږى.

() اخرجه احمد في المسند: ٥/٢٣٢

**تسهيلات:**

**قوله: طمع:**

**چا څخه د طمعې ساتلو ته پناه کاري**: دَ مخلوق دَ طرف نه دَ مال او زر امیدلرل طمع ده بېدی خوك چه اورسوی او لاړ هواره کړی

ابن ملك دَ دې عبارت تفسير داسې كوى "يعنى من الحرص الذى يجر صاحبه الى الذل والعيب"
دَ انسانی روح دَپاره طمع اولالچ داسې ناسور دې چه په مزه مزه دَ انسان دَ دین په ټولو شعبوکښې په مختلف طریقو سره لکه دَ زهرو په شان ورننوځی هم په دې وجه ونیلی شوی دی چه طمع دَدین دَفساد جرړه ده لکه چه تقوی دَدین دَاصلاح جرړه ده حضرت عمرفاروق رضی الله عنه دَحضرت کعب رضی الله عنه نه پوښتنه اوکړه چه "فما اخرج العلم من قلوب العلماء قال الطمع"

**[٢٤٧٥] د سپوږمۍ د شر څخه پناه غوښتل**

[١٨] (١) ١ وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- نَظَرَ إِلَى الْقَمَرِ فَقَالَ: ٢ يَا عَائِشَةُ اسْتَعِيذِي بِاللّٰهِ مِنْ شَرِّ هٰذَا ٣ فَإِنَّ هٰذَا هُوَ الْغَاسِقُ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: ١ ام المؤمنين بي بي عائشه رضی الله عنها وايي چې نبی کريم ﷺ (يو خل) سپوږمۍ ته وکتل او وې فرمايل ٢ چې اې عائشې! (رضی الله عنها) د الله تعالی څخه پناه غواړه، د دې سپوږمۍ د شر څخه، ٣ څکه چې دا تياره خورونکي ده، هر کله چې بې نوره شي، ترمذي

**حل اللغات**: ① الْغَاسِقُ: د غَسَقَ يَغْسِقُ نه. إِذَا أَظْلَمَ: کله چه تياره خوره شي. هُوَ اللَّيْلُ إِذَا غَابَ الشَّفَقُ: د مابنام په وخت کښې د نمر سوروالی چه ختم شی اوشپه خوره شی هغې ته غاسق وائی

**تسهيلات:**

**قوله: فَإِنَّ هٰذَا هُوَ الْغَاسِقُ:**

**د غاسق اذا وقب تفسير**: په دې حديث کښې دَ قرآن کريم دَ يوآيت طرف ته اشاره ده چه په سورت فلق کښې داسې دې. ﴿ وَمِنْ شَرِّ غَاسِقٍ إِذَا وَقَبَ﴾ مطلب دا چه کله سپوږمئ بې نوره شي اوتندرئي اونيسي نو تندر نيولوسره دَ آفتونو اومصيبتونو دَنازليدو طرف ته اشاره وی. لهذا دَ سپوږمئ تندر نيولونه هم پناه غوښتل پکاردی اوسوج کول پکاردی چه دا دومره لويه کره چه کله په مصيبت کښې راتلوسره بې نوره شوې ده نوچرته زما زړه هم دَ ايمان دَ نور نه بې نوره نه شی دې نه پناه غوښتل پکاردی. دَدې حديث نه معلوميږی چه غاسق اذا وقب نه مراد تندرنيولې شوې سپوږمئ ده سره دَدې چه اکثر مفسرين دا جمله دَ شپې خوريدو او تياره کيدو باندې حمل کوی

---

(١) اخرجه احمد فی المسند: ٢١٥/١ والترمذی فی السنن رقم الحديث ٣٣٦٦

## [٢٤٧٦] ذاووه معبودانو د عبادت كونكى قصه

٢٣٧٠-[١٩] ( )[١] وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: «قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِأَبِي:[٢] يَا حُصَيْنُ كَمْ تَعْبُدُ إِلَهًا؟[٣] قَالَ أَبِي: سَبْعَةً سِتًّا فِي الْأَرْضِ وَوَاحِدًا فِي السَّمَاءِ[٤] فَأَيُّهُمْ تَعُدُّ لِرَغْبَتِكَ وَرَهْبَتِكَ؟[٥] قَالَ: الَّذِي فِي السَّمَاءِ[٦] قَالَ يَا حُصَيْنُ: أَمَا إِنَّكَ لَوْ أَسْلَمْتَ عَلَّمْتُكَ كَلِمَتَيْنِ تَنْفَعَانِكَ،

**ترجمه** [١] عمران ابن حصين ﷺ وايي چې نبی كريم ﷺ زما پلار (حصين ﷺ) ته چې تر هغه وقته لا د ايمان او اسلام په دولت برخه مند نه وو، وفرمايل[٢] چې اې حصين! نن صبا ته د خومره معبودانو بندګي کوې؟[٣] زما پلار عرض وکړو چې د اوو معبودانو چې په هغه کې شپږ خو په زمکه کې دي (او د هغوی نومونه دا دي ① يغوث ② يعوق ③ نسر ④ لات ⑤ منات ⑥ عزّی او يو په آسمان کې دی (چې د ټولو خالق دی)[٤] بيا نبی كريم ﷺ وفرمايل چې په هغوی کې کوم يو معبود ستا د اميد او خوف مرجع ده؟ (يعنی په هغوی کې د کوم معبود څخه ته ير يږې او د هغه څخه د خير اميد لرې؟[٥] هغه عرض وکړی کوم چې په آسمان کې دی.[٦] نبی كريم ﷺ وفرمايل چې اې حصين! پوهه شه، كه ته مسلمان شوی وې، نو ما به تاته دوه كلمې ښودلې وې، چې تاته به يې په دنيا او آخرت کې فائدې رسولی.

**حل اللغات**: ① لِرَغْبَتِكَ: أي حِينَ تَرْجُو: رغبت د زړه ميلان او شوق ته وائی ② رَهْبَتِكَ: أي حِينَ تَخَافُ: د زړه وېره، (يعنی چه ستا څه اميد وی يا څه حاجت وی نو ته د اميد او وېرې په حالت کښې چاته زارۍ کوې؟)

**تسهيلات**: **قوله**: وَوَاحِدًا فِي السَّمَاءِ:

### د مذكوره جملې په مفهوم كښې دوه اقوال:

① دا خبره حضرت حصين ﷺ د خپل ګمان مطابق كړې وه ځكه چه هغه ته د ايمان او اسلام دولت هغه وخت نه وو نصيب شوې، هغوی ته څه معلومه وه چه د الله تعالی دپاره هيڅ يو ځائې او مقام نه دې مقرر. هغه خو د زمکې او آسمان په يوه يوه ذره باندې حاوی او محيط دې. د هغه ذات هيڅ يو مقام او خاص ځائې سره مختص نه دې،

② د هغوی د دې خبرې مفهوم دا ووچه هغه الله د كوم چه په آسمان كښې فرشتې عبادت كوی

[١] قَالَ: فَلَمَّا أَسْلَمَ حُصَيْنٌ قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ[٢] عَلِّمْنِي الْكَلِمَتَيْنِ اللَّتَيْنِ وَعَدْتَنِي[٣] فَقَالَ: اللَّهُمَّ أَلْهِمْنِي رُشْدِي[٤] وَأَعِذْنِي مِنْ شَرِّ نَفْسِي» ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** [١] عمران وايي ﷺ كوم وخت چې زما پلار، حصين ﷺ مسلمان شو، نو هغه عرض وكړی چې يا رسول الله! ﷺ [٢] اوس ماته هغه دوه كلمې راوښايه، چې تا د هغوی وعده كړې وه.[٣] نبی كريم ﷺ ورته وفرمايل چې دا كلمات وايه اللّٰهُمَّ أَلْهِمْنِي رُشْدِي

( ) اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ٣٤٨٣

وَأَعِذْنِيْ مِنْ شَرِّ نَفْسِيْ، اې الله ﷻ زما په زړه کې زما هدايت واچوې، ٢ او زما د نفس د شر څخه ماته پناه راکړې. ترمذي

**حل اللغات** ① أَلْهِمْنِيْ أي وَفِّقْنِي هدايت راته واچوې په زړه کښې يعنى توفيق راکړې. ② رُشْدِيْ: وَهُوَ الِاهْتِدَاءُ إِلَى الصَّلَاحِ هدايت يعنى د نيکۍ سمه لار.

**[٢٤٧٧] دَ ماشوما نو په غاړه کښې دَتعويذ اچولو ثبوت**

٣٤٧٧-[٢٠] ( ) ١ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ «إِذَا فَزِعَ أَحَدُكُمْ فِي النَّوْمِ فَلْيَقُلْ: ٣ أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّاتِ مِنْ غَضَبِهِ وَعِقَابِهِ وَشَرِّ عِبَادِهِ ٤ وَمِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِينِ ٥ وَأَنْ يَحْضُرُونِ فَإِنَّهَا لَنْ تَضُرَّهُ» ٦ وَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو يُعَلِّمُهَا مَنْ بَلَغَ مِنْ وَلَدِهِ ٧ وَمَنْ لَمْ يَبْلُغْ مِنْهُمْ كَتَبَهَا فِي صَكٍّ ٨ ثُمَّ عَلَّقَهَا فِي عُنُقِهِ»). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَهَذَا لَفْظُهُ.

**ترجمه** ١ عمرو بن شعيب رحمه الله خپل پلار (شعيب رحمه الله) څخه او هغه د خپل نيکه حضرت عبد الله رضي الله عنه څخه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ هر کله چې په تاسو کې يو سړی په خوب کې ير يږي، نو هغه ته پکار دی، چې دا کلمات وايي ٣ أَعُوذُ ...الخ، زه د الله ﷻ د پوره کلماتو په ذريعه پناه غوارم، د هغه د غضب څخه، د هغه د عذاب څخه، د هغه د بنده ګانو د شر څخه، ٤ د شيطان د وسوسو څخه، ٥ او د دې خبرې څخه چې شيطان ماته راشي، نو د دې کلماتو ويونکي ته شيطان هيڅ کله ضرر نشي رسولی. ٦ عبد الله بن عمرو رضي الله عنه به دا کلمات خپل اولاد کې هر هغه سړي ته ښودل چې بالغ به وو. ٧ او د هغه په اولاد کې چې به نابالغ وو، دا کلمات به يې د کاغذ په ټکره ليکل ٨ بيا به يې د هغه په څټ کې اچول، دا روايت ابو داؤد او ترمذي روايت کړی دی. ليکن الفاظ د ترمذي دي

**حل اللغات:** ① فَزِعَ: أي: خَافَ: اوير يږي، ② عِقَابِهِ: أي: عَذَابِهِ: دهغه دعذاب نه. ③ هَمَزَاتِ: أي: وَسَاوِسِهِمْ: وسوسې د شيطان. ④ يَحْضُرُونِ: چه را حاضر يږي (يعنى زما په مونځ، ذکر، دعا وغيره کښې خلل اچوي) ⑤ صَكٍّ: أي: كِتَابٍ: د کاغذ ټکره. ⑥ عَلَّقَهَا: رازوړندولو به ئې دا کاغذ

**تسهيلات: قوله:** فِي صَكٍّ:

**په غاړه کښې د تعويذ اچولو حکم:** يعنى دَ کاغذ په ټکره باندې به ئې ليکلو صك په اصل کښې چك وو دکاغذ ټکړې ته وائي. يعنى حضرت عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنه به دا کلمات خپلو هغه بچوته ليکلوسره ورکولو کوم ماشومان چه به لوئى وو اودَ يادولو قابل به وو ليکن چه کوم ماشومان واړه وو يادولې به ئې نه شو نوحضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه به داکلمات په کاغذ باندې ليکلو سره دَهغوى په غاړه کښې اچول دَدې نه معلومه شوه

---

^1) اخرجه ابوداود فى كتاب الطب /باب كيف الرقى (رقم-٣٨٩٣) والترمذى فى السنن رقم الحديث ٣٥٢٨ واحمد فى المسند: ٢/١٨١

چه په غاړه کښې تعويذ زوړندول منع نه دی اودا حديث په جواز باندې واضح دليل دې ملاعلي قاري رحمه الله "في عنقه، اي في رقبة ولده وهو هذا الاصل في تعليق التويذات التي فيها اسماء الله تعالى"

**د تعويذاتو په باره کښې راجح قول:** په تعويذاتو کښې اګرچه د علماؤ اختلافي اقوال شته ليکن راجح قول دادې چه کوم تعويذ په جادو کوډو او غير الله نه استمداداو شرکيه کلماتو باندې مشتمل وی يا په مبهم کلماتو باندې مشتمل وی يا د هډوکونه هار جوړکړی غاړه کښې واچوی اودمنتر اوجنتر د قسمونونه وی نود هغې استعمالول حرام دی اوکوم تعويذونه چه د قرآن اوحديث په دعاګانوباندې مشتمل وی نوهغه جائز دی باقی دا نن صبا چه خلقودجائز تعويذاتوکوم کاروبارشروع کړې دې نواګرچه دجائز تعويذعمل د طبيب اوډاکټر دعلاج په شان يو کوشش دې په دې باندې پيسې اخستل هم د ډاکټر دعلاج په شان دې هيڅوک دې ته حرام نه شی وئيلې ليکن دا کاروبار جوړول او د پيشې په توګه باندې استعمالول مناسب نه دی تجربه ګواه ده چه ددې انجام ښه نه دې راوتلې هسې هم عام خلق داسې عالم يا پير ډير سپك ګڼړی که هغه د تعويذونو د وجې نه هرڅومره مالدار ولې نه وی بعض حضراتو سره فن هم کامل نه وی صرف د پيسو راټولو دپاره مخلوق خدا په قسم قسم بهانو سره راګيروی ﴿اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّآ اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ﴾

**[٢٤٧٨] داسې دعا چه جنت پخپله سفارش اوکړی**

٢٤٧٨- [٢١] ()① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -② مَنْ سَأَلَ اللّٰهَ الْجَنَّةَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ③ قَالَتِ الْجَنَّةُ: اللّٰهُمَّ أَدْخِلْهُ الْجَنَّةَ④ وَمَنِ اسْتَجَارَ مِنَ النَّارِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ⑤ قَالَتِ النَّارُ: اللّٰهُمَّ أَجِرْهُ مِنَ النَّارِ» ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه** ① انس رضی الله عنه راوي دی چې رسول الله صلي الله عليه و سلم فرمائيلی دی ②چه کوم سړی چې د الله جل جلاله نه درې ځله جنت وغواړي يعنی درې ځله دادعا وکړي اللّٰهُمَّ أَدْخِلْنِي الْجَنَّةَ. اې الله جل جلاله ما په جنت کې داخل کړی (يا په کومه بله ژبه په پښتو وغيره کې په هم دې مفهوم او مضمون درې ځله اووائي) ③نو جنت وايي چې اې الله جل جلاله ته دی په جنت کې داخل کړې. ④ او کوم سړی چې درې ځله د اور نه پناه غواړي. يعنی درې ځله داسې اووائي اللّٰهُمَّ أَجِرْنِي مِنَ النَّارِ (ای الله جل جلاله ما د اور نه محفوظ کړې (يا دا مفهوم او مضمون په کومه ژبه کې هم درې ځله اداء کړي) ⑤نو اور وايي چې اې الله جل جلاله ته دا سړی د اور نه محفوظ کړې (ترمذي، نسائي)

**حل اللغات:** ① اسْتَجَارَ: أي: اسْتَحْفَظَ: پناه او حفاظت غوښتل

() اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ٢٥٧٢ والنسائی فی كتاب الاستعاذة/باب الاستعاذة من حر النار (رقم-٥٥٢١) واحمد فی المسند:٢٠٨/٣

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ سَأَلَ اللهَ الْجَنَّةَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ:

**د ثلاث په مصداق کښې دوه اقوال:**

① درې ځل دا دعا کوي

② په درې وختونو کښې دې وائي او هغه درې وختونه دا دي

**د درې وختونو په مصداق کښې دوه اقوال:** ① (الف) د تصديق په وخت کښې.

(ب) د اقرار په وخت کښې، (ج) د عمل په وخت کښې

② (الف) د طاعت په وخت کښې، (ب) د معصيت د انتهاء په وخت کښې (ج) د مصيبت په وخت کښې خود دعا په وخت کښې اخلاص، تضرع، عجز، لجاجت او توجه هم ضروري دي

**قوله:** قَالَتِ الْجَنَّةُ:

**د مذکوره قول په مفهوم کښې درې احتمالات:**

① جنت بزبان حال دا وائي.

② جنت بزبان قال وائي.

③ دا د جنت کلام نه دې بلکه د اهل جنت کلام دې.

**قوله:** اللّٰهُمَّ أَدْخِلْهُ الْجَنَّةَ:

**د دخول په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① د دخول څخه دخولِ اولی مراد دې

② د دخول څخه مطلقا دخول مراد دې.

**قوله:** اللّٰهُمَّ أَجِرْهُ مِنَ النَّارِ:

**د اجره په مفهوم کښې دوه احتمالات:** ① دخول نار نه مطلقا محفوظ کول مراد دي

② دخول ابدي نه محفوظ ساتل مراد دي.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [٢٤٧٩] دَ سحر نه د بچ کيدو دعا

٢٤٧٩-[٢٢] (١) [١] عَنِ الْقَعْقَاعِ أَنَّ كَعْبَ الْأَحْبَارِ قَالَ: [٢] لَوْلَا كَلِمَاتٌ أَقُولُهُنَّ لَجَعَلَتْنِي يَهُودُ حِمَارًا. [٣] فَقِيلَ لَهُ: مَا هُنَّ قَالَ: [٤] أَعُوذُ بِوَجْهِ اللهِ الْعَظِيمِ الَّذِي لَيْسَ شَيْءٌ أَعْظَمَ مِنْهُ، [٥] وَبِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّاتِ الَّتِي لَا يُجَاوِزُهُنَّ بَرٌّ وَلَا فَاجِرٌ، [٦] وَبِأَسْمَاءِ اللهِ الْحُسْنَى مَا عَلِمْتُ مِنْهَا وَمَا لَمْ أَعْلَمْ [٧] مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ وَذَرَأَ وَبَرَأَ). رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه** [١] قعقاع وايي چې حضرت کعب احبار رحمه الله فرمايل [٢] چې که ما هغه کلمات نه ويلاې نو يهودو به زه خر جوړ کړی وم، [٣] د هغه څخه پوښتنه وشوه هغه کوم کلمات دي؟

(١) اخرجه مالک في الموطا کتاب الشعر باب ما يؤمر به من التعوذ (رقم-١٢)

هغه ورمبل چې هغه دا دي أَعُوذُ بِوَجْهِ اللَّهِ الْعَظِيمِ الَّذِي لَيْسَ شَيْءٌ أَعْظَمَ مِنْهُ وَبِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّاتِ الَّتِي لَا يُجَاوِزُهُنَّ بَرٌّ وَلَا فَاجِرٌ وَبِأَسْمَاءِ اللَّهِ الْحُسْنَى مَا عَلِمْتُ مِنْهَا وَمَا لَمْ أَعْلَمْ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ وَذَرَأَ وَبَرَأَ. زه پناه غوارم، د الله ﷻ د ذات په ذريعه چې ډير لوی دی. هغه الله ﷻ چې هيڅ څيز د هغه څخه لوی نشته. [٥]د هغه د کاملو لماتو په ذريعه چې د هغه څخه نه څوك نيك تجاوز کوي. او نه څوك بد. [٦]د الله ﷻ د نومونو په ذريعه چې پاك او نيك دی. په هغې نومونو سره چې څه زه يې پيژنم او چې زه يې نه پيژنم، [٧]د هغه څيز د شر څخه چې هغه پيدا کړل او برابر يې کړل يعني متناسب الاعضاء يې جوړ کړل، (مالك)

**حل اللغات** ① بِوَجْهِ اللَّهِ: أَيْ ذَاتِهِ: د وَجْهُ نه تعبير کيږي په ذات دالله تعالى سره. ② لَا يُجَاوِزُهُنَّ: تجاوز نه کوی يعنی نه تيريږی دهغې نه. ③ بَرٌّ: نيک، مسلمان. ④ فَاجِرٌ: گناهگار. کافر. ⑤ ذَرَأَ: أَيْ بَثَّ وَنَشَرَ: خواره ئې کړل. ⑥ بَرَأَ: أَيْ أَوْجَدَ مُبَرَّأً: پوره ئې پيدا کړل، هر اندام ئې په مناسب اندازه برابر کړل.
هيڅ لاندې باندې پکښې نشته

**تسهيلات: قوله:** عَنِ الْقَعْقَاعِ أَنَّ كَعْبَ الْأَحْبَارِ قَالَ:

**د حديث پس منظر:** حضرت کعب احبارد يهودو د لويوعلماؤ نه وو د حضور پاك زمانه ئې ليدلې ده ليکن نه مسلمان شو اونه ئې حضوراکرم اوليدلو روستو د حضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کښې مسلمان شو دغوی بيان دې چه کله مسلمان شو نو يهود زما مخالف شو په ما باندې قسم قسم جادو اوکړو. که چرې ما دغه مذکوره کلمات نه لوستلې نو نيزدې وه چه يهوديانو زه دخپل جادو په ذريعه خرجوړ کړې ووم يعنې په ربنتياؤ به خر جوړيدم يا دخربه شان مسلوب العقل بې وقوف به جوړيدم خود دغه کلماتو په وجه سره زه محفوظ پاتې شوم تپوس کونکی پوښتنه اوکړه هغه کلمات کوم دی نو هغوی وراوخودل چه پورته په حديث کښې دی،

**قوله:** لَا يُجَاوِزُهُنَّ:

**د مذکوره جملې مفهوم او مطلب:** دکلمات تامه نه مراد قرآن عظيم هغه کلام عظيم دې چه ددې د احکامو نه نه نيك سړې بهرکيدې شی کوم چه مسلمان وی اونه لوئی سړې بهرتلې شی کوم چه کافردې او په قرآن کښې دوه قسمه احکام دی يوقسم وعد اوبل قسم وعيد دی لهذا د "بر" او "فاجر" نه به مؤمن اوکافرمراد اخستې شی ددې جملې مطلب دادې چه قرآن عظيم په مسلمان اوکافر دواړو باندې محيط دې د يوپاره زيرې دې او د بل د پاره ويرونکې دې

**قوله:** وَبَرَأَ: او بغير د څه تفاوت نه ئې صحيح کړل يوالله والا په يومجلس کښې د علماؤ د لوستلو د پاره داسې دعا اوخودله اې الله د خپل هرمخلوق د شر نه زما حفاظت اوکړه.

**[۲٤٨٠] دهر مانځه څخه روسته مسنون عمل**

٢٤٨٠-[٢٣] (١) [١] «وَعَنْ مُسْلِمِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ كَانَ أَبِي يَقُولُ فِي دُبُرِ الصَّلَاةِ [٢] اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكُفْرِ وَالْفَقْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ [٣] فَكُنْتُ أَقُولُهُنَّ فَقَالَ: أَيْ بُنَيَّ عَمَّنْ أَخَذْتَ هَذَا [٤] قُلْتُ: عَنْكَ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَقُولُهُنَّ فِي دُبُرِ الصَّلَاةِ» [٥] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ فِي دُبُرِ الصَّلَاةِ [٦] وَرَوَى أَحْمَدُ لَفْظَ الْحَدِيثِ وَعِنْدَهُ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ.

**ترجمه** [١] مسلم بن ابي بكره وايي چې زما پلار به په هر مانځه يا د فرض مانځه څخه روسته دا دعا غوښتله اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكُفْرِ وَالْفَقْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ. [٢] اي الله ﷻ زه ستا پناه غواړم د كفر څخه، د فقر څخه يعني د قلبي فقر د فتنې څخه، چې بې صبري او كفران د نعمت وغيره دي، او د قبر د عذاب څخه، [٣] نو زه هم دا كلمات وايم. يوه ورځ زما پلار ماته اوويل چې اې زما ځويه! دا كلمات تا د چا څخه زده كړل؟ [٤] ما ورته اوويل چې ستا څخه. نو هغه وفرمايل نبي كريم ﷺ به د لمنځونو څخه روسته دا كلمات ويل. دا روايت نسائي او ترمذي كړى دى، [٥] ليكن ترمذي د دبر الصلوٰة نه دي ذكر كړي. [٦] او امام احمد په خپل مسند كې دا حديث ټول ذكر كړيدي او لفظ دبر كل صلوٰة يې ذكر كړى دى

**حل اللغات:** ① دُبُرِ الصَّلَاةِ: د مونځ نه پس (ددې نه فرض مونځ يا عام مونځ مراد دې)

**[٢٤٨١] دقرض اوكفر دواړو نه پناه غواړنى**

٢٤٨١-[٢٤] (٢) [١] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ يَقُولُ: [٢] «أَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنَ الْكُفْرِ وَالدَّيْنِ [٣] فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَتَعْدِلُ الْكُفْرَ بِالدَّيْنِ قَالَ: نَعَمْ»). [٤] وَفِي رِوَايَةٍ: اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكُفْرِ وَالْفَقْرِ [٥] قَالَ رَجُلٌ: وَيُعْدَلَانِ؟ قَالَ: نَعَمْ. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [١] ابوسعيد ﷺ وايي چې ما د نبي كريم ﷺ څخه دا كلمات اوريدلي دي أَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنَ الْكُفْرِ وَالدَّيْنِ [٢] يعنى زه د الله ﷻ پناه غواړم، د كفر او د قرض څخه. [٣] يو سړي (په دې اوريدو سره) عرض وكړو چې يا رسول الله! ﷺ آيا ته كفر د قرض سره برابر كوي؟ نبي كريم ﷺ وفرمايل چې هو. [٤] او په يوه روايت كې دا دعا منقول ده اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكُفْرِ وَالْفَقْرِ، يعنى اې الله! ﷻ زه ستا پناه غواړم. د كفر او د فقر څخه (د دي اوريدو سره) يو سړي عرض وكړ چې آيا كفر او فقر دواړه برابريدى شي؟ نبي كريم ﷺ وفرمايل هو (نسايي)

---

[١] اخرجه ابو داود فى كتاب الأدب/باب ما يقول إذا أصبح (رقم-٥٠٩٠) والنسائى فى كتاب الاستعاذة/باب الاستعاذة من شر الكبر (رقم-٥٤٩٥) واحمد فى المسند:٥/٣٦

[٢] اخرجه النسائى فى كتاب الاستعاذة/باب الاستعاذة من شر الكفر (رقم-٥٤٨٥) واحمد فى المسند: ٥/٣٦

**تسهیلات:**

**قوله** أَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنَ الْكُفْرِ وَالدَّيْنِ:

**په حدیث کښې د کفر او قرض هواړو د برابر ګرځولو وجه:** کفراو قرض په دې حدیث کښې ددې دپاره برابراو ګرځول چه د قرض د وجې نه انسان دروغ وائی مکر دهوکه فریب اودعاری کوی وعده خلافی کوی بار بار وعده کوی او بار بار ئی ماتوی دا تولې خبرې د خود منافقانو خصلتونه دی یا د کفار اشرار خصلتونه دی خکه چه په کوم مسلمان کښې دا راغلل نوهغه به د کافرانو اومنافقانو په صف کښې ورخی اودریږی به کفراوفقر هم برابراوګرځولې شو خکه کاد الفقر ان یکون کفرا حدیث دې

# [۷] بَابُ جَامِعِ الدُّعَاءِ

**جامع دعا ګانې**

**خلاصة الباب:**

**فيه ثلاثة وعشرون حديثاً مشتملة على أربع مسائل ومشتملة على مائة وستة وعشرين أنواع الأدعية الجامعة:**

① الكلمات التي دعا بها النبي ﷺ : ۱، ۲، ۳، ۵، ۶، ۷، ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۶، ۱۷۔

② الكلمات التي أمر بها النبي ﷺ للاستعاذة: ۴، ۸، ۹ ۱۳، ۱۷، ۱۹، ۲۰۔

③ الكلمات التي دعا بها بعض الأنبياء السابقين: ۱۵۔

④ النهي عن الدعاء على نفسه : ۲۱ ، ۲۳.

**د جامع دعاء مفهوم:** جامع دعا هغه ده د کومې الفاظ چه مختصروی اومعنی زوره او احاطه کونکې وی ای معان کثیرة فی الفاظ یسیرة. دا اضافت د موصوف د خپل صفت طرف ته دې اصل عبارت داسې دې "الدعاء الجامع" [الکاشف، ۵/۲۲۲]

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۲۴۸۲] د حضور ﷺ د بخشش دعا**

۲۳۸۲- [۱] (۱) ① عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - «عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② أَنَّهُ كَانَ يَدْعُو بِهٰذَا الدُّعَاءِ: ③ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي خَطِيئَتِي وَجَهْلِي، ④ وَإِسْرَافِي فِي أَمْرِي، ⑤ وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي، ⑥ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي جِدِّي وَهَزْلِي، ⑦ وَخَطَئِي وَعَمْدِي وَكُلُّ ذٰلِكَ عِنْدِي، ⑧ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ وَمَا أَسْرَرْتُ وَمَا أَعْلَنْتُ وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي، ⑨ أَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَأَنْتَ الْمُؤَخِّرُ، وَأَنْتَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ» ). (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الدعوات /باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: «اللهم اغفر لی ما قدمت وما أخرت» (رقم-۶۳۹۸) ومسلم فی کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب التعوذ من شر ما عمل ومن شر ما لم یعمل (رقم-۷۰-۲۷۱۹) واحمد فی المسند ۴/۴۱۷

**ترجمه** [١] ابوموسى اشعري ﷺ وايي [٢] چې نبی کريم ﷺ به دا دعا غوښتله اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي خَطِيئَتِي وَجَهْلِي وَإِسْرَافِي فِي أَمْرِي وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي جِدِّي وَهَزْلِي وَخَطَايَ وَعَمْدِي وَكُلُّ ذَلِكَ عِنْدِي اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ وَمَا أَسْرَرْتُ وَمَا أَعْلَنْتُ وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي أَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَأَنْتَ الْمُؤَخِّرُ وَأَنْتَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، [٣] ای الله! ﷻ زما خطا معاف کړي، زما ناداني (يعني کوم څيزونه چې پيژندل يا په هغه عمل کول واجب وو، او ما هغه ونه پيژندل هغه) معاف کړي، [٤] په کارونو کې زما زياتوالى او [٥] د هغه ګناه څخه چې د هغه علم زما څخه زيات تاته دى، [٦] اى الله! ﷻ زما هغه خراب کار معاف کړي چې ما قصداً کړى دى او هغه کار چې ما په خندا، توقو او ټقالو کې کړى دى، [٧] او هغه کار چې ما په خطاء يا قصداً کړى وي، او دا ټولي خبري په ما کې شته، [٨] اى الله! ﷻ زما هغه ګناوى وبخښي چې ما مخکې کړى دى او هغه ګناه چې بالفرض والتقدير زما څخه روسته اوشي، او هغه ګناهونه چې پټ راڅخه شوى وي، او هغه ګناه چې راڅخه ښکاره شوي وي، او هغه ګناه چې د هغه علم زما څخه زيات تاته دى، [٩] ته چې څوك غواړي، په خپل توفيق سره د خپل رحمت طرف ته يې رامخکې کونکى يې، او ته چې څوك غواړي دخپل رحمت څخه يې وروسته غورزونکى يې، او ته په هر څيز قادر يې (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① جِدِّي: قصدا څه د خطا خبره يا کارکول. ② هَزْلِي: وَهُوَ الْمِزَاحُ: په توقو کښې خبره کول. ③ مَا قَدَّمْتُ: مخکينى ګناهونه مراد دى، ④ مَا أَخَّرْتُ: هغه ګناهونه کوم چه به ددې نه روسته کوم ⑤ مَا أَسْرَرْتُ: أَيْ أَخْفَيْتُ: هغه ګناهونه کوم چه ما پټ کړى دى. ⑥ مَا أَعْلَنْتُ: أَيْ أَظْهَرْتُ: هغه ګناهونه کوم چه ما ښکاره کړى دى. ⑦ الْمُقَدِّمُ: أَيْ أَنْتَ تُقَدِّمُ: ته مخکښې کونکې نې (رحمت ته په توفيق خپل سره چاله چه اوغواړې). ⑧ الْمُؤَخِّرُ: ته روسته کونکې نې (د رحمت نه چاله چه اوغواړې)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَكُلُّ ذَلِكَ عِنْدِي: حضورپاك دَ تواضع په توګه دَعجز اوانکسارئى په توګه اوفرمائيل چه دا ټول څيزونه په ماکښې دى يا حضورپاك دَامت دَتعليم دَپاره داسې اوفرمائيل څکه چه په هر امتى کښې دَدې ګناهونونه څه نه څه وى.

**[٢٤٨٣] د دنيا او آخرت د اصلاح دعا**

| ٢٤٨٣-[٢] (¹) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [٢] «اللَّهُمَّ أَصْلِحْ لِي دِينِي الَّذِي هُوَ عِصْمَةُ أَمْرِي، [٣] وَأَصْلِحْ لِي دُنْيَايَ الَّتِي فِيهَا مَعَاشِي، [٤] وَأَصْلِحْ لِي آخِرَتِي الَّتِي فِيهَا مَعَادِي، [٥] وَاجْعَلِ الْحَيَاةَ زِيَادَةً لِي فِي كُلِّ خَيْرٍ، [٦] وَاجْعَلِ الْمَوْتَ رَاحَةً لِي مِنْ كُلِّ شَرٍّ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
|---|

**ترجمه** [١] ابوهريره ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ به دا دعا کوله اللَّهُمَّ أَصْلِحْ لِي دِينِي الَّذِي هُوَ

(¹) اخرجه مسلم فى كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب التعوذ من شر ما عمل ومن شر ما لم يعمل (رقم -٧١ - (٢٧٢٠)

عِصْمَةُ أَمْرِيْ وَأَصْلِحْ لِيْ دُنْيَايَ الَّتِيْ فِيْهَا مَعَاشِيْ وَأَصْلِحْ لِيْ آخِرَتِيْ الَّتِيْ فِيْهَا مَعَادِيْ وَاجْعَلِ الْحَيَاةَ زِيَادَةً لِيْ فِيْ كُلِّ خَيْرٍ وَاجْعَلِ الْمَوْتَ رَاحَةً لِيْ مِنْ كُلِّ شَرٍّ» [۲] اى الله ﷻ درست كړي زما دين چې زما د امورو محافظ دى، يعني د دين په وجه د خان اومال او آبرو حفاظت كيږي، او د آخرت د عذاب ځخه نجات حاصليږي. [۳] او درست كړي زما دنيا چې په هغه كې زما ژوند دى. [۴] او درست كړي زما آخرت چې هلته زما ورتلل دى، [۵] زما ژوند په هره نيكۍ كې د زياتوالي سبب جوړ كړي، يعني اوږد عمر راكړي، چې د ېرې نيكۍ وكړم، [۶] او زما د پاره مرګ د هرې بدۍ يعني د شر ځخه يې د راحت او د آرام سبب جوړ كړي، مسلم

**حل اللغات:** ① عِصْمَةُ: أي الْمَنْعُ وَالْحِفْظُ: بچ كونكې، حفاظت كونكې. ② مَعَاشِي: ژوند زما. ③ مَعَادِي: د عَادَ نه مصدر دې، د واپس كيدو په معنى كښې دې ④ زِيَادَةً: يعنى سبب د زيتوالى. ⑤ رَاحَةً: يعنى سبب د آرام او راحت

**تسهيلات: قوله: وَأَصْلِحْ لِي دُنْيَايَ الَّتِي فِيهَا مَعَاشِي:**

**ددنيا د اصلاح مطلب:** ددنيا صحيح والي او اصلاح په هغه رزق سره كيږي كوم چه حلال ذريعې سره اود غيرمشتبه وسائلو په لاره حاصل شوې وى، په داسې رزق سره په ښه طريقه ګذاره كيږي. د اطاعت قوت ورسره حاصليږي، زړه ته د سكون او اطمينان دولت نصيب كيږي اوپه عبادت كښې خلل او خيالات نه تيريږي.

**قوله: وَأَصْلِحْ لِي آخِرَتِي الَّتِي فِيهَا مَعَادِي:**

**دآخرت د اصلاح مطلب:** دآخرت د صحيح والى او اصلاح انحصار په هغه امورو (نيك عقائد. ښه اعمال او كردار په توفيق) باندې كيږي كوم چه دعذاب نه دنجات سبب او دهغه جهان د نيك بختۍ او خوشحالو پورې د رسيدو ذريعه وى

**قوله: وَاجْعَلِ الْمَوْتَ رَاحَةً لِي مِنْ كُلِّ شَرٍّ:**

**مرګ دهرشرځخه د حفاظت ګرځولو مفهوم:** ددعا د آخرى الفاظو مطلب دادې چه زما د ژوند خاتمه په كلمه شهادت، ښه عقيدې او توبه ويستلو نه پس وى، چه زما مرګ ددنيا د مشقتونو او مصيبتونو نه د خلاصى اود آخرت د خوشحالو حاصلولو سبب اوګرځى

**[۲۴۸۴] د هدايت دعا**

۲۴۸۴-[۳] ( ) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّهُ كَانَ يَقُوْلُ: [۲] «اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْأَلُكَ الْهُدٰى وَالتُّقٰى وَالْعَفَافَ وَالْغِنٰى». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

( ) اخرجه مسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب التعوذ من شر ما عمل ومن شر ما لم يعمل (رقم-۷۲-(۲۷۲۱) والترمذى فى السنن رقم الحديث ۳۴۸۹ وابن ماجة فى كتاب الدعاء /باب دعاء رسول الله صلى الله عليه وسلم (رقم-۳۸۳۲) واحمد فى المسند: ۴۱۱/۱

**ترجمه** [۱] عبد الله ابن مسعود ﷺ د نبی کریم ﷺ څخه نقل کوي چې نبی کریم ﷺ به دادعا غوښتله اللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْأَلُكَ الْهُدٰى وَالتُّقٰى وَالْعَفَافَ وَالْغِنٰى، [۲] اې الله ﷻ زه ستا څخه غواړم هدایت او تقوی او دحرام او مکروه څخه د نفس حفاظت او (ملبي او ظاهري) استغناء. مسلم

**حل اللغات**: ① الْهُدٰى: أَيِ الْهِدَايَةَ الْكَامِلَةَ: پوره هدایت، ② التُّقٰى: أَيِ التَّقْوٰى: تقوی، ③ الْعَفَافَ: د عَفَّ يَعِفُّ عَفًّا نه، أَيْ كَفٌّ: بندیدل او حفاظت کول، ④ الْغِنٰى: د زړه مستغنی کیدل، دخلقو نه طمع نه کول

**تسهیلات**:

**قوله**: وَالْغِنٰى

**د غنی په مفهوم کښې دوه اقوال**: ① په غنی سره د ګناهونو څخه حفاظت مراد دی

② د خلقو سره چه کوم څیزونه موجود وی د هغې نه غناء

**[۲۴۸۵] د هدایت او صحیح لارې دعا**

۲۴۸۵-[۴] () [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَالَ لِي رَسُوْلُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] قُلِ اللّٰهُمَّ اهْدِنِي وَسَدِّدْنِي [۳] وَاذْكُرْ بِالْهُدٰى هِدَايَتَكَ الطَّرِيقَ [۴] وَبِالسَّدَادِ سَدَادَ السَّهْمِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [۱] حضرت علي رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ ماته وفرمایل دا دعا غواړه اللّٰهُمَّ اهْدِنِيْ وَسَدِّدْنِيْ، [۲] اې الله ﷻ ماته هدایت وکړي او پرلارمې برابر کړې، او زما اعمال او افعال راست او درست کولو سره ما سیده کړې [۳] او نبی کریم ﷺ وفرمایل چه، هر کله ته هدایت طلب کوی، نو په لار سیده تلل په تصور کې ساته [۴] او هر کله چې د نیغ والی سوال کوی، نو د غشی د درستی تصور کوه. (مسلم)

**حل اللغات**: ① اهْدِنِي: هدایت اوکړې ماته (د نیغې لارې د اعمالو توفیق راکړې) ② سَدِّدْنِي: أَيِ اجْعَلْنِي مُسْتَقِيمًا: په سمه لارمې برابر اوساتې (چه د سمې لارې نه اخوا دیخوا یا په افراط تفریط کښې مبتلا نه شم) ③ السَّهْمِ: غشی

**تسهیلات**:

**قوله**: وَاذْكُرْ بِالْهُدٰى هِدَايَتَكَ الطَّرِيقَ:

**د مذکوره جملې مفهوم**: یعنی کله چه دَ هدایت الفاظ ستاسو په ژبه باندې وی نو په دماغو کښې دا خیال کیدل بکاردی چه دَ هدایت والا دَ لارې رهنمائی راته اوکړې هغه لار په کومه چه ستا نیکان بندګان تیرشوی دی

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب التعوذ من شر ما عمل ومن شر ما لم یعمل (رقم -۷۸ (۲۷۲۵) وابو داود فی کتاب الترجل /باب ما جاء فی خاتم الحدید (رقم-۴۲۲۵)

**قوله** وَبِالسَّدَادِ سَدَادَ السَّهْمِ:

**د مذكوره جملې مفهوم:** يعنى دلاري الفاظ وى نو په زړه اودماغوكښې داخيال كيدل پكار دى چه داسې نيغ شم لكه څنګه چه غشې نيغ دې خكه چه په غشى كښې معمولى شان كوګوالې وى نوهغه په نښه باندې صحيح نه كينى يعنى پوره هدايت غواړه

**[٢٤٨٦]د نوي مسلمان دعا**

٢٤٨٧-[٥] ( )[١]وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ:[٢]«كَانَ الرَّجُلُ إِذَا أَسْلَمَ عَلَّمَهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الصَّلَاةَ[٣]ثُمَّ أَمَرَهُ أَنْ يَدْعُوَ بِهٰؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ:[٤]اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي وَارْحَمْنِي وَاهْدِنِي وَعَافِنِي وَارْزُقْنِي»). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [١] ابو مالك اشجعي د خپل پلار بزرګوار څخه نقل كوي چې هغه اوويل [٢]هر كله چې به يو سړى مسلمان شو، نو نبى كريم ﷺ بـه ورتـه د مانځـه تعليم وركولى. [٣]بيـا بـه يې هغه ته حكم وركولى چې د دې كلماتو په ذريعه دعا غواړي[٤] اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِيْ وَارْحَمْنِيْ وَاهْدِنِيْ وَعَافِنِيْ وَارْزُقْنِيْ، يعنى اې الله! ﷻ زما مغفرت وكړې، زما عيبونـه پټ كـړې. پـه مـا رحم وكړې. ما هدايت يافته جوړ كړې، او ماته (حلاله) روزي راكړې. مسلم

**[٢٤٨٧]آسانه جامع دعا**

٢٤٨٨-[٦] ( )[١]وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «كَانَ أَكْثَرُ دُعَاءِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[٢] اللّٰهُمَّ آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [١] انس ﷺ وايي چې نبى كريم ﷺ به دا دعا په كثرت سره ويله اللّٰهُمَّ آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ [٢] اى الله! ﷻ مونږ تـه پـه دنيـا كې هم نيكي او خير (يعني نعمتونه او ښه حالت) راكړې او په آخرت كې (يعنى د مرګ څخه پس) هم (يعني ښه مراتب) راكړې، او مونږ د دوزخ د عذاب څخه وساتې، بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① حَسَنَةً: نيكى (د اول حسنة نه مراد نعمتونه اوښه اعمال دى چه الله پرې راضى كيږى، او دويم حسنة نه ددغې نيكو اعمال ثواب دې) ② قِنَا: أَيِ احْفَظْنَا: اوساتې مونږ، حفاظت اوكړې زمونږ

---

[١]) اخرجه مسلم فى كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب فضل التهليل والتسبيح والدعاء ٣٥ - (٢٦٩٧)

[٢]) اخرجه البخارى فى كتاب الدعوات/باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: «ربنا آتنا فى الدنيا حسنة» (رقم-٦٣٨٩) ومسلم فى كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب فضل الدعاء باللهم آتنا فى الدنيا حسنة وفى الآخرة حسنة وقنا عذاب النار (رقم-٢٧ - (٢٦٩٠) والترمذى فى السنن رقم الحديث ٣٤٨٧ واحمد فى المسند: ٢٠٨/٣

**تسهيلات: قوله كَانَ أَكْثَرُ دُعَاءِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:**

**مذکوره دعا په کثرت سره کولو کښې مهم وجوهات:** ① نبی علیه السلام به دا دعا اکثر ددې وجې کوله چه دا جامع دعا ده په دې کښې د دین او دنیا ټولې خوشحالۍ راخی
② دا چه دا دعا په قرآن کښې نازله شوې ده ددې وجې به ئې دا زیاته کوله

**قوله: اللّٰهُمَّ آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً:**

**د حسنتین په مصداق کښې مرې اقوال:**

① د اول حسنه نه مراد دنیاوی حسنات (استقامت) او د ثانی حسنه نه مراد په هغې باندې مرتب کیدونکې ثواب مراد دې
② حسنه څخه مراد هر هغه څیز چه په نعمت سره موسوم کیږی
③ د حسنة الدنیا نه مراد اتباع الهدی ده او حسنة الآخرة نه مراد د رفیق اعلی موافقت اختیارول دی

**د حدیث مفهومی ترجمه** [۱] د حدیث الباب د دعا حاصل دا دې چه اې زمونږ پالونکیه مونږ ته د مرګ نه مخکښې والاټول نعمتونه عطا کړه لکه صحت، روزی، دنیکو توفیق، په دین باندې استقامت، حسن خاتمه، اعمال او اخلاق حسنه او د آخرت ټول نعمتونه هم راکړه لکه په حساب، او په قبر، حشر کښې آسانی او کامیابی، د اعمالو قبولیت، او د جنت ټول نعمتونه راکړه.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۲۳۸۸] دابن عباس په روایت سره یوه جامع مسنون دعا**

۲۳۸۸—[۷] ( )[1] [۱] عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَدْعُو يَقُولُ: [۲] رَبِّ أَعِنِّي وَلَا تُعِنْ عَلَيَّ، [۳] وَانْصُرْنِي وَلَا تَنْصُرْ عَلَيَّ، [۴] وَامْكُرْ لِي وَلَا تَمْكُرْ عَلَيَّ، [۵] وَاهْدِنِي وَيَسِّرِ الْهُدَى لِي، [۶] وَانْصُرْنِي عَلَى مَنْ بَغَى عَلَيَّ، [۷] رَبِّ اجْعَلْنِي شَاكِرًا لَكَ، [۸] ذَاكِرًا لَكَ، رَاهِبًا لَكَ، [۹] مِطْوَاعًا لَكَ، مُخْبِتًا إِلَيْكَ، أَوَّاهًا مُنِيبًا. [۱۰] رَبِّ تَقَبَّلْ تَوْبَتِي، [۱۱] وَاغْسِلْ حَوْبَتِي، [۱۲] وَأَجِبْ دَعْوَتِي، وَثَبِّتْ حُجَّتِي [۱۳] وَسَدِّدْ لِسَانِي، وَاهْدِ قَلْبِي، [۱۴] وَاسْلُلْ سَخِيمَةَ صَدْرِي» ) رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** [۱] ابن عباس رضی الله عنهما وایي چې نبی کریم ﷺ به دا دعا غوښتله رَبِّ أَعِنِّيْ وَلَا تُعِنْ عَلَيَّ وَانْصُرْنِيْ وَلَا تَنْصُرْ عَلَيَّ وَامْكُرْ لِيْ وَلَا تَمْكُرْ عَلَيَّ وَاهْدِنِيْ وَيَسِّرِ الْهُدٰى لِيْ وَانْصُرْنِيْ عَلٰى مَنْ بَغٰى عَلَيَّ رَبِّ اجْعَلْنِيْ لَكَ شَاكِرًا لَكَ ذَاكِرًا لَكَ رَاهِبًا لَكَ مِطْوَاعًا لَكَ مُخْبِتًا إِلَيْكَ أَوَّاهًا مُنِيبًا رَبِّ تَقَبَّلْ تَوْبَتِيْ وَاغْسِلْ حَوْبَتِيْ وَأَجِبْ دَعْوَتِيْ وَثَبِّتْ حُجَّتِيْ وَسَدِّدْ لِسَانِيْ وَاهْدِ قَلْبِيْ وَاسْلُلْ سَخِيمَةَ صَدْرِيْ، [۲] ای الله! جل جلاله زما مدد وکړې

[1] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة، باب ما یقول الرجل إذا سلم (رقم- ۱۵۱۰) والترمذی فی وابن ماجة فی کتاب الدعاء، باب دعاء رسول الله صلی الله علیه وسلم (رقم- ۳۸۳۰) واحمد فی المسند: ۱/ ۲۲۷

يعنې ډېل ذكر. شكر او د ډېل عبادت حسن توفيق ماته راكى) زما خلاف د چا مدد مه وكړى (يعني كوم طاقتونه چې ما ستا د طاعت او عبادت څخه منع كوي، كه شيطان وي. كه نفس او كه كفار هغه به ما غالب مه كړي) [٣]ماته فتح راكړي. په ما څوك فتحياب مه كړي (يعني ما په كفارو غالب كړي. كفارو ته په ما غلبه مه وركړي) [٤]او زما د مدد كولو د پاره د دښمنانو په حق كې زما د پاره مكر (تدبير) وكړي. زما د ضرر تدبير ونه كړي. [٥]ماته سيده لاړ وښايي، په سيده لاړ تلل زما د پاره آسانه كړي، [٦]او د هغه چاخلاف زما مدد وكړي چې په ما زياتوالى كوي، [٧]اې زما ربه! ما هر وخت ستا شكر گذار [٨]په هر حال كې ستا ذكر كونكى، ستا څخه ويرېدونكى، [٩]ستا ډېر فرمانبرداري كونكى. ستا مخكې عاجزي كونكى، ستا په بارگاه كې زاري كونكى او رجوع كونكى جوړ كړي. [١٠]اې الله جَلَّ جَلَالُهُ زما توبه قبوله كړي، [١١]زما گناهونه ووينځې، [١٢]زما دعا قبوله كړي (په دنيا او آخرت كې د ډېلو دښمنانو په مخكې) زما دليل او حجت ثابت كړي، [١٣]زما ژبه رښتينى او درسته لري (يعني د دې څخه دي د حق او د رښتيا څخه سوا څه نه وځي) زما زړه ته هدايت وبخښې [١٤]او زما د سيني تور والى لرې كړي. (ترمذى، ابوداؤد، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① أَعِنِّي: أَيْ وَفِّقْنِي: زما مدد اوكړې (يعنى توفيق راكړې ماته دډېل ذكر اوعبادت) ② امْكُرْلِي: حيله اوتدبير جوړكړې د كاميابۍ زما. ③ بَغَى: أَيْ ظَلَمَنِي: چه ظلم او زياتي نې كړې دې په ما باندې ④ رَاهِبًا: أَيْ خَائِفًا: ويريدونكې (په پټه اوپه ښكاره په هرحال كښې) ⑤ مِطْوَاعًا: په وزن د مِفْعَالٌ د مبالغې صيغه ده، أَيْ كَثِيْرُ الطَّوْعِ: ډير اطاعت كونكې، تابعدار، ⑥ مُخْبِتًا: دَ اِخبات نه دې. أَيْ خَاضِعًا خَاشِعًا: خشوع خضوع او عاجزى كونكې، ⑦ أَوَّاهًا: په وزن د فَعَّالٌ، د أَوَّهَ تَأْوِيهًا وَتَأَوَّهَ تَأَوُّهًا نه، دمبالغې صيغه ده، الْأَوَّاهُ الْبَكَّاءُ: ډير زيات ژړا فرياد كونكې، ⑧ مُنِيبًا: أَيْ رَاجِعًا: رجوع كونكې (د غفلت نه ذكر وفكرطرف ته رجوع كولو ته منيب وائى) ⑨ حَوْبَتِي: أَيْ ذَنْبِي: يعنى گناهونه زما اووينځې. ⑩ سَدِّدْ: أَيْ صَوِّبْ وَقَوِّمْ: رښتونې او صحيح اولرې (ژبه زما)، ⑪ اسْلُلْ: أَيْ أَخْرِجْ: اوباسې، لرې كړې، ⑫ سَخِيمَةَ: أَيْ غِشَّهُ وَغِلَّهُ: دَ زړه خرابوالې خباثت كينه اوبغض او نور دَ زړه مرضونه

**تسهيلات:**

**قوله:** وَامْكُرْلِي:

**د نسبت د بدليدو په اعتبار سره د مكر مختلفې معانى:**

① دَمكر نسبت چه كله دَالله تعالى طرف ته وى نو دَدې نه مراد دَ اسلام په دښمنانو باندې دَ داسې خائى نه مصيبت راتلونكې وى دَ كوم چه دَهغوى گمان هم نه وى

② كه ددې نسبت دَ انسان طرف ته وى نومكر اوفريب اودهوكه مراد وى.

**قوله:** رَاهِبًا لَّكَ: دَ خوشحالئى اوغم په حالت كښ دَ يوالله نه دَ ويريدلو په معنى كښې دې "مطواعات، كثير الاطاعة".

**[ ٢٤٨٩ ] د ايمان څخه روسته د عافيت څخه بهتر هيڅ دولت نشته**

٢٣٨٠-[٨] ( ) ① وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «قَامَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى الْمِنْبَرِ ثُمَّ بَكَى ③ فَقَالَ سَلُوا اللَّهَ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ. ④ فَإِنَّ أَحَدًا لَمْ يُعْطَ بَعْدَ الْيَقِينِ خَيْرًا مِنَ الْعَافِيَةِ» ⑤ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا.

**ترجمه** ① حضرت ابوبکر ﷺ وايي چې ② يوه ورځ، نبي کريم ﷺ په منبر ولاړ په ژړا شو، ③ بيا يې وفرمايل چې د الله ﷻ څخه بخشش او عافيت غواړي، ④ ځکه چې هيچا ته د ايقان، ايمان څخه روسته د عافيت څخه بهتر هيڅ نعمت نه دی ورکول شوی، يعنې د ايمان د دولت څخه روسته د عافيت څخه بهتر هيڅ عمل نشته، ⑤ دا روايت ترمذي او ابن ماجه نقل کړی دی، او امام ترمذي رحمه الله ويلي دي چې دا حديث د سند د اعتبار څخه حسن غريب دی

**حل اللغات:** ① الْعَفْوَ: أَيْ مَحْوَ الذُّنُوبِ وَسَتْرَ الْعُيُوبِ: بخش يعنی چه ګناهونه مو ختم کړی او په عيبونو زاله پرده واچوی (په دنيا او آخرت کښې مو د رسوايۍ نه اوساتی) ② الْعَافِيَةَ: عافيت، مَعْنَاهُ السَّلَامَةُ فِي الدِّينِ مِنَ الْفِتْنَةِ: دين د فتنو نه محفوظ شي يا بدن د مرضونو او آزمانښونو نه محفوظ شي

**تسهيلات:**

**قوله:** سَلُوا اللَّهَ الْعَفْوَ:

**دعفو مفهوم:** دعفو نه د ګناهونو ختميدل او په عيبونو باندې پرده اچول مراد دی

**قوله:** وَالْعَافِيَةَ:

**دعافيت په مفهوم کښې درې اقوال:**

① الله دې تا ته د خلقو نه عافيت درکړي او خلقو له دې ستا نه عافيت ورکړی

② ته خلق معاف کړې او خلق تا معاف کړی

③ دير صحيح مفهوم دا دې چه د عافيت نه مراد سلامتی ده چه په دين کښې د فتنې نه او په بدن کښې د بيمارۍ او د سخت محنت نه سلامتی مراد ده

**[ ٢٤٩٠ ] د ټولو څخه بهتره دعا د عافيت طلب**

٢٣٩٠-[٩] ( ) ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَجُلًا جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَيُّ الدُّعَاءِ أَفْضَلُ ③ قَالَ: سَلْ رَبَّكَ الْعَافِيَةَ وَالْمُعَافَاةَ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ، ④ ثُمَّ أَتَاهُ فِي الْيَوْمِ الثَّانِي

[١] ) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ٣٥٥٨ وابن ماجة فی کتاب الدعاء /باب الدعاء بالعفو والعافية(رقم-٣٨٤٩) واحمد فی المسند:٣/١

[٢] ) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ٣٥١٢ وابن ماجة فی کتاب الدعاء /باب الدعاء بالعفو والعافية(رقم-٣٨٤٨) واحمد فی المسند:١٢٧/٣

فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ الدُّعَاءِ أَفْضَلُ [٥] فَقَالَ لَهُ مِثْلَ ذٰلِكَ، [٦] ثُمَّ أَتَاهُ فِي الْيَوْمِ الثَّالِثِ فَقَالَ لَهُ مِثْلَ ذٰلِكَ [٧] قَالَ فَإِذَا أُعْطِيتَ الْعَافِيَةَ وَالْمُعَافَاةَ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ فَقَدْ أَفْلَحْتَ» [٨] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا.

**ترجمه** [١] انس ﷺ وايي چې يو سړی د نبي كريم ﷺ په خدمت كې حاضر شو. [٢] او عرض يې وكه چې يا رسول الله! ﷺ كومه دعا د ټولو څخه بهتره ده؟ [٣] نبي كريم ﷺ وفرمايل چې د خپل رب څخه عافيت (يعني د دين او بدن سلامتي او په دنيا او آخرت كې معافات غواړه) (د معافات مطلب دا دی چې الله ﷻ په دنيا او آخرت كې تا د خلقو څخه او خلق ستا څخه په عافيت او حفاظت كې وساتي) [٤] هغه سړی په دويمه ورځ راغلو. عرض يې وكه چې يا رسول الله! ﷺ كومه دعا د ټولو څخه بهتره ده؟ [٥] نبي كريم ﷺ ورته هغه وفرمايل (څه چې يې په مخكني ورځ فرمايلي وو. [٦] بيا هغه سړی په دريمه ورځ راغلو) او هغه پوښتنه يې وكړه. نبي كريم ﷺ ورته هغه جواب وركړي. [٧] او ورته يې وفرمايل چې كه تاته عافيت او په دنيا او آخرت كې معافات دركول شي. نو تا نجات و موندلی، او تا خپل مقصد حاصل كي. [٨] دا روايت ترمذي او ابن ماجه نقل كړی دی. او امام ترمذي رحمه الله فرمايلي دي چې دا حديث په اعتبار د سند سره غريب دی.

**حل اللغات:** ① الْمُعَافَاةَ: د معافات مطلب دا دی چې الله ﷻ په دنيا او آخرت كې تا د خلقو څخه او خلق ستا څخه په عافيت او حفاظت كې وساتي. ② أَفْلَحْتَ: أَيْ خَلَصْتَ: تا خلاصې بيا موندلو. ته كامياب شوې. خپل مقصد دې حاصل كړو.

**تسهيلات:**

قوله: سَلْ رَبَّكَ الْعَافِيَةَ

**دعفو او عافيت په مينځ كښې فرق:**

① د الله په حقوقو كښې د سستيا نه بچ كيدو ته عافيت وئيلې شي

② د بندګانو په حقوقو كښې د سستيا نه بچ كيدو ته معافات ديته وئيلې شي.

**د مذكوره دعا مفهوم:** نو مطلب دا شو چه د خپل رب نه دعا كول چه هغه دي ما په دواړو جهانو په دنيا او په آخرت كښې د خلقو او د بندګانو په حقوقو كښې د سستيا نه

**[٢٤٩١] دَ الله تعالى دَ محبت دعا**

٢٤٩-[١٠] (¹) [١] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ يَزِيدَ الْخَطْمِيِّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - «عَنْ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ فِي دُعَائِهِ [٣] اللّٰهُمَّ ارْزُقْنِي حُبَّكَ. وَحُبَّ مَنْ يَنْفَعُنِي حُبُّهُ عِنْدَكَ [٤] اللّٰهُمَّ مَا رَزَقْتَنِي مِمَّا أُحِبُّ فَاجْعَلْهُ قُوَّةً لِي فِيمَا تُحِبُّ [٥] اللّٰهُمَّ مَا زَوَيْتَ عَنِّي مِمَّا أُحِبُّ فَاجْعَلْهُ فَرَاغًا لِي فِيمَا تُحِبُّ»). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

¹) اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ٣٤٩١

ترجمه [١] عبد الله ابن يزيد خطمي رضي الله عنه د نبی کریم ﷺ څخه نقل کوي [٢] چې نبی کریم ﷺ به په خپله دعا کې دا کلمات فرمایل اللَّهُمَّ ارْزُقْنِي حُبَّكَ وَحُبَّ مَنْ يَنْفَعُنِي حُبُّهُ عِنْدَكَ اللَّهُمَّ مَارَزَقْتَنِي مِمَّا أُحِبُّ فَاجْعَلْهُ قُوَّةً لِي فِيمَا تُحِبُّ اللَّهُمَّ مَا زَوَيْتَ عَنِّي مِمَّا أُحِبُّ فَاجْعَلْهُ فَرَاغًا لِي فِيمَا تُحِبُّ، [٣] ای الله! ﷻ ماته خپل محبت نصیب کړې، او د هغه سړي محبت چې د هغه محبت ستا په نزد ماته نفع راکړي، [٤] اي الله! ﷻ تا ماته د هغه څیز څخه چې زه يې خوښوم، څه چې عطا کړی دی، هغه زما د پاره د قوت سبب جوړ کړي، چې ته يې خوښوي یعني تا چې مال وزر، عافیت او اطمینان او نور دنیاوي نعمتونو څخه څه چې راته راکړی دی هغه د شکر ګذاری او د خپل طاعت سبب جوړ کړي، چې زه هغه ستا په لار کې او ستا د خوشنودی د پاره خرج کړم [٥] اي الله! ﷻ تا چې ماته د هغه څیز څخه چې زه يې خوښوم، څه چې نه دی راکړی، هغه زما د پاره په هغه کې د فراغت سبب جوړ کړي، چې ته يې خوښوي، ترمذي

**حل اللغات:** ① زَوَيْتَ: دا د زَيٌ نه دي، بِمَعْنَى الْقَبْضِ: یعنی تاچه مانه کوم مال او زر لرې کړه او زادي نه کړه ② فَرَاغًا: یعنی دَ خپل محبت دَپاره دَ اوزګاریدو ذریعه جوړه کړې که دَدنیا مال حاصل نه وی نو ستادَ محبت کمال به حاصل شي.

**تسهیلات:**

**نوټ:** د حدیث مطلب آسان دې باقی د ګرانو لغاتو معانی د حل اللغات په عنوان سره واضح شوی دی.

**[٢٤٩٢] چه دومره ملاؤ شي په کوم سره چه د چا کار اوشي**

[١١] ()[١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ: [٢] «قَلَّمَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُومُ مِنْ مَجْلِسٍ حَتَّى يَدْعُوَ بِهَؤُلَاءِ الدَّعَوَاتِ لِأَصْحَابِهِ [٣] اللَّهُمَّ اقْسِمْ لَنَا مِنْ خَشْيَتِكَ مَا تَحُولُ بِهِ بَيْنَنَا وَبَيْنَ مَعَاصِيكَ، [٤] وَمِنْ طَاعَتِكَ مَا تُبَلِّغُنَا بِهِ جَنَّتَكَ، [٥] وَمِنَ الْيَقِينِ مَا تُهَوِّنُ بِهِ عَلَيْنَا مُصِيبَاتِ الدُّنْيَا، [٦] وَمَتِّعْنَا بِأَسْمَاعِنَا وَأَبْصَارِنَا وَقُوَّتِنَا مَا أَحْيَيْتَنَا [٧] وَاجْعَلْهُ الْوَارِثَ مِنَّا، [٨] وَاجْعَلْ ثَأْرَنَا عَلَى مَنْ ظَلَمَنَا، [٩] وَانْصُرْنَا عَلَى مَنْ عَادَانَا، [١٠] وَلَا تَجْعَلْ مُصِيبَتَنَا فِي دِينِنَا، [١١] وَلَا تَجْعَلِ الدُّنْيَا أَكْبَرَ هَمِّنَا [١٢] وَلَا مَبْلَغَ عِلْمِنَا وَلَا تُسَلِّطْ عَلَيْنَا مَنْ لَا يَرْحَمُنَا» ). [١٣] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

ترجمه [١] ابن عمر رضي الله عنهما وايي [٢] چې داسې ډیر کم شوي دي چې نبی کریم ﷺ د یو مجلس څخه ولاړ شوی وي او د دې کلماتو په ذریعه يې د خپلو صحابه وو رضي الله عنهم د پاره دعا نه وي غوښتلي (څکه چې په مجلس او په دعا کې به صحابه رضي الله عنهم شامل وو، یا د هغوئ د تعلیم د پاره به يې دا دعا غوښتله ) اللَّهُمَّ اقْسِمْ لَنَا مِنْ خَشْيَتِكَ مَا تَحُولُ بِهِ بَيْنَنَا وَبَيْنَ مَعَاصِيكَ وَمِنْ طَاعَتِكَ مَا تُبَلِّغُنَا بِهِ جَنَّتَكَ وَمِنَ الْيَقِينِ مَا تُهَوِّنُ بِهِ عَلَيْنَا مُصِيبَاتِ الدُّنْيَا وَمَتِّعْنَا بِأَسْمَاعِنَا وَأَبْصَارِنَا وَقُوَّتِنَا مَا أَحْيَيْتَنَا

[١] اخرجه الترمذی في السنن رقم الحدیث ٣٥٠٢

وَاجْعَلْهُ الْوَارِثَ مِنَّا وَاجْعَلْ ثَأْرَنَا عَلٰى مَنْ ظَلَمَنَا وَانْصُرْنَا عَلٰى مَنْ عَادَانَا وَلَا تَجْعَلْ مُصِيْبَتَنَا فِيْ دِيْنِنَا وَلَا تَجْعَلِ الدُّنْيَا أَكْبَرَ هَمِّنَا وَلَا مَبْلَغَ عِلْمِنَا وَلَا تُسَلِّطْ عَلَيْنَا مَنْ لَا يَرْحَمُنَا، [٣] ای الله ﷻ ته په مونږ کښې خپل دومره خوف پیدا کړي، چې ته د هغه په وجه زمونږ او زمونږ د ګناهونو په منځ کښې حائل شي يعني د هغه خوف په وجه مونږ د ګناهونو څخه محفوظ شو، [٤] او مونږ ته خپل دومره طاعت نصيب کړي چې د هغه په وجه مونږ د جنت عالي درجاتو ته ورسوي، [٥] مونږ ته دومره يقين راکړي چې د هغه په وجه ته په مونږ د دنيا مصيبتونه آسانه کړي، [٦] مونږ د خپل سماعتونو، بينائيو او قوتونو څخه تر هغه وقته برخه من لري، تر څو چې ته مونږ ژوندي لري، [٧] او برخه مندي زمونږ ورثه وګرځوي يعنی زمونږ ټول اعضاء او حواس تر آخره برقرار او سلامت لري، [٨] زمونږ په کينه او انتقام کښې هغه سړی اخته کړي، چې هغه په مونږ ظلم وکړي، يعني مونږ ته دومره طاقت او قوت راکړي، چې مونږ د خپلو ظالمانو څخه بدله واخستل شو، يا زمونږ د طرف څخه ته د هغوئ څخه بدله واخلي، [٩] مونږ ته فتح راکړي په هغه سړي چې مونږ سره دښمني ساتي (هغه که زمونږ ديني دښمن وي يا دنياوي دښمن) [١٠] زمونږ مصيبتونه زمونږ په دين کښې مؤثر مه کړي (يعني مونږ په داسې مصيبتونو کښې اخته مه کړي) چې د دين د نقصاناتو باعث وي، [١١] او نه دنيا زمونږ د ټولو فکرونو مرکز او ګرځوي، [١٢] او نه دا زمونږ د علم مبلغ انتهاجوړه کړی، او په مونږ هغه خلق مسلط مه کړي، چې په مونږ رحم نه کوي، [١٣] امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی.

**حل اللغات:** ① خَشْيَتِكَ: وَهُوَ خَوْفٌ مَعَ التَّعْظِيمِ: د الله تعالی نه ويريدل سره د تعظيم نه. ② تَحُولُ: چه ته حائل شې (نومونږ به دګناهونونه محفوظ شو). ③ تُبَلِّغُنَا: أَيْ تُوَصِّلُنَا: چه ته اورسوې مونږ. ④ تُهَوِّنُ: أَيْ تُسَهِّلُ: ته آسان کړې. ⑤ مَتِّعْنَا: أَيْ اجْعَلْنَا مُتَمَتِّعِينَ: مونږ نفع اخستونکی جوړ کړې. ⑥ الْوَارِثَ: أَيِ الْبَاقِيَ: يعنی تر آخره پورې نې سلامت او برقرار اولرې ⑦ ثَأْرَنَا: بدل، انتقام ⑧ عَادَانَا: چه ظلم اوکړی په مونږ باندې. ⑨ هَمِّنَا: أَيْ أَكْبَرَ قَصْدِنَا: غرض او مقصد. ⑩ مَبْلَغَ: أَيْ غَايَةَ: انتهاء مرجع او مرکز. ⑪ لَا تُسَلِّطْ: مه مسلط کوه، مه مقرر کوه

**تسهیلات:**

**قوله: وَمِنَ الْيَقِينِ مَا تُهَوِّنُ بِهِ عَلَيْنَا مُصِيبَاتِ الدُّنْيَا:**

**د يقين مطلب:** ددې مطلب دادې چه ته په خپل ذات او صفاتو باندې او د سرکار دوعالم ﷺ په ارشاداتو او تعليم باندې مونږ ته دهغې درجې يقين او اعتماد رانصيب کړې چه د دنيا سختئ او ددې مصيبتونه او تکليفونه زمونږ دپاره آسان شی، مثلاً کوم کس ته چه دا يقين وی چه الله تعالی رزق ورکونکې دې دهر ساه لرونکی د ژوند ضروريات پوره کوی، نوهغه ته به هيڅ کله څه فکرنه وی، اوهغه به د الله تعالی په ذات باندې بهروسه او اعتماد

کوی. دغه شان چاته چه د یقین دولت حاصل شي چه د آخرت سختۍ او د هغې مصیبتونه زیات سخت دي، د دنیا سختۍ همیشه نه وي ختمیدونکی وي. ددې هیڅ حقیقت نشته. نو دهغه دپاره د دنیا مصیبتونه آسان جوړیږي، اود لوئي نه لوئي مصیبت او سختۍ ته هیڅ احساس نه کوي. لهذا اې الله ته مونږ ته د یقین او اعتماد او توکل دا عظیم دولت رانصیب کړې

**قوله: وَلَا تَجْعَلِ الدُّنْيَا أَكْبَرَ هَمِّنَا:**

**دمذکوره جملې مطلب:** دنیا زمونږ دپاره د فکرونو مرکز مه جوړوې ددې مطلب دادې چه مونږ د دنیا په ډیر زیات فکرونو او تدبیرونو کښې لګیا نه شو. بلکه د آخرت د فکر او د هغې د ویرې زیات خیال اوساتو. د دنیا صرف دومره فکر او دخپل معاش صرف دومره خیال اوساتو کوم چه ضروری دي او د کوم دپاره چه مونږ ته نه صرف اجازت دې بلکه مستحب هم دي

**[۲۴۹۳] د علم نافع سوال کول**

۲۴۹۳-[۱۲] (۱) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ② «اللَّهُمَّ انْفَعْنِي بِمَا عَلَّمْتَنِي وَعَلِّمْنِي مَا يَنْفَعُنِي وَزِدْنِي عِلْمًا ③ الْحَمْدُ لِلَّهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ ④ وَأَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْ حَالِ أَهْلِ النَّارِ». ⑤ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا.

**ترجمه** ① ابوهریره رضی الله عنه وايي چې نبی کریم ﷺ به دا دعا غوښتله. ② اللَّهُمَّ انْفَعْنِي... الخ، ای الله جل جلاله تا چې ماته څه ښودلي دي، هغه زما د پاره نفع رسونکی کړي (یعني په علم د عمل کولو توفیق راکړي) او ماته هغه څیز وښايي، چې ماته نفع راکړي یعنی ماته داسې علم راکړي. چې د هغه حاصلول او په کوم شي عمل کول چې دنیا او آخرت کې زما د پاره د نفع باعث وي. او زما په علم (یعني په دیني علم) کې زیاتوالی وکړي. ③ په هر حالت کې الله جل جلاله لره ټول تعریفونه دي، ④ او زه د الله جل جلاله پناه غوارم د دوزخیانو په شان د حالت نه (چې په دنیا کې فسق وفجور څخه او په عقبی کې د عذاب څخه وساتل شم) ⑤ ترمذي، ابن ماجه. امام ترمذي رحمه الله فرمايي چې دا حدیث په اعتبار د سند سره غریب دی

**[۲۴۹۴] د نعمت او عزت دعا**

۲۴۹۴-[۱۳] (۲) ① وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أُنْزِلَ عَلَيْهِ الْوَحْيُ سُمِعَ عِنْدَ وَجْهِهِ دَوِيٌّ كَدَوِيِّ النَّحْلِ، ③ فَأُنْزِلَ عَلَيْهِ يَوْمًا فَمَكَثْنَا سَاعَةً، ④ فَسُرِّيَ عَنْهُ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ،

---

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحدیث ۳۵۹۹ وابن ماجة فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم باب الانتفاع بالعلم والعمل به(رقم-۲۵۱)

[۲] اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحدیث ۳۱۷۳ واحمد فی المسند: ۳۴/۱

**ترجمه** [١] امير المؤمنين حضرت عمر فاروق ﷺ وايي، [٢] كوم وخت چې په نبي كريم ﷺ باندې وحي نازليدلى، نو د نبي كريم ﷺ مبارك مخې ته نږدې به د شاتو د مچو د آواز په شان آواز اوريدى شو، [٣] يوه ورځ زمونږ په مخكې په نبي كريم ﷺ وحي نازلى شوه. مونږ لږ ساعت ودريدو ايعني مونږ په دې انتظار كې وو چې د وحې نازليدو كومه سختي په نبي كريم ﷺ خوره ده، هغه ختم شي! [٤] كوم وخت چې د سختى هغه كيفيت د نبي كريم ﷺ څخه لرې شو، نو نبي كريم ﷺ خپل مخ مبارك د قبلې طرف ته كړي

[١] وَرَفَعَ يَدَيْهِ وَقَالَ اللّٰهُمَّ زِدْنَا وَلَا تَنْقُصْنَا [٢] وَأَكْرِمْنَا وَلَا تُهِنَّا [٣] وَأَعْطِنَا وَلَا تَحْرِمْنَا [٤] وَآثِرْنَا وَلَا تُؤْثِرْ عَلَيْنَا [٥] وَأَرْضِنَا وَارْضَ عَنَّا، [٦] ثُمَّ قَالَ: أُنْزِلَ عَلَيَّ عَشْرُ آيَاتٍ مَنْ أَقَامَهُنَّ دَخَلَ الْجَنَّةَ، [٧] ثُمَّ قَرَأَ قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ حَتَّى خَتَمَ عَشْرَ آيَاتٍ»). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** [١] او خپل دواړه لاسونه يې اوچتولو سره په بارګاه الٰهي كې داسې عرض كونكي سو اللّٰهُمَّ زِدْنَا..الخ، اى الله! ﷻ زمونږ دنياوي او اخروي نعمتونه كې (يا د مسلمانانو په تعداد كې) زياتوالى وكړي، او په هغه نعمتونو يا په مسلمانانو كې كمى مه وكړي، [٢] مونږ [په دنيا كې حاجت روائي سره او په عقبى كې د درجاتو د اوچت والى په ذريعه] معزز جوړ كړي، او مونږ د هغه څيزونو څخه محروم كولو سره ذليل مه كړي، [٣] مونږ ته د دنيا او آخرت خيرونه راكړي، او مونږ محروم مه كړي، [٤] مونږ (د خپل رحمت په ذريعه) په نورو خلقو غالب كړه او مونږ د بل چا څخه مغلوبه مكړې [٥] مونږ ته په خپل قضاء وقدر د صبر او شكر توفيق راكولو سره په هغه مو راضي وساتي، او ته زمونږ په لږ شان عبادت او طاعت باندې هم راضي شي، [٦] بيا نبي كريم ﷺ وفرمايل چې اوس په ما لس آياتونه نازل شوه كوم سړى چې په هغه عمل كوي، هغه به په جنت كې (د نيكانو سره) داخليږي، [٧] د دې څخه روسته نبي كريم ﷺ قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ تر لسو آياتونو پورې وويل، احمد، ترمذي

**تسهيلات**:

**د حديث د بعضې جملو وضاحت:**

① ورفع يديه: په دعاكښې لاسونه اوچتول دَ دعا دَ آدابونه دى

② عشر آيات: دَ سورت مؤمنون دَ شروع لس آياتونه مراد دى

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٢٤٩٥] دَ بينايى دعا**

١٤] () [١] عَنْ عُثْمَانَ بْنِ حُنَيْفٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [٢] «إِنَّ رَجُلًا ضَرِيرَ الْبَصَرِ أَتَى النَّبِيَّ فَقَالَ: [٣] ادْعُ اللّٰهَ أَنْ يُعَافِيَنِي فَقَالَ [٤] (إِنْ شِئْتَ دَعَوْتُ، وَإِنْ شِئْتَ صَبَرْتَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ) . [٥] قَالَ: فَادْعُهُ. قَالَ: فَأَمَرَهُ أَنْ

[١] اخرجه ابن ماجة في كتاب إقامة الصلاة/باب ما جاء في صلاة الحاجة (رقم-١٣٨٥) واحمد في المسند: ١٣٨/٤

يَتَوَضَّأَ فَيُحْسِنَ الْوُضُوءَ وَيَدْعُو بِهَذَا الدُّعَاءِ: [۶] «اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ وَأَتَوَجَّهُ إِلَيْكَ بِنَبِيِّكَ مُحَمَّدٍ نَبِيِّ الرَّحْمَةِ، [۷] إِنِّي تَوَجَّهْتُ بِكَ إِلَى رَبِّي لِيَقْضِيَ لِي فِي حَاجَتِي هَذِهِ، اللّٰهُمَّ فَشَفِّعْهُ فِيَّ» ). [۸] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** [۱] عثمان ابن حنيف ﷺ وايي، [۲] يو سړى چې هغه د بينائي څخه محروم وو، د نبى كريم ﷺ په خدمت كې حاضر شو، او عرض يې وكه [۳] چې يا رسول الله! ﷺ د الله ﷻ څخه دعا وغواړه، چې هغه ماته د بينائي د نقصان څخه عافيت راكړي، [۴] نبى كريم ﷺ وفرمايل چې كه ته غواړې نو ستا د پاره دعا كوم، او كه ته (صبر او رضا) غواړې، نو صبر كوه، صبر كول ستا د پاره بهتر دى، [۵] هغه سړي عرض وكړو چې ته زما د پاره دعا وكه، عثمان ﷺ وايي چې نبى كريم ﷺ (د دې اوريدو سره) هغه ته حكم وكړې چې اودس وكړه، او په ښه شان [يعني د سننو او ادابو سره اودس وكه، او په يو دويم روايت كې دا هم دى چې نبى كريم ﷺ هغه ته د دوو ركعاتو مونځ كولو حكم هم وركړې] ، او دا چې بيا د دې كلماتو په ذريعه دعا وغواړې: [۶] اللّٰهُمَّ..الخ، اى الله! ﷻ زه ستا څخه (خپل مقصود) غواړم، او ستا د نبي په وسيله سره ستا طرف ته متوجه كيږم چې د هغه نوم محمد ﷺ دى، چې نبي د رحمت دى، [۷] او زه د خپل پروردګار طرف ته متوجه كيږم، اې نبي (ﷺ) ستا په وسيله سره چې هغه زما دا حاجت پوره كړي، او دا چې اې الله! ﷻ زما په باره كې د خپل نبي ﷺ شفاعت قبول كړى، [۸] امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل كړى دى، او ويلي يې دي چې دا حديث حسن صحيح غريب دى.

**حل اللغات:** ① ضَرِيرَ الْبَصَرِ: أَيْ: ضَعِيفَ النَّظَرِ: كمزورى نظر والا، يعنى روند ② فَادْعُهُ: أَيْ: ادْعُ اللّٰهَ: يعنى دالله نه دعا اوغواړه ③ أَتَوَجَّهُ: متوجه كيږم ④ لِيَقْضِيَ: چه پوره كړى (رب زما حاجت لره). ⑤ فَشَفِّعْهُ: أَيْ: اقْبَلْ شَفَاعَتَهٗ: قبول كړې شفاعت زما.

**تسهيلات:**

**نوټ:** دحديث مطلب د ترجمې څخه واضح دې د مزيد تشريح ضرورت نشته

## [۲۴۹۶] د حضرت داؤد عليه السلام دعا

۲۴۹۶-[۱۵] (١)[١] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] «كَانَ مِنْ دُعَاءِ دَاوُدَ يَقُولُ: [۳] «اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ حُبَّكَ وَحُبَّ مَنْ يُحِبُّكَ، [۴] وَالْعَمَلَ الَّذِي يُبَلِّغُنِي حُبَّكَ، [۵] اللّٰهُمَّ اجْعَلْ حُبَّكَ أَحَبَّ إِلَيَّ مِنْ نَفْسِي وَمَالِي وَأَهْلِي، وَمِنَ الْمَاءِ الْبَارِدِ» ) [۶] قَالَ: وَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا ذَكَرَ دَاوُدَ يُحَدِّثُ عَنْهُ: [۷] يَقُولُ: ( «كَانَ أَعْبَدَ الْبَشَرِ» ) . [۸] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

(١) اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۳۴۹۰

**ترجمه** [١] ابو درداء ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] د حضرت داود ﷺ په دعاوو کې يوه دعا دا هم وه [٣] اللّٰهُمَّ.. الخ، اې الله ﷻ زه ستا څخه غوارم. ستا محبت او د هغه سړي محبت چې ستا سره محبت کوي [٤] او هغه عمل چې ما ستا محبت ته ورسوي.[٥] اې الله ﷻ ته خپل محبت زما د پاره زما د ځان څخه، زما د مال څخه، زما د اهل وعيال څخه او د يخو اوبو څخه هم زيات عزيز جوړ کړي.[٦] د راوي بيان دی چې نبی کريم ﷺ د داود ﷺ خبري بيانولي [٧] نو فرمايل به يې چې داود ﷺ د خپلي زماني په سړو کې لوی عابد وو.[٨] امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی

**حل اللغات:** ①يُبَلِّغُنِي: أَيْ يُوصِلُنِي: چه اورسوی ما

**تسهيلات:**

**قوله:** وَمِنَ الْمَاءِ الْبَارِدِ

**په گرمۍ کښې د يخو اوبو عظمت:** د دې نه معلومه شوه چه انسان ته د گرمۍ په زمانه کښې اوبه ډيرې محبوبې وی بعضو ونيلی دی چه دا د روح نه کنايه ده ځکه اوبه د هر څيز حيات دي لقوله تعالى: ((جَعَلْنَا مِنَ الْمَآءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ)) د دې وجه نه بعضو علماؤ ونيلی دی چه اوبه داسې نعمت دې چه دا په هيڅ قيمت هم نشی اخستلې کيدې

**د يو گلاس اوبو په عوض توله بادشاهی تلل:** په مرقات کښې د يو بادشاه واقعه ليکلې ده چه يو بادشاه يو ځنگل ته اووتو نو هغه ډير سخت تږې شو هغه ته د غيب نه يو کس بنکاره شو بادشاه د هغه نه اوبه طلب کړې نو هغه کس اوبه ورکولو نه انکار اوکړو او وئې وئيل چه ستا نيمه بادشاهی ماته راکړه نو زه به تا ته اوبه درکړم نو هغه د نيمې بادشاهۍ په عوض کښې د اوبو يو گلاس واغستلو بيا اوبه ځکلو نه پس ورته د متيازو (بول) بنديدو تکليف پيدا شو چه کله ئې پرې صبر مشکل شو نو بادشاه هغه ته اووئيل چه ته زما علاج اوکړه نو زه به تا له باقي نيمه بادشاهی هم درکړم هغه کس دعا اوکړه نو د ده تکليف ختم شو او هغه باقي بادشاهی هم هغه کس ته حواله کړه په دې باندې بادشاه اووئيل چه زما د نيمې بادشاهۍ قيمت اوبه ځکل دی او د نيمې بادشاهۍ قيمت اوبه اوباسل دی

**دالله تعالی په نيز د دنيا سپکوالې:** په دې سره د نبی عليه السلام دا ارشاد هم واضح شو چه د دنيا قيمت که د الله په نيز د يو ماشی د وزر برابر هم وې نو کافر له به ئې يو گوټ اوبه هم نه ورکولې نو کافرانو ته د خوراک څکاک او د د انعاماتو ورکولو حکمت هم دا دې چه الدنيا سجن المؤمن وجنة الكافر. (مرقات ج ٥ ص ٢٥٥)

**[۲۴۹۷] يوه جامع دُعا**

۲۴۹۷-[۱۶] ( ) ([۱]) ۱ وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ۲ «صَلَّى بِنَا عَمَّارُ بْنُ يَاسِرٍ صَلَاةً، فَأَوْجَزَ فِيهَا. ۳ فَقَالَ لَهُ بَعْضُ الْقَوْمِ: ۴ لَقَدْ خَفَّفْتَ وَأَوْجَزْتَ الصَّلَاةَ. ۵ فَقَالَ. أَمَا عَلَيَّ ذَلِكَ، لَقَدْ دَعَوْتُ فِيهَا بِدَعَوَاتٍ سَمِعْتُهُنَّ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۶ فَلَمَّا قَامَ تَبِعَهُ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ هُوَ أَبِي، ۷ غَيْرَ أَنَّهُ كَنَّى عَنْ نَفْسِهِ، فَسَأَلَهُ عَنِ الدُّعَاءِ

**ترجمه** ۱ عطاء ابن سائب د خپل پلار (سائب) څخه نقل کوي، هغه اوويل ۲ چې عمار بن ياسر ﷺ مونږ ته يو مونځ راکړو، په مانځه کې هغه اختصار وکړو (يعنی نه خو هغه طويل قرائت وکړو او نه يې تسبيحات وغيره ډير زيات وويل) ۳ (بعضې خلقو ورته اوويل ۴ چې تاسو تخفيف وکړو او مونځ مو مختصر کړو ۵ حضرت عمار ﷺ وفرمايل چې زما د پاره دا تخفيف مضر نه دی، ځکه چې ما د دې مونځ په قعده کې يا په سجده کې هغه څه دعاوې ويلي دي، چې ما د نبی کريم ﷺ څخه اوريدلي دي. ۶ بيا چې حضرت عمار ﷺ لاړو نو د جماعت څخه يو سړی د هغه سره شو، او (د حديث راوي عطاء وايي چه) هغه زما پلار حضرت سائب وو، ۷ سوا د دې څخه چې هغه خپل ځان پټ کړي [يعنی هغه داسې بيان ونه کې. چې حضرت عمار ﷺ سره زه لاړم، بلکه ځان پټ ساتلو د پاره يې داسې اوويل چې يو سړی هغه سره شو، بهرحال هغه د حضرت عمار ﷺ څخه] د هغه دعا په باره کې پوښتنه وکړه، [حضرت عمار ﷺ ورته هغه دعا وښودله، چې هغه د مانځه په دوران کې ويلي وه]،

**حل اللغات:** ① فَأَوْجَزَ: أَيْ: اقْتَصَرَ: لنډ اومختصر ئې اوکړو (مونځ، يعنی قرأت ئې لږ اوکړو) ② خَفَّفْتَ: مختصر دې اوکړو (مونځ، يعنی ارکان دې ډير لنډ اداکړل).

۱ ثُمَّ جَاءَ فَأَخْبَرَ بِهِ الْقَوْمَ: ۲ (اللَّهُمَّ بِعِلْمِكَ الْغَيْبَ، وَقُدْرَتِكَ عَلَى الْخَلْقِ، ۳ أَحْيِنِي مَا عَلِمْتَ الْحَيَاةَ خَيْرًا لِي، ۴ وَتَوَفَّنِي إِذَا عَلِمْتَ الْوَفَاةَ خَيْرًا لِي، ۵ اللَّهُمَّ وَأَسْأَلُكَ خَشْيَتَكَ فِي الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ، ۶ وَأَسْأَلُكَ كَلِمَةَ الْحَقِّ فِي الرِّضَى وَالْغَضَبِ، ۷ وَأَسْأَلُكَ الْقَصْدَ فِي الْفَقْرِ وَالْغِنَى، ۸ وَأَسْأَلُكَ نَعِيمًا لَا يَنْفَدُ، ۹ وَأَسْأَلُكَ قُرَّةَ عَيْنٍ لَا تَنْقَطِعُ، ۱۰ وَأَسْأَلُكَ الرِّضَى بَعْدَ الْقَضَاءِ، ۱۱ وَأَسْأَلُكَ بَرْدَ الْعَيْشِ بَعْدَ الْمَوْتِ، ۱۲ وَأَسْأَلُكَ لَذَّةَ النَّظَرِ إِلَى وَجْهِكَ ۱۳ وَالشَّوْقَ إِلَى لِقَائِكَ فِي غَيْرِ ضَرَّاءَ مُضِرَّةٍ. ۱۴ وَلَا فِتْنَةٍ مُضِلَّةٍ، ۱۵ اللَّهُمَّ زَيِّنَّا بِزِينَةِ الْإِيمَانِ، ۱۶ وَاجْعَلْنَا هُدَاةً مُهْتَدِينَ» ). رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه** ۱ بيا هغه راغلو او جماعت ته يې هغه دعا وښودله چې دا ده ۲ اللَّهُمَّ..الخ، ترجمه اې الله! ﷻ ته په حق د خپل علم غيب او په حق د قدرت خپل په مخلوق ۳ ما ژوندی لري، تر څو چې ژوند زما د پاره بهتر ګڼې او ماته مرګ راکړي، تر څو چې مرګ زما د پاره

[۱] اخرجه النسائی کتاب السهو /باب نوع آخر (رقم-۱۳۰۵) واحمد فی المسند: ۴/ ۲۶۴

بهتر کړي يعني تر څو چې نيکي په بديو غالبې وي، تر هغه وقته ژوند بهتر دی [۴] او تر څو چې بدی په نيکو غالبې وي او ظاهري او باطني فتنې خوري شي، نو هغه وخت مرگ بنه دی[۵] اې الله ﷻ زه غوارم ستا څخه خوف په ظاهر او باطن کې [۶] او غوارم د حق کلمې د ويلو، توفيق په خوشحالي کې هم او په خفگان کې هم [۷] او غوارم زه ستا څخه ميانه روی د فقر او افلاس په حالت کې هم او د خوشحالی په وخت کې هم (يعني نه خو فقر او افلاس او رنځ او په تکليف کې مبتلا شم، او نه دومره توانگر او خوشحاله شم، چې اسراف کول شروع کړم)[۸] او زه ستا څخه داسې نعمت غوارم، چې هيڅ کله ختميږي نه، (يعني د غيبو نعمتونه)[۹] او غوارم ستا څخه د سترگو يخ والی چې هيڅ کله ختم نشي، [۱۰] او غوارم رضامندي ستا د قضا (يعني تقدير) څخه روسته[۱۱] او غوارم ستا څخه يخوالی د ژوند د مرگ څخه روسته (يعني د هميشه راحت په برزخ او په قيامت کې)[۱۲] او غوارم لذت د ليدو ستا د مخ طرف ته (په آخرت کې)[۱۳] او غوارم ستا د ملاقات شوق په داسې حالت کې چې ضرر ونه رسوي [۱۴] او نه مې د گمراهی په فتنه کې اخته کړي،[۱۵] اې الله ﷻ مونږ د ايمان په زينت مزين کړي [يعنی مونږ په ايمان ثابت قدم لرې او د زيات څخه زيات د نيکي کولو توفيق راته راکړې] ،[۱۶] او مونږ سيده لار ښودونکي او په سيده لار تلونکي جوړ کړي، نسائي

**حل اللغات:** ③ القَصْدَ: أَيْ: الاِقْتِصَادَ: ميانه روی، درميانه، ④ لَايَنْفَدُ: أَيْ: لَايَفْنَى: چه نه فنا کيږی، نه ختميږی. ⑤ قُرَّةَ: ددې دوه معانې دی يو: بِمَعْنَى الْبَرْدِ: يخوالي (ځکه د خوشحالي په وخت د سترگو اوښکې يخې وی دې نه مراد د سترگو خوندونه او مزې دی) او دويمه: بِمَعْنَى الْقَرَارِ: په يو ځائې باندې قرار او اطمينان ساتل (يعنی سترگې به اخوا ديخوا نه مائل کيږی). ⑥ عَيْنٍ: سترگه ⑦ بَرْدَ الْعَيْشِ: أَيْ: طِيبَهُ وَحُسْنَهُ: د ژوند يخوالي (يعنی هميشه د راحت او خوشحالي والا ژوند) ⑧ لَذَّةَ النَّظَرِ: د ليدلو لذت او خوند، ⑨ ضَرَّاءَ: أَيْ: شِدَّةٍ: ضراء سخت حالت ته وائی ⑩ مُضِرَّةٍ: دَ ضرر رسولو او نقصان ورکولو په معنی کښې دې ⑪ هُدَاةً: د هَادٍ جمع ده، أَيْ: هَادِينَ إِلَى الدِّينِ: دين طرف ته هدايت کونکی. ⑫ مَهْتَدِينَ: أَيْ: ثَابِتِينَ عَلَى الْهِدَايَةِ: دحق په نيغه لاره باندې قائم پاتې او سيدونکی ⑬ فِتْنَةٍ: أَي الْمَلَاكِ الْحِسِّيِّ وَالْمَعْنَوِيِّ: فتنة نه حسی او معنوی ازميښت او امتحان مراد دې ⑭ مُضِلَّةٍ: مَا يُوجِبُ الاِنْحِرَافَ عَنِ الطَّرِيقِ الْقَوِيمِ: کوم چه دَنيغې لارې نه اخوا ديخوا دهوکه ئې لشوي.

**تسهيلات:** **قوله:** أَمَا عَلَيَّ ذَلِكَ

**د مذکوره عبارت اصل:** همزه دَ استفهام انکاری دَپاره دې په ماء باندې شد نشته دې په "علی" کښې په ياء باندې شد دې اصل عبارت داسې دې "اتقول هذا اسکت ماعلی من ضرر" يعنی که ما اوږد مونځ ورنه کړو نو هيڅ حرج نشته ځکه چه ما په قعده آخره کښې داسې داسې دعاگانې اوغوښتلې کومې چه ماپخپله دَ حضورپاک ﷺ نه اوريدلی دی دې نه پس حضرت عمار ؓ دَ کورطرف ته لاړو

**قوله. هُوَأبِي:**

**د حدیث خلاصه:** حضرت عطاء رحمه الله فرمائی چه زما پلار سائب رضي الله عنه اوونیل هغه پسې یو سړي لاړو عطاء رحمه الله فرمائی چه داهم زما پلاروو لیکن هغه خپل نوم ظاهرنه کړو بهرحال دَحدیث شریف خلاصه داده چه عطاء رحمه الله اوونیل حضرت عمار رضي الله عنه یوځل مونځ ورکړو نو څه خلقو اعتراض اوکړو چه مونځ دې مختصر اوکړو هغوی اوفرمائیل که مختصرهم وی نو هیڅ پرواه نشته ځکه چه ماپه دې کښې زبردست دعاګانې وئیلی دی دې وینا کولوسره کورته لاړو نوزما پلار لاړو دَهغه نه ئې دعاګانې معلومې کړې اوبیا واپس راغلو اوخلقوته ئې هم هغه شان اوخودلې

**قوله: فِي غَيْرِ ضَرَّاءَ مُضِرَّةٍ:**

**د مذکوره عبارت اعراب:** دا جارمجرور دالشوق سره متعلق دې یعنی زه دَالله تعالی دَ دیدار او زیارت شوق غوارم. دا شوق دیدار داسې سخت حالت کښې نه وی چه دَ نقصان سبب جوړشی. دا سوال ئې ځکه اوکړوچه کله سرې شوق دَ افراط اوتفریط طرف ته یوسی شوق لقاء نه مرګ مراددې چه مرګ په داسې حالت کښې راشی چه نقصان ورکونکې نه وی اشعة اللمعات:۲/۳۱۷] دا جارمجروراحینی سره متعلق کیدې شی دواړه جائزدی اومعنی ښکاره ده

ملاحظه: دَدې تولودعاګانوبهترینه مجموعه الحزب الاعظم کومه چې ملاعلی قاری او مناجات مقبول ده کومه چه حضرت تهانوی رحمه الله راجمع کړی ده.

**[۲۴۹۸]د علم نافع او عمل مقبول او د حلال رزق دُعا**

۲۴۹۸-[۱۷]( )[۱]وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا-«أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-كَانَ يَقُولُ فِي دُبُرِ صَلَاةِ الْفَجْرِ[۲]: (اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ عِلْمًا نَافِعًا،[۳]وَعَمَلًا مُتَقَبَّلًا، وَرِزْقًا طَيِّبًا») . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي: (الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ).

**ترجمه:** [۱] بي بي ام سلمه رضي الله عنها وایي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم به د سحر د مانځه ځخه روسته دا دعا کوله [۲] اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ عِلْمًا نَافِعًا وَعَمَلًا مُتَقَبَّلًا وَرِزْقًا طَيِّبًا، اې الله جل جلاله زه ستا ځخه غوارم نفع ورکونکی علم،[۳] قبلونکی عمل،[۴] او حلال رزق، احمد ، ابن ماجه، بیهقي

**[۲۴۹۹]د شکر ګذاره جوړیدو دعا**

۲۴۹۹-[۱۸]( )[۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ:[۲]«دُعَاءٌ حَفِظْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-لَا أَدَعُهُ: [۳](اللَّهُمَّ اجْعَلْنِي أُعْظِمُ شُكْرَكَ[۴]، وَأُكْثِرُ ذِكْرَكَ، وَأَتَّبِعُ نُصْحَكَ، وَأَحْفَظُ وَصِيَّتَكَ» ) رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

[1] اخرجه ابن ماجة فى كتاب إقامة الصلاة. باب ما يقال بعد التسليم (رقم- ٩٢٥) واحمد فى المسند: ٦/٢٩٤

[2] اخرجه احمد فى المسند ٢/٣١١

**ترجمه** [١] ابو هريره رضي الله عنه وايي [٢] ما د نبی کريم ﷺ څخه دا دعا ياده کړېده چې زه يې نه پريږدم [٣] اللّٰهُمَّ اجْعَلْنِیْ أُعَظِّمُ شُكْرَكَ وَأُكْثِرُ ذِكْرَكَ وَأَتَّبِعُ نُصْحَكَ وَأَحْفَظُ وَصِيَّتَكَ، ای الله جل جلاله ما ته توفيق راکړې، چې زه ستا زيات شکر اداء کړم [۴]، ستا ډير ذکر وکړم [۵]، ستا نصيحت پوره کړم [٦]، او وصيت ياد کړم، ترمذي

**حل اللغات**: ① أَتَّبِعُ نُصْحَكَ: ستا د نصيحتونه او حكمونه تابعداري اوکړم او پوره ئې کړم، ددې نه مراد حقوق العباد دی، ② أَحْفَظُ وَصِيَّتَكَ: ستا د وصيتونو اوحکمونو حفاظت اوکړم، ددې نه مراد حقوق الله يعنی اوامر او نواهی دی.

**تسهيلات**:

**قوله**: وَأَتَّبِعُ نُصْحَكَ، وَأَحْفَظُ وَصِيَّتَكَ:

**په نصيحت او وصيت کښې فرق**: امام طيبی فرمائی چه نصيحت او وصيت دواړه متقارب الفاظ دی ليکن دواړو کښې لږ فرق دې د نصيحت څخه مراد دحقوق العباد ادا کول دی اود وصيت څخه مراد حقوق الله دی.

## [٢٥٠٠] د صحت وغيره دعا

[١٩] ()[١] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ ابْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ [٢] كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ [٣] اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْأَلُكَ الصِّحَّةَ وَالْعِفَّةَ [۴] وَالْاَمَانَةَ وَحُسْنَ الْخُلُقِ وَالرِّضٰى بِالْقَدَرِ.

**ترجمه** [١] عبد الله ابن عمرو رضي الله عنه وايي [٢] نبی کريم ﷺ به دا دعا کوله [٣] اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْأَلُكَ الصِّحَّةَ وَالْعِفَّةَ وَالْاَمَانَةَ وَحُسْنَ الْخُلُقِ وَالرِّضٰى بِالْقَدَرِ، اي الله زه ستا څخه صحت اوعافيت غواړم يعنی دخرابو بيماريو څخه د بدن د سلامتي او تندرستي يا د افعالو او احوالو او اعمالو درستي او اصلاح او د حرامو څخه پرهيز [۴] او امانت (يعني د خلقو په اموالو کې يا د شريعت په ټولو حقوقو کې خيانت نه کوم) [۵] او بهترين اخلاقو او په تقدير د رضا سوال کوم

**حل اللغات**: ① الْعِفَّةَ: أَيْ: التَّحَرُّزَ عَنِ الْحَرَامِ: د حرام او دګناه کارونو نه بچ اوسيدل ② الْاَمَانَةَ: د خلقو په اموالو کې يا د شريعت په ټولو حقوقو کې خيانت نه کولو ته امانت وائی ③ حُسْنَ الْخُلُقِ: أَيْ: حُسْنَ الْمُعَاشَرَةِ: ښه اخلاق يعنی دخلقو سره ښه معاشره قائم ساتل ④ الرِّضٰى بِالْقَدَرِ: په تقدير راضی کيدل (يعنی کوم څه چه په تقدير کښې ليکلی شوی دی په هغې راضی اوسيدل).

**تسهيلات**:

**نوټ**: د ترجمې څخه مطلب ښکاره دي

١) اخرجه البزار ذكره في كنزل العمال في رقم ٣٦٥٠

**[٢٥٠١] د بدو خصلتو نو نه د بچ کېدو دعا**

٢٠ ] ( ) [١] وَعَنْ أُمِّ مَعْبَدٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [٢] سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [٣] «اللّٰهُمَّ طَهِّرْ قَلْبِي مِنَ النِّفَاقِ، [٤] وَعَمَلِي مِنَ الرِّيَاءِ، [٥] وَلِسَانِي مِنَ الْكَذِبِ، [٦] وَعَيْنِي مِنَ الْخِيَانَةِ، [٧] فَإِنَّكَ تَعْلَمُ خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ [٨] وَمَا تُخْفِي الصُّدُورُ» رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي: (الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ).

**ترجمه** [١] بي بي ام معبد رضي الله عنها وايي [٢] ما د نبی کریم ﷺ څخه دا دعا اوریدلې ده [٣] اللّٰهُمَّ طَهِّرْ قَلْبِيْ مِنَ النِّفَاقِ وَعَمَلِيْ مِنَ الرِّيَاءِ وَلِسَانِيْ مِنَ الْكَذِبِ وَعَيْنِيْ مِنَ الْخِيَانَةِ فَإِنَّكَ تَعْلَمُ خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ وَمَا تُخْفِي الصُّدُوْرُ، ای الله جل جلاله پاك کړي زما زړه د نفاق څخه [٤]، زما عمل د ریا څخه، [٥] زما ژبه د دروغو څخه [٦] او زما سترګي د خیانت [٨] یعني حرام نظر، څخه [٧]. بیشکه ته پوهیږي د سترګو په خیانت او په هغه څیز چي په زړه کي پټ دی (یعني خواهشات او ګناه).
: دواړه روایتونه بیهقي په دعوات کبیر کي نقل کړی دی

**حل اللغات:** ① خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ: د سترګو خیانت (یعنی حرام نظر، نا محرمو ته کتل)

**تسهیلات:**

**قوله: وَعَيْنِي مِنَ الْخِيَانَةِ:**

**دسترګو د خیانت یو صورت:** دا د قرآن کریم د یو آیت حصه ده، ددې معنی ده د سترګو خیانت. حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ددې آیت په تفسیر کښې دا جمله هم دمثال په طور داسې واضحه کړې ده. چه فرض کړه دسړو یو جماعت چرته ناست دې، اچانک یوه ښځه دهغوی مخې ته تیره شي او هغه ټول سړی د یوبل دشرم نه دغې ښځې ته په اوچتو سترګو د کتلو همت نه شي کولې. نو کله چه هغوی ټول خپل نظرونه لاندې کړی نو په هغوی کښې یو سړې دټولو د سترګو نه په پټه خپل نظر اوچت کړی او په پټه باندې دغه ښځې ته اوګوری نو دا د سترګو خیانت دې

**[٢٥٠٢] دالله تعالی نه دعافیت دعاغوښتل پکاردی**

٢١ ] ( ) [١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَادَ رَجُلًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ [٢] قَدْ خَفَتَ، فَصَارَ مِثْلَ الْفَرْخِ، [٣] فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٤] -: (هَلْ كُنْتَ تَدْعُو اللّٰهَ بِشَيْءٍ [٥] أَوْ تَسْأَلُهُ إِيَّاهُ)؟!.

**ترجمه** [١] انس رضي الله عنه وايي چي (یوه ورځ) نبی کریم ﷺ د یو مسلمان پوښتنه (عیادت) وکړه، [٢] چي د مرغه د مرغي د بچي په شان ضعیف شوی وو [٣]. نبی کریم ﷺ (د هغه

---

( ) اخرجه الخطیب ذکره في کنزا لعمال رقم: ٣٦٦٠

( ) اخرجه مسلم في کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب کراهة الدعاء بتعجیل العقوبة في الدنیا (رقم ٢٣ - ٢٦٨٨) والترمذي في السنن رقم الحدیث ٣٤٨٧ واحمد في المسند: ١٠٧/٣

حالت لیدو سره، وفرمایل[۴] چې آیا تا د الله ﷻ څخه د څه څیز دعا کوله. [۵] یا وې فرمایل چې تا به د الله ﷻ څخه د څه څیز دعا غوښتله؟.

**حل اللغات:** ① عَادَ: دا د عِيَادَة نه دې، د مريض پوښتنې کولوته وائی ② خَفَتَ: دَ نَصَرَ يَنْصُرُ نه دی، ای ضَعُفَ: دَ بیمارئ دَ وجې نه دا صحابی ډیر کمزورې شوې وو ③ الْفَرْخ: وَهُوَ وَلَدُ الطَّيْرِ: د مرغئ بچې نه وائی

قَالَ نَعَمْ، كُنْتُ أَقُولُ[٦]: (اللَّهُمَّ مَا كُنْتَ مُعَاقِبِي بِهِ فِي الْآخِرَةِ فَعَجِّلْهُ لِي فِي الدُّنْيَا)[٧]. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - (سُبْحَانَ اللهِ[٨]! لَا تُطِيقُهُ وَلَا تَسْتَطِيعُهُ[٩]: أَفَلَا قُلْتَ: اللَّهُمَّ آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً، وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ؟)[١٠] قَالَ: فَدَعَا اللهَ بِهِ فَشَفَاهُ اللهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [١] هغه اوویل چې هو، ما به د الله ﷻ څخه دا دعا غوښتله، [٦] چې خدایه! که ته به آخرت کې ما په عذاب کې اخته کوې، نو د هغه په بدله کې په دنیا کې د هغه عذاب په راکولو کې جلتي وکړې[٧] (د دې اوریدو سره) نبی کریم ﷺ وفرمایل چې تا ډیره عجیبه دعا وغوښته، [٨] نه خو ته په دنیا کې د الله ﷻ د عذاب د برداشت کولو طاقت لرې او نه په آخرت کې د الله ﷻ د عذاب د برداشت کولو طاقت لرلی شې[٩]، تا داسې دعا ولې ونه غوښتله اللَّهُمَّ آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ، **ترجمه** [١] اې الله: ﷻ مونږ ته په دنیا کې هم خیر عافیت راکړې، او په آخرت کې هم خیر (یعني د کوتاهیو معافي) او مونږ د دوزخ د عذاب څخه وساتې، [١٠] د راوي بیان دی، چې هغه سړي د نبی کریم ﷺ د دې ارشاد مطابق د الله ﷻ څخه د دی دعا غوښتل شروع کړل، نو الله ﷻ هغه ته شفا، ورکړه. مسلم. (د دې دعا څخه معلومه شوه چې په دې دعا سره مریض ته شفاء هم حاصلیږي نو ځکه مونږ هم سوال کوو چې یا الله! ﷻ د دې دعا فیوضات، برکات، انوار او کمالات مو په دواړه جهانو د ټولو مسلمانانو سره نصیب کړې، اللهم آمین

**حل اللغات:** ④ مُعَاقِبِي: عذاب راکونکې نې مالره. ⑤ لَا تُطِيقُهُ: أَيْ فِي الدُّنْيَا: ته ددې د برداشت کولو طاقت نه شې لرلې په دنیا کښې، ⑥ لَا تَسْتَطِيعُهُ: أَيْ فِي الْعُقْبَى: ته ددې د برداشت طاقت نه شې لرلې په آخرت کښې

**تسهيلات:**

**قوله:** سُبْحَانَ اللهِ:

**ه سبحان الله ولیلو وجه:** حضورپاك دَ حیرانتیا په بنیادباندې اوفرمائیل چه سبحان الله داسې مه کوه د څه طاقت چه ته نه شې لرلې چه خپل بدن او طاقت دَالله تعالی دَ سزا مخې ته پیش کړې بلکه دَ عافیت دعاغواړه

**[۲۵۰۳] دخپل طاقت نه زياته ذمه واري مه قبلوه**

۲۵۰۳-[۲۲] (¹)[١] وَعَنْ حُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٢] - («لَا يَنْبَغِي لِلْمُؤْمِنِ أَنْ يُذِلَّ نَفْسَهُ»)[٣]. قَالُوا: وَكَيْفَ يُذِلُّ نَفْسَهُ؟[٤] قَالَ (يَتَعَرَّضُ مِنَ الْبَلَاءِ لِمَا لَا يُطِيقُ») . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ). وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** [١] حذيفه رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د مؤمن د پاره مناسب نه دی چې هغه خپل ځان ذليل او خوار کړی[٣]. صحابه وو رضي الله عنهم عرض وکړو چې خپل ځان ذليل او خوار کول څرنګه دي؟[٤] نبی کريم ﷺ وفرمايل چې داسې بلاوې په خپل سر واخلي چې د هغه طاقت نه لري، ترمذي، ابن ماجه، بيهقي، امام ترمذي رحمه الله فرمايي چې دا حديث غريب دی

**حل اللغات:** ① يُذِلَّ نَفْسَهُ: چه ځان ذليله او خوار کړی. ② يَتَعَرَّضُ: چه ورمخکښې شی يعنی ذمه واری ني قبوله کړی په خپل سر ني واخلی.

**تسهيلات:**

**قوله: يَتَعَرَّضُ مِنَ الْبَلَاءِ:**

**د ناهليت بلوجود يوکارته وړاندې کيدل:** دې نه ازميښت مصيبت او ذمه واری مراد ده مومن دَ ايمانی فراست تقاضاده چه هغه دې داسې ذمه واری قبوله نه کړی چه دَهغه دَ استطاعت او طاقت نه بهر وی داخپل ځان پخپله خوار اوذليل کولو مترادف دی يا دَخپل ځان او نورو دَ پاره خطرناك صورت دې.

**په محله ځانلې ته د ورتلو حکم:** دَدې حديث په عموم کښې دا خبره هم راځی چه يوسړې مثلاً څه خلق نه خوښوی اوخلق دَ هغه نه خفه دی اودا سړې پخپله دَ خپل عزت نفس خيال نه کولو سره هغوی له ورځی هغوی دې ذليل کوی داسې ځايونوته ده له نه دی تلل پکار

**دمحال څيزد دعا کولو ممانعت:** داحديث سره دَدې چه دَ دې باب دَعنوان مطابق نه دې ليکن که دَدې نه پورتنی حديث ته اوکتلې شی نو په دې خبره باندې به پوهه شی چه سړې دې دَ هغه څيز دعا نه غواړی کوم چه دَ هغه دَ طاقت نه بهر وی

**[۲۵۰٤] دَظاهر او باطن دَ ښه والی دعا**

۲۵۰٤-[۲۳] (²)[١] وَعَنْ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «عَلَّمَنِي رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] قُلْ: اللَّهُمَّ اجْعَلْ سَرِيرَتِي خَيْرًا مِنْ عَلَانِيَتِي، [٣] وَاجْعَلْ عَلَانِيَتِي صَالِحَةً، [٤] اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ مِنْ صَالِحِ مَا تُؤْتِي النَّاسَ مِنَ الْأَهْلِ وَالْمَالِ وَالْوَلَدِ غَيْرِ الضَّالِّ وَلَا الْمُضِلِّ») . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ).

¹) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ۲۲۵٤ واحمد فی المسند: ۵/۴۰۵

²) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ۳۵۸۶

**ترجمه** [۱] حضرت عمر ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ ماته تعليم راکولو سره وفرمايل [۲] چې دا دعا غواړه اللّٰهُمَّ اجْعَلْ سَرِيرَتِيْ خَيْرًا مِنْ عَلَانِيَتِيْ وَاجْعَلْ عَلَانِيَتِيْ صَالِحَةً اللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْأَلُكَ مِنْ صَالِحِ مَا تُؤْتِي النَّاسَ مِنَ الْأَهْلِ وَالْمَالِ وَالْوَلَدِ غَيْرِ الضَّالِّ وَالْمُضِلِّ، ای الله ﷻ زما باطن زما د ظاهر څخه بهتر جوړ کړي [۳] او زما ظاهر ته ښائستګي (تهذيب، شعور) راکړي، [۴] اي الله ﷻ زه ستا څخه خير غواړم د هغه څيز چې ته يې خلقو ته ورکوي، يعنی اهل، مال، اولاد، چې نه خپله ګمراه شم، او نه بل څوك ګمراه کړم، ترمذي

**حل اللغات** ① سَرِيرَتِي: وَهُوَ مَا يُكْتَمُ: کوم چه پټ ساتلې شی يعنی باطن. ② عَلَانِيَتِي: ظاهر يعنی ښکاره. ③ غَيْرِ الضَّالِّ: چه نه په خپله ګمراه وی. ④ الْمُضِلِّ: أَيْ لِغَيْرِهِ: نه بل لره ګمراه کونکې وی

**تسهيلات:**

**قوله**: اللّٰهُمَّ اجْعَلْ سَرِيرَتِي خَيْرًا مِنْ عَلَانِيَتِي:

**د دعا اهميت او جامعيت**: دا حديث د کتاب الدعوات آخری حديث دې دا په ډيره لويه جامع دعا بندې مشتمل دې چه د ټولو دعاګانو مقصد او مطلوب هم دغه دوه څيزونه دی چه د انسان ظاهر ښه وی او باطن ئې ښه وی بيا چونکه خامخا په يوه معاشره کښې اوسيږی او چاپيره ماحول سره ئې واسطه وی لهذا د دې احوال د صحيح کولو د پاره يوه اضافی دعا هم راغله چه اهل وعيال ښه ملاؤ شی اومال ښه ملاؤ شی اوبيا ماحول هم ښه ملاؤ شی د دې د پاره چه د هغه ظاهر اوباطن متاثر کيدو سره خراب نه وی

**قوله**: غَيْرِ الضَّالِّ:

**د کامل مؤمن صفت**: يعنی چه نه دا اهل وعيال په خپل خان ګمراه وی او نه نور ګمراه کونکی وی بس هم دغه بادشاهت دې اوهم دغه د دنيا جنت دې اوهم دا د مسلمان د ژوند حقيقت دې

# [۱۱]كِتَابُ الْمَنَاسِكِ]

## دَ حج ذ العالوبیان

**خلاصة الباب:**

**فيه أربعة وثلاثون حديثاً مشتملة على اثنى عشرة مسئلة**

① فريضة الحج: ۱، ۱۶۔
② فضيلة الحج والعمرة والإحرام لهما: ۲، ۳، ۴، ۵، ۲۰، ۲۷، ۳۱، ۳۲، ۳۳، ۳۴۔
③ حج الصبى وأجره: ۶۔
④ الحج عن غيره وشرطه: ۷، ۸، ۲۳، ۲۴۔
⑤ حج النساء: ۹، ۱۰، ۱۱، ۲۹۔
⑥ مواقيت الحج: ۱۲، ۱۳، ۲۵، ۲۶۔
⑦ حكم العمرة: ۱۴، ۱۵۔
⑧ الزجر لمن فرض عليه الحج ولم يحج: ۱۷، ۱۸، ۳۰۔
⑨ التعجيل باالحج: ۱۹۔
⑩ موجبات الحج: ۱۷، ۲۱۔
⑪ الحج الأفضل: ۲۲۔
⑫ وجود الزاد لفرضية سفر الحج: ۲۸۔

**تسهیلات:**

**د روژې څخه د حج د تاخیر دوه وجوهات:** ① روژه هرکال مکرر وی.اوحج مکرر نه وی.بلکه په عمر کښې صرف یو ځل فرض دې.د دې وجې روژې ته احتیاج زیات وی په نسبت سره د حج،اوکوم څیز ته چه احتیاج زیات وی.هغه د تقدیم زیات لائق وی.دې وجې ئې روژه په حج باندې مقدمه کړه.او روستو ئې حج ذکر کړلو.
②حج چونکه مرکب دې.دعبادت بدنی او عبادت مالی نه. څکه ئې د روژې نه روستو کړلو.کوم چه صرف عبادت بدنی دې.څکه چه مرکب د مفرد نه روستو وی.

**دحج لغوی معنی:** لفظ دحج ((بفتح الحاء وبكسر الحاء)) دواړه شان استعمالیږی.بفتح الحاء لکه ((اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ فَمَنْ فَرَضَ فِيْهِنَّ الْحَجَّ فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوْقَ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ))الأيـة او بكسر الحاء لكه ((وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا)) الآية دې.د حج لغوی معنی څه معظم او لوئې څیز ته اراده کول دی.

**د حج شرعي تعريف:** او د شریعت په اصطلاح کښې د مخصوص ځائې مخصوص فعل ... په خاص وخت کښې اراده کول دی.

**د حج د فرضيت تاريخ :** د حج د فرضیت په تاریخ کښې په بذل المجهود کښې منع ... اقوال مذکور دی.

① نهمه هجری ②پنځمه هجری③ شپږمه هجری ④ د هجرت نه وړاندې

**تحقيقي خبره:** ملا علی قاری په شرح د ،نقایه، کښې لیکلی دی چه رسول الله ﷺ د حج فریضه په لسمه هجریٔ کښې ادا کړې وه. کوم چه د حجة الوداع په نوم باندې یادیږي شي. او حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په نهم هجری کښې حج کړې وو. او حج هم په دغه کال فرض شوې وو. او اتمه هجریٔ کښې د مکې د فتح په موقع باندې عتاب بن اسید خلقو ته حج کړې وو. نبی ﷺ د مکې د فتحې نه پس هم دوی امیر مقرر کړی وو.

**د هجرت څخه وړاندې د نبی علیه السلام په حج کولو کښې اقوال:**

① ابن الاثیر رحمه الله فرمائی چه د هجرت نه وړاندې نبی ﷺ به هر کال حج کولو.

② جابربن عبدالله رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ صرف درې حجونه کړی دی. دوه د هجرت نه وړاندې او یو د هجرت نه پس په لسمه هجریٔ کښې حجة الوداع

③ اوابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه رسول الله ﷺ د هجرت نه وړاندې درې حجونه کړیوو

④ ابن الجوزی رحمه الله فرمائی چه رسول الله ﷺ ډیر حجونه کړی وو. د هغې شمار موږ ته معلوم نه دې.

**په پخوانو امتونو باندې د حج فرضيت:** ① پاتې شوه دا چه حج په پخوانو امتونو فرض وو او که نه. نو په دې کښې دوه اقوال دی. په اولنو امتونو باندې هم حج فرض وو. حافظ ابن حجر رحمه الله دې ته ترجیح ورکړې ده.

② د حج وجوب د امت محمدی سره خاص دې. په اولنو امتونو حج فرض نه وو.

**د اول فريق دليل:** حافظ ابن حجر رحمه الله استدلال کوی. او فرمائی. «ما من نبي إلا حج البيت» یعنی هیڅ یوپیغمبر نشته. مګر حج د بیت الله ئې کړې دې. او دا خبره هم شوې ده چه حضرت آدم علیه السلام د هندوستان نه پیدل څلوېښت حجونه کړی دی. جبرئیل علیه السلام آدم علیه السلام ته اووئیل. ستا نه اووه زره کاله وړاندې به فرښتې د بیت الله طواف ته راتلې.

**داول فريق د دليل دوه جوابونه:** ① د دویم قول قائلینو حضراتو جواب ورکړې دې چه د وړاندینی دلائلونه صرف دومره معلومیږی چه دپخوانو پیغمبرانو په زمانه کښې حج مشروع وو. او د مشروعیت نه وجوب اوفرضیت نه لازمیږی.

② او دا هم ممکن دی چه حج په پخوانو پیغمبرانو واجب وو. خو د هغوی په امتونو واجب نه وو. نو په دې صورت کښې حج د پیغمبرانو د خصوصیاتو ځنې دې. او امت

محمدی ته دا خصوصیت حاصل دي.

**د حج د فرضیت دلائل:** د حج فرضیت د کتاب سنت او اجماع درې وارو نه ثابت دي.

① کتاب الله خو د الله تعالی ارشاد دي (( ((وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا)) په ،علی الناس، کښې کلمه د ،علی، د ایجاب دپاره ده

② او سنت د نبی ﷺ حدیث دی چه ((بنی الاسلام علی خمس..... الحدیث))

**حج د اسلام رکن :** حج د دین په هغه بنیادی پنځو ستنو کښې یو عظیم القدر ستن ده چه په هغې باندې د اسلام د عقائدو او اعمالو پوره خیمه ولاړه ده، د حج ضروری کیدل (چه هغې ته د فقه په اصطلاح کښې فرض وائی) د قرآن کریم نه داسې په صراحت سره ثابت دی څنګه چه د مونځ، روژې او زکاة فرضیت ثابت دي.

**د حج فرضیت د امت محمدی خصوصیت :** د حج د فرضیت سعادت عظمی زمونږ د رسول ﷺ د امت سره خاص دي، هسې خو د حج رواج د ابراهیم علیه السلام د وخت نه دې خو هغه وخت ئې د فرضیت حکم نه وو پس صحیح مسلك هم دا دي چه حج صرف په امت محمدیه ﷺ باندې فرض شوې دي.

**د حج د شرطونو په موجودګۍ کښې د حج فرضیت :** حج په عمر کښې یو کرت فرض دې چه کله هغه ټول شرطونه بیا موندلې شی چه په هغې سره فرض کیږی د شرطونو د موندلې کیدو باوجود چه څوك حج نه کوی هغه سړې فاسق دي، ګناهګار دې او څوك چه د حج د فرضیت نه انکار اوکړی هغه کافر دي.

**د حج د فرض کیدو شرطونه :** حج د دې شرطونو د موندلې کیدو نه پس واجب کیږی

① مسلمان کیدل، په کافر باندې حج فرض نه دې،

② آزاد کیدل، په وینځې او غلام باندې حج فرض نه دې،

③ عاقل کیدل، په مجنون، نشه او بیهوشه باندې حج فرض نه دې،

④ بالغ کیدل، په نابالغ ماشومانو باندې حج فرض نه دې،

⑤ صحت مند او تندرست کیدل، په بیمار، روند، ګوډ او معذور باندې حج فرض نه دې،

⑥ قادر کیدل یعنی د دومره مال مالك کیدل کوم چه د ضرورت اصلیه او د قرض نه زائد وی او د هغه د توښې او د سورلۍ د کرایه او خرچ دپاره کافی وی، هم دغه شان د کومو خلقو نفقه چه د هغه په ذمه باندې واجب ده د هغوی دپاره هم په هغې کښې دومره پریږدی کوم چه د هغه د واپسۍ پورې د هغه خلقو کفایت اوکړې شی

⑦ په لاره کښې امن کیدل، دې باره کښې د اکثر اعتبار دې که اکثر خلق په امن سره رسیږی نو حج به فرض وی، مثلا که اکثر خلق په لاره کښې د ډاکې د وجې نه لوټ کیږی یا یو

داسې دریاب یا سمندر حائل وی چه په هغې کښې په کثرت سره جهازونه ډوبیږی او اکثر خلق هلاکیږی یا په لاره کښې بل قسم ویره وی نو په داسې حالت کښې به حج فرض نه وی. خو که دا حادثات کله کله اتفاقی راځی نو بیا به د حج فرضیت ساقط نه وی

⑧ د زنانه د ملګرتیا دپاره د خاوند یا بل محرم موجود کیدل (محرم هغه سړی ته وائی چه هغه سره نکاح صحیح نه وی که د نسب په سبب وی لکه پلار، تره، رور وغیره یا د رضاعت په سبب وی لکه رضاعی رور وغیره او یا د خپلولې یا سسرالی قرابت د وجې نه لکه سخر وغیره خو د احتیاط تقاضه دا ده چه خوانه زنانه دې د خپل سخر یا رضاعی رشته دارو سره سفر نه کوی) چه کله د هغې او د مکې ترمینځه فاصله د دریو ورځو سفر برابر وی. که خاوند یا محرم نې په ملګرتیا کښې نه وی نو بیا د زنانه دپاره د حج سفر اختیارول جائز نه دی او د محرم عاقل او بالغ کیدل او مجوسی او فاسق نه کیدل هم شرط دې د محرم نفقه به په هغه زنانه باندې څوك چه هغه خان سره د حج دپاره بوځی، هم دغه شان چه په کومه زنانه باندې حج فرض شو هغه د خپل خاوند د اجازت نه بغیر هم محرم سره د حج دپاره تلې شی

که یو نابالغ هلك یا غلام د احرام تړلو نه پس بالغ شی یا آزاد شی او بیا هغه حج پوره کړی نو په دې صورت کښې به فرض نه ادا کیږی، خو که هلك د فرض حج دپاره د نوی سر نه احرام اوتړی نو صحیح به شی خو د غلام احرام به د حج دپاره په دې صورت کښې هم صحیح نه وی

**د حج فرائض** : په حج کښې پنځه څیزونه فرض دی.

① احرام. دا د حج دپاره شرط هم دې او رکن یعنی فرض هم دې

② وقوف عرفات یعنی په عرفات کښې پاتې کیدل اګر که د یو منټ په اندازه وی او که په ورځ کښې وی او که په شپه کښې وی

③ طواف الزیارة. دې ته طواف الافاضة او طواف الرکن هم وئیلې شی

④ په دې پورته فرائض کښې د ترتیب لحاظ یعنی احرام په وقوف باندې او وقوف په طواف زیارت باندې مقدم کول

⑤ هر فرض هم په هغه مکان مخصوص کښې ادا کول. یعنی د وقوف خاص په عرفات کښې او د طواف په خاص مسجد حرام (کعبه مکرمه) نه چاپیره کیدل او د فرض خاص په هم هغه وخت کښې ادا کول کوم چه په شریعت کښې د هغې دپاره مقرر دې یعنی د وقوف په نهم د ذی الحجة د ماسپخین د وخت نه د لسم تاریخ د سحر نه مخکښې ادا کول اود طواف د هغې نه روستو ادا کول

**د حج واجبات** : په حج کښې دا څیزونه واجب دی

۱ وقوف مزدلفه،
۲ د صف او مروه ترمينځه سعي کول،
۳ رمي جمار،
۴ د آفاقي يعنې بهر ملکي دپاره طواف قدوم،
۵ حلق يا تقصير سر خرول يا ويښته واړه کول،
۶ او هر هغه څيز پريخودل چه د هغې په ترك کولو باندې دم يعنې څاروي ذبح کول واجب کيږي، د دې فرائض او واجبات نه علاوه نور هم څيزونه دی کوم چه د حج د سنن او آداب د لاندې راځي هغه به په راروانو صفحاتو کښې په خپله موقع بيانيږي

**په طواف کښې د يودالله والا قصه**

دغه شان ئې يودَ الله والا قصه ليکلې ده چه هغه اوولس حجونه کړې وو اوکله چه به بيت الله ته اورسيدو "لَبَّيْكَ اَللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ" نعره به ئې لګوله نوجواب به ملاويدلو چه "لَالَبَّيْكَ وَلَاسَعْدَيْكَ اُخْرُجْ مِنْ بَيْتِيْ" يعنې دَدې ځائې نه اوځه نه ستا لبيك قبول دې اونه سعديك قبول دې

يوځل يو الله والا دا جواب واؤريدونوهغه راغلودې سړی ته ئې اووئيل چه تاته کوم جواب ملاويږي آيا ته دا اورې. هغه وئيل او زه ئې نه اورم. هغه تپوس اوکړو چه دَ څومره وخت نه دا معامله جاري ده. هغه جواب ورکړو دَ اوولس کالونه. هغه اووئيل نو بيا دلته ولې راځې؟ دغه الله والا اووئيل چه دا دربار الهي پريخودو سره چرته لاړشم؟ بس هم هغه زمونږ خالق اومالك دې که هغه مو شړی نو مونږ به بياهم راځو. وائي چه الله تعالی په دې باندې راضي شو اودَ دغه سړی ټول حجونه ئې قبول کړل بهرحال دَ عشق او ليوتوب سره مست دا حاجي دَ محبوب په حصول کښې دَ محبوب دَ کورپه ليوتوب سره چکرې وهي کله منډې وهي اوکله اوګې خوزه وي اوکله په سکون سره سترګې ښکته روان وی کله دَ حجراسود ښکلول کوی نوکله په رکن يماني باندې ورتيتيږی کله په ملتزم پورې اينخلی چغې وهي نوکله دَميزاب رحمت لاندې راتلوسره اينخلی يوشوق دې ولوله ده جوش دې شور دې زور دې اوجذبه ده

طواف کعبہ ہے وقتِ سحر ہے نسیم دل کشا زور پر ہے

دَمحبوب دَ کور طواف ئې اوکړو اووه چکرې وهلوسره سترې شو دوه رکعته ئې اوکړل لږ آرام ئې اوکړو بيائې زمزم اوڅکل بيا په جوش کښې راغلواودَ محبوب په لټون کښې اوس دَ محبوب دَ کورسره دَ يوغرنه بل غر ته منډې شروع کړې په غرباندې اودريدوسره دَ محبوب په کور نظر واچولو دعائې اوغوښتله اوبيا واديي ته ورکوز شو هلته ئې ښه منډې اووهلې په ژبه باندې دَ يار ذکر په بدن دوړې دی يوخوا بل خوا کوشش دې بل طرف ته دَ محبوب انتظار دې او ټول عمل لکه دَ ليونو شروع دې لکه چه

اَمُرُّ عَلَى الدِّيَارِ دِيَارِ لَيْلٰى اُقَبِّلُ ذَا الْجِدَارَ وَذَا جِدَارًا
وَمَا حُبُّ الدِّيَارِ شَغَفْنَ قَلْبِىْ وَلٰكِنْ حُبُّ مَنْ سَكَنَ الدِّيَارَا

کله چه دا حقیقی عاشق دا ټول مراحل پوره کړی او په ظاهره محبوب حاصل نه شی نو دا سرې مدینې منورې ته مخ کړی چه کومې هستئی زه د عشق او محبت په دې میدان کښې اچولې یم د هغه طرف ته ورځم او د هغه نه معلوموم چه د محبوب د حاصلولو کومې طریقې دی مدینه منوره کښې حاضری ورکوی د رسول الله ﷺ د روضه مخې ته درود او سلام وائی ریاض الجنة کښې مونځونه کوی د خپل ربښتونی پیغمبر جمات ته ورځی د حضور پاك د تلو راتلو کیناستو پاسیدو په خایونو باندې نظر اچوی د خوږ نبی د منبر او محراب زیارت کوی بیا د وفا په لار کښې د سرونو کټ کونکو پتنګانو د قبرونو د کتلو د پاره احد ته ځی د نورو مقاماتو زیارت کوی او د څه نوی تعلیماتو سره بیا د محبوب د کور طرف ته مکې مکرمې ته واپس کیږی. د محبوب د کور سره خاؤشا غرونو ته ورځی عرفات ته ورځی او په جبل رحمت باندې په تیز نمر کښې ولاړ دې او د محبوب حقیقی په مخکښې د نیاز لاسونه خواره کړی دی په چغو صورو سره په ژړا ګانو محبوب راضی کوی تر ماښام پورې په راز او نیاز کښې وخت تیره وی. بیا یوې بلې وادئی مزدلفه ته روانیږی وائی چه کیدې شی محبوب هلته راضی شی او حاصل شی. راکوزیدو سره په زوره زوره وائی "لبيك اللهم لبيك لبيك لاشريك لك لبيك ان الحمد والنعمة لك والملك لاشريك لك" بیا وائی:

اَللّٰهُ اَكْبَرُ مَا اَفَاضِ الْمَشْعَرُ وَبِهِ الْوُفُوْدُ تَزَاحَمَتْ تَسْتَغْفِرُ
اَللّٰهُ اَكْبَرُ مَا السَّمَاءُ تَزَيَّنَتْ بِنُجُوْمِهَا وَبِهَا الْكَوَاكِبُ تَزْهَرُ

مزدلفه کښې په خاورو اوده کیږی. خیرن ویښته په دوړو ککړ دې مګر په سر کښې ئی غوغا شروع ده د سترګو په وړاندې هرخائی کښې د محبوب جلوه ده. سحر کښې د مزدلفې نه د لیوتوب زیاتولو د پاره څه کاڼړی راټوچنه وی او بیا یوبلې وادئی منی ته ځی. په جوش کښې دې او د محبوب په وصل کښې بندیزونه راځی په هغې باندې عملی وار کول غواړی نیغ ځی او بالکل مخامخ په لار کښې یوغټ بندیز ته مخامخ کیږی کاڼړی خو تیار دی د دغه بندیز په سر باندې کاڼړی وره وی د بدن ویښته لوئی شوی دی نوکونه لوئی شوی دی د بریتو بد حال دې په سر باندې خیرن ویښته دی په بدن باندې کفن دې یوڅادر پاس یوڅادر لاندې بندیزونه لرې کوی هرڅه ئی اوکړل چه څه کول وو او چه څومره کول وو او څومره کیدې شو وئی کړل اوس بیا واپس کیدو سره د اول نه تر آخره پورې دغه نقشې ته ګوری چه زه د څا د پاره چرته تلې ووم او ولې تلې ووم او څه حاصل شو؟ په دغه پس منظر کښې چه کله ګوری چه تراوسه پورې محبوب په ظاهره باندې حاصل نه شو نو دې وخت کښې دا حقیقی عاشق څه نورسوچ کوی. څکه چه د دنیا مجازی عاشقان چه کله په

عشق كښې ناكامه شي نوبيا هغه په خپله مرئي باندې چاړه راكاږي اوخودكشي كوي
اوس دَخپل ځان دَ قرباني كولوداحقيقي عاشق اراده كوي اودهغه بنديزونو دَ لرې
كولودپاره چه كله دَ كاڼړو ويشتو نه فارغ شي نودَ قربان ګاه طرف ته مخ كړي دې دپاره چه
دَخپل ځان قرباني وركړي هغه څې اوسوچ كوي چه تردغه وخته پورې دَ محبوب په حصول
كښې څه كيدې شو ما اوكړل بس اوس دَدې ژوند ضرورت نشته اوس به هم دا ختموم كله
چه قربان ګاه ته رسيږي نودَ محبوب حقيقي دَ طرف نه دَ رحمت يو پرق په هغه راپريوځي
هغه اشاره كوي چه دَ ځان په ځاني څناور ذبح كړه هم دغه به قبلولې شي دې لاړشي او
څناور په دې نيت باندې ذبح كړي چه په اصل كښې خپل ځان ذبح كوي كله چه ښه په
جوش كښې تكبيروائي اوڅناور قرباني كوي اودځان بازي لګوي نواوس محبوب حقيقي
راضي كيږي او ملاويږي دَ محبوب حقيقي په راضي كيدواو دَ محبوب دَ وصل په
ملاويدو سره حقيقي عاشق ته دَ حبيب دَ وصال مقام حاصليږي كله چه په هوش كښې
راځي نو په خپل ځان باندې نظر اچوي. لوئي لوئي نوكونه ورته ښكاري نووائي چه دا څه
چل اوشو دا نوكونه دومره لوئي ولې دي؟ اودا ويښته ولې دومره خيرن دي اوداكپړې ولې
دومره خيرنې دي. دې كتلوسره غسل خانې ورځي اوغسل كوي صابن استعمالوي او
صفائي حاصله كړي. نوې كپړې واچوي نوكونه كټ كړي اوعطراستعمالولوسره ظاهراً
اوباطناً پاك شي. په حديث كښې راغلي دي چه حج كولوسره حاجي داسې پاكيږي لكه څنګه
چه دَ مورد خيټې نه راپيدا شوې راغلې وو. دغه شان دا عاشقانه ديوانه عبادت مكمل كيږي
**فلسفة حج**: دَ محبوب دَ حصول دپاره دَ دنيادَ مجازي عاشقانو دادستور دې چه كوم
يوعاشق هم دَمحبوب تعريف كوي دَهغې نه پس تعظيم هم كوي اومال هم پرې خرچ كوي
خوراك څښاك هم پريږدي اوبيائي هم محبوب په لاس رانه شي نوآخر هغه دَ خپل
كورپريخودو سوچ كوي او وائي چه ما په تعريف كښې دَ محبوب قصيدې هم اولوستلې
تعظيمونه مې هم اوكړل مال مې هم پرې ښه خرچ كړو اودَ خوراك څښاك نه مې هم ځان منع
اوساتلو اوس دَ دې ژوند هيڅ ضرورت نشته دې لهذا دغه وخت كښې هغه كپړې اوشله
وي وني غورزه وي او دومره په جذباتو كښې راشي چه دَ سرتوپئي اودَخپو پيزار هم
كوزكړي وني غورزه وي اودَ جذب په داسې كيفيت كښې راشي چه دَ ليونتوب په كيفيت
كښې هغه دَ صحراګانوطرف ته مخ كړي دَ ده آبادو نه نفرت اووحشت كيږي او په دې
اميدباندې دَ كور نه وتلوسره دَ صحرا طرف ته مخ كوي چه دې هغه مقامات اووينې چرته
چه په يوه زمانه كښې محبوب اوسيدو اوكوم ځائي چه دا عاشق دَ محبوب نښې كنډرې
اودَ اوسيدو نښې نښانې ويني نودَ ماضي دَټولوحالاتو جائزه اخلي او ديار حبيب كښې په
هرهغه مقام باندې ژړا كوي چرته چه په تيره شوې زمانه كښې محبوب خپل نقل وحركت

کړې وو عربي شاعرانو او عجمي غزل ویونکو په خپلو قصیدو اوغزلونوکښې هم دغه نقشه پیش کړې ده اوهغوی پخپله هم ژاړي او نور هم ژړه وي. هغوی په هرمقام باندې اودریدوسره نه صرف دَ ماضي نقشه پیش کړې ده بلکه هلته دَ هغه غم او فریاد یوبوږ ماتم نی کړي دي دَدې یوځومثالونه پیش کولې شي یو سوزیدلې زړه والا شاعر دَخپلو جذباتو داسې اظهارکوی

اَیَا مَنْزِلَی سَلْمٰی سَلَامٌ عَلَیْکُمَا هَلِ الْاَزْمَنُ الّتِی مَضَیْنَ رَوَاجِع

اې دَ سلمٰی محبوبه دوه مکان، په تاسو دواړوباندې دې سلام وی آیا تیره شوې زمانه به واپس راشي؟

وَهَلْ یَرْجِعُ التَّسْلِیْمَ اَوْیَکْشِفُ العَمٰی ثَلَاثُ الْاَثَافِیْ وَالدِّیَارُ الْبَلَاقِع

اوآیادَمحبوب وران کوراودَنغری درې کانړی به زما لارخودنه یا زما دَ سلام جواب راکړی؟ شاعر ساحرابو الطیب متبنی وائی

فَدَیْنَاکَ مِنْ رَبْعٍ وَاِنْ زِدْتَّنَاکَرْبًا فَاِنَّکَ کُنْتَ الشَّرْقَ لِلشَّمْسِ وَالْغَرْبَا

اې دَمحبوب کوره مونږ په تاباندې قربان، سره دَدې چه په دې وجه دَ تیرشوی وخت تازه بې آرامي زیاته کړه ځکه چه ته دَ محبوب دَپاره په منزله دَ مشرق اومغرب وې

وَکَیْفَ عَرَفْنَا رَسْمَ مَنْ لَّمْ یَدَعْ لَنَا فُؤَادًا لِعِرْفَانِ الرُّسُوْمِ وَلَا لُبًّا

اومونږ دَمحبوب دکور نښې ځنګه اوپیژندلې سره دَدې چه دَ هغه دَ پیژند ګلودَپاره نه زمونږ زړه پریخودو او نه عقل

سَقَیْتُهٗ عَبَرَاتٍ ظَنَّهَا مَطَرًا سَوَائِلًا مِنْ جُفُوْنٍ ظَنَّهَا سُحُبًا

ماهغه باندې داسې جاری اوښکې اوڅکلې کوم چه هغه باران ګڼړلو دَ سترګوپه داسې بڼړو سره کوم چه هغه اوریځې اوګڼړلې

**د مجنون مجازی عشق**: دَ لیلٰی مجنون خو په دې میدان کښې دَ نورو نه لس قدمه وړاندې اووتلو هغه خودَ محبوبه در او دیوار ښکلولو اوځتلو اودَ طواف پورې قائل کیدو سره وائی

اَمُرُّ عَلَی الدِّیَارِ دِیَارِ لَیْلٰی اُقَبِّلُ ذَا الْجِدَارَ وَذَا الْجِدَارَا

زه چه کله دَ محبوبې لیلٰی په در و دیوار باندې تیریږم نو خاؤشا دیوالونه ښکلوم

وَمَا حُبُّ الدِّیَارِ شَغَفْنَ قَلْبِیْ وَلٰکِنْ حُبُّ مَنْ سَکَنَ الدِّیَارَا

دکورونو محبت زما زړه فریفته نه کړو بلکه د دغه کورونو اوسیدونکو محبت داسې کړی

عَلٰی لِرَبْعِ العَامِرِیَّةِ وَقْفَةٌ لِیُمْلِیْ عَلَیَّ الشَّوْقَ وَالدَّمْعُ کَاتِبُ

عامر دَمحبوب کور سره اودریدل په ما باندې لازم دی دې دَپاره چه هغه زما شوق زیات کړی او کاتب اوښکې کیدو سره اولیکی

وَمِنْ عَادَتِیْ حُبُّ الدِّیَارِ لِاَهْلِهَا وَلِلنَّاسِ فِیْمَا یَعْشِقُوْنَ مَذَاهِبُ

زما عادت دې چه زه دَ مکانونوسره په وجه دَهغې دَ مکینانو محبت لرم او په عشق کښې

دخلقو خپلې خپلې طريقې دي
د محبوب د حاصلولو دپاره په پنځمه مرحله كښې شريعت مطهره ركن حج مقرر كړې دې چه كله يو حقيقي عاشق سوچ كوى چه ماد محبوب حقيقي د حصول او رضا دپاره حمداوثنا هم اوكړه. بيا عظيم تعظيم اوكړو بيا مال هم خرچ كړو خوراك څښناك هم بند كړو اوبيا هم حقيقي محبوب په لاس رانغلو نودغه وخت كښې دا عاشق حقيقي خپلې كپړې اوباسى د كفن په شان دوه څادرې واغوندى په سرباندې بربنډ وى او په خپو كښې داسې څپلنې وى په كوم سره چه خپې پټې نه شى اود دې باوجود په كور كښې خپل بال بچ پريږدى او د ليونى او مجنون په انداز سره د هغه ديار طرف ته مخ كړى چرته چه د محبوب كور دې اوهلته دهغه نښې نښانې دى داسې عاشق ليونې شى "بلد الله الحرام" ته اورسى د محبوب د كور په ليدو سره دا صادق عاشق لاړشى دهغه كور طواف شروع كړى دې دپاره چه محبوب ملاؤشى هغه د طواف په شروع كښې حجر اسود ښكله وى لكه چه هغه رسيدو سره د خپل محبوب حقيقي لاس ښكل كړو دلته نفل كول روستو دى دلته تهجد كول روستو دى د ټولونه اول د محبوب د كور طواف دې دې دپاره چه په څه طريقه محبوب رضا شى. په عشق مجازى كښې هم د طواف واقعات شوى دى اوكيږى كوم چه رد كولې نه شى

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [۲۵۰۵] حج په ټول عمر كښې يوځل فرض دې

۲۵۰۵-[۱] ()[۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «خَطَبَنَا رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقَالَ: [۲] يَا أَيُّهَا النَّاسُ قَدْ فُرِضَ عَلَيْكُمُ الْحَجُّ فَحُجُّوا، [۳] فَقَالَ رَجُلٌ أَكُلَّ عَامٍ يَا رَسُولَ اللهِ؟ [۴] فَسَكَتَ حَتَّى قَالَهَا ثَلَاثًا [۵] فَقَالَ: لَوْ قُلْتُ نَعَمْ لَوَجَبَتْ وَلَمَا اسْتَطَعْتُمْ،

**ترجمه** [۱] ابوهريره ﷺ وايي چې (يو ځل) نبى كريم ﷺ زمونږ په مخكې خطبه ويلو سره وفرمايل [۲] چې اې خلقو! په تاسو حج فرض شوي دي، نو تاسو حج كوى [۳] (د دې اوريدو سره) يو سړي عرض وكړو چې يا رسول الله! ﷺ آيا مونږ هر كال حج كوو؟ [۴] نبى كريم ﷺ خاموش وو. تر دې چې هغه سړي درې ځله دا خبره وكړه. [۵] بيا نبى كريم ﷺ وفرمايل چې كه ما هو ويلې وې نو يقيناً حج به (د هر كال د پاره) فرض شوى وو. او تاسو هر كال په حج كولو قادر كيدى نه شې.

ثُمَّ قَالَ ذَرُونِي مَا تَرَكْتُكُمْ، [۲] فَإِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ بِكَثْرَةِ سُؤَالِهِمْ وَاخْتِلَافِهِمْ عَلَى أَنْبِيَائِهِمْ. [۳] فَإِذَا أَمَرْتُكُمْ بِشَيْءٍ فَأْتُوا مِنْهُ مَا اسْتَطَعْتُمْ وَإِذَا نَهَيْتُكُمْ عَنْ شَيْءٍ فَدَعُوهُ» (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

[۱] اخرجه مسلم فى صحيحه رقم الحديث ۴۱۲/ ۱۳۳۷ والنسائى فى كتاب مناسك الحج/باب فضل الحج (رقم-۲۶۱۹)

**ترجمه** [۱] بیا نبی کریم ﷺ وفرمایل تر څو چې زه تاسو پرېږدم، تاسو ما پرېږدی (یعني څه چې زه ونه وایم، نوما څخه پوښتنه مه کوی) [۲] ځکه چې کوم خلق ستاسو څخه مخکې تیر شوي دي (یعني یهود او نصارٰی) هغه په دي سبب هلاك شو، چې هغوئ به د خپلو انبیاوو څخه پوښتني کولي، او د هغوئ سره به یې اختلاف کولی (څرنګه چې د بني اسرائیلو په باره کې منقول دی) [۳] هر کله چې زه تاسو ته د څه خبري حکم درکړم، نو د هغه څخه د څه چې تاسو یې د کولو طاقت لری هغه کوی، او هر کله چې تاسو د څه خبري څخه منع کړم. نو هغه پرېږدی، مسلم

**حل اللغات** ① ذَرُونِي :أي اتركوني : ما پرېږدئ (ډېر تپوسونه رانه مه کوئ تر څو چه زه ستاسو نه تپوس اونه کړم) ② فَأْتُوا: أي افعلوه: کوئ هغه (دکوم چه درته ما حکم کړې دې) ③ فَدَعُوهُ: أي اتركوه پرېږدئ یعنی مه ئې کوئ (د کوم چه ما منع کړی یئ)

**تسهیلات: قوله**: فَقَالَ رَجُلٌ:

**د رجل مصداق او د سوال کولو وجه**: دې سړی نه اقرع بن حابس مراد دې هغه داسوال کړې ووځکه چه هغه خیال کړې ووچونکه دَ اسلام نور اعمال مکرر دی نوحج هم کیدې شی دَ نورو احکامو په شان مکرر کیدو سره هرکال کول وی.

**قوله**: فَسَكَتَ:

**د نبی علیه السلام د سکوت مقصد**: دَ حضورپاك سکوت اوخاموشی دَدې دَپاره وه چه دا سوال ورته بنه اونه لګیدو لکه سائل یوقسم رټل مقصودوو خوچه کله دغه سړی بار بارسوال اوکړو نو حضورپاك حقیقت واضح کړوکه چرې ما او کړې وې نودَ الله تعالی حکم به جوړشوې وې او بیابه هرکال حج فرض ووبه کوم چه به عمل کول ګران وو. په دې وجه چه زه کله پخپله اونه بنایم نوتاسو بې ځایه سوالونه مه کوئی. چه دَ کوم حکم ضرورت وی نوزه درته حکم بنایم یا منع کوم ماهم په دې حالت کښې پرېږدئی ځکه چه دَ انبیاء کرامو نه سوالونه کولوسره پخوانی امتونه تباه شوی دی تاسو داسې مه کوئی

**په اسلام کښې د اولنې حج فائده**: په دې حدیث کښې حضورپاك دَ حج کولوحکم ورکړو بیاپه اتمه هجری دَ فتح مکې نه پس دَ حضرت عتاب بن اسید ﷺ په مشرئی کښې مسلمانانو رومبې حج اوکړو بیا په ۹هجری کښې دَحضرت ابوبکرصدیق ﷺ په مشرئی کښې مسلمانانودویم حج اوکړو بیا په ۱۰هجری کښې دَحضورپاك سره ټولومسلمانانو حجة الوداع اداکړو

علماؤ لیکلی دی چه حضوراکرم په مکه مکرمه کښې دَ هجرت نه وړاندې ډیرحجونه اداکړی وو لیکن دَ فتح مکې نه پس دَحضورپاك دا رومبې حج وو. په دې وجه معلومه شوه چه دَ حج فریضه موسع ده یعنی په دې کښې دَ تاخیرګنجائش شته دې.

**[۲۵۰٦] اسلام کښې جهاد د ټولو نه افضل عمل دې**

۲۵۰٦ - [۲] (¹) [١] عَنْهُ قَالَ: «سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٢] - أَيُّ الْعَمَلِ أَفْضَلُ [٣] قَالَ: إِيمَانٌ بِاللّٰهِ وَرَسُولِهِ [٤] قِيلَ: ثُمَّ مَاذَا [٥] قَالَ: الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ [٦] قِيلَ: ثُمَّ مَاذَا قَالَ: حَجٌّ مَبْرُورٌ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** [١] ابوهریره ﷺ وايي چې د نبی کریم ﷺ څخه پوښتنه وشوه [٢] کوم عمل د ټولو څخه بهتر دی؟ [٣] وي فرمایل چې په الله ﷻ او د هغه په رسول ایمان راوړل. [٤] پوښتنه وشوه چې بیا کوم؟ [٥] وي فرمایل چې د الله ﷻ په لار کې جهاد کول. [٦] پوښتنه وشوه چې بیا کوم؟ وي فرمایل چې حج مقبول، بخاری، مسلم

**حل اللغات:** ① حَجٌّ مَبْرُورٌ: أَيْ مَقْبُولٌ: قبول شوې حج

**تسهیلات:**

**قوله:** أَيُّ الْعَمَلِ أَفْضَلُ:

**افضل عمل:** د فضل اعمال په سلسله کښې د ټولو نه افضل عمل کوم یو دې؟ مختلف احادیث منقول دی په څه احادیث کښې یو عمل ته افضل وئیلې شوې دې او په څه کښې بل ته، په دې ټولو کښې مطابقت او موافقت داسې پیدا کولې شی چه دا اختلاف د بیان سائلین په احوال، حیثیات او مقامات د فرق او تضاد په وجه باندې دې، دا خبره په تفصیل سره په کتاب الصلاة کښې په یوه موقع باندې بیان کړې شوې ده.

**[۲۵۰۷] مقبول حج د ټولو ګناهونو کفاره ده**

۲۵۰۷ - [۳] (²) [١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «مَنْ حَجَّ لِلّٰهِ فَلَمْ يَرْفُثْ وَلَمْ يَفْسُقْ رَجَعَ كَيَوْمِ وَلَدَتْهُ أُمُّهُ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** [١] ابوهریره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] کوم سړی چې د الله ﷻ د پاره حج وکي او د حج په دوران کې نه د خپلي ښځي سره مجامعت وکړي او نه په فسق کې اخته شي، نو هغه داسې بې ګناه کیدو سره واپس راځي څرنګه چې په هغه ورځ بې ګناه وو. په کومه ورځ چې د مور د خیټې څخه پیدا شوی وو. بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① فَلَمْ يَرْفُثْ: الرَّفَثُ يُطْلَقُ عَلَى الْجِمَاعِ: رفث جماع ته وائی یعنی د حج په دوران کښې ئې خپلې ښځې سره جماع اونه کړه. ② لَمْ يَفْسُقْ: نه ئې څه ګناه اوکړه (په دوران د حج کښې)

---

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الإیمان/باب من قال إن الإیمان هو العمل (رقم-۲٦) ومسلم فی کتاب الإیمان/باب بیان کون الإیمان بالله تعالی أفضل الأعمال (رقم) ۱۳۵ - (۸۳) والترمذی فی السنن رقم الحدیث ۱٦۵۸ والنسائی فی کتاب مناسک الحج/باب فضل الحج (رقم-۲٦۲٤)واحمد فی المسند: ۳۷۲/٦

²) اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب فضل الحج المبرور (رقم-۱۵۲۱)ومسلم فی کتاب الحج /باب فی فضل الحج والعمرة، ویوم عرفة (رقم-٤۳۸ - (۱۳۵۰) والترمذی فی السنن رقم الحدیث ۸۱۱ والنسائی فی کتاب مناسک الحج/باب فضل الحج (رقم-۲٦۲۷) وابن ماجة فی کتاب المناسک/باب فضل الحج والعمرة (رقم-۲۸۸۹) واحمد فی المسند:۲/٤٩٤

**تسهيلات:**

**قوله: وَلَدَتْهُ أُمُّهُ:**

**د حج مقبول شرائط:** يعنى په كومه ورځ چه دا سړي د موردخيتې نه دټولو گناهونونه پاك پيداكيدو سره راغلي وو دمقبول حج كولونه پس به دغه شان پاك شى دا ډير لوئى فضيلت دي اوددي تائيد په دي حديث سره هم كيږى په كوم كښې چه دا الفاظ راځي

**قوله: "الحج يهدم ماكان قبله"**

**د مذكوره فضيلت ګټلو دپاره شرطونه،** ليكن ددي فضيلت دحصول دپاره په زيربحث حديث كښې د درې شرائطو ذكرهم دي

① اول شرط دا چه حج خالص د الله تعالى د رضا اوخوشحالئى دپاره كيدل او د نوم. ريا كارئى او خان خودلودپاره نه وى.

② دويم شرط دادي چه د حج دوران كښې "رفث" ارتكاب اونه كړى، رفث هغه فحش خبرو اترو ته وائى چه كوم دښځويه مخكښې د ښځو محاسن بيانولوسره متعلق وى په جماع باندې هم ددې اطلاق كيږى.

③ دريم شرط دادې چه د حج دوران كښې سړى د فسق اوفجور ارتكاب اونه كړى. يعنى د حج دوران كښې دداسې گناه ارتكاب اونه كړى كوم چه كبيره وى او په كوم سره چه سړى فاسق كيږى او نه دې په صغيره گناه باندې اصرار كوى كوم چه د اصرار په وجه كبيره گناه جوړيږى

**د حج مبرور علامت:** د حج مقبول دعلاماتونه يوه علامه داده چه دحج كولونه پس د انسان اخلاقى عملى او دينى حالات بدليدوسره بهتر شى. بعضو وئيلى دى چه حج مبرور هغه دې كوم سره چه د گناه ګډوډوالي نه وى. كه د حج دوران كښې د گناه ارتكاب اوكړى هغه حج مبرور نه پاتې كيږى.

## [۲۵۰۸] د عمرې ثواب

۲۵۰۸-[٤] ( )[۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «الْعُمْرَةُ إِلَى الْعُمْرَةِ كَفَّارَةٌ لِمَا بَيْنَهُمَا، [۳] وَالْحَجُّ الْمَبْرُورُ لَيْسَ لَهُ جَزَاءٌ إِلَّا الْجَنَّةُ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** [۱] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] يوه عمره تر دويمې عمرې كفاره ده. د هغه (صغيره) گناهونو د پاره چې د هغه دواړو عمرو په منځ كې وي، [۳] او د حج مقبول بدله د جنت څخه علاوه بل څه نه ده. بخاري، مسلم

---

( ) اخرجه البخارى فى كتاب الحج/باب وجوب العمرة وفضلها (رقم-۱۷۷۳) ومسلم فى كتاب الحج /باب فى فضل الحج والعمرة، ويوم عرفة (رقم-٤۳۷ - (۱۳٤۹)) والنسائى فى كتاب الجنائز/باب الرخصة فى أن يقال: لشهر رمضان رمضان (رقم-۲۱۱۰) وابن ماجة ى كتاب المناسک/باب العمرة فى رمضان (رقم-۲۹۹٤) واحمد فى المسند: ۲۲۹/۱

**تسهيلات:**

**قوله** الْعُمْرَةُ إِلَى الْعُمْرَةِ كَفَّارَةٌ لِمَا بَيْنَهُمَا

**د گناهونو مصداق:** دا كفاره د صغيره گناهونو ده په دې اجماع ده چه مكفرات د هغه صغائرو سره مختص دي چه د حقوق العباد سره متعلق نه وي

**اعتراض:** چه عمره د گناهونو كفاره ده په دې شرط چه كله د كبائرو نه اجتناب اوكړي نو سوال دا دې چه كله د كبائرو نه بچ كيږي نو بيا د كومو گناهونو كفاره شوه؟

**داعتراض جواب:** عمره مقيد ده د هغې د زمانې سره يعنې د دواړو عمرو په مينځ كښې ئې چه كومې گناهونه كړي وي باقي د كبائرو نه اجتناب خو عام دې كه د عمرې مينځ كښې وي او كه د هغې نه پس وي [التعليق الصبيح ج٣ص ٢١٢]

**[٢٥٠٩] په رمضان كښې د عمرې ثواب**

٢٥٠٩–[٥] (١) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «إِنَّ عُمْرَةً فِي رَمَضَانَ تَعْدِلُ حَجَّةً» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه:** ابن عباس ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل په رمضان كې د عمرې كولو ثواب د حج د ثواب برابر دی، بخاري، مسلم

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ عُمْرَةً فِي رَمَضَانَ تَعْدِلُ حَجَّةً:

**په روژه كښې د عمرې كولو ثواب:** يعنې چه دَ مقبول حج كوم ثواب دې هم دومره ثواب دغه سړی ته حاصليږي څوك چه دَ رمضان په مياشتې كښې عمره كوی. په يوبل حديث كښې "حجة معى" الفاظ راغلي دي. دَدې مطلب دادې چه حضورپاك سره په حجة الوداع كښې دَ شريكيدو ثواب ملاويږي. "سبحان الله والحمد لله".

**[٢٥١٠] د نابالغ ماشوم دَ حج ثواب**

٢٥١٠–[٦] (٢) وَعَنْهُ قَالَ: «إِنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَقِيَ رَكْبًا بِالرَّوْحَاءِ فَقَالَ: مَنِ الْقَوْمُ، قَالُوا: الْمُسْلِمُونَ، فَقَالُوا: مَنْ أَنْتَ قَالَ: رَسُولُ اللهِ فَرَفَعَتْ إِلَيْهِ امْرَأَةٌ صَبِيًّا، فَقَالَتْ: أَلِهَذَا حَجٌّ قَالَ: نَعَمْ وَلَكِ أَجْرٌ» (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

---

(١) اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب عمرة في رمضان (رقم-١٧٨٢) ومسلم في كتاب الحج /باب فضل العمرة في رمضان (رقم-٢٢١ - (١٢٥٦) والنسائي في كتاب مناسك الحج/باب حج المرأة عن الرجل (رقم-٢٦٤١) وابن ماجة في كتاب المناسك/باب الحج عن الحي. إذا لم يستطع (رقم-٢٩٠٧)

(٢) اخرجه مسلم في كتاب الحج /باب صحة حج الصبي وأجر من حج به (رقم-٤٠٩ - (١٣٣٦) وابن ماجة في كتاب المناسك/ باب حج الصبي (رقم-٢٩١٠)

**ترجمه** ۱ ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ (د حج د سفر په دوران كې) په روحاء كې (چې د مديني څخه د ۳۶ ميله په فاصله د يو ځای نوم وو) يوي قافلې سره يو ځای شو. ۲ رسول الله ﷺ ترې پوښتنه وكړه چې تاسو كوم قوم يې؟ ۳ قافلې والاوو يل چې مونږ مسلمانان يو. ۴ بيا قافلې والا پوښتنه وكړه چې تاسو څوك يې؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې زه رسول الله يم ۵ د دي اوريدو سره، يوي ښځې يو هلك (په لاس كې اخستو سره د كجاوي څخه، رسول الله ﷺ ته نيولو سره راپورته كړو (يعني رسول الله ﷺ ته يې وښودلو) بيا يې د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وكړه چې آيا د ده د پاره د حج ثواب شته؟ ۶ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې هو او ستا د پاره هم ثواب دی. مسلم

**حل اللغات:** ① رَكْبًا: جمع د راكب ده، اودا اسم جمع ده لكه صاحب. مراد ترې قافله ده او دا لس يا د لسو نه زيات د سورلو والاجماعت ته واني، خو روستو ددي استعمال د عام جماعت دپاره اوشو ② الرَّوْحَاء: د مديني نه شپږديرش يا څلويښت ميله لرې د يوځاني نوم دي. ③ صَبِيًّا: ماشوم

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَكِ أَجْرٌ:

**د ماشوم د حج نوعيت:** دَ ټولوفقهاؤ په دې باندې اتفاق دې كه چرې وړوكې ماشوم خپل موريلار سره دَ حج دَپاره لاړشي او حج اوكړی نودَهغه حج صحيح دي ثواب به ملاوېږی ليكن دَماشوموالي داحج به دَ بالغ كيدو نه پس دَ حج دَپاره نه كافی كيږی. دَ بلوغ نه پس كه چرې داماشوم دَمال خاوندشو نو په ده باندې دَ اسلام حج كول لازم دی. دَ ماشوم په شان دَ غلام هم دغه مسئله ده. اوكه فقير مسكين سړې چرته حج اوكړی اوروستو مالدارشی نو په ده باندې دوباره حج نشته دې. تردې پورې خودَ ټولو فقهاؤ اتفاق دې.

دَ صحيح قول مطابق دَ امام ابوحنيفه رحمه الله هم دغه مسلك دې اودومره خبره ده چه امام ابوحنيفه رحمه الله فرمانی چه دَ ماشوم دَ حج ثواب به دَهغه مور پلار ته ملاوېږی. اوكه ماشوم كه چرې مميزنه دې نو مور پلارته پكاردی چه ماشوم ته دَ احرام احترام اوښائی اودَ احرام دَ ممنوعاتو نه ئی بچ كړی. دَامت فقهاؤ چه دا كومه فيصله كړې ده چه دَماشوم حج دَ فرض حج دَ پاره كافی نه دې نودَدې رومبې دليل دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما حديث دې كوم چه امام طحاوی رحمه الله نقل كړې دې الفاظ ئی دادی "ايما غلام حج به اهله ثم بلغ فعليه حجة اخرى" (طحاوی)

دويم دليل دَ مستدرك حاكم روايت دې دَ كوم الفاظ چه دادی "قال النبی صلی الله عليه وسلم ايما صبی حج عشر حجج ثم بلغ فعليه حجة الاسلام" (مستدرك)

بهرحال زيربحث حديث كښې "ولك اجر" الفاظو سره دَ ائمه احنافودَدې نظريې تائيد كيږی چه دَ نابالغ ماشوم دَ حج ثواب به دَهغه موريلارته ملاوېږی.

**[۲۵۱۱] دَ بل دَ طرف نه دَ حج كولو مسئله**

۲۵۰۰-[۷] ( )[۱] وَعَنْهُ قَالَ: «إِنَّ امْرَأَةً مِنْ خَثْعَمٍ قَالَتْ: [۲] يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ فَرِيضَةَ اللهِ عَلَى عِبَادِهِ فِي الْحَجِّ أَدْرَكَتْ أَبِي شَيْخًا كَبِيرًا لَا يَثْبُتُ عَلَى الرَّاحِلَةِ أَفَأَحُجُّ عَنْهُ [۳] قَالَ نَعَمْ، وَذَلِكَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** [۱] ابن عباس رضي الله عنه وايي چې د قبيله خثعم يوې ښځې عرض وكړو [۲] يا رسول الله ﷺ حج د الله تعالیٰ په بنده گانو يوه فريضه ده، خو زما پلار ډير بوډا دی چې په سوارلی كينا ستلو هم نشي، نو آيا زه د هغه د طرف څخه حج وكړم؟ [۳] رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې هو، ( د هغه د طرف څخه حج وكړه)، (راوي وايي چې د رسول الله ﷺ او د هغی په منځ كې دا سوال وجواب په حجة الوداع كې شوی وو، بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① شَيْخًا كَبِيرًا: ډير بوډا، ② لَا يَثْبُتُ: أَيْ لَا يَقْدِرُ: خان نه شی ټينگولی (يعنی په سورلی باندې د كيناستلو طاقت ئې نشته). ③ الرَّاحِلَةِ: سورلی (اوښ يا اس وغيره)

**تسهيلات:**

**قوله: أَفَأَحُجُّ عَنْهُ:**

**د بوډاوالی په حالت كښې د حج فرض كيدو دوه صورتونه:** ① په بوډاوالی كښې حج يا خو داسې فرض شوې وو چه دا سړې دَ بوډاوالی په حالت كښې مسلمان شوې وو

② په دې وجه فرض كړې شوې وو چه دا سړې دَ بوډاوالی په حالت كښې مالدار شوې وو

**دصحابی د تپوس كولووجه:** بهرحال دا سړې شيخ فانی وو دَ ده دَ صحت څه اميدنه وو په دې وجه دَهغه لور دَ هغه دَ طرف نه دَ حج كولودَمسئلې تپوس اوكړو. اوس تولو احاديثو ته په كتو سره او دَ فقهاؤدَ رائې په رڼاكښې دوه مسئلې مخې ته راځی

**دحج بدل دوه شرطونه:** داده كه په يوسړی باندې حج فرض شو اوهغه پخپله دَ حج كولونه معذور وی مثلاً شيخ فانی وی خپه لاس ئی پرې شوې وی يا نابينا وی نوكه دَهغه دَ طرفه چرته بل سړې حج كول غواړی نودا جائز دی ليكن دَدې دَپاره دوه شرطونه دی

① معذوره سړې دې بل سړی ته دَ خپل طرف نه دَ حج كولو حكم وركړی يا دَ مرگ په صورت كښې دَحج كولووصيت اوكړی

② معذوره سړې دې حج ټوله خرچه برداشت كولو سره دې هغه سړې دَ حج دَپاره روان كړی. دا دواړه شرطونه دَ فرض حج كولودَپاره دی ليكن كه يوسړې دَ بل سړی دَ طرف نه نفلی حج كول غواړی نو په دې كښې نه دَ څه وصيت ضرورت شته اونه دَ خرچې وركولوڅه پابندی شته

---

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب وجوب الحج وفضله (رقم-۱۵۱۳) ومسلم في كتاب الحج /باب الحج عن العاجز لزمانة وهرم ونحوهما، أو للموت (رقم-۴۰۸ - (۱۳۳۵)

**د مړشوي پلار دپاره دحج کولوجواز:** که چرته اولادد خپل مور پلار دَ طرف نه فرض حج کوي غواړي نودَدې صورت به څه وي بعض علماء فرماني چه په دې صورت کښې نه دَ مور پلار دَ طرف نه خرچه ورکول ضروري دي اونه وصيت ضروري دې اولاددَ خپل مو پلار دَ طرف نه په خپل خرچ باندې فرض حج کولې شي زير بحث حديث په دې باندې واضحه دليل دې او فصل ثاني کښې حديث نمبر: ۲۵۲۸ هم په دې باندې واضح دليل دې دا مسئله خو مکمل شوه اودَدې حديث تعلق موريلار او اولاد سره دې لهذا په دې کښې دَ څه تاويل کولو ضرورت نشته دې

**په شيخ فاني باندې د حج په فرضيت کښې مذاهب:**

① دَ امام شافعي رحمه الله او اکثرمشائخ په نيزشيخ فاني او دائمي معذور باندې حج فرض کيږي که چرته هغه پخپله نه شي تلې نو پيسې دې ورکړي او په بل چا باندې دې حج اوکړي دَامام ابوحنيفه رحمه الله يو مرجوح قول هم داسې دې

② دَ امام ابوحنيفه رحمه الله راجح قول دادې چه په داسې معذوره باندې حج فرض نه دې لهذا په بل باندې دَحج کولوڅه ضرورت نشته دې داسړې دَحج دَ اداکولودَ ذمه وارۍ نه آزاد دې

**داول فريق دليل:** امام شافعي رحمه الله دَ زيربحث حديث نه استدلال کړې دې چه په خپله مدعا باندې په ظاهره واضح دليل دې

**د دويم فريق دليل:** امام ابوحنيفه رحمه الله دَ قرآن کريم دَدې آيت نه استدلال کړې دې

﴿وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا﴾ [آل عمران: ۹۷]. په دې آيت کښې دَ حج دَ فرضيت دَپاره طاقت شرط ګرځولې شوې دې او په شيخ فاني کښې دَ تلو راتلو طاقت نشته دې

**د اول فريق د دلائلو دوه جوابونه:** ① په دې شيخ باندې اول حج فرض شوې وو روستو معذوره شوې وو په حديث کښې دَ ماضي صيغه دَدې طرف ته اشاره کوي. لهذا په داسې صورت کښې احناف هم دَ واجبې فريضې واجبه دَ ادا کولو قائل دی

② دې ښځې دَ نفل حج دَ ادا کولو په توګه اجازت غوښتې وو نو حضورپاك اجازت ورکړو دا دَ فرض حج معامله نه وه

**[۲۵۱۲] د وارث د مورث د طرف څخه د حج کولو مسئله**

۲۵۱۲-[۸] (¹) وَعَنْهُ قَالَ: «أَتَى رَجُلٌ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقَالَ: إِنَّ أُخْتِي نَذَرَتْ أَنْ تَحُجَّ وَإِنَّهَا مَاتَتْ، فَقَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: لَوْ كَانَ عَلَيْهَا دَيْنٌ أَكُنْتَ قَاضِيَهُ قَالَ: نَعَمْ قَالَ: فَاقْضِ دَيْنَ اللَّهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِالْقَضَاءِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

---

(¹) اخرجه البخاري في كتاب الأيمان والنذور / باب من مات وعليه نذر (رقم-۶۶۹۹)و احمد في المسند ۱/ ۳۱۰

**ترجمه** [١] ابن عباس رضي الله عنهما راوي دی چې يو سړي د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو [٢] او عرض يې وکه چې زما خور د حج کولو نذر منلی وو، خو هغه مړه شوه [٣] رسول الله ﷺ وفرمايل چې د هغه په ذمه که څه مطالبه (مثلاً [٥] قرض وغيره) وي، نو آيا تا به هغه (ادا) کوله که نه؟ هغه اوويل چې هو [٣]، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې نو بيا د الله ﷻ مطالبه (يعني حج نذر) ادا کړه، ځکه چې د هغه ادا کول زيات ضروري دی.

بخاري. مسلم

**حل اللغات** ① فَاقْضِ: تا به اداکولو، پوره کولو به دي

**تسهيلات:**

**قوله فَاقْضِ دَيْنَ اللهِ:**

**د وصيت څخه بغيره مړه دپاره د حج جواز:** لکه څنګه چه ددې نه مخکې حديث نمبر ٢٥١١ کښې ليکلي شوی دی چه اولاد او وارث که دخپل مورث د طرف نه حج کول غواړی نو وصيت کولو او مال ورکولو نه بغير هم د وارث د طرفه حج صحيح کيږی د کوم په بنياد چه هغه د حج کولو د مسئلې تپوس کړې وی

**[٢٥١٣] ښځه دَ خاوند يا محرم نه بغير حج نه شی کولی**

> ٢٥١٣ - [٩] ( ) [١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] «لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ وَلَا تُسَافِرَنَّ امْرَأَةٌ إِلَّا وَمَعَهَا مَحْرَمٌ، [٣] فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ اكْتُتِبْتُ فِي غَزْوَةِ كَذَا وَكَذَا، وَخَرَجَتِ امْرَأَتِي حَاجَّةً [٤] قَالَ: اذْهَبْ فَاحْجُجْ مَعَ امْرَأَتِكَ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** [١] ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] يو سړی دې د ښځې سره خلوت نه کوي (يعني پردي سړی او ښځه دې په يو ځای کې تنها نه جمع کيږي) او يوه ښځه دې د محرم څخه بغير سفر نه کوي [٣] د دې اوريدو سره، يو سړي عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ په فلانی فلانی غزا کې زما نوم ليکل شوی دی (يعني فلانې جهاد کوم چې وړاندې دی. او هلته چې کوم لښکر تلونکي دي. په هغه کې هم زما نوم ليکلی شوی دی. چې زه هم د لښکر سره زم) حالانکه زما ښځې د حج اراده کړيده.، نو څه وکړم؟ آيا جهاد ته ولاړ شم. او ښځه يوازې د حج د پاره پريږدم يا د ښځې سره ولاړ شم. او جهاد ته نه ځم) [٤] رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې ځه او د خپلې ښځې سره حج وکړه (ځکه چې جهاد ته تلونکي خو ډير دي. ليکن ستا د ښځې سره تلونکی خو ستا څخه علاوه بل څوك محرم نشته)، بخاري، مسلم

[١] اخرجه البخاري في كتاب الجهاد والسير /باب من اكتتب في جيش فخرجت امرأته حاجة. أو كان له عذر، هل يؤذن له (رقم ٣٠٠٦) ومسلم في كتاب الحج /باب سفر المرأة مع محرم إلى حج وغيره (رقم) ٤٢٤ - (١٣٤١)

**حل اللغات** ① لَا يَخْلُوَنَّ: خالي والې يعنې تنهائی دې نه اختياروی، خانله كيږی دې نه. ② مَحْرَمٌ: هغه څوک چه شرعا ورسره د يوې زنانه د هميشه دپاره نكاح حرام وی ③ اكْتُتِبْتُ: د باب اِفْتِعَال نه د مجهول متكلم صيغه ده، يعنې ليكلې شوې يم زه يعنې نوم زما

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَا تُسَافِرَنَّ امْرَأَةٌ إِلَّا وَمَعَهَا مَحْرَمٌ:

**زنانه د خاوند يا محرم نه بغير حج ته نه شي تلې:** د پردی سړی او ښځې دپاره حرام دی چه هغوی خلوت اختيار كړی، هم دغه شان د زنانه دپاره د مسافت په اندازه (يعنی ۴۸ يا ۷۸ كلو ميټر) يا د دې نه زيات مسافت كښې د خاوند يا محرم نه بغير سفر كول حرام دی تردې چه د حج په سفر كښې هم د زنانه دپاره د هغې د خاوند نه يا د يو محرم سره كيدل د وجوب حج دپاره شرط دې، يعنی په زنانه باندې حج هغه وخت فرض كيږی چه كله د هغې سره خوند يا محرم وی

**د محرم تعريف:** د شريعت په اصطلاح كښې هغه ته وائی چه د هغه سره نكاح د هميشه دپاره حرام وی كه د خپلولۍ په لحاظ سره وی يا د رضاعت د وجې نه يا د سخرګنۍ د تعلق د وجې نه. هم دغه شان دمحرم عاقل اوبالغ كيدل او مجوسی اوفاسق نه كيدل هم شرط دی

**په ښځه باندې د محرم څخه بغير د حج په فرضيت كښې مذاهب:**

① امام شافعی رحمه الله فرمائی كه چرې دې سره په سفركښې قابل د اعتماد يوه ښځه هم وی نوبيا هم په دې حج كول فرض كيږی.

② امام مالك رحمه الله فرمائی چه كه چرې حجانړئی سره په سفركښې د نورو ښځو ښه پوره ډله وی نو په دغه ښځه باندې حج كول لازم كيږی.

③ امام ابوحنيفه رحمه الله او امام احمد رحمه الله فرمائی كه چرې ښځې سره محرم موجود نه وی نو په دې باندې حج فرض نه دې د محرم كيدل د حج د فرضيت دپاره ضروری دی ظاهری حديث د احناف او حنابله دليل دې

**[٢٥١٤] ښځوته په حج كښې د جهاد ثواب ملاويږی**

٢٥٣-[١٠] (١) ① وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: «اسْتَأْذَنْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي الْجِهَادِ ② فَقَالَ: جِهَادُكُنَّ الْحَجُّ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** ① ام المؤمنين بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه په جهاد كې د تلو اجازت وغوښتلی. ② نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې ستا جهاد حج دی (يعني په تاسو

---

(١) اخرجه البخاری فی كتاب الجهاد والسير/باب جهاد النساء (رقم-٢٨٧٥) وابن ماجة فی كتاب المناسک/باب الحج جهاد النساء (رقم-٢٩٠١) واحمد فی المسند: ٦/٦٧

ښخو جهد د واجب نه دی، د دې په ځای حج دې په شرط د دې چې د حج کولو استطاعت وي، بخاري، مسلم

**تسهيلات:**

**قوله** اسْتَأْذَنْتُ:

**عائشې رضی الله عنها د تپوس وجه:** چونکه دجهاد ثواب ډېر زيات دې قرآن او حديث کښې د ايمان نه پس دټولو نه زيات فضائل د جهاد دی په دې وجه حضرت عائشه رضي الله عنها دې عظيم ثواب د حاصلولو دپاره جهاد ته د تللو اجازت اوغوښتلو حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو د ښخو جهاد حج دې الله تعالى ښخو ته په حج کښې د جهاد ثواب ورکوی

ځکه چه په حج کښې مشقت هم دې او د لرې علاقو سفرهم دې دخپلو خپلوانو او د خپل کور نه او وطن نه لريوالې هم دې په دې وجه الله تعالى دې صنف نازك ته د تورو د جنګونو او دجنګ اوجدال د معرکو ثواب د حج په سفر کښې ورکړې دې

**[۲۵۱۵] دَ محرم نه بغير دَ ښځې دَ سفر حد څه دې؟**

| |
|---|
| ۲۵۱۵—[ ۱۱ ] ( )[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:[۲] «لَا تُسَافِرُ امْرَأَةٌ مَسِيرَةَ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ إِلَّا وَمَعَهَا ذُو مَحْرَمٍ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). |

**ترجمه** [۱] ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] يوه ښځه دې د يوې ورځې او يوې شپې د مسافت په اندازه هم سفر نه کوي، خودا چې دهغې سره محرم وي. بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① مَسِيرَةَ: مسافت، مقدار دسفر ② ذُو مَحْرَمٍ: هغه څوک چه شرعا ورسره د يوې زنانه د هميشه دپاره نکاح حرام وی.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَسِيرَةَ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ:

**د محرم څخه بغير د سفر کولو د مسافت مقدار:** ښځه څومره مسافت سفر د خاوند يا محرم نه بغير کولې شی او د څومره مسافت سفر خان له نه شی کولې؟ په دې کښې احاديث او روايات مختلف دی په زير بحث حديث کښې دادی چه ښځه د يوې شپې او يوې ورځې په اندازه مسافت سفر د محرم نه بغير نه شی کولې دې نه مخکښې چه کوم روايت تيرشوې دې په هغې کښې څه حد مقرر نه دې بلکه وئيلی شوی دی چه ښځه بغير د محرم نه مطلقا سفرنه شی کولې مرقات شرح مشکوة کښې ملاعلی قاری رحمه الله د صاحب فتح القدير ابن

---

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب الجمعة /باب فی کم يقصر الصلاة (رقم-۱۰۸۸) ومسلم فی کتاب الحج /باب سفر المرأة مع محرم إلى حج وغيره (رقم) ۴۱۳ - (۱۳۳۸) والترمذی فی السنن رقم الحديث ۱۱۶۹ وابن ماجة فی كتاب المناسك /باب المرأة تحج بغير ولي (رقم-۲۸۹۸) ومالک فی الموطا فی كتاب الاستئذان باب ما جاء فی الوحدة فی السفر للرجال والنساء (رقم-۳۷) وأحمد فی المسند: ۱۳/۲

هم موږ په حواله سره ليکلى دى چه بخارى او مسلم کښې داسې حديث دې «لاتسافر امرأة ثلاثا الا ومعها ذو محرم» په دې کښې د وفوق ثلاث الفاظ هم راغلي دى، بخارى شريف کښې ثلاثة ايام الفاظ هم راغلي دى

خلاصه د دې ټولو رواياتو په رڼا کښې خلاصه دا راؤوتله چه يو قسم روايات ښائى چه د دريو ورځو مسافت او د دې نه زيات سفر د محرم نه بغير منع دې د دې نه کم جائز دې. دويم قسم روايات ښائى چه د دوو ورځو مسافت سفر د محرم نه بغير منع دې د دې نه کم جائز دې بعض روايات ښائى چه بغير محرم د يوې ورځې مسافت سفر منع دې د دې نه کم جائز دې يو قسم روايات بالکل منع کوى په هغې کښې د څه قسم مسافت او حد قيد نشته دې په دې ټولو رواياتو کښې په ظاهرى توګه تعارض او تضاد دې. د دې تعارض حل دا دې چه اصل مدار هم په هغه رواياتو باندې دې په کوم کښې چه د دريو ورځو د مسافت ذکر دې دغه مسافت قصر دې کوم چه ۴۸ ميل دې چه تقريبًا ۷۰ کلوميټر دې. د دې نه زيات سفر يوه ښځه د محرم نه بغير نه شى کولې حکم دغه دې. ليکن که د فتنې خطره وى نو د دوو ورځو مسافت د سفر نه هم منع کولې شى او که د فتنې خطره ويره د دې نه هم زياته وى نو د يوې ورځې د مسافت سفر هم د ښځې د پاره منع کولې شى. اعلاء السنن کښې نور تفصيل ذکر دې [اعلاء السنن: ۸،۹/۱۰،۷].

د شيخ عبد الحق محدث دهلوى رحمه الله د کلام نه بالکل واضحه ده چه د دې ټولو رواياتو خلاصه دا ده چه ښځه دې خان له سفر بالکل نه کوى که هغه مسافت زيات وى او که کم وى په مسافت باندې مدار نه دې بلکه فساد او احوال باندې مدار دې

[اشعة اللمعات: ۲/۳۲۳-۳۲۲].

## [۲۵۱٦] د مواقيت حج بيان

۲۵۲۰–[۱۲] ([١]) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: «وَقَّتَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ ذَا الْحُلَيْفَةِ وَلِأَهْلِ الشَّامِ الْجُحْفَةَ وَلِأَهْلِ نَجْدٍ قَرْنَ الْمَنَازِلِ وَلِأَهْلِ الْيَمَنِ يَلَمْلَمَ ② فَهُنَّ لَهُنَّ وَلِمَنْ أَتَى عَلَيْهِنَّ مِنْ غَيْرِ أَهْلِهِنَّ لِمَنْ كَانَ يُرِيدُ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ ③ فَمَنْ كَانَ دُونَهُنَّ فَمُهَلُّهُ مِنْ أَهْلِهِ وَكَذَاكَ وَكَذَاكَ حَتَّى أَهْلُ مَكَّةَ يُهِلُّونَ مِنْهَا» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** ① ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د آفاقي (يعني د غير مکي د پاره) د احرام تړلو ځاى (ميقات) داسې متعين کړې چې د اهل مدينه د پاره ذوالحليفه، د شام والا وو د پاره جحفه، د نجد والا وو د پاره قرن منازل او د يمن والا وو د پاره يلملم. ② دا ټول د

[١]) اخرجه البخارى فى كتاب الحج/باب مهل أهل الشام (رقم-١٥٢٦) ومسلم فى كتاب الحج /باب مواقيت الحج والعمرة (رقم-١١ - (١١٨١)) وابوداود فى كتاب الزكاة/باب فى المواقيت (رقم-١٧٣٨) والنسائى فى كتاب مناسك الحج/باب من كان أهله دون الميقات (رقم-٢٦٥٨) واحمد فى المسند: ١/٣٣٢

ذكر شوو علاقو د خلقو د پاره د احرام تړلو ځايونه دي. او د دې ميقات ځخه تيريدونكو خلقو د پاره هم دا ميقات دى، چې د دې علاقو ځخه علاوه وي مثلاً پاكستان، بنګلديش، هندوستان وغيره، هر كله چې هغه د يمن په لار ورسيږي، نو د يلملم ځخه دې احرام وتړي، دغه شان د نورو ملكونو د خلقو د پاره هم دا دى چې د هغوئ په لار كې كوم ميقات راشي، د هلته ځخه دې احرام وتړي او دا احرام او د احرام تړلو ځايونه. د هغه خلقو د پاره دي، چې د حج او عمرې اراده وكړي، [٢] او كوم سړى چې په دې مقاماتو كې دننه وسيږي. د هغه د احرام تړلو ځاى د هغه د كور ځخه دى، او دغه شان او دغه شان تر دې چې مكې والا دې دمكې ځخه احرام وتړي، بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① وَقَّتَ: دَ توقيت نه دې، دميقات مقرركولو ته وائى او ميقات د احرام تړلو ځائې ته وائى ② ذَاالْحُلَيْفَةِ: دا د حَلَفَة تصغير دې، ددې جمع حُلَفَاءُ راځى، دا د مدينې نه دوه فرسخه يعنى شپږ ميله فاصله كښې د يوځائې نوم دې ③ الْجُحْفَةَ: د شام د طرفه د مكې او مدينې په مينځ كښې د يوځائې نوم دې چه ذوالحليفه سره په بريد كښې برابر راځى، د مكې نه ٢٥ فرسخه فاصله كښې دې ④ قَرْنَ الْمَنَازِلِ: د هګئ په شان ګول غر دې دغه ځائې ته قرن المنازل وائى ⑤ يَلَمْلَمَ: د تهامه په غرونو كښې يو غر دې، دمكې نه د دوه شپو دمزل په فاصله كښې دې ⑥ فَمُهَلَّهُ: د مفعول صيغه ده، أَيْ مَوْضِعُ إِحْرَامِهِ: يعنى دهغوى د احرام تړلو ځائې ⑦ يُهِلُّونَ: أَيْ يُحْرِمُونَ: هغوى به احرام تړلى

**تسهيلات: قوله:** وَقَّتَ:

**د مواقيت د لفظ وضاحت:** په دې حديث كښې دَ مواقيت بيان دې مواقيت دَ ميقات جمع ده دا دَ مناسك حج يو اصطلاحى لفظ دې ميقات هغه ځائى او هغه مقام ته وائى دكوم ځائى نه چه دَ حاجى او معتمر دَپاره احرام تړل ضرورى كيږى كه چرته يو حاجى يا معتمر دَ ميقات نه بغيردَ احرام وړاندې شو نو دَ هغه مواخذه به كيږى دكوم تفصيل چه وړاندې راروان دې

**د ميقات قسمونه:** ① يو ميقات زمانى دې او بل ميقات مكانى دې دَ حج دَپاره ميقات زمانى شوال ذوالقعده او ذوالحجه ړومبې عشره ده تر كومې پورې چه دَ شوال مياشت نه وى شروع شوې دَ حج احرام نه شى تړلې مثلاً په رمضان كښې دَ عمرې احرام تړلې شى ليكن يو حاجى دحج احرام نه شى تړلې

② دَ حج دَ پاره دويم ميقات مكانى دې يعنى هغه مقام دَچرته نه چه بغيردَ احرام نه تيريدل صحيح نه دى

**د ميقات مكانى پنځه قسمونه:** ميقات مكانى پنځه دى ليكن زير بحث حديث كښې دَ څلورو ذكر دې دكوم تفصيل چه داسې دې

① **ذوالحليفة:** دا دَ يو مقام نوم دې چه دَ مدينې منورې نه دَ جنوب طرف ته تقريباً لس

کلومیټره فاصله باندې واقع دې دې مقام ته بیرعلي او ابیار علي هم وائي دا مقام د مدینې منورې د طرف نه راتلونکو دپاره میقات دې

② **الجحفة**: دا هم د یوځائی نوم دې چه د مکې مکرمې نه ۱۸۸ کلومیټره فاصله باندې واقع دې د قریشو په دور کښې دا مقام د هغوی د تجارتي شاهراه د مرکز پړاؤ وو اوس دا ځائی غیرآباد دې دې سره نیزدې رابغ دې چه نن صبا مشهور دې د مدینې نه کله یوسړې د بدر په خوا نښې لاړ باندې مکې ته راځي نو دا مقام په لارکښې راځي د شام او مصر د طرف نه راتلونکو خلقو دپاره دا مقام میقات دې

③ **قرن المنازل**: دا د یوځائی نوم دې چه د مکې مکرمې نه د جنوب طرف ته ۴۸ کلومیټر فاصله باندې طائف سره واقع دې د نجد او ریاض خلقو دپاره دا میقات دې

④ **یلملم**: یلملم د یوځائی نوم دې د یمن خلق چه کله مکې ته ځي نو د هغوی تیریدل په دې مقام باندې کیږي د هندوستان پاکستان او افغانستان د خلقو دپاره هم یلملم میقات دې

⑤ **ذات عرق**: د پورته ذکرشوو مواقیت نه علاوه یو بل میقات هم دې د کوم نوم چه ذات عرق دې د کوم ذکرچه دې سره حدیث نمبر: ۲۵۱۷ کښې راغلې دې دا مقام د مکې مکرمې نه د عراق طرف ته تلونکې لار کښې تقریبًا ۹۷ کلومیټر فاصله باندې واقع دې د عراق طرف نه راتلونکو خلقو دپاره دا میقات دې

**قوله**: فَهُنَّ لَهُنَّ:

**د لهن ضمیرمرجع**: د لهن ضمیرمرجع متعین کولو په باره کښې ملاعلي قاري رحمه الله دا سې توجیه کړې ده "فهذه المواضع مواقیت لهذه البلدان اي لاهلهن الموجودين" یعني دا مواقیت هم د دې علاقو د خلقو دپاره دی کوم چه دلته اوسیږي او د هغه خلقو دپاره هم دغه مواقیت دی ځوك چه په دې علاقو باندې تیریږي سره د دې چه هغوی د دغه علاقو اوسیدونکی نه وی

**قوله**: فَمَنْ كَانَ دُونَهُنَّ:

**د حج یو څو اصطلاحي کلمات**: دلته په یو څو الفاظو باندې پوهیدل ضروري دی دې دپاره چه د حج اصطلاحي الفاظ په ذهن کښې کینی

① آفاقي: دا هغه سړی ته وائي چه د مذکوره مواقیت نه بهر اوسیږي مثلاً پاکستاني وی یا هندوستاني وی یا د مدینې منورې اوسیدونکې وی

② میقاتي: دا هغه سړی ته وائي چه په ذکرشوو پنځو مواقیتو کښې دننه اوسیږي مگر د حرم د زمکې نه بهر وی

③ ارض الحرم: دا مقدس زمکې ته وائي په کومه کښې چه وانښه وغیره نه شي پرې کولې نه ښکار کولې شي نه ځوك کافر هلته تلې شي په دې کښې اوسیدونکی سړی ته حرمي او

عم اوسید ونکوته اهل الحرم وائی دَ جده نه تلوسره په شمیسی مقام کښې دَ تفتیش مرکز اخی هم دَدغه ځائی نه حرم شروع کیږی اومدینې منورې نه راتلوسره دَمقام تنعیم نه ارض حرم شروع کیږی په دوارو ځایونو باندې لیکلې شوی دی "ممنوع دخول غیرالمسلمین" مسجدحرام ته یا دَ احترام دَ وجې نه حرام وائی اویا په دې کښې ښکارحرام دې وانبه پرې کول حرام دی دکافرداخلیدل حرام دی او جنګ جګړه حرام ده

④ ارض الحل: دې ته دَ حل زمکه هم وائی دَ حرم دَزمکې نه علاوه دَ پوره دنیا زمکه حل ده دَ حل مطلب دادې چه هلته ښکار کول وانبه پرې کول اودَ کافرانوګرځیدل راګرځیدل ټول جائز دی

**د میقات زمانی او میقات مکانی نه مخکښې د احرام تړلو حکم**:بهرحال داخبره په ذهن کښې ساتل پکاردی چه دَمیقات زمانی نه مخکښې دَ یوحاجی احرام تړل جائز نه دی اودَ میقات مکانی نه مخکښې احرام تړل جائزدی. دَ میقات زمانی تعلق آفاقی اومیقاتی دواړه قسم خلقو سره دې اودَ میقات مکانی احرام تعلق صرف آفاقی سره دې. داخل میقات سړې دَ خپل کور نه احرام تړلې شی.

**قوله**: لِمَنْ كَانَ يُرِيدُ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ:

**دَميقات نه بغير دَ احرام تيريدو مسئله**:

په دې باندې دَ ټولو اتفاق دې چه کوم سړې دَ حج یا عمره ارادې سره مکې ته ځی اوهغه په دغه مواقیتو باندې بغیردَ احرام نه نه شی تیریدې. لیکن آیا یو سړې دَخپل ذاتی کار په غرض سره په دې مواقیت بغیردَ احرام نه مکه کښې داخلیدې شی که نه؟ په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

**د آفاقی دپاره مکې ته د داخلیدو دپاره بغیر د احرام تیریدو کښې مذاهب**:

① دَ شوافع په نیز که دَ یوسړی اراده دَحج یا دَعمرې نه وی نوهغه بغیردَ احرام نه په دې مواقیت باندې تیریدو سره مکه مکرمه کښې داخلیدې شی. ② دَ احنافو په نیز آفاقی سړی دَپاره دَ احرام نه بغیر په دې مواقیت باندې تیریدل مطلقًا ناجائز دی په دې شرط چه دَمکې مکرمې دَ داخلیدو اراده وی که دَ تجارت اراده ئې ولې نه وی.

**د شوافعو دلائل**: ① شوافع حضرات دَ زیربحث حدیث دَمذکوره "لمن یرید الحج" الفاظ نه په توګه دَمفهوم مخالف استدلال کوی یعنی دَ چااراده چه دَحج او عمره وی دَهغوی دَپاره احرام ضروری دې. دې نه معلومه شوه چه دَ چادا اراده نه وی هغه بغیردَ احرام مکه کښې داخلیدې شی.

**جواب**: د دې دلیل جواب دادې چه مفهوم مخالف زمونږ په نیز دلیل نه دې اوکله چه دمنطوق خلاف هم وی نو قابل دَ التفات هم نه دې.

④ شوافع دَفتح مکه په ورځ دَ حضورپاك بغیر دَ احرام نه په مکه کښې داخلیدونه هم استدلال کړې دې
د دې ځخه جواب دادې چه دَ حضورپاك دَ فتح مکه په ورځ بغیر دَ احرام نه مکه کښې داخلیدل دَحضورپاك خصوصیت وو چنانچه یوه ورځ هلته قتال کول هم دَ حضورپاك خصوصیت وو

**د احنافو دلائل:** ① احناف دَ حضرت ابن عباس ﷺ دَ روایت نه استدلال کړې دې چه په مصنف ابن ابی شیبه او طبرانی کښې په دې الفاظوسره ذکر دې ((ان النبی صلی الله علیه وسلم قال لاتجاوزالمواقیت الاباحرام)) (اعلاء السنن ج۱ص۱۷) بعض کښې "لایجاوزاحد المیقات الامحرماً" الفاظ دی بعض روایاتو کښې "لایجاوزوا الوقت الاباحرام" الفاظ هم دی
② احناف عقلی استدلال داسې پیش کوی چه دَ احرام تړلو اصل مقصد ارض حرم او دغه بقعهٔ مبارکه او حاب طاهره تعظیم اوتکریم دې اودا دَتولو دَپاره عام دې که هغه دَ حج اوعمره والاوی یا تجارت والاوی یا دَ بل څه غرض والاوی هیڅ فرق نه پریوځی
[فتح القدیر: ۲/۴۲۳].

**د شوافعو په مسلک فتوی ورکول:** بهرحال دلائل چه څنګه هم وی دَ احناف په مسلك باندې نن صبا عمل کول ممکن نه دی په دې کښې عظیم حرج دې. روزانه مکې ته په لاکهونو خلق ځی راځی. په لاکهونو ګاډی اوډرائیوران اومزدوران به څه کوی؟ احناف له په دې کښې نرمی کول پکار دی.

**قوله:** دُونَهُنَّ:

**د مذکوره جملې مطلب:** دَدې جملې مطلب دادې چه کوم خلق میقات کښې دننه مګر دَحدودحرم نه بهراوسیږی دَهغوی دَپاره دَاحرام تړلو ځائی دَهغوی دَ کورنه واخله تر حدودحرم پورې دې. هغوی له بهرمیقات باندې تلل او هغه ځائی نه احرام تړلو ضرورت نشته دې

**قوله:** وَكَذَاكَ وَكَذَاكَ:

**وکذاک وکذاک څخه مراد:** دَدې جملې مطلب دادې چه دَ حدود حرم نه بهر کوم خلق په ارض حل کښې اوسیږی هغوی له میقات ته دَ تللوضرورت نشته دې اونه دَحدودحرم دَتللوضرورت دې

**قوله:** حَتَّى أَهْلُ مَكَّةَ:

**د اهل مکې دپاره میقات:** یعنی کوم خلق چه په حدود حرم کښې دننه اوسیږی یعنی مکی دی هغوی له پکار دی چه هم دَ هغه ځائی نه احرام اوتړی چرته چه اوسیږی که حرم سره خواکې وی یا خپل کورسره وی هغوی له دَمیقات یا ارض حل پورې دَ تللو ضرورت نشته دې

**داهل مکې دپاره د عمرې د احرام ترلو مقام:** داد حج حکم دې لیکن دعمره دپاره ضروري دي چه ارض حرم والا د ارض حل نه احرام اوتړي یعنې د حرم د زمکې نه بهر مثلاً د تنعیم یا جعرانه نه احرام اوتړي ځکه چه عمره د حرم دننه د طواف او سعي نوم دې 'وهم هلته ادا کیږي لهذا یو قسم سفرکول ضروري دي اوحج چونکه د حرم نه بهر په عرفات کښې کیږي لهذا د دې د پاره سفرد حرم نه شروع کیږي نوهم د هغه ځائې نه احرام تړل یکار دي

**[٢٥١٧]که چرې په دوو میقاتوپاندې د تیریدو امکان وی نوځه به کوی؟**

[١٣]-( )[١] وَعَنْ جَابِرٍ عَنْ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: «مُهَلُّ أَهْلِ الْمَدِينَةِ مِنْ ذِي الْحُلَيْفَةِ [٢] وَالطَّرِيقُ الآخَرُ الْجُحْفَةُ، وَمُهَلُّ أَهْلِ الْعِرَاقِ مِنْ ذَاتِ عِرْقٍ، وَمُهَلُّ أَهْلِ نَجْدٍ قَرْنٌ [٣] وَمُهَلُّ أَهْلِ الْيَمَنِ يَلَمْلَمُ» (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)

**ترجمه** [١] جابر رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل د مدینې والاوو د پاره د احرام ځای ذوالحلیفه دی،[٢] او دویمه لار جحفه ده،[٣] د عراق والاوو د پاره د احرام ځای ذات عرق دی.[٣] د نجد والاوو د پاره د احرام ځای قرن دی، او د یمن والاوو د پاره د احرام ځای یلملم دی. مسلم

**حل اللغات:** ①مُهَلُّ: أَيْ مَوْضِعُ إِحْرَامِهِمْ: دهغوی داحرام تړلو ځائې ② ذَاتِ عِرْقٍ: دا وړوکې غر دې د مکې مکرمې نه د عراق طرف ته تلونکې لارکښې تقریبا ٩٧کلومیټر فاصله باندې واقع دې

**تسهیلات:**

**قوله: مُهَلُّ أَهْلِ الْمَدِينَةِ مِنْ ذِي الْحُلَيْفَةِ:**

**احرام به د کوم ځائې نه تړلې شي؟:** او دویمه لاره جحفه ده، د دې مطلب دا دې چه د مدینې منورې والو دپاره د احرام تړلو دویم ځائې جحفه دهکه هغوی د مکې دپاره د مدینې منورې نه هغه لاره اختیار کړي چه په هغې کښې جحفه ملاویږي نو هغوی دې بیا د جحفې نه احرام اوتړي ذوالحلیفه ته د تلو ضرورت نشته

اصل خبره دا ده چه اول د مدینې نه مکې ته د راتلو دپاره دوه لارې وې یوه لاره خو ذوالخلیفه ملاویده او په بله لاره کښې جحفه هم په دې وجه حکم اوکړې شو چه که هغه لاره اختیار کړې شي چه په هغې کښې ذوالخلیفه ملاویږي نو احرام دې د ذوالحلیفه نه اوتړلې شي او که هغه لاره اختیار کړې شي چه په هغې کښې جحفه ملاویږي نو بیا دې د جحفې نه احرام اوتړلې شي.

**داهل مدینې دپاره میقات:** خو اوس یوه لاره شوې ده چه په هغې کښې اول ذوالحلیفه راځي او بیا جحفه. دغه شان د اهل مدینه دپاره دوه میقاتونه شوې دی په دې صورت کښې دا

[١]) اخرجه مسلم فی کتاب الحج /باب مواقیت الحج والعمرة (رقم-١٨ - (١١٨٣))والنسائي فی کتاب مناسک الحج/باب المواقیت میقات أهل المدینة (رقم-٢٦٥١)

سوال پيدا كيدې شي چه اوس به اهل مدينه د چرته نه احرام تړي؟ نو علماء كرام ليكي چه د هغه ځائې نه ئې تړل اولى دى كوم چه د مكې مكرمې نه په زياتې فاصلې باندې واقع وى يعنى ذوالحليفه، او كه څوك د جحفې نه احرام اوتړى نو دا هم جائز ده.

**قوله: وَالطَّرِيقُ الْآخَرُ:**

**د اهل مدينى دپاره دوه ميقاتونه**: دَدې جمله مطلب دادې چه دَاهل مدينه ميقات ذوالحليفه دې خوكه دَ مدينې والا دَ ذوالحليفه په ځائې دَ بدر په لار جحفه په لار مكې ته تلل غواړى نوهغوى دې دَ ذوالحليفه په ځائې جحفه او رابغ نه احرام تړلې شى دا ضرورى نه ده چه هم دَ ذوالحليفه نه به احرام تړى دَ مدينې نه مكې ته دَ تللو دوه لارې دى يوه مشهوره معروفه لار طريق الهجرة ده دَكوم په شروع كښې چه ذوالحليفه ده. دويمه لار هغه زړه لاره ده چه د هجرت نه وړاندې به قريشو استعمالوله. په دې لار كښې دَ مدينې نه ډير لرې مكې سره نيزدې جحفه مقام راځى كه يوسړې په دغه لار لاړشى نو جحفه نه احرام تړلې شى.

**قوله: ذَاتِ عِرْقٍ:**

**د ذات عرق تعارف او وجه تسميه**: دامقام دَمكې مكرمې نه دوه مرحله او دوه منزله اودَ دوو ورځو په فاصله باندې واقع دې دَمكې نه ٩٧ كلوميټر لرې دې. علامه طيبى رحمه الله فرمائى چه عرق وړوكى غر ته وائى په دې مقام كښې وړوكې غرواقع دې دې ته ذات عرق وائى بهرحال داخبره دَ ياد ساتلوده چه كوم خلق دَ دې پنځوموا قيتو په محاذات كښې واقع نه وى دَهغوى تيريدل په يوميقات باندې هم نه كيږى نودَوى دَپاره مسئله داده چه دَ كوم ميقات محاذات كښې دَدې په برابرئى كښې كوم ځائې پريوځى هم دغه ځائى به دَهغه خلقو دَپاره ميقات وى.

**[٢٥١٨]دَرسول الله ﷺ دَ حج اوعمرو تعداد**

٢٥١٨-[١٤] (١) ① وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: «اعْتَمَرَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَرْبَعَ عُمَرٍ كُلُّهُنَّ فِي ذِي الْقَعْدَةِ: ② إِلَّا الَّتِي كَانَتْ مَعَ حَجَّتِهِ عُمْرَةً مِنَ الْحُدَيْبِيَةِ فِي ذِي الْقَعْدَةِ، ③ وَعُمْرَةً مِنَ الْعَامِ الْمُقْبِلِ فِي ذِي الْقَعْدَةِ، ④ وَعُمْرَةً مِنَ الْجِعِرَّانَةِ حَيْثُ قَسَمَ غَنَائِمَ حُنَيْنٍ فِي ذِي الْقَعْدَةِ، ⑤ وَعُمْرَةً مَعَ حَجَّتِهِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** ① انس رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ څلور عمرې كړې دي، او هغه ټولې يې د ذي قعده په مياشت كې كړې وې، ② علاوه د هغه يوې عمرې څخه چې د حج سره يې كړې وه، او د ذي الحجه په مياشت كې شويده. او د هغه څلورو عمرو تفصيل دا دى: ③ ① يوه عمره د حديبيه څخه د ذي قعده په مياشت كې ② دويمه عمره د هغه څخه په مخكى كال

[1] اخرجه البخارى فى كتاب المغازى/باب غزوة الحديبية (رقم-٤١٤٨) ومسلم فى كتاب الحج /باب بيان عدد عمر النبى صلى الله عليه وسلم وزمانهن (رقم-٢١٧ - (١٢٥٣) وابوداود فى كتاب المناسك . باب العمرة (رقم-١٩٩٤) والترمذى فى السنن رقم الحديث ٨١٥ واحمد فى المسند: ١٣٤/٣

کي هغه هم ذي قعده کې وشوه[٣] ④ دريمه عمره د جعرانه ځخه، چيرته چې د غزوه حنين مال تقسيم شو، دا عمره هم په ذي قعده کې شوي وه[٥] ④ څلورمه عمره د حج سره په ذی الحجه کې شوي وه، بخاری مسلم.

تنظيمات: قوله: أَرْبَعَ عُمَرٍ:

هجرت څخه روسته دنبی عليه ه حج شمار: رسول الله ﷺ دَ حج فرض کيدونه پس هم يو حج کړې دې اودَ هجرت نه مخکښې دَبعض علماؤ دَ قول مطابق حضورپاك به هرکال حج کولو

ه هجرت نه پس ه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ه عمرو تعداد: دَ هجرت نه پس دحضورپاك دَ عمرو تعدادڅه وو؟ په دې کښې رواياتوکښې معمولی شان اختلاف ښکاری دَ حضرت انس ﷺ دَ روايت مطابق دَ حضورپاك ټولې څلور عمرې وې. درې عمرې دَ ذيقعده په مياشت کښې وې او يوه عمره په ذوالحجه کښې وه چنانچه دَ حضورپاك

① اوله عمره په ۶هجری دَ حديبيه عمره وه. په دې کښې سره دَدې چه رسول الله ﷺ دَعمرې افعال مکمل نه کړې شو ځکه چه کافرانوهغوی په مکه کښې دَ داخليدونه منع کړل ليکن دَ ثواب په اعتبارسره دا مکمل عمره وه اودَ ذيقعده په مياشت کښې وه.

② دَ رسول الله ﷺ دويمه عمره ۷هجری کښې عمرة القضاء عمره وه چه دَ حديبيه والا عمرې قضا حضورپاك ادا کړه دا عمره هم په ذيقعده کښې وه.

③ دَ حضورپاك دريمه عمره ۸هجری کښې مقام جعرانه نه وه. په شوال کښې دَ حنين جنګ اوشو اودَ حنين غنيمتونه په جعرانه کښې رايوځائی کولوسره بيا تقسيم کړې شو. هم په دې دوران کښې دَ شپې وخت کښې په پټه حضورپاك دَ يوڅو ملګرو سره دَ ذيقعده په مياشت کښې عمره اداکړه.

④ دَ حضورپاك څلورمه عمره ۱۰هجری کښې دَ حجة الوداع په موقع باندې شوې وه. دا عمره دَ ذوالحجه په مياشت کښې وه. دا خودَ زير بحث حديث تفصيل وو ليکن دې نه پس دَ حضرت براء بن عازب ﷺ په روايت کښې دی چه دَ حضورپاك ټولې درې عمرې وې. هم دَدغه روايت دې روايت سره تعارض دې. نودَدې جواب دادې چه حضرت براء بن عازب ﷺ په حقيقت کښې دَ صلح حديبيه والا عمره نه ده شميرکړې. دَدې وجه داده چه صلح حديبيه کښې عمره دَ افعالو په اعتبارسره مکمل شوې نه وه لهذا هغه دا ذکر نه کړه ليکن حضرت انس ﷺ دا مکمل عمره شميرکړه ځکه چه دَ ثواب په اعتبارسره دا مکمل عمره وه.

په حج او عمره کښې فرق: په حج اوعمره کښې دا فرق دې چه حج دَ عرفات وقوف، طواف زيارت، سعی صفامروه او رمی جمرات نوم دې او عمره صرف طواف دَ بيت الله او دَ صفا مروه په مينځ کښې دَ سعی نوم دې. او په احرام تړلوکښې هيڅ فرق نشته دې او په ممنوعات احرام کښې هم هيڅ فرق نشته.

**د عمري په حکم کښې مذاهب:**

البته حج فرض هم وی او سنت او نفل هم وی ① عمره فرض نه وی صرف سنت او نفل وی او که چا نذر اومنلو نو عمره واجب کیږی دا د احناف اومالکیه مسلك دي

② د شوافع او حنابله په نيز عمره واجب ده

**[٢٥١٩] د حج څخه مخکي حضور ﷺ دوه عمري اوکړي يا دري؟**

٢٥١٩-[١٥] ( )① وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: ② «اعْتَمَرَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي ذِي الْقَعْدَةِ قَبْلَ أَنْ يَحُجَّ مَرَّتَيْنِ» (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ).

**ترجمه** ① براء ابن عازب رضي الله عنه وايي② چي رسول الله ﷺ د ذي قعده په مياشت کي د حج څخه مخکي دوه ځله عمره کړي وه. بخاري

**تسهيلات:**

**قوله:** قَبْلَ أَنْ يَحُجَّ مَرَّتَيْنِ:

**په رواياتو کښې تعارض:** د دي روايت نه معلومه شوه چه نبی عليه السلام د حج نه مخکښي دوه عمرې کړی دی او د ما قبل روايت نه معلوميږی چه نبی عليه السلام د حج نه مخکښي دري عمرې کړی دی؟

**دتعارض جواب:** کوم روايت کښې چه د دريو عمرو ذکر دي په هغې کښي د صلح حديبيه والاعمري ثواب مستقل عمره شمارلې شوې ده او چه کوم روايت کښي د دوؤ عمرو ذکر دې نو په هغې کښي دوه عمرې مستقلې شمارلې شوی دی او د صلح حديبيه والاعمره شمار شوې نه ده اګر چه ثواب د دريو عمرو ملاو شوي وو.

# الْفَصْلُ الثَّانِي

**[٢٥٢٠] حج صرف يوځل فرض دي**

٢٥٢٠-[١٦] ( )① عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «يَا أَيُّهَا النَّاسُ، إِنَّ اللهَ كَتَبَ عَلَيْكُمُ الْحَجَّ، ③ فَقَامَ الْأَقْرَعُ بْنُ حَابِسٍ فَقَالَ أَفِي كُلِّ عَامٍ يَا رَسُولَ اللهِ؟ ④ قَالَ لَوْ قُلْتُهَا نَعَمْ لَوَجَبَتْ، وَلَوْ وَجَبَتْ لَمْ تَعْمَلُوا بِهَا وَلَمْ تَسْتَطِيعُوا. ⑤ وَالْحَجُّ مَرَّةٌ فَمَنْ زَادَ فَتَطَوُّعٌ» (رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ).

**ترجمه** ① ابن عباس رضي الله عنه وايي چي رسول الله ﷺ وفرمايل② اې خلقو! الله جل جلاله په تاسو حج فرض کړی دی③ نو اقرع بن حابس رضي الله عنه ودريدلو. عرض يي وکړي چي يا رسول الله ﷺ آيا هر کال حج کول فرض شوي دي؟④ رسول الله ﷺ وفرمايل چي که ما د دی حج

( ) اخرجه البخاری فی کتاب الحج /باب کم اعتمر النبی صلی الله عليه وسلم؟ (رقم-١٧٨١)

( ) اخرجه ابو داود فی کتاب المناسک. کتاب الزکاة /باب فرض الحج (رقم-١٧٢١) والنسائی فی کتاب مناسک الحج/ باب وجوب الحج (رقم-٢٦٢٠) وابن ماجة فی کتاب المناسک /باب فرض الحج (رقم-٢٨٨٦) واحمد فی المسند: ١/٢٥٥

هر کال د فرض کېدو د سوال په باره کې هو کړې واي، نو يقيناً (هر کال به حج کول) واجب يعني فرض) شوی وو، او که هر کال حج کول فرض شوی واي، نو تاسو به په دې حکم عمل نه کولی، او نه به مو استطاعت لرلی ⑤حج په پوره ژوند کې په شرط د قدرت يو ځل فرض دی، هو کوم سړی چې يې د يو ځل څخه زيات وکړي، هغه به نفل وي چې په هغه به هغه ته ډير زيات ثواب حاصليږي) احمد، نسائي، دارمي

**حل اللغات**: ① لَوَجَبَتْ: أي الْحَجَّةُ فِي كُلِّ عَامٍ: يعنی دا حج به هر کال فرض شوې وې

**تسهيلات**:

**نوټ**: ددې حديث تشريح په بل مقام کښې ذکرشوې ده.

**[٢٥٢١] دَطاقت نه باوجود حج نه کولوکښې دَايمان خطره ده**

|  |
|---|
| ٢٥٢١-[١٧] ( )① وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ②«مَنْ مَلَكَ زَادًا وَرَاحِلَةً تُبَلِّغُهُ إِلَى بَيْتِ اللهِ وَلَمْ يَحُجَّ، فَلَا عَلَيْهِ أَنْ يَمُوتَ يَهُودِيًّا أَوْ نَصْرَانِيًّا، ③وَذَلِكَ أَنَّ اللهَ تَبَارَكَ وَتَعَالَى يَقُولُ: ﴿وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا﴾ [آل عمران: ٩٧]» ④(رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَفِي إِسْنَادِهِ مَقَالٌ وَهِلَالُ بْنُ عَبْدِ اللهِ مَجْهُولٌ وَالْحَارِثُ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ). |

**ترجمه** ① حضرت علي راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل② کوم سړی چې د لارې د توښې او د سوارلۍ مالك وي، چې هغه بيت الله شريفې ته ورسوي (يعني کوم سړی چې د حج کولو استطاعت او قدرت لري) او بيا هم هغه حج ونه کړي، نو د هغه يهودي يا نصراني کېدو سره مړ کېدل او د بې حج څخه په مړ کېدو کې هيڅ فرض نشته ③. او دا د حج د پاره زاد راه (د لارې توښه) او سوارلۍ شرط کېدل او د دې عظيم عبادت په پرېښودلو پورته ذکر شوی وعيد) ځکه دی چې الله بزرگ برتر فرمايي چې ﴿وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا﴾ او د الله ﷻ د خوشنودۍ د پاره په خلقو د کعبې حج کول ضروري دی. چې هلته تلی شي. ④ امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی او د دې حديث په سند کې کلام دی هلال ابن عبد الله مجهول دی، او حارث په روايت حديث کې ضعيف شمېرل کيږي

**حل اللغات**: ① زَادًا: توښه يعنی د لارې د تلو راتلو خوراک څکاک، ② رَاحِلَةً: سورلی

**تسهيلات**:

**قوله**: مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا:

**استطاعت څخه مراد**: استطاعت يعنی دَ تګ راتګ خپله خرچه او دَ واپسئی پورې د کور والو خرچه که چاسره وی نو هم دغه وسعت او هم دغه استطاعت دې.

( ) اخرجه الترمذي في كتاب الحج عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في التغليظ في ترك الحج (رقم-٨١٢)

**د حج د فرضیت څخه د انکار کولو حکم:** که دا استطاعت چاسره وی او هغه په دې وجه حج نه کوی چه دَ حج نه انکار کوی او حج نه منی نو دا سړې یقیناً کافردې او دَ یهودو اونصارئ په شان به په کفرباندې مری

**د حج وس لرو بلاوجود په حج کښې د تاخیر نتیجه،** لیکن که دَ استطاعت نه پس دا سړې انکار نه کوی سستی اوبې پرواهی کوی نو دا گناه کبیره ده. بیا دوی ته دَ یهودی او نصرانی په مرگ باندې دَ مرکیدو وعید اورول تغلیظاً اوتشدیداً دی لیکن دَدې اړخ نه په اخوا که چرې دَ قرآن کریم اشارو ته اوکتلې شی نوبیابه دا وینا کول گرانه نه وی که دَ استطاعت باوجود یوسړې حج نه کوی نو په دې کښې خطره شته چه دَ مرگ په وخت دَ دغه سړی نه ایمان ختم کړې شی څکه چه دَ مذکوره آیت آخری حصه داسې ده ﴿وَمَنْ كَفَرَ فَإِنَّ اللهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ﴾ اسورة آل عمران: ۹۷. په دې کښې دَ داسې سړی نسبت دَ کفرطرف ته کړې شوې دې لکه چه په دې کښې هم تاویل کیدې شی لیکن په ظاهری الفاظوکښې خود کفر لفظ موجود دې او بیا په دې کښې داهم دی چه الله تعالی دَ عالم نه بې پرواه دې لهذا په حدیث کښې دَ دې تفسیرشته که داسې سړې کافر کیدو سره مرکیږی نو الله تعالی دَ عالم نه بې نیازه دې دَ سزا دَپاره موجود دې. حضورپاك به آیت مکمل وئیلې وی څکه چه هم دَمکمل آیت نه استشهاد کیدې شی. کیدې شی چه چرته یو راوی اختصار کړې وی

**[۲۵۲۲] په اسلام کښې دَ حج پریخودل نشته دې**

۲۵۲۳ـ[۱۸] ()① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ ـ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ: ② «لَا صَرُورَةَ فِي الْإِسْلَامِ» (رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ).

**ترجمه** ① ابن عباس ﷺ وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل صرورت په اسلام کې نشته (د صرورت دوی معناوی دی یوه دا چې یو سړی ټول عمر نکاح کول پریږدی او دویم دا چې وس یې وی او حج کول پریږدی، دا دواړه د مسلمانانو خویونه نه دی) ابوداؤد.

**حل اللغات:** ① لَا صَرُورَةَ: هُوَ الَّذِي لَمْ يَحُجَّ قَطُّ: هغه سړې چه هغه کله هم حج نه وی کړې (یعنی وس یې وی او حج نه کوی)

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا صَرُورَةَ فِي الْإِسْلَامِ

**د لا صرورة فی الاسلام مطلب:** د صرورت مفهوم دې "هغه سړې چه هغه کله هم حج نه وی کړې" لهذا د دې ارشاد نبوی مطلب دا دې چه کوم سړی د حج فرض کیدو باوجود حج اونکړو هغه مسلمان نه دې

() اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک . کتاب الزکاة/باب لا صرورة فی الإسلام (رقم-۱۷۲۹) واحمد فی المسند: ۳۱۲/۱

علامه طيبي رحمه الله فرمائي چه د دې حديث ظاهري مفهوم خو هم دا دې چه کوم سړې د حج استطاعت لرلو باوجود حج اونکړي نو هغه مسلمان نه دې، خو حقيقت دا دې چه دا ارشاد نبوي د تغليظ او تشديد دپاره دی يا بيا د دې نه مراد دا دې چه داسې سړې کامل مسلمان نه دې بعض حضرات فرمائي چه د (صرورة) معنی ده نکاح او حج لره ترک کول په دې صورت کښې به د دې مطلب دا وی چه نکاح او حج لره ترک کول د اسلام طريقه نه ده بلکه په رهبانيت کښې داخل دې په دې وجه مسلمان لره نکاح او حج نه دی ترک کول پکار.

**[۲۵۲۲] حج على الفور واجب دې که على التراخي؟**

**۲۵۲۲-[۱۹] ( )[۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «مَنْ أَرَادَ الْحَجَّ فَلْيُعَجِّلْ» (رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ).**

**ترجمه** [۱] ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړی چې د حج اراده وکړي، نو هغه ته پکار دی، چې تلوار وکړي، ابوداؤد، دارمي

**حل اللغات:** ① فَلْيُعَجِّلْ: تلوار او جلتی دې اوکړی (يعنی حج پرې فرض شو نو د حج فريضه اداکولو کښې دې تلوار اوکړی).

**تشريحات: قوله: فَلْيُعَجِّلْ:**

**حج على الفور واجب دې؟ يا على التراخي؟** : مطلب دا دې چه کوم سړې په حج باندې قدر وی او د حج کولو اراده لری نو هغه له پکار دی چه هغه تندی اوکړی د دې فرض ادا کولو دپاره ملاؤ شوې موقع غنيمت اوګڼړی ځکه چه د تاخير په صورت کښې معلومه نه ده چه څومره بنديزونه پيدا شی او انجام د دې نعمت عظمی نه محرومی شی.

په دې باره کښې چه حج على الفور واجب دې که على التراخي؟

**مذاهب فقهاء:**

① د احناف په نزد د ټولو نه صحيح قول دا دې چه کله حج واجب شی يعنی شرطونه بيا موندلې شی او د حج وخت راشی هم دغه شان قافله ملاؤ شی (په دې شرط چه د قافلې ضرورت وی لکه چه مخکښې زمانه کښې به بغير د قافلې نه سفر کول تقريبا ناممکن وو) نو هغه به فاسق بللې شی، او شرعی نقطه نظر سره به د هغه ګواهی نه قبليږی، يعنی هغه به د شريعت په نظر کښې ناقابل اعتبار وی ترڅو چه په دې موده کښې که اسباب حج (چه د هغې په وجه باندې په هغه باندې حج واجب شوې وو) لاړ شی نو د هغه د ذمې نه به فرض نه ساقطيږی بلکه باقی به وی (چه د هغې د وجې نه به هغه د حج نه کولو په صورت کښې

[۱] اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک . کتاب الزکاة/باب التجارة فی الحج (رقم-۱۷۳۲) وابن ما جه فی کتاب المناسک/باب الخروج إلى الحج (رقم-۲۸۸۳) واحمد فی المسند:۱/۲۱٤

گنهګار وي. د امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم دا مسلك دي

② د امام شافعي رحمه الله په نزد واجب على التراخي دي يعنى د اخري عمر پورې په حج کښې تاخير جائز دې لکه چه په مانځه د اخرې وخته پورې تاخير جائز دې. د امام محمد رحمه الله هم دا قول دې خو په دې سلسله کښې دوي دواړه دا هم فرمائي چه تاخير به هغه وخت جائز وي چه کله د حج د فوت کيدو ګمان نه وي. که دا ګمان وي چه په تاخير کولو کښې به حج فوت شي (يعنى کله به هم حج ادا نه کړې شي) نو بيا دې تاخير نه کوي. په دې صورت کښې که څوك د حج فرض کيدو باوجود بغير د حج کولو نه مړ شي نو د ټولو علماء کرامو په نزد به ګنهګار مري. پس په حج نه کولو به د هغه مواخذه کيږي

حنفي علماء کرام هم دا وائي چه که يو سړی د شرطونو موندلې کيدو باوجود په حج کښې تاخير اوکړو. او په دې موده کښې د هغه مال او دولت هلاك شو نو هغه دې قرض اخستلو سره حج اوکړي اګر چه د دې قرض په ادا کولو باندې هغه قادر نه وي او د دې خبرې اميد دې چه الله پاك به د هغه د دې قرض په نه ادا کولو باندې د هغه مواخذه نه کوي په دې شرط چه نيت ئې دا وي چه ماله که کله هم مال راغلو نو زه به دا قرض ادا کوم

**[٢٥٢٤] حج او عمره يوځائي کولو سره فقر او فاقه او ګناه ختميږي**

[٢٠] (١) ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «تَابِعُوا بَيْنَ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ فَإِنَّهُمَا يَنْفِيَانِ الْفَقْرَ وَالذُّنُوبَ كَمَا يَنْفِي الْكِيرُ خَبَثَ الْحَدِيدِ وَالذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ، ③ وَلَيْسَ لِلْحَجَّةِ الْمَبْرُورَةِ ثَوَابٌ إِلَّا الْجَنَّةَ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ).

**ترجمه** ① ابن مسعود رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل حج او عمره يو ځاى کوى ځکه چې دا دواړه (يعني په دي کې هر يو) فقر او ګناهونه داسې لري کوي څرنګه چې بټې د اوسپني، سرو زرو او سپينو زرو خيري لرې کوي. ③ او د حج مقبول ثواب د جنت څخه سوا بل څه نه دی. ترمذي، نسائي

**حل اللغات** ① تَابِعُوا: أَيْ قَارِبُوا: يوځاي اوکړئ (يعنى چه عمره اوکړئ نو حج اوکړئ او که حج اوکړئ نو عمره اوکړئ يا دا مطلب چه حج قران يا تمتع اوکړئ) ② يَنْفِيَانِ: أَيْ يَمْحُوا: دفع کوى. لرې کوى. ③ خَبَثَ: أَيْ وَسَخ: خيري. زنګ. ④ الْمَبْرُورَة: أَيْ مَقْبُول: قبول شوې حج

**تسهيلات:**

**قوله: تَابِعُوا بَيْنَ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ:**

**د مذکوره جملې مطلب:** يعنى حج او عمره يوځاى کوى دا د حج په اقسامو کښې د ټولو نه

---

(١) اخرجه الترمذي في كتاب الحج عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في ثواب الحج والعمرة (رقم-٨١٠) والنسائي في كتاب مناسك الحج/باب فضل المتابعة بين الحج والعمرة (رقم-٢٦٣٠)

فصل قسم دي ددې تفصيل به راشي چه کوم حج افضل دې امام طيبي فرمائي چه ددې
مطلب دا دې چه که تاسو حج کړې وی نو د هغې نه پس عمره اوکړئ او که عمره مو کړې
وی نو د هغې نه پس حج اوکړئ

**قوله** فَإِنَّهُمَا يَنْفِيَانِ الْفَقْرَ وَالذُّنُوبَ:

**د فقر په مفهوم کښې دوه احتمالات:** ① د فقر څخه مراد ظاهري فقر دې يعنی حج و عمره
کونو سره الله تعالی مال او دولت ورکوی او يا په حج و عمرې سره زړه غنی کيږی

② د فقر څخه باطنی فقرمراد دې يعنی دده زړه کښې به باطنی روحانيت ملاؤ شی کوم
چې دده دپاره د دنياوی مال او دولت څخه غوره او افضل ده

**نوټ:** دعمرې حکم د بل حديث په تشريح کښې بيان شوې دې

| [۲۰] وَرَوَاهُ أَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَهْ عَنْ عُمَرَ إِلَى قَوْلِهِ خَبَثَ الْحَدِيدِ. |
|---|

**ترجمه** امام احمد . او ابن ماجه رحمه الله دا روايت د حضرت عمر رضي الله عنه څخه تر لفظ خبث
الحديد نقل کړی دی

## [۲۵۲۶] دَ حج دَ فرضيت شرائط

| [۲۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا يُوجِبُ الْحَجَّ قَالَ الزَّادُ وَالرَّاحِلَةُ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ).. |
|---|

**ترجمه** ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې يو سړی د رسول الله صلی الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو. او
عرض يې وکړ چې يا رسول الله! صلی الله عليه وسلم کوم شی حج واجبوي؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل
چې زاد راه (د لارې توښه) او سوارلی، ترمذي، ابن ماجه

**تحقيقات: قوله**: الزَّادُ وَالرَّاحِلَةُ:

**دحج د فرضيت دپاره د توښې شرطيت:** په قرآن اوحديث کښې حج سره يو لفظ په توګه د
قيد لګولې شوې دې اوهغه لفظ ﴿مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا﴾ دې يعنی حج په هغه سړی باندې
فرض دې چه څوك دحج استطاعت لرى

### د استطاعت په تفسير کښې د فقهاؤ مذاهب:

① امام شافعي رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نيزيوسړې سره دَمال موجود کيدل
استطاعت دې سره دَدې چه هغه سړې ګود شل او صاحب فراش وی ليکن چه هغه سره مال
اودولت دې نو په هغه باندې حج فرض کيږی اوهغه چونکه پخپله دَ تللو طاقت نه لرى

[۱] اخرجه ابن ماجة في كتاب المناسك/باب فضل الحج والعمرة (رقم-۲۸۸۷) واحمد في المسند:۱/۳۸۷

[۲] اخرجه الترمذي في كتاب الحج عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في إيجاب الحج بالزاد والراحلة (رقم-۸۱۳) وابن ماجة في كتاب المناسك/باب ما يوجب الحج (رقم-۲۸۹۷)

لهذا هغه دې بل څوك د خپل طرف نه نائب جوړولوسره دهغه د خرچې پوره انتظام اوكړي هغه سړې دې لاړشي اود هغه دپاره دې حج اوكړي دې ته حج بدل وائي

② امام مالك رحمه الله فرمائي چه دا ستطاعت نه مراد بدني صحت دې كله چه يوسړې صحيح سالم دې نو په هغه باندې په هرحال كښې حج فرض دې هغه به حج له ځي په لاره كښې به گته كوي اوبيابه وړاندې ځي بيا به گته كوي اوبيابه وړاندې ځي ځكه چه ښه صحت مند دې نوهغه د څه څيز آرزومند دې؟

③ امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي دا ستطاعت نه مراد "زادوراحله" دې يعني چه د تگ راتگ خرچه وي د لارې كرايه وي خپله سورلي وي اوښكاره خبره ده چه په دې ضمن كښې د بدن صحت ضروري دې اودغه شان د لارې امن هم ضروري دې البته د اهل مكه اوچاپېره علاقو د خلقودپاره د سورلئي موجودكيدل شرط نه دې ځكه چه هغوي بغيرد سورلئي نه هم حج له تلې شي

**دحج دفرضيت شرطونه:** د لاندې درج شوي شرائطو د موجودگئي نه پس حج فرض كيږي

① مسلمان كيدل، په كافرباندې حج نشته دې.

② آزادكيدل په غلام او وينځه باندې حج فرض نه دې.

③ بالغ كيدل په ماشومانو باندې حج فرض نه دې.

④ عاقل كيدل په مجنون اوپاگل اومدهوش اوبې هوش باندې حج فرض نه دې.

⑤ استطاعت يعني دومره اندازه باندې د مال مالك كيدل چه د ضرورت اصليه او قرض نه محفوظ وي اود هغه د لارې د خرچې او سورلئي دپاره كافي شي اود كوموخلقونفقه چه د ده په ذمه باندې واجب ده دهغوي دپاره هم د دې نه په څه اندازه پاتې شي چه د هغه د راواپس كيدو پورې د دغه خلقو دپاره كفايت اوكړې شي كوموخلقو سره چه زمكه موجود ده كه هغوي دغه زمكه خرڅه كړي نوديره پيسه ورته په لاس راتلې شي په كوم سره چه هغه حج كولې شي نو په دې صورت كښې هم دا خلق صاحب استطاعت دی. داد بعض فقهاؤ رائې ده چه زمكه هم په استطاعت كښې داخل ده

**دحج موانع :** تردې خائي پورې چه كوم شرائط بيان شو هغه دا وو چه كه چرې دا موجودنه شي نوحج نه فرض كيږي يعني د حج فرضيت به متحقق نه شي وړاندې شرائط بيانولې شي هغه داسې دي چه د هغې نه موجود كيدو سره حج خو به فرض پاتې وي البته چه تركومې پورې دغه موانع موجود وي حج له تلل ضروري نه دي اوكوم وخت چه دا موانع لرې شي بيابه حج له تلل فرض شي.

① د بدن د داسې عوارض نه محفوظ كيدل دكوم د وجې نه چه سفر نه شي كولې لكه ړوند ، گوډ ، شل يا داسې بوډا چه په سورلئي باندې كيناستې نه شي.

② د چا په قيد كښې راگيريدل يا د ظالم بادشاه د ظلم په ويره كښې تركومې چه دا مانع

موجود وي حج له تلل فرض نه دي

④ د لارې په امن کښې کېدل يعنې د ډاکوانو ډاکې کېدلو که چرته خطره وي يا مخه کښې چرته درياب وي نو دا عذر دې

⑤ د ښځې دپاره په ملګرتيا کښې خاوند يا محرم نه موجود کېدل

⑥ د ښځې دپاره په عدت کښې کېدل خلاصه دا چه دغه پورته ذکرشوي شرائط څه دائمي دي اوڅه عارضي دي عوارض چه کله لرې شي نوحج به فرض شي [البناية:۱۹-۴/ ۱۷]

**دَ حج واجبات:** په حج کښې ټول شپږ واجبات دي ① وقوف مزدلفه ② سعي ③ رمي ④آفاقي دپاره طواف قدوم ⑤ حلق يا قصرکول ⑥ هرهغه عمل دکوم په ترک کولوچه دم راځي په نورو الفاظوکښې دغه پورته افعال په ترتيب سره اداکول [القدوري،۱/۸۹].

**[۲۵۲۷] افضل حج اودَ ښه حاجي صفت**

**–[۲۲] ()① وَعَنْهُ قَالَ: «سَأَلَ رَجُلٌ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: مَا الْحَاجُّ؟② قَالَ: الشَّعِثُ التَّفِلُ فَقَامَ آخَرُ③ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ الْحَجِّ أَفْضَلُ قَالَ: الْعَجُّ وَالثَّجُّ④ فَقَامَ آخَرُ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ مَا السَّبِيلُ قَالَ: زَادٌ وَرَاحِلَةٌ» (رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ وَرَوَى ابْنُ مَاجَهْ فِي سُنَنِهِ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرِ الْفَصْلَ الْأَخِيرَ)**

**ترجمه** ① ابن عمر ﷺ وايي چې يو سړي رسول الله ﷺ ته عرض وکړو چې د حاجي صفت او کيفيت څه دی؟② رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې ببر ويښتو والاچې د خولو او خيرو په وجه بوی خنی راځي (يعنې د زيب او زينت څخه مکمل پرهيز، څرنګه چې د يو عاشق صادق او مخلص محب علامت وي)③ بيا يو دويم سړی ودريدلی. هغه عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ په حج کې (د ارکانو څخه پس) کوم څيزونه د ډير زيات ثواب حامل دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې د لبيک سره آواز اوچتول او د قرباني يا هديي وينه تويول.④ د دې څخه روسته يو بل سړی ودريدلی او هغه عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ سبيل. څه شی دی؟ (يعني په قرآن مجيد کې چې د حج په سلسله کې دا فرمايل شوي دي چې مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلاً نو په دې آيت کې د سبيل څخه څه مراد دی؟) رسول الله ﷺ وفرمايل چې زادِ راه او سوارلی. شرح السنه، او دا روايت ابن ماجه رحمه الله په خپل سنن کې نقل کړی دی. ليکن د هغه د حديث آخري حصه يعنې فقام آخر (د دې څخه روسته يو بل سړی ودريدلی) تر آخره نه دی ذکر کړی

**حل اللغات:** ① مَا الْحَاجُّ: أَيِ الْكَامِلُ: کامل حاجي څوک دی؟ (يعنې دحج کونکی څه صفت دی؟)، ② الشَّعِثُ: أَيِ الْمُغْبَرُّ الرَّأْسِ: ګرد لړلی يعنې په خاورو ککړ ويښتان (دغسل نه کولو اوګمنز نه کولو په وجه)، ③ التَّفِلُ: أَيْ تَارِكُ الطِّيبِ: عطرئی ترک کړې وی (يعنې خيرن پيرن او بد بويه وی)، ④ الْعَجُّ: رَفْعُ

() اخرجه ابن ماجة في كتاب المناسك/باب ما يوجب الحج (رقم-۲۸۹٦)

الصَّوْتِ بِالتَّلْبِيَةِ په زوره زوره يعني په اوچت آواز سره تلبيه ونيل ⑤وَالثَّجُّ: سَيَلَانُ دِمَاءِ الْهَدْيِ وَالْأَضَاحِي په كثرت سره دهدي يا د قرباني وينه تويول

**تسهيلات: قوله: مَا السَّبِيلُ:**

**دسبيل څخه مراد:** يعني د قرآن په آيت كښې چه كوم ﴿مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا﴾ كښې د سبيل لفظ راغلي دې دې نه څه مراد دی؟

**قوله: زَادٌ وَرَاحِلَةٌ:**

**د زاد او راحله څخه مراد:** يعني چه د تګ راتګ درميانه خوراك څښاك سامان ورسره د سورلئ كرايه وی پخوانئ زمانه كښې به اوښان وو د نن صبا هوائی جهاز كرايه مراد ده سره د دې چه د سمندری جهاز كرايه كمه وی مګر ظالمانو هغه ختمه كړه

**[٢٥٢٨] د پلار د طرف نه حج كول**

٢٥٢٨-[٢٣] (¹) ①وَعَنْ أَبِي رَزِينٍ الْعُقَيْلِيِّ «أَنَّهُ أَتَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ②- فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ أَبِي شَيْخٌ كَبِيرٌ، لَا يَسْتَطِيعُ الْحَجَّ وَلَا الْعُمْرَةَ، وَلَا الظَّعْنَ ③قَالَ: حُجَّ عَنْ أَبِيكَ وَاعْتَمِرْ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ).

**ترجمه** ① د ابو رزين عقيلي ﷺ په باره كې منقول دی چې هغه د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضر شو، ② او عرض يې وكه چې يا رسول الله! ﷺ زما پلار ډير بوډا شوي دي، هغه نه خو د حج طاقت لري، او نه د عمري او نه د سوريدو (يعني په سبب د ضعف او كبر سني نه خو د حج او عمري په افعالو او اركانو او ادائيګۍ قادر دی، او نه سوريدو سره د حج او عمري د پاره تللی شي، ③ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې د هغه د طرف څخه ته حج او عمره وكړه، ترمذي، ابوداؤد نسائي او امام ترمذي رحمه الله فرمايلي دي چې دا حديث حسن صحيح دی

**حل اللغات:** ① شَيْخٌ كَبِيرٌ: ډير بوډا، ضعيف العمر. ② الظَّعْنَ: أي الرِّحْلَةَ: سورلی يعني په سورلئ باندې هم د سوريدلو طاقت نه لري

**تسهيلات: قوله: قَالَ: حُجَّ عَنْ أَبِيكَ وَاعْتَمِرْ**

**د حديث دوه فوائد:** ① حج د بدني او مالي عبادت مجموعه ده د دې وجه نه په مجبورئ كښې حج بدل جائز دې خو د قدرت ملاويدو نه پس پخپله حج كول ضروری دی

② دا رنګ خالص بدنی عبادت كښې نيابت مطلقا جائز نه دې او خالص مالی عبادت كښې نيابت مطلقا جائز دې.

(¹) اخرجه ابوداود في كتاب المناسك، باب الرجل يحج عن غيره (رقم-١٨١٠) والترمذي في كتاب الحج عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-٩٣٠) والنسائي في كتاب مناسك الحج/باب وجوب العمرة (رقم-٢٦٢١) واحمد في المسند: ٤/١٠

**[۲۵۲۹] دَ بل دَ طرف نه حج کولو نه وړاندې اول خپله حج کول پکاردي**

[۲٤] ( )(١) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: «إِنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَمِعَ رَجُلًا(٢) يَقُولُ: لَبَّيْكَ عَنْ شُبْرُمَةَ(٣) قَالَ: مَنْ شُبْرُمَةُ قَالَ: أَخٌ لِي أَوْ قَرِيبٌ لِي(٤) قَالَ: أَحَجَجْتَ عَنْ نَفْسِكَ قَالَ: لَا(٥) قَالَ: حُجَّ عَنْ نَفْسِكَ ثُمَّ حُجَّ عَنْ شُبْرُمَةَ» (رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ).

**ترجمه** (١) ابن عباس رضي الله عنهما وایي چې رسول الله ﷺ د حج په دوران کې، د یو سړي څخه واوریدل (٢) چې هغه د شبرمه د طرف څخه لبیك وایي، (٣) رسول الله ﷺ ځني پوښتنه وکړه چې شبرمه څوك دی؟ هغه سړي عرض وکړو چې زما ورور دی یا زما قرابتي (خپل) دي، (٤) بیا ځني رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چې آیا تا د خپل طرف څخه حج کړی دی؟ هغه اوویل چې یا، (٥) نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې ته مخکې د خپل طرف څخه حج وکړه. بیا د شبرمه د طرف څخه حج وکړه، شافعي، ابوداؤد، ابن ماجه

**تسهیلات: قوله: أَوْقَرِيبٌ:**

**دفقهاؤ اختلاف:** دَدې حدیث دَ وجې نه اودَ نورو روایاتو دَ اختلاف دَ وجې دَ فقهاؤ په مینځ کښې اختلاف پیدا شوې دې چه کوم سړی پخپله حج نه وی کړې دَ بل دَ طرف نه حج کولې شي که نه؟

**د غیر حاجي دپاره د حج بدل په حکم کښې مذاهب:**

(١) امام شافعي او امام احمد رحمهما الله فرمائي چه چا د خپل طرف نه فرض حج نه وی کړې د هغه دپاره د بل د طرف نه حج کول صحیح نه دی،

(٢) د امام ابوحنیفه او امام مالك رحمهما الله مسلك دا دې چه د نورو د طرف نه حج کول صحیح دی اګر چه خپله ئې د حج فریضه نه وی ادا کړې خو ددې حضراتو په نزد هم اولی هم دا ده چه اول خپل حج اوکړی د دې نه پس د نورو د طرف نه حج اوکړی

**د شوافعو دلیل:** شوافع او حنابله دَ دې زیربحث حدیث نه استدلال کړې دې چه په خپله مدعا باندې واضح دلیل دې

**د احنافو دلیل:** احناف اومالکیه فرمائي چه دې نه وړاندې حدیث کښې کله خثعمیه ښځې دَ خپل پلار دَ طرف نه دَ حج کولو اجازت اوغوښتلو نو حضورپاك دَ حج اجازت ورکړو اوداپوښتنه ئې اونه کړه چه تا خپله حج کړې دې که نه؟

**د حدیث الباب څخه جواب:** زیر بحث حدیث دَ جواب ورکولو ضرورت نشته دې ځکه چه احناف اومالکیه دا حدیث په استحباب باندې حمل کوی اوداسې کول مکروه ګڼړی.

---

(١) اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک. باب الرجل یحج عن غیره (رقم-۱۸۱۱) والنسائی فی کتاب مناسک الحج/باب میقات أهل العراق (رقم-۲۶۵۶)

## [۲۵۲۰] د مشرق والو ميقات

۲۵ [۱] وَعَنْهُ قَالَ: «وَقَّتَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِأَهْلِ الْمَشْرِقِ الْعَقِيقَ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ)

**ترجمه** ابن عباس وايي چې رسول الله ﷺ د مشرق والاوو د پاره د احرام تړلو ځاى يعني ميقات عقيق متعين كړى دى، ترمذي، ابوداؤد

**حل اللغات** ① وَقَّتَ: مقرر كړې ئې دې ځاني د تړلو داحرام، ② الْعَقِيقَ: عقيق د يو ځاني نوم دي كوم چه د ذات عرق په محاذات كښې واقع دې دا ځاني د مشرق والو دپاره ميقات دې

**تسهيلات: قوله الْعَقِيقَ:**

**د اهل مشرق ميقات:** دا ځاني د مشرق والو دپاره ميقات دې د مشرق والو نه مراد هغه خلق دى كوم چه د حرم نه بهر په مشرقي علاقو كښې اوسيدونكي دى هم دې خلقو ته عراقي هم وئيلې شي چه د هغوى تذكره په وړاندې حديث كښې ده، دغه شان د مشرق والو دپاره د احرام تړلو دوه ځايونه شو يو خو عقيق او بل ذات عرق لهذا د هغه طرف نه راتلونكي چه په دې دواړو ځايونو كښې په كوم يو راتيريږي د هغه ځاني نه دې احرام اوتړي

## [۲۵۲۱] د اهل عراق ميقات

۲۶ [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَقَّتَ لِأَهْلِ الْعِرَاقِ ذَاتَ عِرْقٍ (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ).

**ترجمه** ام المؤمنين بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله ﷺ د عراق والاوو د پاره د احرام تړلو ځاى ذات عرق متعين كړيدي، ابوداؤد، نسائي

**تسهيلات**

**قوله وَقَّتَ لِأَهْلِ الْعِرَاقِ ذَاتَ عِرْقٍ:**

**د موافيتو د محاذات نه احرام تړل:** په دې حديث كښې يوې ضابطې طرف ته اشاره كوى چه د چا مخامخ يو ميقات هم نه وى نو د هغوى د احرام تړلو د پاره د هغه ميقات په محاذات كښې چه كوم ځاني راځي هغه كافي دې او اهل شرق د پاره ميقات د اهل عراق والو ميقات دې د هغوى ميقات مقام عقيق دې او هغه د ذات عرق په محاذاتو كښې واقع دې نو ګويا چه د هغوى ميقات ذات عرق شو

---

[1] اخرجه ابوداود فى كتاب الزكاة/باب في المواقيت (رقم-۱۷۴۰) والترمذى فى كتاب الحج عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في مواقيت الإحرام لأهل الآفاق (رقم-۸۳۲)

[2] أخرجه ابوداود فى والنسائى فى كتاب الزكاة/باب في المواقيت (رقم-۱۷۳۹) والنسائى فى كتاب مناسك الحج/باب ميقات أهل العراق (رقم-۲۶۵۶)

**[۲۵۳۲] ذ ميقات نه وړاندې احرام تړل افضل دی**

٢٥٠٣-[٢٧]( )[١] وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: «سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ مَنْ[٢] أَهَلَّ بِحَجَّةٍ أَوْ عُمْرَةٍ مِنَ الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى إِلَى الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ:[٣] غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ، أَوْ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ» (رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ).

**ترجمه** [١] ام المؤمنين بي بي ام سلمه رضي الله عنها وايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي[٢] چې کوم سړی د حج يا عمرې د پاره د مسجد اقصی (بيت المقدس) څخه تر مسجد حرام (يعني تر مکی) احرام وتړي (يعني د بيت المقدس څخه د حج يا د عمرې د پاره روانيدونکی د بيت المقدس څخه احرام تړلو سره ولاړ شي)[٣] نو د هغه ټول هغه ګناهونه بخښل کيږي، کوم چې هغه مخکې کړې وي، او کوم چې وروسته وکړي. يا وي فرمايل چې د هغه سړي د پاره (ابتداء څخه) جنت واجب کيږي. يعنی هغه به د شروع څخه په جنت کې داخليږي. ابوداؤد. ابن ماجه

**حل اللغات**: ① أَهَلَّ: أَيْ أَحْرَمَ: چه احرام اوتړی

**تسهيلات**:

**قوله**: بِحَجَّةٍ أَوْ عُمْرَةٍ:

**د حرف ..او.. وضاحت**: په دې کښې په حرف (او) د تنويع دپاره دې او (اووجبت له الجنة) کښې حرف (او) د راوی شک ظاهروی

**قوله**: مِنَ الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى:

**د مسجد حرام په ذکر کولو کښې دوه احتماله**: دَ مسجداقصی ذکر په دې حديث کښې ولې کړې شوې دې په دې کښې دوه احتماله دی

① دا مقام دَ مکې نه ډير زيات لرې دې اودَ احرام په حالت کښې چه څومره لرې سفروی نو دومره به غوره وی دَا فضليت علت به پس دَ مسافت نه وی

② دَ افضليت دَ وجې نه دې چه دَ بيت المقدس غوندې دَ مقدس مقام نه دې احرام اوتړی بيا چه داحاجی يا عمره کونکې په مدينه منوره تيرشی اودَمکې مکرمې غوندې مقدس مقام ته راشی دغه شان دَ حاجی دَ سفرشروع دَ يومقدس مقام نه کيږی او دَ مدينې غوندې مبارك مقام باندې تيريدو سره دَ سفرانتهاء دَ مکې مکرمې په شان عظيم مقام باندې کيږی اندازه اولګونی چه دا څومره مبارك سفردې په دې وجه دَ دغه احرام عظمت او فضيلت دې

( ) اخرجه ابوداود فی کتاب الزکاة /باب فی المواقيت (رقم-١٧٤١) وابن ما جة فی کتاب الزکاة /باب فی المواقيت (رقم-١٧٤١) وابن ما جة رقم الحديث ٣٠٠١

**د مسجد حرام څخه د لرې ځانې څخه په احرام تړلو کښې مذاهب:**

بعض حضرات فرمائي چه دا حديث دې طرف ته اشاره کوي چه د احرام تړلو ځائې چه د حرم محترم نه څومره لرې وي ثواب به هغه شان زيات وي. دې باره کښې فقهي تفصيل دا دې چه

① د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد د احرام تقديم يعنې د احرام د تړلو د ځايونو نه مخکښې احرام تړل يا د خپل کور نه احرام تړلو سره تلل افضل دي

② د امام شافعي رحمه الله يو قول هم دا دې، خو دا په هغه صورت کښې دې چه کله د ممنوعات احرام نه بچ کيدې شي، ګينې که په دې پوهه شي چه په دې صورت کښې د ممنوعات احرام نه بچ کيدل ممکن نه دي نو بيا د ميقات نه احرام تړل افضل دي.

**د اشهر الحج څخه وړاندې د احرام په تړلو کښې مذاهب:**

① د حج د مياشتو (يعنې شوال، ذي قعده او د ذي الحجة د شروع لس ورځې) نه مخکښې د احرام تړلو په باره کښې د احنافو د جواز قول هم دې او مکروه ورته هم ونيلې شوې دي. امام مالك او امام احمد هم د کراهت قائل دي،

② د امام شافعي رحمه الله يو قول اګر چه دا هم دې چه د حج د مياشتو نه د احرام تړونکي احرام صحيح نه دې خو د هغوي مسلك دا دې چه که يو سړې د حج د مياشتو نه مخکښې احرام اوتړي نو د هغه دا احرام به د حج په ځائې د عمرې دپاره شي.

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٢٥٢٣] اسباب اختيارول د توکل خلاف نه دي**

٢٥٢٣-[٢٨] (١) ① عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ أَهْلُ الْيَمَنِ يَحُجُّونَ فَلَا يَتَزَوَّدُونَ، ② وَيَقُولُونَ نَحْنُ الْمُتَوَكِّلُونَ، فَإِذَا قَدِمُوا مَكَّةَ سَأَلُوا النَّاسَ، فَأَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالَى: ﴿وَتَزَوَّدُوا فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى﴾ [البقرة: ١٩٧] (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ).

**ترجمه** ① ابن عباس رضي الله عنهما وايي د يمن والاچې به حج ته راتلل، نو د ځان سره به يې زادِ راه نه راوړله. ② بلکه دا به يې ويل چې مونږ توکل کونکي يو. بيا چې مکې ته به راغلل نو د خلقو څخه به يې سوال کولې. نو الله جل جلاله د دې څخه د منع کولو د پاره دا آيت نازل کړ فَتَزَوَّدُوا فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى، او هر کله چې حج ته ځې نو د ځان سره د لارې توښه ضرور وړې، ځکه چې د ټولو څخه لويه او د خوبۍ خبره په زادِ راه کې (ګدا ګرۍ څخه) ځان ساتل دي، بخاري

(١) اخرجه البخاري في كتاب الحج /باب قول الله تعالى: «وتزودوا فإن خير الزاد التقوى» [البقرة: ١٩٧] (رقم-١٥٢٣) وابوداود في كتاب المناسک. کتاب الزکاة /باب التزود في الحج (رقم-١٧٣٠)

**حل اللغات** ① فَلَا يَتَزَوَّدُونَ : أَيْ لَا يَأْخُذُونَ الزَّادَ مَعَهُمْ : خان سره به نې د سفر د خوراک څکاک سامان نه حسئلو ② الْمُتَوَكِّلُونَ : مونږ توکل کونکی یو په الله تعالی باندې، ③ وَتَزَوَّدُوا: أَيْ خُذُوا زَادَكُمْ : يعني خن سره دخوراک څکاک څیزونه اخلئ، ④ خَيْرَ الزَّادِ : بهترینه توښه

**تسهیلات:**

**قوله: نَحْنُ الْمُتَوَكِّلُونَ:**

**د اسبابو د استعمال د توکل سره عدم منافات:** دَ یمن دَ دغه خلقو داخیال ووچه مونږ د دومره نونی عبادت دپاره خو ټول هرڅه پریخودو سره دَ الله تعالی طرف ته منډې وهی بیا په جولوکښې معمولی شان غله تړلوسره ګرځیدل دتوکل خلاف دی دا جذبه خو ښه وه لیکن په دې باندې وړاندې تلو سره صبر نه شو او تنګ راتلوسره نی دَ خلقو په مخکښې دَ غوښتلودپاره لاسونه خورول شروع کړه الله تعالی دهغوی دَ اصلاح دپاره اوفرمائیل چه خپل خن سره دَ لارې خرڅه اخلئی دا نه دَ توکل خلاف دی اونه دَ تقوی خلاف دی دتوکل خلاف څکه نه دی چه په اسباب باندې توکل منع دې دَ اسباب استعمال منع نه دې

قیدوتوکل، ارشاد نبوی دې.

بر توکل زانوے اشتر ببند او دَ لارې خرڅه اوړل دتقوی هم خلاف نه دی څکه چه دَ سوال نه بچ کیدل بهترینه تقوی ده.

**[٢٥٢٤] په حج اوعمره کښې ښځوته دَ جهاد ثواب ملاویږی**

| سرو-[ ٢٩ ] ( ) ١ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: ٢ «قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ عَلَى النِّسَاءِ جِهَادٌ ٣ قَالَ: نَعَمْ عَلَيْهِنَّ جِهَادٌ لَا قِتَالَ فِيهِ الْحَجُّ وَالْعُمْرَةُ» (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ). |
|---|

**ترجمه** ١ أم المؤمنین بي بي عائشه رضي الله عنها وایي ٢ چې ما عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ آیا د ښځو د پاره جهاد شته ٣ رسول الله ﷺ وفرمایل چې هو په ښځو داسې جهاد دی. چې هغه کې جنګ نشته ، او هغه حج او عمره ده، ابن ماجه

**تسهیلات:**

**قوله: جِهَادٌ لَا قِتَالَ فِيهِ:**

**د جهاد باره کښې د بار بار تپوس کولو وجه :** چونکه دَ جهاد لوئی فضیلت دې په دې وجه حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها بار بار پوښتنه کړې ده دې دَ پاره چه دَ ښځودپاره څه لار راوځی مګر حضورپاك دَ دوی په میدان جنګ کښې دَ جنګیدلو او جهاد کولو ثواب حج او عمره کښې خودلې دې دې نه وړاندې په حدیث نمبر: ٢٥٠٣ کښې ددې تفصیل تیرشوې

( ) اخرجه ابن ماجه فی کتاب المناسک /باب الحج، جهاد النساء (رقم-٢٩٠١)

دي په زيربحث حديث كښې حضورپاك اوفرمائيل بيشكه دَ ښځودپاره هم دَ جهاد يو موقع ده اوهغه داسې موقع ده چه دَ جنګيدلو او تورې چلولونه بغير ورته دَ جهاد ثواب ملاويږي اوهغه دَدوى حج اوعمره كول دى دَدې حديث نه معلومه شوه چه دَ سړو په جهاد كښې جنګيدل اوتوره چلول دى دَ تبليغى حضراتو هم دغه كوشش دې چه دَهغوى جهاد دې دَ سړو والا جهادنه وى بلكه دَښځووالا جهاددې وى په كوم كښې چه دَ جنګ جګړې هڅو نوم اونښه نه وى

**[۲۵۲۵]دَشرعى عذر نه بغيرفرضى حج نه كونكودپاره سخت وعيد**

**۲۵۲۵–[۳۰]()[۱] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۲] - «مَنْ لَمْ تَمْنَعْهُ مِنَ الْحَجِّ حَاجَةٌ ظَاهِرَةٌ، أَوْ سُلْطَانٌ جَائِرٌ، أَوْ مَرَضٌ حَابِسٌ، [۳] فَمَاتَ وَلَمْ يَحُجَّ فَلْيَمُتْ إِنْ شَاءَ يَهُودِيًّا وَإِنْ شَاءَ نَصْرَانِيًّا» (رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ).**

**ترجمه** [۱] ابو امامه ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ فرمايل كوم[۲] سړى چې ظاهري حاجت چې د هغه د زاد راه او سورلۍ نه كيدل دي) يا ظالم بادشاه يا خطرناك مرض د حج څخه نه وي منع كړى،[۳] او هغه د حج كولو بغير مړ شي، نو هغه ته اختيار دى چې يهودي كيدو سره مړ شي يا عيسائي كيدو سره ، دارمي.

**حل اللغات:** ① حَاجَةٌ ظَاهِرَةٌ: أَيْ فَقْدُ زَادٍ وَرَاحِلَةٍ: ظاهرى حاجت (چه دسفر دخوراک څکاک څيزونه او سورلى ورسره نه وى). ② سُلْطَانٌ جَائِرٌ: أَيْ ظَالِمٌ: ظالم بادشاه (چه دهغه دظلم يا دمنع كولو په وجه دحج نه پاتې شى). ③ مَرَضٌ حَابِسٌ: أَيْ مَانِعٌ مِنَ السَّفَرِ: داسې سخته بيمارى چه دهغې په وجه حج ته نه شى تلې

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ لَمْ تَمْنَعْهُ مِنَ الْحَجِّ حَاجَةٌ ظَاهِرَةٌ

**دحج د فرضيت شرطونه:** مطلب دا چه دَ وجوب حج دَپاره هم څه شرطونه دى كه چرته هغه موجود نه شى نوحج فرض كيږى هم نه اوڅه داسې شرطونه هم دى كه چرې هغه نه وى نوحج به فرض خو وى ليكن دَهغې ادائيګى نه ضرورى كيږى. دغه شرائط ته موانع حج وائى په زيربحث حديث كښې هم دَ دغه موانع بيان دې دَ كوم تفصيل چه دَ فقهاؤ په نيز داسې شان دې

**نوټ:** د حج د موانع بيان وراندې دحديث نمبر ۲۵۲۶ په تسهيل كښې تيرشوې دى.

**قوله:** فَلْيَمُتْ إِنْ شَاءَ يَهُودِيًّا:

**نوټ:** ددې جملې شرح دحديث نمبر ۲۵۲۱ په تسهيل كښې ذكر شوې ده.

---

() اخرجه الدارمي في السنن (رقم-۱۷۸۵)

**قوله** ﴿وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ﴾:

**دپاره اجمالي بيان:** مطلب دا دی چه كوم سړی سره دومره روپۍ وی چه هغه سفر حج ته د تللو او راتلو د خرجو دپاره كافي كيږی او خپل اهل وعيال ته دومره وركړی كوم چه د هغه د واپسي پورې د هغوی د ژوند د ضرورياتو دپاره كافي وی او خپل اهل وعيال ته هم دومره وركړی چه بيت الله پورې ئې اورسوی كه هغه خپل وی يا د كرايه وی هغه د دومره استطاعت او قدرت باوجود هم حج نه كوی او مړشی نوهغه يهودی يا نصراني كيدوسره مری

**په ترك حج باندې د كفر د اطلاق وجوهات:** ① په دې كښ تفصيل دا دې چه هغه د استطاعت او قدر باوجود حج په دې وجه اونكړو چه هغه د دې د فرضيت منكر وی نو بيا د يهودی او نصراني سره د هغه مشابهت د كفر د وجې نه دې يعنی څنګه چه يهودی او نصری د كفر په حالت كښ مری هم دغه شان به هغه هم د كفر په حالت كښ مری

② كه د فرضيت د منكر كيدو نه بغير حج اونكړی نو بيا د مشابهت تعلق به د ګناه سره وی چه يهودی او نصراني چه د څومره سخت ګناه په حالت كښ مړه شی هغه به هم د دومره سختې ګناه بار اخستلو سره د مرګ نذر كيږی،

③ بعضې علماء كرام فرمائی چه رسول الله ﷺ دا وعيد د تغليظ او تشديد په طور يعنی د ترك حج د ګناه د شدت او هيبت ناكئ د اظهار دپاره فرمائيلې دې خو بهر نوع ترك حج يو داسې ګناه او دومره شديد جرم دې چه رسول الله ﷺ دومره سخت وعيد فرمائيلې دې چه حج نه كونكې يهودی يا نصراني كيدو سره مری، **عياذاباللهمنه.**

**دآيت حج باقي حصه:** پس د آيت كريمه باقي حصه دا ده ﴿ **ومن كفر فأن الله غني عن العالمين** ﴾ ترجمه او كه څوك كفر كوی او (طاعت او عبادت نه كونو سره) د الله پاك د نعمتونو كفران اوكړی نو الله پاك د عالم د خلقو نه بې نيازه دې يعنی كه خلق طاعت او عبادت كوی يا نه كوی په دې كښ د الله پاك هيڅ نفع او نقصان نشته، نفع او نقصان خو د هغه خلقو دې نو د هم هغه خلقو دې كه عبادت او طاعت كوی نو فلاح او نجات به بيا مومی او كه نه كوی نو په خسران عذاب كښ به اخته شی

په ظاهر كښ معلوميږی چه رسول الله ﷺ به دا پوره آيت كريمه لوستلې وی خكه چه استدلال خود پوره آيت كريمه نه كيږی خو راوی د ﴿ **اليه سبيلا** ﴾ پورې دا آيت كريمه نقل كړو

**[٢٥٣٦] حج او عمره كونكی دَالله تعالى ميلمانه وی**

٢٥٣٦- [٣١] ( )١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّهُ قَالَ: «الْحَاجُّ وَالْعُمَّارُ وَفْدُ اللَّهِ ٢ إِنْ دَعَوْهُ أَجَابَهُمْ وَإِنِ اسْتَغْفَرُوا غَفَرَ لَهُمْ» (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ)..

---

( ) اخرجه ابن ما جة في كتاب المناسک /باب فضل دعاء الحاج (رقم- ٢٨٩٤)

**ترجمه** ① ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل حج كونكي او عمره كونكي د الله جل جلاله ميلمانه دي. ② كه هغه د الله جل جلاله څخه څه دعا غواړي، نو الله جل جلاله د هغوئ دعا قبلوي، او كه د هغه څخه بخښنه غواړي، نو هغه يي بخښي، ابن ماجه

**حل اللغات** ① اَلْحَاجُّ: حج كونكي، ② اَلْعُمَّارُ: دا د عَامِر جمع ده، بمعنى اَلْمُعْتَمِر: عمره كونكي. ③ وَفْدُ اللهِ: دلته اضافت د تشريف په وجه دي ددې نه مراد وَفْدُ حَرَمِهِ دي. أي كَجَمَاعَةٍ قَادِمُونَ عَلَيْهِ: يعني: الله حرم ته راتلونكي ډله، دالله ميلمانه

**تسهيلات: قوله:** إِنْ دَعَوْهُ أَجَابَهُمْ:

**د حاجي او معتمر د دعا قبليدل:** چونكه بيت الله دَالله تعالى كوردې اوس چه كوم سړي دَالله تعالى دَ كورد زيارت دَپاره خى نوهغه دَالله تعالى ميلمه وى اوڅنګه چه ميزبان د ميلمه هرجائزخواهش پوره كوى دغه شان الله تعالى هم دَ خپلو ميلمنو خيال ساتي اوهغوى چه كومه دعاغواړي الله تعالى هغه قبلوى.

## [٢٥٣٧] حاجي غازي اومعتمر دَالله تعالى ميلمانه دي

٢٥٣٧ - [٣٢] (١) ① وَعَنْهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: «وَفْدُ اللهِ ثَلَاثَةٌ الْغَازِي وَالْحَاجُّ وَالْمُعْتَمِرُ» (رَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه** ① ابوهريره رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چې دري قسم خلق د الله جل جلاله ميلمانه دي: ① جهاد كونكى ② حج كونكى ③ عمره كونكى، نسائي، بيهقي

**حل اللغات:** ① اَلْغَازِي: أي اَلْمُجَاهِدُ مَعَ الْكُفَّارِ: د كافرانو سره د اعلاء كلمة الله او ددين د نفاذ دپاره جهاد كونكى ته غازي او مجاهد وائى

**تسهيلات: قوله:** وَفْدُ اللهِ:

**د وفد تعريف:** وفد هغه خلقو ته وئيلې شى چه كوم په جمع باندې مختلفو ښارونو ته خى يا لوئ سردار له د زيارت په اراده ورځى

**قوله:** ثَلَاثَةٌ:

**د ثلاثة په مصداق كښې دوه اقوال:** ① ددې نه دري كسان مراد دى

② دري قسمه خلق مراد دى.

**قوله:** اَلْغَازِي:

**د غازي مصداق:** ددې نه مراد هغه مجاهد دې چه د الله د دين د سربلندئ د پاره كافرانو سره جهاد كوى

---

(١) اخرجه ابن ما جة في كتاب المناسك/باب فضل دعاء الحاج (رقم-٢٨٩٣)

**قوله** وَالْحَاجُّ وَالْمُعْتَمِرُ

**مذكوره اشخاصو امتياز:** دا د ټولو مسلمانانو نه ممتاز دى ځكه چه دې د مال خرچ كول. د بدن مشقت او د اهل و عيال نه جدائى برداشت كوى

**[٢٥٣٨] په كوركښې دَ داخليدونه وړاندې په حاجى باندې دعااوكړئي**

٢٥٣٨-[٣٣] ()[١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:[٢] «إِذَا لَقِيتَ الْحَاجَّ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ، وَصَافِحْهُ،[٣] وَمُرْهُ أَنْ يَسْتَغْفِرَ لَكَ قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بَيْتَهُ، فَإِنَّهُ مَغْفُورٌ لَهُ» (رَوَاهُ أَحْمَدُ).

**ترجمه** [١] ابن عمر رضي الله عنهما راوي دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هر كله چې تاسو د حاجي سره ملاقات كوى، نو هغه ته سلام كوى او د هغه سره مصافحه (جوړ په خير) كوى. [٣] او د هغه څخه د خان د پاره د بخشش دعا غواړى، د دې څخه مخكې چې هغه په خپل كور كې داخل شي، او دا د دې د پاره دى، چې هغه بخښل شوى دى، احمد

**حل اللغات:** ① مَغْفُورٌ: بخښلې شوې.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا لَقِيتَ الْحَاجَّ فَسَلِّمْ:

**د ځلوېښتو ورځو پورې د حاجى دعا قبليدل:** يوروايت كښې دى چه حاجيان مستجاب الدعوات وى اودَ حج نه پس ترڅلوېښتو ورځوپورې هغوى هم دغه شان مستجاب الدعوات وى. لهذا كورته دَ داخليدونه وړاندې وړاندې خلقو له پكاردى چه په حاجى باندې دعااوكړى. پخوازمانه كښې به خلقو هم داشان كول اودَ حاجيانو به استقبال كيدلو نن صبا دَ استقبال په ځائى استدبار كيږى. په كور كښې دَ داخليدلوشرط په حديث شريف كښې ځكه لګولې شوې دې چه سړې كله بال بچ سره ملاويږى نودَهغه په زړه اودماغو كښې دَ بچو محبت اينخلى اودغه وخت دَ هغه دَ دعا هغه رومبى والاشان نه پاتې كيږى

**[٢٥٣٩] حج عمره اودَ جهاد سفركښې مركيدو نكوته پوره ثواب ملاويږى**

٢٥٣٩-[٣٤] ()[١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:[٢] «مَنْ خَرَجَ حَاجًّا أَوْ مُعْتَمِرًا أَوْ غَازِيًا ثُمَّ مَاتَ فِي طَرِيقِهِ[٣] كَتَبَ اللَّهُ لَهُ أَجْرَ الْغَازِي وَالْحَاجِّ وَالْمُعْتَمِرِ» (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه** [١] ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د حج يا عمرې يا د جهاد ارادي سره چې څوك د كور څخه وځي، او بيا په لار كې مړ شي، [٣] نو الله تعالى هغه د پاره د جهاد كونكي او د عمره كونكي ثواب ليكي، بيهقي

() اخرجه احمد فى المسند: ٢/٦٩

() اخرجه البيهقى فى شعب الايمان (رقم-٤١٠٠)

**تسهيلات: قوله: كَتَبَ اللّٰهُ لَهُ:**

مطلب دا چه سفر حج یا سفر عمره او جهاد باندې یو سړې روان شو مګر په لار کښې هغه مړشو نو دې سړی ته به دَ جهاد حج او عمره پوره ثواب ملاویږی په ثواب کښې به څه کمې نه راځی سره دَدې چه هغه دا عمل پوره کړې نه دې دَ دینی علومو دَ طالب علم هم دغه حکم دې

## [ ١ ] بَابُ الْإِحْرَامِ وَالتَّلْبِيَةِ

### دَاحرام ترلواو تلبیه ویلو بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه خمسة عشر حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① الطيب قبل الحرام: ١.

② فضل التلبية وألفاظها: ٢، ٤، ٥، ١٠، ١١، ١٢، ١٥.

③ وقت إبتداء التلبية والإحرام: ٣، ١٤.

④ أقسام الإهلال: ٦، ٧.

⑤ الغسل للإحرام : ٨.

⑥ تلبيد الرأس : ٢، ٩.

⑦ الدعاء بعد التلبية: ١٣.

قال الله تعالى ﴿وَأَذِّنْ فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا وَعَلَىٰ كُلِّ ضَامِرٍ يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ﴾

[سورة حج الآية: ٢٧]

**د احرام لغوی معنی او وجه تسمیه:** د احرام معنی ده "حرامول" چونکه په حج کولو باندې څو څیزونه حرام شی لهذا د دې اظهار دپاره چه د هغه وخت نه دا څیزونه حرام شوې دی یوه جامه کومه چه صرف یو څادر او لنګ وی د حج په نیت یا عمرې په نیت ترلې شی کوم ته چه احرام وائی

**د احرام شرعی تعریف:** په زړه کښې دَ حج یا عمرې یا دواړو نیت کولو سره دَ تلبیه لوستلو نوم احرام دې دې نه پس دَ احرام تولې پابندئ شروع کیږی.

**داحرام حیثیت:** دَ حج او عمره دپاره احرام هم داسې دې لکه څنګه چه دَ مانځه دپاره تکبیر تحریمه ده او دَ افعال حج او عمره نه پس حلق یا قصر کول داسې دی لکه دَ مانځه دپاره چه سلام اړول دی

**داحرام مسنون طریقه:** دَ احنافو په نیزدَ احرام مسنون طریقه داده چه دَ احرام نه وړاندې سرې خپل حجامت وغیره اوکړی وینښته او نوکونه وغیره تیک کولونه پس غسل اوکړی

ږب خوشبو استعمال کړی ګنډلي شوي کپړې کوزې کړی اود احرام څادرونه واچوی او که مکروه وخت نه وی نو دوه رکعته نفل دې اوکړی دا نفل دې په څادر کښې پټ اوکړی دې په پس دې دَ سرنه څادر اخوا کړی په زړه کښې دې نیت اوکړی

**د حج او عمرې د نیت الفاظ:** که دَ حج نیت ئې وی نو په ژبه دې داسې اووائی "اللهم انی یرید الحج فیسره لی وتقبله منی" که دَ عمرې نیت قران وی نو په ژبه دې داسې اووائی "اللهم انی یرید العمرة فیسرها لی وتقبلها منی" دې نه پس دې هم هلته په ناسته باندې تلبیه اووائی اوس دا سړې محرم جوړ شو

**د احرام دپاره د تلفظ په شرطیت کښې مذاهب:**

① دَ ائمه ثلاثه په نیز دَ محرم جوړیدو دپاره صرف نیت کافی دې په ژبه سره دَ څه ویلو ضرورت نشته دې

② امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه نیت سره تلبیه لوستل هم ضروری دی. که چرې صرف نیت ئې اوکړو او تلبیه ئې اونه لوستله نو احرام به نه شروع کیږی

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [٢٥٤٠] احرام ترلو نه مخکښې دَ خوشبوئی لګولو مسئله

٢٥٤٠-[١] () ① عَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: ②«كُنْتُ أُطَيِّبُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لِإِحْرَامِهِ قَبْلَ أَنْ يُحْرِمَ، وَلِحِلِّهِ قَبْلَ أَنْ يَطُوفَ بِالْبَيْتِ بِطِيبٍ فِيهِ مِسْكٌ، ③كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى وَبِيصِ الطِّيبِ فِي مَفَارِقِ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَهُوَ مُحْرِمٌ». (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** ① دحضرت عائشې رضی الله عنها څخه روایت دې فرمائی ② ما به د احرام څخه وړاندې رسول الله صلی الله علیه وسلم خوشبویه کولو اود طواف افاضه نه پس د احلال دپاره به ما به هغوی خوشبویه کولو .لکه چې زه اوس هم د نبی علیه السلام د سرد ویختو په لاره کښې دخوشبوئې چمک ته ګورم په داسې حال کښې چې نبی علیه السلام محرم وو

**حل اللغات:** ① أُطَيِّبُ: أَيْ: أُعَطِّرُ: عطر به مې جوړول ② وَبِيصِ الطِّيبِ: أَيْ لَمَعَانِهِ وَبَرِيقِهِ: د خوشبوئې ځلیدل او پرقیدل یعنی چمک دمک. ③ مَفَارِقِ: د مَفْرِق جمع ده، وَهُوَ وَسَطُ الرَّأْسِ: د سر په منځ کښې د ویښتو لارې ته وائی ④ مُحْرِمٌ: احرام به ئې ترلې وو یعنی په حالت د احرام کښې به وو

**په احرام کښې د خوشبوئې لګولو مسئله:** د سیده عائشې رضی الله عنها د وینا مطلب دا دې چه رسول

() اخرجه البخاری فی کتاب الحج /باب الطیب عند الإحرام. وما یلبس إذا أراد أن یحرم. ویترجل ویدهن (رقم-١٥٣٩) ومسلم فی کتاب الحج /باب الطیب للمحرم عند الاحرام (رقم-٣٧ - (١١٨٩) وابوداود فی کتاب المناسک /باب الطیب عند الإحرام (رقم-١٧٤٥) والنسائی فی کتاب مناسک الحج /باب إباحة الطیب عند الإحرام (رقم-٢٦٩٣) وابن ماجة فی کتاب المناسک /باب الطیب. عند الإحرام (رقم-٢٩٢٦)

الله ﷺ به کله د احرام ترلو اراده کوله نو د احرام د ترلو نه مخکښ به ما رسول الله ﷺ ته خوشبوئي مرله او هغه خوشبوئي به داسې وه چه په هغې کښې به مشك هم وو لهذا د دې نه دا ثابته شوه چه که هغه خوشبوئي ئې د احرام نه مخکښې لګوله او هغه خوشبوئي داسې وه چه په هغې کښې به مشك هم وو لهذا د دې نه دا ثابته شوه چه که خوشبوئي د احرام نه مخکښې اولګولې شي اود هغې اثر د احرام نه مخکښې هم باقي وي نو هیڅ باك نشته ځکه چه د خوشبوئي د احرام نه پس استعمال کول د ممنوعات احرام نه دې نه د احرام نه مخکښې پس د امام ابوحنیفه او امام احمد مسلك هم دا دې چه د احرام نه پس خوشبوئي استعمالول ممنوع دي د احرام نه مخکښې په استعمال کښې څه باك نشته خو د امام مالك او امام شافعي ﷫ په نزد د احرام نه مخکښې هم داسې خوشبوئي لګول مکروه دي چه د هغې اثر د احرام ترلو نه پس هم باقي وي.

**قوله: وَلِحِلِّهِ قَبْلَ أَنْ يَطُوفَ بِالْبَيْتِ:**

**د حدیث پس منظر:** د مذکوره جملې په مفهوم باندې د پوهیدلو نه مخکښې په دې تفصیل باندې ځان پوهول پکار دي چه د غټ اختر په ورځ باندې (یعنی په لسم د ذی الحجې حجي د مزدلفې نه منی ته راځي او هلته د جمره عقبه رمي (جمره عقبه په کانړو باندې ویشتلو) نه پس د احرام نه راوځي یعنی هغه ټولې خبرې کومې چه په حالت احرام کښې منع وې اوس جائز کیږي خو رفث (یعنی جماع کول یا د زنانه مخکښې د جماع ذکر او د شهوت خبرې کول) جائز نه دي تردې چه کله مکې ته واپس راځي او طواف افاضه اوکړي نو رفث هم جائز کیږي

**د عائشې رضی الله عنها د قول مطلب:** لهذا د عائشې ﷞ د دې جملې مراد دا دې چه رسول الله ﷺ به کله د احرام نه راوتلو یعنی د مزدلفې نه منی ته راتلو سره به د جمره عقبه نه فارغ شو خو لا به ئې اوسه پورې مکې ته راتلو سره طواف افاضه نه وو کړې نو ما به هغه وخت هم رسول الله ﷺ له خوشبوئي لګوله

**[۲۵٤۱] د تلبیه کلمات**

۲۵۴۱ - [۲] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: «سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُهِلُّ مُلَبِّدًا [۲] يَقُولُ لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ، لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ، إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ، لَا شَرِيكَ لَكَ، [۳] لَا يَزِيدُ عَلَى هَؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** [۱] ابن عمر ﷟ وایې چې ما د نبی کریم ﷺ څخه (تلبیه) داسې په اوچت آواز سره

---

(۱) اخرجه البخاري في كتاب الحج /باب من أهل ملبدا (رقم-۱۵٤۰) ومسلم في كتاب الحج /باب التلبية وصفتها ووقتها (رقم-۲۱ - (۱۱۸٤) وابوداود في كتاب المناسك . باب التلبيد (رقم-۱۷٤۷) وابن ماجة في كتاب المناسك /باب من لبد رأسه (رقم-۳۰٤۷) واحمد في المسند: ۱۳۱/۲

وريده، او هغه وخت نبي كريم ﷺ تلبيد كړي وو. [۲] لَبَّيْكَ اللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ لَبَّيْكَ إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ، يعني اى الله ﷻ زه ستا په خدمت كې حاضر يم، حاضر يم زه ستا په خدمت كې، زه ستا په خدمت كې حاضر يم، ستا هيڅوك شريك نشته حاضر يم زه ستا په خدمت كې، بيشكه ټول تعريف او ټول نعمت ستا د پاره دى، او بادشاهت هم ستا دى، ستا هيڅوك شريك نشته. [۳] نبي كريم ﷺ به د دى كلماتو څخه زيات نه ويل، بخاري، مسلم

حل اللغات: ① يُهِلُّ: أَيْ يَرْفَعُ صَوْتَهُ: په اوچت آواز سره تلبيه ونيل ② مُلَبِّدًا: هُوَ إِلْصَاقُ شَعْرِ الرَّأْسِ بِالصَّمْغِ أَوْ بِغَيْرِهِ: په سر باندې ګوند يا ګل خطمي وغيره لګول چه د خاورو نه، حشرات الارض نه او د نمر د ګرمى نه بچ شى

تسهيلات: قوله: مُلَبِّدًا:

د تلبيه معنى او حكم: دا د تلبيدنه دې د سرويښته يوځائى كول راغونډول او د چوټه كولو په معنى كښې دې. د دې مفهوم دا دې چه ويښته د ګډوډ كيدو نه بچ كولو د پاره دا د دوړو نه محفوظ كولو د پاره په ګوند يا خطمي يا څه بل څه په ذريعه يوځائى كول او راغونډولو ته تلبيد وائى. د شوافع په نيز د محرم د پاره داسې كول جائز دى. امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى چه داسې كولو سره دم لازم راځى ځكه چه دا د سر د پټولو په حكم كښې دې. كه په خوشبودار څيز سره سر پټ كړې شونودوه دمونه به راځى. په زير بحث حديث كښې كيدې شى رسول الله ﷺ د څه عذر د وجې نه داسې كړې وو يا تلبيد په خپله لغوى معنى كښې دې چه صرف د يوځائى كولو او راغونډولو په معنى كښې دې د پټولو په معنى كښې نه دې

قوله: لَبَّيْكَ:

د لبيك مخاطب څوک دې؟: دا لفظ د چا د راغوښتو په جواب كښې راځى او اوس دلته راغوښتونكې څوك دې د كوم په جواب كښې چه حاجى صاحب وائى چه زه حاضريم بار بار حاضريم نو واضح دا دى چه دا د ابراهيم عليه السلام د آواز كولو په جواب كښې دى حضرت ابراهيم عليه السلام چه كله د بيت الله شريف آبادول پوره كړل نو په جبل ابوقبيس باندې اودريدو سره ئى خلقو ته داسې آواز اوكړو (ياايها الناس ان ربكم اتخذ بيتا فحجوه) په دې آواز باندې چه چا هم لبيك ونيلې دې نوهغه به خامخا حج له ځى بعض علماؤ ليكلى دى چه دا آواز جبرائيل عليه السلام كړې وو بعض وائى چه پخپله هم الله تعالى راغوښتى دى رومبى قول واضح دې

قوله: مُلَبِّدًا:

د تلبيد مطلب: تلبيد كول دا دى چه محرم (احرام ترونكې) د خپل سر په ويښتو كښې ګوند يا خطمي يا نكريزې يا بل څه څيز اولګوى چه ويښته خپل مينځ كښې يو ځائې وى او اينځلى. چه خاورې او دوړه پكښې نه اينځلى او د سپږو نه محفوظ وى.

**د تلبيه په حکم کښې مذاهب:**

تلبيه يعنى (لبيك) وئيلو کښې د علماء کرامو اختلافي اقوال دي.

①د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد د احرام د صحت دپاره تلبيه شرط دې

② امام مالک رحمه الله فرمائى چه تلبيه واجب نه ده خو د تلبيه د ترک کولو د وجې نه دم، څاروی ذبح کول، لازميږی ③د امام شافعي رحمه الله په نزد تلبيه سنت ده د هغې د ترک کولو په صورت کښې دم نه لازميږی

**د تلبيه په کلماتو کښې د کمی زياتی حکم:**

د حديث د آخری الفاظو مطلب دا دې چه رسول الله ﷺ به په تلبيه کښې اکثر دومره الفاظ وئيل او په رواياتو کښې د تلبيه د دې الفاظو نه علاوه نور الفاظ هم منقول دی پس دې باره کښې مسئله دا ده چه د تلبيه کوم الفاظ دلته په حديث کښې نقل کړې شوې دی په هغې کښې کمې کول خو مکروه دی زيادت مکروه نه دې (يعنى د تلبيه په الفاظو کښې هغه زيادت مکروه نه دې کوم چه د رسول الله ﷺ اود صحابه کرام رضي الله عنهم نه منقول دې) بلکه مستحب دې

**تلبيه په اوچت آواز سره د وئيلو حکم:** د حديث نه دا مسئله هم واضحه شوه چه تلبيه په اوچت آواز وئيل پکار دی پس د ټولو علماء کرامو په نزد په اوچت آواز سره لبيک وئيل مستحب دی.

**[٢٥٤٢] حضوراکرم ﷺ تلبيه دکوم ځائی نه کړې وه؟**

٢٥٤٣-[٣] (١)① وَعَنْهُ قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا أَدْخَلَ رِجْلَهُ فِي الْغَرْزِ،② وَاسْتَوَتْ بِهِ نَاقَتُهُ قَائِمَةً، أَهَلَّ مِنْ عِنْدِ مَسْجِدِ ذِي الْحُلَيْفَةِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** ① ابن عمر رضي الله عنهما وايي نبی کريم ﷺ چې به خپله پښه په رکاب کې کيخو دله، ② او اوښه به نبی کريم ﷺ آخستو سره ودريده نو نبی کريم ﷺ به د ذوالحليفه مسجد ته نږدې تلبيه ووېله (يعني په اوچت آواز به يې لبيک ويلې) بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① الْغَرْزِ: أَيِ الرِّكَابِ: پاندان (سورلۍ ته د ورختلو دپاره د خپې ايخودلو ځائې چه دا به د څرمنې يا د لرګی نه جوړ وو) ② اسْتَوَتْ: سورلۍ به نيغه اودريدله (او نبی عليه السلام به دهغې په شا باندې ناست وو) ③ أَهَلَّ: أَيْ رَفَعَ صَوْتَهُ بِالتَّلْبِيَةِ: په اوچت آواز به ئې تلبيه شروع کړه

**تسهيلات: قوله: أَهَلَّ مِنْ عِنْدِ مَسْجِدِ ذِي الْحُلَيْفَةِ:**

**تلبيه کله اوئيلې شی؟:** رسول الله ﷺ د حجة الوداع په موقع باندې چه کله د سفر توښه اوتړله او د ماسپخين مونځ په مدينه منوره کښې لوستلو سره روان شو، د مازيګر مونځ ئې

---

(١) اخرجه البخاري فى كتاب الجهاد والسير /باب الركاب والغرز للدابة (رقم-٢٨٦٥) ومسلم فى كتاب الحج /باب الإهلال من حيث تنبعث الراحلة (رقم-٢٧ - (١١٨٧) واحمد في المسند:٥/٣

ذوالحليفه ته رسيدلو سره ادا كړو كوم چه د اهل مدينه دپاره ميقات دي، شپه ئې هم هلته تېره كړه او بيا ئې سحر احرام اوتړلو

**د تلبيه د وئيلو محل كښې هروایاتو اختلاف:** ① د دې حديث نه خو دا معلومه شوه چه رسول الله ﷺ د اوښ په شا باندې د كيناستلو او د اوښ د اودريدلو نه پس لبيك اووې

② په يوبل روايت كښې منقول دي چه د احرام دپاره د نفلو په نيت دوه رکعته مونځ كولو نه پس ئې لبيك اووې

③ هم دغه شان يو روايت دا بيانوي چه رسول الله ﷺ مقام بيداء ته رسيدلو سره كوم چه د يو اوچت ځائې نوم دي لبيك اووې دغه شان د لبيك وئيلو د وخت په سلسله كښې درې قسمه روايتونه منقول دي،

**د تلبيه د شروع په وخت كښې مذاهب:**

①پس امام شافعی رحمه الله خو په اول روايت باندې كوم چه دلته نقل كړې شوې دې عمل كولو سره وائي چه په اوښ باندې (يا چه كومه سورلى هم وى په هغې باندې) كيناستلو سره دې لبيك اوئيلې شى،

② امام ابوحنيفه، امام مالك او امام احمد رحمهم الله دويم روايت اختيار كړې دې، لهذا د دې درې واړو امامانو په نزد مستحب دا ده چه د دوه رکعته مونځ كولو نه پس د احرام نيت اوكړې شى او بيا هم هلته په مصلى باندې كيناستلو سره لبيك اوئيلې شى هم په دې بنياد باندې هدايه دا مسئله ليكلې ده چه تلبيه د مونځ كولو نه پس كول پكار دى او كه څوك ئې په اوښ باندې كيناستلو سره اوكړى نو دا جائز ده خو د مانځه نه پس ﴿ لبيك ﴾ وئيل افضل دى.

**د روایاتو په مینځ کښې تطبیق:** اوس د دې درې واړو روايتونو تضاد لره په دې تطبيق سره لرې كړئ چه رسول الله ﷺ مونځ كولو سره په مصلى باندې كيناستلو سره لبيك اووې بيا چه كله په اوښه باندې كيناستلو نو هغه وخت ئې هم لبيك اووې او د هغې نه روستو چه كله مقام بيداء ته اورسيدو نو هلته ئې بيا لبيك اووې. پس علماء كرامو هم په دې وجه ليكلې دى چه د حالت، وخت او ځائې د تغيرات په وخت د لبيك تكرار مستحب دې بهر حال رسول الله ﷺ دغه شان درې كرته لبيك اوئيلو او كوم راوى چه ترې چرته لبيك اوريدلې دې هغه دا اوګنړله چه رسول الله ﷺ د هم هغه ځائې نه ﴿ لبيك ﴾وئيل شروع كړل هم په دې وجه هر راوى د خپلو اوريدلو مطابق ذكر كړل، ددې تطبيق او توجيه بنياد د ابن عباس رضي الله عنهما هغه روايت دې كوم چه شيخ عبدالحق محدث دهلوى رحمه الله د شرح كتاب خرقى په حوالې سره نقل كړې دې عباراتنا شتى وحسنك واحد وكل الى ذاك الجمال يشير

## [۲۵۴۲] دحج تلبيه په زوره ويل

۲۵۴۲-[۴] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: «خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَصْرُخُ بِالْحَجِّ صُرَاخًا» (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه** [۱] ابوسعيد خدري ﷺ وايي چې مونږ د نبی کريم ﷺ سره ملګري (د حج په سفر کې) داسې روان شو، چې مونږ به د حج د پاره چغې وهلې (يعنې د حج د پاره به مو په اوچت آواز لبيك وايه) مسلم

**حل اللغات** ① نَصْرُخُ: أَيْ نَرْفَعُ أَصْوَاتَنَا بِالتَّلْبِيَةِ: تلبيه به مو په چغو چغو يعنی اوچت آواز سره وئيله ② صُرَاخًا: دا مفعول مطلق دې چه ښه په اوچت آواز سره

**تسهيلات:**

**قوله** نَصْرُخُ بِالْحَجِّ صُرَاخًا:

**په لفظ صراخ سره د استدلال عدم صحت:** چغو سورو ته وانی مطلب دادې چه مونږ به واضح الفاظو کښې په اوچت آواز اعلان کولو چه مونږ دَ حج دپاره ځو ښکاره خبره ده چه صحابه کرام به هم دَحج دپاره تلل. حضورپاك هم په حجة الوداع کښې دَحج په اراده تلې وو

**د تلبيه ذکر او د حج السلام:** صرف د حج ذکر (چونکه د دې حديث نه فهميږی چه رسول اللهﷺ افراد کړې وو او حال دا چه د نورو روايتونو نه قران يا تمتع کول ثابتيږی په دې وجه د دې تضاد د لرې کولو دپاره دا توجيه بيان کړې شوه) په دې وجه اوکړې شو چه حج اصل او مقصود اعظم دې او بعض حضرات دا وائی چه دا خبره راوی د خپل ځان باره کښې کړې ده زيات نه زيات د دې تعلق د هغه خلقو سره هم کيدې شی کوم چه د راوی په شان صرف د حج دپاره تلبيه کوله، يا په زيات وضاحت سره داسې بيان کړئ چه دا حديث صرف د هغه خلقو حال بيانوی چا چه د افراد احرام تړلې وو. هر چه د رسول اللهﷺ تعلق دې نو د هغوی په باره کښې حديث ساکت دې چه د دې وضاحت به د بل روايت نه کيږی په دې وجه دا روايت د راوران روايت منافی نه دې

## [۲۵۴۴] دَ حج قران ثبوت

۲۵۴۳-[۵] (۲) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ: قَالَ: كُنْتُ رَدِيفَ أَبِي طَلْحَةَ [۲] وَإِنَّهُمْ لَيَصْرُخُونَ بِهِمَا جَمِيعًا الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ).

**ترجمه** [۱] انس ﷺ وايي چې زه په سوارلۍ د ابوطلحه ﷺ وروسته ناست وم، [۲] او اکثرو

---

(۱) اخرجه مسلم فی کتاب الحج /باب التقصير فی العمرة (رقم-۲۱۱ - (۱۲۴۷)) واحمد فی المسند ۵/۳

(۲) اخرجه البخاری فی کتاب الحج /باب التمتع والإقران والإفراد بالحج. وفسخ الحج لمن لم يكن معه هدی (رقم-۱۵۶۲) ومسلم فی کتاب الحج /باب بيان وجوه الإحرام. وأنه يجوز إفراد الحج والتمتع والقران. وجواز إدخال الحج علی العمرة. ومتی يحل القارن من نسکه (رقم-۱۱۸ - (۱۲۱۱)) وابوداود فی کتاب المناسک /باب فی إفراد الحج (رقم-۱۷۷۹)

صحابه وو ﷺ د دواړو خیزونو (یعني د حج او عمرې) د پاره چغې وهلې (یعني په اوچت آواز بې لبیک ویل) بخاري

**حل اللغات:** ① رَدِيفَ: أَيْ رَاكِبًا خَلْفَ ظَهْرِهِ: په سورلۍ باندې چه شا ته کوم کس ناست وی هغې ته ردیف وائی

**تسهیلات: قوله: الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ:**

**د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د قارن کیدلو دلیل:** دحضرت انس رضی الله عنه ددې حدیث نه په واضحه توګه معلومیږی چه اکثر صحابه کرامو د حجة الوداع په موقع حج قران اداکړې وو اوس دا معلومول دی چه حضورپاك هم قارن وو که نه؟ نوهغه ددې نه معلومیدې شي چه صحابه کرامو به هم هغه عمل اختیارولو کوم چه به دحضورپاك وو دا ممکن نه دی چه صحابه کرامو ته دې معلومه وی چه حضورپاك مفرد یا متمتع دې اوصحابه کرامو به د دې نه بل څه صورت اختیارکړې وی. کله چه صحابه کرامو حج قران اختیارکړو لکه څنګه چه زیربحث حدیث کښې دی نودا ددې خبرې دلیل دې چه حضورپاك هم حج قران اداکړې وو هم دا احنافو افضل حج ګرځولې دې. وړاندې تفصیل راځي

**[٢٥٤٥]په حجة الوداع کښې حضورپاك کوم قسم حج کړې وو؟**

| ٢٥٤٥ ـ [٦] ( ) ① وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: «خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ ② فَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ، وَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِحَجٍّ وَعُمْرَةٍ، وَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِالْحَجِّ ③ وَأَهَلَّ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِالْحَجِّ ④ فَأَمَّا مَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ فَحَلَّ، ⑤ وَأَمَّا مَنْ أَهَلَّ بِالْحَجِّ أَوْ جَمَعَ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَلَمْ يَحِلُّوا حَتَّى كَانَ يَوْمُ النَّحْرِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). |
|---|

**ترجمه** ① أم المؤمنین بي بي عائشه رضی الله عنها وایي چې مونږ د حجة الوداع په کال د نبی کریم ﷺ سره ملګرې د حج د پاره روان شو. ② په مونږ کې بعضې خو هغه وو. چې هغوئ واخی د عمرې د پاره احرام وتړلی، اوځینې هغه ووچې دحج اوعمرې دواړواحرام یې تړلې وو .اوځینې هغه ووچې یواځې دحج احرام یې تړلې وو③ او نبی کریم ﷺ یواځې د حج احرام تړلې وو. ④ نو چا چې یواځې د عمرې احرام تړلی وو، هغه خو حلال (سو یعنی د احرام څخه بهر شو)⑤ او چا چې یواځې د حج یا د حج او عمرې احرام تړلی وو، هغه حلال نه شوه، تر دې چې د قربانۍ ورځ راغله. بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① حَجَّةِ الْوَدَاعِ: دا د باب تفعیل نه مصدر تَوْدِيعًا وَوَدَاعًا دې درخصت کولو په معنی کښې دې، چونکه دا د نبی علیه السلام آخری حج وو نو لکه چه خلق ئې رخصت کړل یا دخلقو نه ئې رخصت واخستلو څکه ورته حجة الوداع وائی

) اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب کیف تحل الحائض والنفسا رقم الحدیث ٥٥٦ ومسلم فی کتاب الحج /باب بیان وجوه الإحرام رقم الحدیث ٢٩٦٨

**تسهیلات: قوله عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ:**

**د حجة الوداع وجه تسمیه:** وداع مصدر دې په دې کښې په واؤ باندې فتحه هم ده بیا داد باب تفعیل مصدر توديعاً ووداعاً دې د رخصت کولو په معنی کښې دې ملاعلی قاری ﷫ لیکلی دی چه په واؤ باندې کسره هم ده دغه وخت به دا د باب مفاعله مصدر وی موادعة ووداعاً چه د یوبل د رخصت کولو په معنی کښې دې ملاعلی قاری ﷫ فرمائی چه حضوراکرم په دې موقعه باندې خپل امت رخصت کړو یاحرم شریف ئې رخصت کړو که چرې د باب مفاعله نه واخستې شی نوتولو یوبل رخصت کړو. بهرحال حضورپاک د هجرت نه پس دا رومبې او آخری حج اداکړو او تقریباً ۹۰ ورځې پس د دې دنیا نه رخصت شو

**د حج اقسام:** د حج کونکو درې اقسام دی:

① مفرد، مفرد هغه ته وائی کوم چه صرف د حج احرام اوتړی پس صرف د حج احرام تړلو او صرف په حج باندې اکتفاء کونکی ته افراد وائی،

② قارن، قارن هغه ته وائی کوم چه د حج او عمرې دواړو احرام اوتړی، اول عمره اوکړی او بیا حج اوکړی نود حج او عمرې احرام یو ځائې تړلو سره اول حج او بیا عمره کولو ته قران وائی

③ متمتع، متمتع هغه ته وائی کوم چه د حج په میاشتو کښې د میقات نه د عمرې احرام اوتړی او د عمرې افعال ادا کړی بیا که هدی (د قربانۍ ځاروې) ئې ځان سره راوستلې وی نو احرام ئې تړلې وی او که هدی ئې ځان سره نه وی راوستلې نو د احرام نه دې راوځی او په مکه مکرمه کښې دې مقیم وی چه کله د حج ورځې راشی نو د حج احرام دې د حرم نه اوتړی او حج دې اوکړی. پس د حج په میاشتو کښې اول د عمرې احرام تړلو سره د عمرې نه فارغ کیدو نه پس وطن ته د تلو نه مخکښې بغیر د احرام پرانستلو (که د قربانۍ ځاروې ئې ځان سره راوستلې وی) یا احرام پرانستلو سره بیا د حج په ورځو کښې د حرم نه د حج احرام تړلو سره حج کولو ته تمتع وائی

**د رسول الله صلی الله علیه و سلم د حجة الوداع په نوعیت کښې د روایاتو اختلاف:**

اوس سوال دا دې چه رسول الله ﷺ په حجة الوداع کښې د کوم قسم دپاره احرام تړلې وو، آیا رسول الله ﷺ مفرد وو یا قارن یا متمتع؟ علماء لیکی چه دې باره کښې مختلف احادیث منقول دی

① بعضې احادیث نه خو دا معلومیږی چه رسول الله ﷺ مفرد وو پس چه کوم حدیث نقل کړې شوې دې دا هم د هغې نه دې

② د اکثر احادیث نه دا ثابتیږی چه رسول الله ﷺ قارن وو

③ او د بعض احادیثو نه ثابتیږی چه رسول الله ﷺ متمتع وو

وس په دې خبره باندې دَ ټولو ائمه حضراتو اتفاق دې چه دَحج دا دريواړه اقسام جائز دی کوم مسلمان چه کوم يو قسم اختيارول غواړی اختيارولې شی. اختلاف په دې کښې دې چه په دې اقسام دَ حج کښې کوم يو قسم دَ حج افضل دې. دَ افضليت دا اختلاف په رواياتو باندې مبنی دې چه په حجة الوداع کښې دَ حضورپاك حج دکوم قسم وو حضورپاك کوم يو قسم دَحج اختيار کړې وو هم هغه به دَ ټولو نه افضل وی

**د حج د اقسام ثلاثه په افضليت کښې درې مذاهب:**

① دَ امام احمد بن حنبل رحمه الله په نيز دَ ټولو نه افضل حج تمتع دې بيا افراد دې او بيا قران دې.

② دَ امام مالك رحمه الله او امام شافعی رحمه الله په نيز دَ ټولو نه افضل حج افراد دې بيا تمتع دې بيا قران دې

③ دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دَ ټولو نه افضل حج قران دې بيا تمتع دې او بيا افراد دې

**د امام احمد دلائل:**

① دَ حضرت عائشه رضي الله عنها نه هم څه روايات نقل دی دکوم نه چه معلوميږی چه حضورپاك په حجة الوداع کښې متمتع وو لهذا تمتع افضل دې لکه څنګه چه شوافع وئيلی دی چه حضوراکرم مفرد وو لهذا حج افراد افضل دې.

② وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُمَا قَالَ تَمَتَّعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ بَدَأَ فَأَهَلَّ بِالْعُمْرَةِ ثُمَّ أَهَلَّ بِالْحَجِّ، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**د امام شافعی دلائل:** ① امام شافعی رحمه الله او امام مالك رحمه الله خپل مسلك راجح ثابتولو دَپاره زير بحث حديث دَ حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه استدلال کړې دې په کوم کښې چه "واهل رسول الله ﷺ بالحج" الفاظ راغلی دی. هغوی فرمائی چه ظاهر هم دغه دی دَ حج نه افراداً مراد دې ځکه چه دَمطلق حج ذکر دې دَ قران او تمتع هيڅ اشاره نشته دې. دَدې قسم ډير احاديث راغلی دی.

② هغه احاديث هم د دوی مستدل دی په کومو کښې چه دَ افراد ذکر دې. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی "ان رسول الله ﷺ افرد الحج" [رواه مسلم]

③ ((عن جابر انه قال اقبلنا مهلين مع رسول الله صلى الله عليه وسلم بحج مفرداً الخ)) دَ حضرت جابر رضي الله عنه په روايت کښې دا الفاظ دی. [مسلم:١/٣٨٩.]

**د احنافو دلائل:** ① ((عن انس رضي الله عنه قال سمعت رسول الله ﷺ اهل بهما لبيك حجة وعمرة)) (رواه مسلم)

② ((عن عمران بن حصين قال ان رسول الله ﷺ جمع بين حج وعمرة)) (رواه مسلم) [مسلم: ١/٤٠٢.

③ بخاری شريف کښې دَحضرت عمر رضي الله عنه نه دا حديث نقل دې چه حجة الوداع کښې کله حضوراکرم ﷺ وادی عقيق ته اورسيدو نو جبرائيل امين او فرمائيل "صل فی هذا الوادي

المبارك وقل عمرة عمرة في حجة" دا الفاظ په واضحه توګه باندې په قران باندې دلالت کوی او س په دې کښې شك نشته دې چه حضورپاك په حجة الوداع کښې مختلف تلبيې ونيلې دی په دې کښې د افراد دپاره هم دی تمتع دپاره هم او د قران دپاره هم دی د کوم نه چه د افراد قران او تمتع دريوارو ثبوت ملاويږی

③ د حضرت علی رضی الله عنه په قصه کښې دی چه هغوی د حجة الوداع په موقع باندې د يمن نه تشريف راوړو نوحضورپاك تپوس اوکړو چه تا څنګه احرام تړلې دې هغوی اوفرمائيل چه ما دا نيت کړې چه کوم نيت د رسول الله ﷺ وی هم هغه نيت زما هم دې حضورپاك په جواب کښې اوفرمائيل ((قال فانی سقت الهدي وقرنت)) (رواه ابوداؤد) يعنی ما خپل ځان سره دهدی څاروي راوستې دې اوما قران کړې دې

دلته دا خبره هم يقينی ده چه حضورپاك په مدنی ژوند کښې صرف يوحج کړې دې په دې مختلف رواياتو کښې تطبيق کول ضروری شوی دی ددې تطبيق دپاره ډير توجيهات مخې ته راغلی دی اودهرمسلك والو داسې توجيهه کړی دی دکوم نه چه دهغوی مسلك ثابت شوې دې اود بل مسلك په رواياتو کښې تاويل کړې شوې دې چنانچه د احناف په نيز يوڅو توجيهات داسې دی

① حضورپاك په شروع کښې خپل احرام مبهم ساتلې وو په دې وجه ئی کله د افراد تلبيه ونيله اوکله ئی د تمتع ونيله ليکن چه کله حضورپاك وادی عقيق ته اورسيدو نوجبرائيل امين هغوی ته د قرآن حکم ورکړو په دې وجه که په شروع کښې حضورپاك د افراد يا تمتع تلبيه ونيلې هم ده نود هغې اعتبارنشته نور ائمه اودهغوی ملګری هم ددې اقرارکوی چه حضورپاك په شروع کښې د افراد احرام اوتړلو ليکن روستو حضورپاك بيا قارن شوې وو علامه نووی رحمه الله قاری عياض رحمه الله ابن قيم رحمه الله اوامام احمد رحمه الله هم دغه وائی امام احمد رحمه الله خودا سې تصريح فرمائيلې ده "لاشك انه ﷺ كان قارنا والمتعة احب الى".

② حضورپاك په حقيقت کښې قارن وو ليکن صحابه کرامو ته ئی د حج افراد اوحج تمتع کولو اجازت ورکړې وو څکه چه د امت دپاره په دريوارو طريقو باندې د حج کولوجواز ملاؤ شی د حضرت عائشه رضی الله عنها زير بحث حديث په دې باندې واضح دليل دې اوس چه حضورپاك کوموکسانوته د افراد يا دتمتع اجازت ورکړو نوهغوی د دغه قسم حج نسبت هم د حضورپاك طرف ته اوکړو چه حضورپاك يامفرد وو يا متمتع وو نودا نسبت مجازی دې اوحقيقی نسبت هم هغه دې چه حضورپاك قارن وو دغه شان جواب د نورو مسلکونووالاهم اختياروی

③ دا د اولی اوغيراولی اختلاف دې چاچه په کوم باندې عمل اوکړو جائز دی لهذا په يوحديث کښې د تکلفانه تاويل حاجت نشته اونه د جواب ورکولو ضرورت دې په شريعت کښې وسعت دې د هرسړی جدا حالت وی نوهرسړې دخپل حالت مطابق افراد يا تمتع يا

قرن اخيستل شي دحضورپاك ذات مبارك دكمالاتو مجموعه وه دير ممكن دى چه حضورپاك هرقسم حج هم د يو په ضمن كښې اداكړي وى اومكمل فضيلت ئې حاصل كړو د امت دپاره هم گنجائش پيداشو زه هم دا راجح گنړم

⊙ علامه ابن همام رحمه الله او ابن نجيم حنفي رحمه الله فرمائي دقارن دپاره جائزدى چه هغه په دريواړوطريقو تلبيه وائي نود رواياتو اختلاف د سماع په وجه راغلي دي چاچه صرف د حجة لفظ اوريدلي نوهغه افراد گرخولي دي چاچه د تمتع الفاظ اوريدلى هغه تمتع گرخولي اوچاچه دقران الفاظ اوريدلى هغه قران نقل كړي دي

[٢٥٤٦] د حضورپاك ﷺ حج

٢٥٤٦–[٧] (١) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: «تَمَتَّعَ رَسُولُ اللهِ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ، بَدَأَ فَأَهَلَّ بِالْعُمْرَةِ ثُمَّ أَهَلَّ بِالْحَجِّ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** ١ ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې نبى كريم ﷺ په حجة الوداع كې عمره د حج سره يو ځاى كړي تمتع وكړله (يعني فائده يي واخسته) ٢ په دي طور چې نبى كريم ﷺ د عمري د احرام سره ابتداء وكړه او بيا د حج احرام يي وتړلى، دغه شان نبى كريم ﷺ حج او عمره يو ځاى كړل او قارن شو، بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① تَمَتَّعَ: دتمتع معنى ده فائده اخستل، دلته تري حج تمتّع مراد دي يعنى عمره ئې دحج سره يوځاى اوكړه. ② بَدَأَ: شروع ئې اوكړه (يعنى دحج اركان اداكول ئې شروع كړل)

# الْفَصْلُ الثَّانِي

[٢٥٤٧] احرام نه مخكښې غسل كول مستحب دى

٢٥٤٧–[٨] (١) عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَجَرَّدَ لِإِهْلَالِهِ وَاغْتَسَلَ (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ)

**ترجمه** ١ د زيد بن ثابت رضي الله عنه په باره كې روايت دى چې هغه وليدل چې نبى كريم ﷺ د خپل احرام د پاره گنډل شوى جامى ليرى كړى او غسل يي وكړي، ترمذي، دارمي

**حل اللغات:** ① تَجَرَّدَ: أَيْ عَنِ الْمَخِيطِ: يعنى حضورپاك ﷺ د گنډلي شوي كپړو نه او خپل لنگ نه جدا شو اوغسل كولوسره ئې بيا احرام اوتړلو ② لِإِهْلَالِهِ: أَيْ لِإِحْرَامِهِ: دخپل احرام د پاره (يعنى احرام ئې اوتړلو)

---

[١] اخرجه البخاري فى كتاب الحج /باب من ساق البدن معه (رقم-١٦٩١) ومسلم فى كتاب الحج /باب وجوب الدم على المتمتع، وأنه إذا عدمه لزمه صوم ثلاثة أيام فى الحج وسبعة إذا رجع إلى أهله (رقم-١٧٤ - (١٢٢٧) وابوداود فى كتاب المناسك /باب فى الإقران (رقم-١٨٠٥) والنسائي فى كتاب مناسك الحج /باب التمتع (رقم-٢٧٣٢) واحمد فى المسند: ١٣٩/٢

[١] اخرجه الترمذي فى كتاب الحج عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى الاغتسال عند الإحرام (رقم-٨٣٠)

**تسهيلات: قوله: لِإِهْلَالِهِ.**

**احرام نه مخکښې د غسل کولو حکم:** دَ احرام نه مخکښې غسل کول مسنون دي او که چرې دَ دې موقع نه ملاوېږي نو بیا اودس کول کافی دی. دَحیض او نفاس والا ښځې له هم پکار دي چه هغه غسل کولو سره دَ احرام نیت اوتړي لیکن دوه رکعته نفل دې نه کوي او عمره دې نه کوي. کله چه ایام تیر شي نو بیا دې غسل اوکړي خان دې پاك کړي او عمره دې اوکړي. که دَعرفه په وخت بیماري شروع شي نو دا ښځه دې وقوف عرفه اوکړي؛ مزدلفه قیام دې هم اوکړي او په جمرات کښې دې کانړي هم اوولي مګر طواف زیارت دې په حیض کښې نه کوي ځکه چه تر دغه وخته پورې دا ناپاکه ده جمات ته نه شي تللې او دَحیض په حالت کښې دَهغې غسل کول غسل طهارت نه دې بلکه غسل نظافت دې.

**[٢٥٤٨] دَ تلبید ذکر**

٢٥٤٨-[٩] (١) ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ② -لَبَّدَ رَأْسَهُ بِالْغِسْلِ (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ).

**ترجمه** ① ابن عمر ﷺ وايي چې نبی کریم ﷺ د خپل سر مبارك وېښتان د هغه څيزونو په ذريعه جم کړل، چې په هغه سر منځل کېږي لکه خطمي وغيره. ابوداؤد.

**حل اللغات:** ① لَبَّدَ رَأْسَهُ: هُوَ إِلْصَاقُ شَعْرِ الرَّأْسِ بِالصَّمْغِ أَوِ الْخِطْمِيِّ: په سر باندې ګوند یا ګل خطمی وغیره لګول چه د خاورو نه، حشرات الارض نه او د نمر د ګرمئ نه بچ شی.

**تسهيلات: قوله: بِالْغِسْلِ:**

**دغسل معنی:** په غین باندې کسره ده هرهغه څيزته وئیلی شی په کوم سره چه سر وينځلې شی لکه خطمی وغیره مایغسل به من الخطمی وغیره.

**[٢٥٤٩] تلبيه په اوچت آواز سره وئيل پکار دي**

٢٥٤٩-[١٠] (٢) ① وَعَنْ خَلَّادِ بْنِ السَّائِبِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② أَتَانِي جِبْرِيلُ فَأَمَرَنِي أَنْ آمُرَ أَصْحَابِي أَنْ يَرْفَعُوا أَصْوَاتَهُمْ بِالْإِهْلَالِ أَوِ التَّلْبِيَةِ (رَوَاهُ مَالِكٌ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ).

**ترجمه** ① خلاد بن سائب د خپل پلار بزرګوار څخه نقل کوي چې هغه وویل نبی کریم ﷺ وفرمایل ② چې ماته جبرائیل ﷺ راغلو، او ماته يې دا امر وکړي چې زه خپلو اصحابو ﷺ ته د دې خبرې حکم ورکړم چې هغه په اهلال یا په تلبیه سره خپل آوازونه پورته کړي. مالك، ترمذي، ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه، دارمي

**حل اللغات:** ① بِالْإِهْلَالِ: په اوچت آواز سره تلبیه وئیل ② التَّلْبِيَةِ: تلبیه یعنی لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ..الخ. دعا وئیل

(١) اخرجه ابو داود فی كتاب المناسک، باب التلبید (رقم-١٧٤٨)
(٢) اخرجه ابو داود فی والترمذی فی كتاب المناسک، باب التلبید (رقم-١٧٤٨)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ يَرْفَعُوا أَصْوَاتَهُمْ:

**سړو دپاره تلبيه په اوچت آواز ويل:** په اوچت آواز سره لبيك ونيل د سړو دپاره مستحب دي ليکن آواز به دومره نه اوچتوي چه هغې سره چاته تکليف اورسيږي. ښځې به دومره رو آواز سره لبيك وائي چه هغوي ئې په خپله واوري، بل چاته دهغوي آواز اونه رسيږي

**قوله:** بِالْإِهْلَالِ أَوِ التَّلْبِيَةِ:

**«..او.» کلمې وضاحت:** په دې کښې حرف «او» د راوي شک ښکاره کوي چه نبي کريم ﷺ ـخو بالاهلال اوفرمائيل، يائې بالتلبية اووئيل، معنی د دواړو يوشان ده. يعنی لبيك ونيل

**[٢٥٥٠] دَلبيک اللهم لبيک عظمت او فضيلت**

٢٥٥٠ - [١١] ()[١] وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٢] - «مَا مِنْ مُسْلِمٍ يُلَبِّي إِلَّا لَبَّى مَنْ عَنْ يَمِينِهِ وَشِمَالِهِ مِنْ حَجَرٍ، أَوْ شَجَرٍ، أَوْ مَدَرٍ [٣] حَتَّى تَنْقَطِعَ الْأَرْضُ مِنْ هَاهُنَا وَهَاهُنَا» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ)..

**ترجمه** [١] سهل بن سعد رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هر کله چې يو مسلمان لبيك وايي، نو د هغه د ښي او چپ طرف ته هر شي که کاڼي وي يا ونه يا لوټي تول لبيك وايي. [٣] تر دې چې دهغه طرف ځخه (يعني د هغه د ښي طرف ټوله زمکه) او د دې طرف ځخه (يعني د هغه د چپ طرف ټوله زمکه) په هغه کې شامله وي، ترمذي، ابن ماجه

**حل اللغات:** ① يُلَبِّي: تلبيه ونيلونه وائي. ② مَدَر: لوټي.

**تسهيلات: قوله:** لَبَّى:

**دتلبيه فضيلت:** په دې حديث کښې دَتلبيه ونيلو عظيم فضيلت بيان دې چه دکائنات ذره ذره دَ دغه سړي تلبيه ونيلوکښې شريکيږي ښکاره خبره ده چه دَ کائنات دَ تلبيه ونيلو ثواب به دغه سړي ته ملاويږي

**[٢٥٥١] په ذوالحليفه کښې دوه رکعته مونځ کول**

٢٥٥١ - [١٢] ()[١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَرْكَعُ بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ، [٢] ثُمَّ إِذَا اسْتَوَتْ بِهِ النَّاقَةُ قَائِمَةً عِنْدَ مَسْجِدِ ذِي الْحُلَيْفَةِ [٣] أَهَلَّ بِهَؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ وَيَقُولُ لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ، لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ، وَالْخَيْرُ فِي يَدَيْكَ، لَبَّيْكَ وَالرَّغْبَاءُ إِلَيْكَ وَالْعَمَلُ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ وَلَفْظُهُ لِمُسْلِمٍ).

) اخرجه الترمذي في كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب في المستحاضة أنها تجمع بين الصلاتين بغسل واحد(رقم-١٢٨)

) اخرجه البخاري في كتاب الحج /باب التلبية (رقم-١٥٤٩) ومسلم في كتاب الحج /باب التلبية وصفتها ووقتها (رقم-١٩ - (١١٨٤)

**ترجمه** [۱] ابن عمر ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ به (احرام تړلو په وقت) په ذوالحليفه کې دوه رکعاته مونځ کولی. [۲] بيا چې د ذو الحليفه د مسجد نزدې اوښه به نبی کريم ﷺ آخستو سره ودريدله. [۳] نو نبی کريم ﷺ به دا کلمات (يعني د لبيک مشهور کلمات چې مخکې تير شوی دی) په اوچت آواز ويل. او بيا دا کلمات به يې نور پسې ويل لَبَّيْكَ اللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ وَالْخَيْرُ فِي يَدَيْكَ لَبَّيْكَ وَالرَّغْبَاءُ إِلَيْكَ وَالْعَمَلُ، حاضر يم ستا په خدمت کې اې الله ﷻ ستا په خدمت کې حاضر يم، حاضر يم ستا په خدمت کې او نيک بختی حاصلوم. ستا په خدمت کی. او خير ستا په لاس کې دی. حاضر يم ستا په خدمت کی. او رغبت او توجه ستا طرف ته ده. او عمل ستا د پاره دی. دا روايت بخاري او مسلم نقل کړی دی خو الفاظ د مسلم دي

**حل اللغات:** ① لَبَّيْكَ: أَيْ أَجَبْتُ لَكَ إِجَابَةً بَعْدَ إِجَابَةٍ: يعنی زه بار بار آوريدو د پاره حاضر يم ② وَسَعْدَيْكَ أَيْ سَاعَدْتُ طَاعَتَكَ مُسَاعَدَةً بَعْدَ مُسَاعَدَةٍ: يعنی زه بار بار د خدمت او اطاعت د پاره موجود يم ③ الْخَيْرُ فِي يَدَيْكَ: أَيْ مُنْحَصِرٌ فِي قَبْضَتِكَ: خير ټول ستا په قدرت او قبضه کښې دي ④ الرَّغْبَاءُ: رغبت او توجه

**تسهيلات:**

**قوله:** يَرْكَعُ بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ:

**د احرام تړلو په وخت کښې مسنون اعمال:** مطلب دادې چه کله نبی کريم ﷺ ذوالحليفه ته اورسيدو نو هلته به ئې اول دوه رکعته مونځ دنفل په نيت سره کولو کوم چه احرام د پاره مسنون دې. اوپه دې دواړو رکعتونو کښې به ئې سورة کافرون او سورة اخلاص لوستلو. بيا به ئې نيت کولو، ددې نه پس به ئې لبيک وئيل، او بيا چه به کله ذوالحليفه سره نزدې په خپله اوښه باندې سورشو. بيا به اوښه پاڅيده، نوهغه وخت به هم اول نبی کريم ﷺ ددغه کلماتو په ذريعه تلبيه کوله کوم چه مشهور دی او بيا به ئې ورپسې د لبيک هغه کلمات وئيل کوم چه په حديث کښې نقل کړې شوی دی

**[۲۵۵۲] دتلبيه څخه روسته مسنون دعا**

۲۵۵۲-[۱۳] (١) [۱] وَعَنْ عُمَارَةَ بْنِ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [۲] - أَنَّهُ كَانَ إِذَا فَرَغَ مِنْ تَلْبِيَتِهِ [۳] سَأَلَ اللّٰهَ رِضْوَانَهُ وَالْجَنَّةَ، وَاسْتَعْفَاهُ بِرَحْمَتِهِ مِنَ النَّارِ (رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ).

**ترجمه** [۱] عماره ابن خزيمه ابن ثابت خپل پلار بزرگوار (خزيمه ﷺ) څخه او هغه د نبی کريم ﷺ څخه نقل کوي، [۲] نبی کريم ﷺ چې به د تلبيه (يعني لبيک ويلو) څخه فارغه شو. [۳] نو د الله ﷻ څخه به يې د هغه رضا او جنت غوښتلی، او د هغه د رحمت په ذريعه به يې د دوزخ د اور څخه معافي غوښتله. شافعي

١) اخرجه الامام الشافعي

**اللغات** ① رِضْوَانَهُ: أَيْ رِضَاهُ: د الله رضا (هم په دنيا هم په عقبی کښي) ② اِسْتِعْفَاهُ: أَيْ طَلَبَ عَفْوَهُ: هم ... په نې غوښتله د الله تعالى نه

**تسهيلات**

**قوله** وَاسْتَعْفَاهُ بِرَحْمَتِهِ مِنَ النَّارِ:

**تلبيه څخه روسته د درود شريف وئيلو استحباب:** احناف علماء فرمائي چه دا مستحب دی چه کوم سړي د تلبيه نه فارغ شی نوهغه دي په نبی کريم ﷺ باندي درود اووائی اود درود وئيلو په وخت دي خپل آواز د تلبيه د آواز په نسبت لږ کم کړی. اود الله تعالى نه دي هغه رضا اوجنت اوغواړی، د دوزخ د اور نه دي دهغه په ذات سره پناه غواړی. او د خپل دينی او دنياوی کاميابئ دپاره دي دعا اوغواړی

**د تلبيه په دوران کښي سلام نه اچول:** دا مسئله هم په ذهن کښي ساتل پکار دی چه تلبيه وئونکی ته سلام کول مکروه دی، خو که څوک دتلبيه کولو په حالت کښي سلام اوکړی نو هغه دسلام کولو جواب ورکول جائز دی، اود احناف علماؤ په نزد يو ځل تلبيه کول فرض دی. اود يوځل نه زيات سنت دی، داسې سنت چه ددي پريښودونکي بد ګڼړلي کيږی

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۵۵۳] دهموار ميدان څخه احرام تړل**

حدیث [ ١٤ ] عَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَمَّا أَرَادَ الْحَجَّ أَذَّنَ فِي النَّاسِ فَاجْتَمَعُوا [٢] فَلَمَّا أَتَى الْبَيْدَاءَ أَحْرَمَ (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ).

**ترجمه** [١] جابر ؓ وايي نبی کريم ﷺ چې د حج اراده وکړه، نو خلق يې خبر کړه يعنی اعلان يې وکړي، خلق را جمع شول، [٢] او بيا چې د بيداء ميدان ته ورسيدي، نو احرام يې وتړلی. بخاري

**حل اللغات:** ① الْبَيْدَاءَ: هوار ميدان، دا د ذی الحليفه سره نزدې د يوځائې نوم دې

**تسهيلات:** **قوله**: فَلَمَّا أَتَى الْبَيْدَاءَ أَحْرَمَ:

**د بيداء محل وقوع:** کله چه حج فرض شو او نبی کريم ﷺ په لسم هجری کښي ددې فريضې اداکولو اراده اوکړه، نو دا اعلان ئې اوفرمائيلو چه رسول الله ﷺ دحج اراده لری. په کومو خلقو چه حج فرض دې هغوی دې دحج د سفر دپاره تيارشی، نو په مقرر وخت باندې په مدينه کښي دمسلمانانو ډير زيات تعداد جمع شو، او نبی عليه السلام سره دټولو ملګرو د مدينې نه روان شو، بيا کله چه نبی کريم ﷺ د بيداء ميدان ته اورسيدو. کوم چه د ذوالحليفه سره نزدې دې، نو هلته ئې احرام اوتړلو

**د نبی علیه السلام د احرام تړلو مقام:** اوس په دې موقع باندې دومره خبره باندې ځان پوهه کړئ چه دلته د احرام تړلو نه مراد دادی چه په بیداء کښې نبی علیه السلام دوباره تلبیه ونیلو سره دخپل محرم کیدو اظهار اوکړو، ځکه چه مخکښې ونیلې شوی دی او هم ثابته هم ده، چه نبی علیه السلام ابتداءً په ذوالحلیفه کښې داحرام دپاره دوه رکعته مونځ کړې وو بیا ئې احرام تړلې وو

## [٢٥٥٤] د مشرکانو تلبیه

٢٥٥٤-[١٥] ()۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: «كَانَ الْمُشْرِكُونَ يَقُولُونَ لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ، ٢ فَيَقُولُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَيْلَكُمْ قَدْ قَدْ إِلَّا شَرِيكًا هُوَ لَكَ تَمْلِكُهُ وَمَا مَلَكَ، ٣ يَقُولُونَ هَذَا وَهُمْ يَطُوفُونَ بِالْبَيْتِ» (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه** ۱ ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې مشرکانو خلقو به تلبیه ویله، او دا کلمات به يې داء کول لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ، حاضر یم ستا په خدمت کې ستا څوك شريك نشته ، نو نبی کریم ﷺ به فرمایل چې په تاسو افسوس دی، بس بس (یعني دومره یې ویې، د دې څخه زیات مه وایي. خو مشرکان کله منونکی وو، هغوئ به د دې څخه روسته بیا دا ویل إِلَّا شَرِيكًا هُوَ لَكَ تَمْلِكُهُ وَمَا مَلَكَ یعنی ستا څوك شريك نشته ، ٢ هو هغه بت ستا شريك دی. چې ستا په ملك کې دی، ته د هغه مالك يې، هغه شريك ستا مالك نه دی، ٣ مشرکانو خلقو به د تلبیه دا کلمات د خانه کعبې طواف کولو سره ویل، مسلم

**حل اللغات:** ① وَيْلَكُمْ: افسوس دې په تاسو باندې، ② قَدْ قَدْ: أَيْ كَفَاكُمْ هَذَا: بس بس یعنی دومره کافی ده نور وړیسې مه وایه.

**تسهیلات:** **قوله:** قدٍ قدٍ:

**د مذکوره الفاظو مطلب:** په قاف باندې فتحه ده او په دال باندې دَ تنوین په صورت کښې کسره ده دَ کاف کاف په معنی کښې دې یعنی دومره کافی ده وړاندې شرکیه کلمات مه استعماله وه بیا به خپیمانه یئی په تاباندې افسوس دې هم په دغه باندې انحصار اوکړه مه وړاندې کیږه

**قوله:** تملکه وما ملك:

**د ما ملك په جمله کښې په لفظ ما کښې دوه احتمالات:** ① په دې جمله کښې دا ما نافیه هم کیدې شی اوموصوله هم کیدې شی یعنی هغه بت مالك نه دې ته دَ دې مالك ئې ② که چرې ماموصوله وی نوترجمه به داسې شی یعنی ته دَ دې بت هم مالك ئی اودَ دې بت په لاس کښې چه څه هم دې دَهغې هم مالك ئی

۱) اخرجه مسلم في كتاب الحج /باب التلبية وصفتها ووقتها (رقم-٢٢ - (١١٨٥)

# [٢] بَابُ قِصَّةِ حَجَّةِ الْوَدَاعِ

## د حجة الوداع د واقعې بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ستة أحاديث مشتملة على أربع مسائل:**

① واقعة حجة الوداع مفصلاً: ١.

② تقسيم المحرمين في حجة الوداع و أحكامهم: ٢، ٣.

③ دخول العمرة في الحج : ١، ٣، ٥.

④ التحليل بين العمرة والحج لغير السائق وعدمه للسائق: ١، ٢، ٣، ٣، ٥، ٦.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [٢٥٥٥] په مدينه كښې نهه كاله حج نه كول

٢٥٥٥-[١] (١) ① عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «مَكَثَ بِالْمَدِينَةِ تِسْعَ سِنِينَ لَمْ يَحُجَّ، ② ثُمَّ أَذَّنَ فِي النَّاسِ فِي الْعَاشِرَةِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حَاجٌّ، ③ فَقَدِمَ الْمَدِينَةَ بَشَرٌ كَثِيرٌ فَخَرَجْنَا مَعَهُ حَتَّى إِذَا أَتَيْنَا ذَا الْحُلَيْفَةِ،

**ترجمه:** ① حضرت جابر ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ (د هجرت څخه پس) په مدينه کې نه ۹ کاله داسې تيرکړل چې حج يې ونه کې (البته عمرې يې وکړې څرنګه چې مخکې بنودل شوي دي) بيا چې د حج فرضيت نازل شو، ② نو په لسم کال نبی کريم ﷺ په خلقو کې اعلان وکه چې نبی کريم ﷺ د حج اراده لري، کوم خلق چې حج ته تلل غواړي، هغه دې د ملګرتيا د پاره تيار شي ③ (دا اعلان اوريدو سره) د خدای د مخلوق يو ډير لوی تعداد په مدينه کې جمع شو. نو مونږ خلق د نبی کريم ﷺ سره (د ذي القعده د مياشتې د ختميدو څخه پنځه ورځې مخکې د ماسپخين او مازيګر په منځ کې) د مديني څخه روان شو. کوم وخت چې مونږ خلق ذو الحليفه ته ورسيدو.

① فَوَلَدَتْ أَسْمَاءُ بِنْتُ عُمَيْسٍ مُحَمَّدَ بْنَ أَبِي بَكْرٍ، ② فَأَرْسَلَتْ إِلَى رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَيْفَ أَصْنَعُ ③ قَالَ: اغْتَسِلِي وَاسْتَثْفِرِي بِثَوْبٍ وَأَحْرِمِي، ④ فَصَلَّى رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي الْمَسْجِدِ، ثُمَّ رَكِبَ الْقَصْوَاءَ حَتَّى إِذَا اسْتَوَتْ بِهِ نَاقَتُهُ عَلَى الْبَيْدَاءِ ⑤ أَهَلَّ بِالتَّوْحِيدِ لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ، لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ، إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ، لَا شَرِيكَ لَكَ.

**ترجمه** ① نو هلته بي بي اسماء بنت عميس ﷺ د خيتي څخه محمد بن ابي بکر پيدا شو. ② بي بي اسماء ﷺ څوک د نبی کريم ﷺ په خدمت کې وليږلی، او پوښتنه يې

(١) مسلم: كتاب الحج . باب حجة النبي صلى الله عليه وسلم ٨/ ٥٤ حديث ٣٠٠٩.

وكړه. چې اوس څه وكړم آيا احرام وتړم يا يې نه وتړم؟ [٣] او كه يې وتړم نو څرنګه يې وتړم؟ نبي كريم ﷺ جواب ور وليږي، چې غسل كولو سره د كپړې لنګوټ وتړه بيا احرام وتړه. [٤] بهر حال نبي كريم ﷺ په مسجد ذوالحليفه كې مونځ وكړه، او په قصواء چې د نبي كريم ﷺ د اوښې نوم وو، سور شو، تر دې چې د نبي كريم ﷺ اوښې نبي كريم ﷺ حستو سره د بيداء په ميدان كې ودريدې. [٥] نو نبي كريم ﷺ په اوچت آواز سره د تنبيه دا كلمات وويل لَبَّيْكَ اللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ لَبَّيْكَ إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ. **ترجمه** [١] حاضر يم ستا په خدمت كې يا الله ﷻ ستا په خدمت كې حاضر يم، حاضر يم ستا په خدمت كې، ستا څوك شريك نشته حاضر يم ستا په خدمت كې، بيشكه تعريف او نعمت تا لره دي. او بادشاهت هم تالره دي، ستا څوك شريك نشته.

**حل اللغات** ① اِسْتَثْفِرِيْ: أَيِ اجْعَلِيْ ثَوْبًا بَيْنَ فَخِذَيْكِ: يعني د خپو په مينځ كښې د كپړې لنګوټ وتړه نكه څيلې ته چه كځوړه تړلې شي

[١] قَالَ جَابِرٌ: لَسْنَا نَنْوِي إِلَّا الْحَجَّ، لَسْنَا نَعْرِفُ الْعُمْرَةَ [٢] حَتَّى إِذَا أَتَيْنَا الْبَيْتَ مَعَهُ اسْتَلَمَ الرُّكْنَ فَطَافَ سَبْعًا، فَرَمَلَ ثَلَاثًا وَمَشَى أَرْبَعًا، [٣] ثُمَّ تَقَدَّمَ إِلَى مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ فَقَرَأَ: ﴿وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾ [البقرة: ١٢٥] [٤] فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، فَجَعَلَ الْمَقَامَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْبَيْتِ».

**ترجمه** [١] حضرت جابر ﷺ وايي چې مونږ د دې څخه مخكې د حج نيت كولى، او مونږ د حج په مياشتو كې د عمرې څخه واقف هم نه وو، [٢] بهرحال كوم وخت چې مونږ د نبي كريم ﷺ سره بيت الله شريفې ته ورسيدو، نو رسول اكرم په حجر اسود يې لاس كينبووئ او مچ يې كړه. او درې خله يې رمل (يعني په تيز رفتار سره او وږو خوزولو سره) د خانه كعبې طواف يې وكه. او څلور خله په خپل رفتار سره (يعني قلار قلار تلو سره) طواف يې وكه. [٣] او د طواف څخه روسته د مقام ابراهيم طرف ته مخكې شو، او دا آيت يې وويلى. وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى. **ترجمه** [١] د مقام ابراهيم اطراف د مانځه كولو ځاى جوړ كي يعني هلته مونځ كوئ [٤] بيا نبي كريم ﷺ مقام ابراهيم او بيت الله خپل منځ كې كولو سره دوه ركعاته مونځ وكړي.

**حل اللغات** ② فَرَمَلَ: أَيْ أَسْرَعَ يَهُزُّ مَنْكِبَيْهِ: په طواف كښې اوږو خوزولو ته رمل وائي يعني پهلوانئ سره تلل

[١] وَفِي رِوَايَةٍ أَنَّهُ «قَرَأَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ: ﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ﴾ [الإخلاص: ١] وَ ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ﴾ [الكافرون: ١] [٢] ثُمَّ رَجَعَ إِلَى الرُّكْنِ فَاسْتَلَمَهُ، ثُمَّ خَرَجَ مِنَ الْبَابِ إِلَى الصَّفَا، فَلَمَّا دَنَا مِنَ الصَّفَا قَرَأَ: ﴿إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ﴾ [البقرة: ١٥٨] [٣] أَبْدَأُ بِمَا بَدَأَ اللّٰهُ بِهِ، فَبَدَأَ بِالصَّفَا فَرَقِيَ عَلَيْهِ حَتَّى رَأَى الْبَيْتَ، فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ [٤] فَوَحَّدَ اللّٰهَ وَكَبَّرَهُ وَقَالَ: لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ [٥] أَنْجَزَ وَعْدَهُ وَنَصَرَ عَبْدَهُ وَهَزَمَ الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ،

**ترجمه** [١] او د يوه روايت مطابق هغه په دواړو رکعاتو کې قل هو الله او قل يا ايها الکافرون ووېل. [٢] بيا د حجر اسود طرف ته راغلو ، او هغه يې ښکل کړه ، د دې ځخه فارغيدو سره د مسجد د دروازې (يعني باب الصفاء) ځخه ووتلو ، او د صفا د غره طرف ته لاړو . هر کله چې صفا ته نژدې ورسيدې ، نو دا آيت يې اوونيلو إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِن شَعَائِرِ اللَّهِ . بيشکه صفا او مروه د الله ﷻ د دين د نښو ځخه دی. [٣] او وې فرمايل چې زه هم د هغه ځيز ځخه ابتداء کوم ، د کوم شي ځخه چې الله ﷻ ابتداء وکړه (يعني ځرنګه چې الله ﷻ په دې آيت کې مخکې د صفا ذکر کړی دی ، بيا يې د مروه ، دغه شان زه هم مخکې صفا ، ته ځيژم . بيا به مروه ته ځيژم) نو نبی کريم ﷺ سعي وکړه ، ابتداء يې د صفا ، ځخه وکړه ، او هغه ته اوختلو ، تر دې چې نبی کريم ﷺ د صفا ځخه بيت الله شريفه وليده . [٣] نو د الله ﷻ وحدانيت او د هغه لويي يې بيان کړه (يعني لا اله الا الله ، او الله اکبر يې ووېلی) او دا کلمات يې وفرمايل لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ أَنْجَزَ وَعْدَهُ وَنَصَرَ عَبْدَهُ وَهَزَمَ الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ ، **ترجمه** [١] د الله ﷻ ځخه سوا بل معبود نشته . هغه يکتا او تنها (يکی يو) دی ، د هغه خوك شريك نشته ، د هغه د پاره بادشاهت دی . او د هغه د پاره تعريف دی ، او هغه په هر ځيز قادر دی ، د الله ﷻ ځخه سوا بل معبود نشته ، هغه يکتا او تنها دی . [٥] هغه د اسلام د کلمې اوچتولو خپله وعده پوره کړله ، هغه د خپلو بنده ګانو مدد وکړې ، او د کفارو لښکر ته يې تنها (يوازې) شکست ورکړې (يعني غزوه خندق)

**حل اللغات:** ③ فَرَقِيَ : أَيْ صَعِدَ: ور اوختلو ، ④ أَنْجَزَ: أَيْ وَفَى: پوره يې کړه ⑤ هَزَمَ: شکست يې ورکړو

| |
|---|
| [١] ثُمَّ دَعَا بَيْنَ ذَٰلِكَ قَالَ مِثْلَ هَٰذَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ، [٢] ثُمَّ نَزَلَ وَمَشَىٰ إِلَى الْمَرْوَةِ حَتَّى انْصَبَّتْ قَدَمَاهُ فِي بَطْنِ الْوَادِي [٣] ثُمَّ سَعَىٰ حَتَّىٰ إِذَا صَعِدَتَا مَشَىٰ حَتَّىٰ أَتَى الْمَرْوَةَ ، فَفَعَلَ عَلَى الْمَرْوَةِ كَمَا فَعَلَ عَلَى الصَّفَا ، [٤] حَتَّىٰ إِذَا كَانَ آخِرُ طَوَافٍ عَلَى الْمَرْوَةِ نَادَىٰ وَهُوَ عَلَى الْمَرْوَةِ وَالنَّاسُ تَحْتَهُ [٥] فَقَالَ: لَوْ أَنِّي اسْتَقْبَلْتُ مِنْ أَمْرِي مَا اسْتَدْبَرْتُ لَمْ أَسُقِ الْهَدْيَ وَجَعَلْتُهَا عُمْرَةً ، [٦] فَمَنْ كَانَ لَيْسَ مَعَهُ هَدْيٌ فَلْيَحِلَّ وَلْيَجْعَلْهَا عُمْرَةً ، |

**ترجمه** [١] بيا د هغه په منځ کې يې دعا وکړه ، او درې ځله يې دغه شان اوويل (يعني مخکې يې دغه کلمات ووېل) او بيا يې دعا وکړه ، او دغه شان يې درې ځله ووېل . [٢] د دې ځخه روسته د صفا ، ځخه کښته شو ، او د مروه غره طرف ته لاړو ، تر دې چې کوم وخت د نبی کريم ﷺ قدم مبارك ميدان نشيب ته ورسيدې (يعني د ميدان د لوړی (پورته) ځخه کښتې حصې ته راغلو ) [٣] نو منډه يې کړه (يعني سعي يې وکړه) او کوم وخت چې د نبی کريم ﷺ دواړه قدمونه په ختلو شو (يعني د کښتی ځخه د مروه پورته والي ته ختلی) نو (زغليدل موقوف کولو سره) قلار قلار روان شو . بيا کوم وخت چې مروه ته ورسيدې ، نو هغه يې وکړل ، ځه چې يې په صفاء کې کړی وو . [٤] تر دې چې کوم وخت نبی کريم ﷺ په مروه د سعي اختتام وکړې (يعني سعي يې ختمه کړه) نو خلقو ته يې آواز وکړې ، په داسې

حال کې چې نبی کریم ﷺ په مروه پورته وو، او خلق د هغه څخه لاندې، او وې فرمایل چې که د خپل ځان په باره کې ماته د مخکې څخه هغه خبره معلومه وایې، کومه چې وروسته راته معلومه شویده، نو هدي (د قربانۍ څاروی) به مې د ځان سره نه وای راوستلی، او دا به ما عمره ګرځولې وی، بس په تاسو کې چې د چا سره هدي (قرباني) نه وي هغه دې حلال شي (یعنې د حج احرام دې خلاص کړي) او حج دې عمره جوړه کړي (د دې اوریدو سره)

**حل اللغات:** ⑥ اِنْعَمَتُ: أَيِ انْحَدَرْتُ: راښکته شو قدم د رسول الله ﷺ، ⑦ اسْتَقْبَلْتُ: أَيْ لَوْ عَلِمْتُ فِي قَبْلُ: که ماته د مخکښې نه علم وي. ⑧ مَا اسْتَدْبَرْتُ: أَيْ مَا عَلِمْتُهُ فِي دُبُرِهِ: کومه چه راته روسته معلومه شوه

① فَقَامَ سُرَاقَةُ بْنُ مَالِكِ بْنِ جُعْشُمٍ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَلِعَامِنَا هَذَا أَمْ لِأَبَدٍ؟ ② فَشَبَّكَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَصَابِعَهُ وَاحِدَةً فِي الْأُخْرَى وَقَالَ: دَخَلَتِ الْعُمْرَةُ فِي الْحَجِّ مَرَّتَيْنِ لَا بَلْ لِأَبَدِ أَبَدٍ. ③ وَقَدِمَ عَلِيٌّ مِنَ الْيَمَنِ بِبُدْنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ④ فَقَالَ لَهُ: مَاذَا قُلْتَ حِينَ فَرَضْتَ الْحَجَّ قَالَ: قُلْتُ اللَّهُمَّ إِنِّي أُهِلُّ بِمَا أَهَلَّ بِهِ رَسُولُكَ ⑤ قَالَ: فَإِنَّ مَعِيَ الْهَدْيَ فَلَا تَحِلَّ

**ترجمه:** ① سراقه بن مالک بن جعشم ودریدو سره عرض وکړو چې یا رسول الله! ﷺ زمونږ د پاره دا حکم د دې کال د پاره دی، یا د همیشه د پاره؟ ② نبی کریم ﷺ د یو لاس ګوتې د دویم لاس په ګوتو کې اچولو سره وفرمایل چې یا (دا حکم په خاص طور سره دې د کال د پاره نه دی) بلکه د همیشه د پاره دی (چې د حج په میاشتو کې عمره جائز ده) ③ د دې څخه روسته حضرت علي (چې د یمن حاکم مقرر شوی وو) د نبی کریم ﷺ د پاره یې قرباني ته د یمن څخه اوښان راوستل، ④ حضور ﷺ هغه ته وفرمایل چې تا په ځان حج لازم کړی وو نو هغه وخت (یعنې د احرام تړلو په وخت کې) تا څه ویلي وو؟ (یعنې تا د څه څیز د پاره احرام تړلی وو. او څه نیت دې کړی وو؟) حضرت علي وویل، ما داسې ویلي وو. اللَّهُمَّ إِنِّي أُهِلُّ بِمَا أَهَلَّ بِهِ رَسُولُكَ، یعنی اې الله! جل جلاله زه د هغه څیز احرام تړم، د کوم شي احرام چې ستا رسول ﷺ تړلی دی. ⑤ نو نبی کریم ﷺ ورته وفرمایل چې ما سره خو د قرباني څاروی دي. او ما د حج او د عمرې احرام تړلی دی، ځکه تر څو چې د عمرې او حج دواړو څخه فارغه نشم. تر هغه وقته احرام څخه نشم وتلی، او تا هغه نیت کړی دی، کوم چې ما کړی دی، نو ته هم احرام مه خلاصوه.

**حل اللغات:** ⑨ بُدْنِ: د بَدَنَة جمع ده، وَالْمُرَادُ مَا يُتَقَرَّبُ بِذَبْحِهِ مِنَ الْإِبِلِ: هغه اوښ چه د قربانۍ په نیت مکې ته راوستلې شي

① قَالَ: فَكَانَ جَمَاعَةُ الْهَدْيِ الَّذِي قَدِمَ بِهِ عَلِيٌّ مِنَ الْيَمَنِ وَالَّذِي أَتَى بِهِ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِائَةً ② قَالَ: فَحَلَّ النَّاسُ كُلُّهُمْ وَقَصَّرُوا إِلَّا النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَمَنْ كَانَ مَعَهُ هَدْيٌ، ③ فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ

التَّرْوِيَةِ تَوَجَّهُوا إِلَى مِنًى فَأَهَلُّوا بِالْحَجِّ، [۳] وَرَكِبَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَصَلَّى بِهَا الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ وَالْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ وَالْفَجْرَ، ثُمَّ مَكَثَ قَلِيلًا حَتَّى طَلَعَتِ الشَّمْسُ،

**ترجمه** [۱] حضرت جابر ﷺ وايي هغه اوښان چې د نبی کريم ﷺ د پاره د قرباني د پاره. حضرت علي د يمن څخه راوستلي وو، او هغه اوښان چې نبی کريم ﷺ د خپل خان سره راوستلي وو، د ټولو مجموعي تعداد سل وو. [۲] د حضرت جابر ﷺ بيان دی چې د نبي کريم ﷺ د ارشاد مطابق، ټولو خلقو چې د هغوئ سره د قرباني څاروی نه وو. عمره کولو سره يې احرام خلاص کړي، او د خپلو سرونو ويښتان يې وخريل. خو نبی کريم ﷺ او هغه خلق چې د هغوئ سره د قرباني څاروی وو، د احرام په حالت کې پاتې شو. [۳] بيا چې د ترويه ورځ راغله (يعني د ذي الحجه اتم تاريخ راغلو) نو ټول خلق د منی طرف ته روانيدو ته تيار شول، نو هغه صحابه ﷺ (چې د عمري د فارغيدو څخه روسته د احرام څخه راوتلی وو) د حج احرام وتړلی [۴] او نبی کريم ﷺ هم (د نمر ختو څخه پس) سور شو او منی ته ورسيدلی، د منی په مسجد خيف کې يې د ماسپخين او مازيګر، د ماښام و ماسخوتن او د سحر مونځونه وکړل، او د نهم تاريخ د سحر د مانځه کولو څخه يې وروسته لږ څه قيام وکړي، تر دي چې نمر راوختلی،

**حل اللغات:** ⑩ مَحَلَّ: أَيْ خَرَجَ مِنَ الْإِحْرَامِ: حلال شو يعنی د احرام نه اووتل. ⑪ قَصَّرُوا: ويښته نې کم کړل

[۱] وَأَمَرَ بِقُبَّةٍ مِنْ شَعَرٍ تُضْرَبُ لَهُ بِنَمِرَةَ، فَسَارَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] وَلَا تَشُكُّ قُرَيْشٌ إِلَّا أَنَّهُ وَاقِفٌ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ كَمَا كَانَتْ قُرَيْشٌ تَصْنَعُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ، فَأَجَازَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَتَّى أَتَى عَرَفَةَ [۳] فَوَجَدَ الْقُبَّةَ قَدْ ضُرِبَتْ لَهُ بِنَمِرَةَ فَنَزَلَ بِهَا، حَتَّى إِذَا زَاغَتِ الشَّمْسُ أَمَرَ بِالْقَصْوَاءِ، فَرُحِلَتْ لَهُ فَأَتَى بَطْنَ الْوَادِي

**ترجمه** [۱] او نبی کريم ﷺ حکم وکړي چې د نبی کريم ﷺ د پاره دی په نمره (عرفات) کې خيمه نصب شي، چې د ويښتانو جوړه شوي وه، بيا نبی کريم ﷺ (د منی څخه عرفات) ته روان شو. [۲] د قريشو ګمان وو، چې رسول الله ﷺ به په معشر حرام (مزدلفه) کې قيام وکړي، څرنګه چې قريشو به د جاهليت زمانه کې د حج په موقع کول، خو نبی کريم ﷺ د مزدلفي څخه مخکې لاړو، تر دي چې ميدانِ عرفات ته راغلو. [۳] او په وادي نمره کې يې خپله خيمه ولاړه و موندله، نبی کريم ﷺ هغه ته راغلو، او قيام يې وکړي، تر دي چې کوم وخت نمر په زوال شو، نو د قصواء (چې د نبی کريم ﷺ د اوښي نوم وو) راوستلو حکم يې وکړي. کوم وخت چې قصواء (اوښه) راوستل شوه، نو په هغه کته (پالان) واچول شو، او نبی کريم ﷺ په هغه سوريدو سره وادي نمره ته تشريف راوړو،

**حل اللغات:** ⑫ بِقُبَّةٍ: أَي بِضَرْبِ خَيْمَةٍ: د خيمې لګولو ⑬ زَاغَتْ: أَيْ مَالَتْ: مائل شو نمر يعنی زوال اوشو.

١ فَخَطَبَ النَّاسَ وَقَالَ: إِنَّ دِمَاءَكُمْ وَأَمْوَالَكُمْ حَرَامٌ عَلَيْكُمْ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هَذَا فِي شَهْرِكُمْ هَذَا فِي بَلَدِكُمْ هَذَا، ٢ أَلَا كُلُّ شَيْءٍ مِنْ أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ تَحْتَ قَدَمَيَّ مَوْضُوعٌ، ٣ وَدِمَاءُ الْجَاهِلِيَّةِ مَوْضُوعَةٌ، وَإِنَّ أَوَّلَ دَمٍ أَضَعُ مِنْ دِمَائِنَا دَمُ ابْنِ رَبِيعَةَ بْنِ الْحَارِثِ، وَكَانَ مُسْتَرْضَعًا فِي بَنِي سَعْدٍ فَقَتَلَهُ هُذَيْلٌ، ٤ وَرِبَا الْجَاهِلِيَّةِ مَوْضُوعٌ، وَأَوَّلُ رِبًا أَضَعُ مِنْ رِبَانَا رِبَا عَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَإِنَّهُ مَوْضُوعٌ كُلُّهُ،

**ترجمه** ١ او د خلقو په مخکې يې خطبه ويلو سره وفرمايل چې اې خلقو! ستاسو وينه و ستاسو مال په تاسو داسې حرام دی، څرنګه چې ستاسو په دې ورځ (عرفه) کې ستاسو په دې مياشت (ذي الحجه) کې او ستاسو په دې ښار (مکه) کې حرام دی (يعني څرنګه چې تاسو د عرفې په ورځ د ذي الحجه په مياشت کې او په مکه مکرمه کې قتل او لوټ مارۍ حرام ګڼی. دغه شان د هميشه هميشه د پاره او هر ځای د يو مسلمان سر او مال په بل مسلمان حرام دی، نو په تاسو کې دې څوك هم څه وخت هم او يو ځای هم د چا قتل او خون ونکی، د چاما ل دې په غلا او دوکه بازۍ سره نه خوري، او څوك دې په جانۍ او مالي تکليف او په مصيبت کې نه اخته کوي) ٢ ياد لرئ چې د جاهليت د زمانې هر شی زما د قدمونو لاندې دی، او پامال او بې قدر (يعني موقوف او باطل دی) د اسلام څخه مخکې چې څه کړي دي، ما هغه هر څه معاف کړل، او د جاهليت د زمانې ټول رسم ورواج مې موقوف او ختم کړل، د جاهليت د زمانې خون معاف کړل شو، نو د جاهليت په زمانه کې که چې د چې خون کړی وو، نو اوس نه د هغه قصاص شته، نه ديت او نه کفاره، بلکه د هغه د معافی اعلان دی، ٣ او د ټولو څخه مخکې خون چې زه يې د خپلو خونونو څخه معاف کوم. هغه د ربيعه ابن حارث د ځوی خون دی چې يو شيدې (پئ) رودونکی ورکي وو. او په قبيله بني سعد کې يې شيدې (پئ) رودلی، او هذيل قبيلی هغه وژلی وو. ٤ د جاهليت د زمانې سود معاف شوي دي، او د ټولو څخه مخکې سود چې زه په خپلو سودونو کې معاف کوم. د عباس ابن عبد المطلب سود دی، نو د جاهليت د زمانې هغه سود بالکل معاف شوي دي.

**حل اللغات**: ⑩ مُسْتَرْضَعًا: پئ رودونکی ماشوم

١ فَاتَّقُوا اللَّهَ فِي النِّسَاءِ فَإِنَّكُمْ أَخَذْتُمُوهُنَّ بِأَمَانِ اللَّهِ، وَاسْتَحْلَلْتُمْ فُرُوجَهُنَّ بِكَلِمَةِ اللَّهِ، ٢ وَلَكُمْ عَلَيْهِنَّ أَنْ لَا يُوطِئْنَ فُرُشَكُمْ أَحَدًا تَكْرَهُونَهُ، ٣ فَإِنْ فَعَلْنَ ذَلِكَ فَاضْرِبُوهُنَّ ضَرْبًا غَيْرَ مُبَرِّحٍ، ٤ وَلَهُنَّ عَلَيْكُمْ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ، ٥ وَقَدْ تَرَكْتُ فِيكُمْ مَا لَنْ تَضِلُّوا بَعْدَهُ إِنِ اعْتَصَمْتُمْ بِهِ. كِتَابَ اللَّهِ، ٦ وَأَنْتُمْ تُسْأَلُونَ عَنِّي فَمَا أَنْتُمْ قَائِلُونَ، قَالُوا: نَشْهَدُ أَنَّكَ قَدْ بَلَّغْتَ وَأَدَّيْتَ وَنَصَحْتَ، ٧ فَقَالَ بِإِصْبَعِهِ السَّبَّابَةِ يَرْفَعُهَا إِلَى السَّمَاءِ وَيَنْكُتُهَا إِلَى النَّاسِ: اللَّهُمَّ اشْهَدْ، اللَّهُمَّ اشْهَدْ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ،

**ترجمه** ١ اې خلقو! د ښځو په معامله کې د الله ﷻ څخه وير يږئ، تاسو هغه د الله ﷻ د امان سره اخستی دی يعنی د هغوئ د حقوقو د ادائيګی او د هغوئ د عزت او احترام

سره د ستاسو چې کوم عهد الله ﷻ ستاسو څخه اخستی دی یا د هغه عهد چې تاسو د الله ﷻ سره کړی دی، د هغه مطابق ښځې تاسو ته راغلي دي او د هغوی شرم ګاهونه د الله ﷻ په حکم سره، یعني د فانکحوا مطابق رشته د ښځې خاوند قاصولو سره د خان د پاره مو حلالې ګرځولی دی، [٢] او په ښځو ستاسو حق دا دی چې هغه ستاسو په بسترو بو داسې سړی پرې نږدي، چې د هغه راتلل تاسو ته ناخوښه وي. یعنی هغه ستاسو په کورونو کې هیڅوک هم ستاسو د اجازت بغیر پرې نږدي، که هغه سړی وي که ښځه. [٣] که هغه په دې معامله کې نافرماني وکړي چې ستاسو د اجازت بغیر څوک کور ته پریږدي او د روزنې څخه روسته هم هغه د دې څخه منعه نشي، نو تاسو هغه ووهی، خو داسې یې مه وهی چې د هغه څخه سختې او شدت ښکاره شي او یا زخمي یې کړي، او هغوی ته تکلیف ورسیږي. [٤] او په تاسو د هغوی حق دادی، چې تاسو هغوی لره د خپل استطاعت او حیثیت مطابق د خوراك څښاك سامان او مکان او جامه ورکړی

[٥] ای خلقو! زه ستاسو په منځ کې داسې شی پریږدم، که هغه مضبوط ونیسی، نو زما څخه روسته هغه په مضبوطی سره نیولو او په هغه دعمل کولو څخه روسته تاسو به هیڅ کله ګمراه نشی او هغه څیز د الله ﷻ کتاب دی.

[٦] او ای خلقو! زما په باره کې به ستاسو څخه پوښتنه کیږي چې ما د منصب رسالت فرائض په پوره طور سره ادا کړل که نه، او ما د دین احکام تاسو ته ورسول یا نه. نو تاسو به څه جواب ورکوی؟ په دې موقع صحابه وو ﷺ (په یوه ژبه) اوویل چې مونږ د الله ﷻ په مخکې د دې خبرې شاهدي ورکوو، چې تا دین مونږ ته راورسولی، خپل فرض مو ادا کړل. او زمونږ خیر خواهي مو وکړه. [٧] د دې څخه روسته نبی کریم ﷺ د خپل شهادت په ګوته سره اشاره وکړه، په دې طور چې هغه یې د آسمان طرف ته پورته کړه، او بیا د خلقو طرف ته را ښکته کولو سره دري خله یې دا اوویل چې ای الله! ﷻ د خپلو بنده ګانو په دې اقرار او اعتراف ته ګواه اوسه، ای الله! ﷻ ته شاهد اوسه

**حل اللغات:** ⑮ فُرُشَكُمْ: ستاسو په بسترو. ⑯ غَيْرَ مُبَرِّحٍ: أَيْ مُجْرِحٍ: چه زخمي کونکی نه وی، یعنی دومره سخت نې مه وهئ چه زخمي شي،

[١] ثُمَّ أَذَّنَ بِلَالٌ، ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى الظُّهْرَ، ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى الْعَصْرَ، وَلَمْ يُصَلِّ بَيْنَهُمَا شَيْئًا، [٢] ثُمَّ رَكِبَ حَتَّى أَتَى الْمَوْقِفَ فَجَعَلَ بَطْنَ نَاقَتِهِ الْقَصْوَاءِ إِلَى الصَّخَرَاتِ، وَجَعَلَ حَبْلَ الْمُشَاةِ بَيْنَ يَدَيْهِ، وَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ [٣] فَلَمْ يَزَلْ وَاقِفًا حَتَّى غَرَبَتِ الشَّمْسُ وَذَهَبَتِ الصُّفْرَةُ قَلِيلًا حَتَّى غَابَ الْقُرْصُ. [٤] وَأَرْدَفَ أُسَامَةَ وَدَفَعَ حَتَّى أَتَى الْمُزْدَلِفَةَ، فَصَلَّى بِهَا الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ بِأَذَانٍ وَاحِدٍ وَإِقَامَتَيْنِ وَلَمْ يُسَبِّحْ بَيْنَهُمَا شَيْئًا،

**ترجمه** [١] د دې څخه روسته حضرت بلال ﷺ اذان او اقامت وکه، او د ماسپخین مونځ وشو. بیا دوباره اقامت وشو او د مازیګر مونځ وشو. او د دې دواړو مونځونو په منځ کې

هیڅ څیز یعنې سنت او نفل ونه شو. [۲] بیا نبی کریم ﷺ سور شو. او د عرفات په میدان کې د ودریدو ځای ته ورسیدي. هلته د قصواء اوښې، نس یې د کاڼو طرف ته کړي. او حبل المشاة د یو ځای نوم دی چې هلته هوار ریګونه دي، هغه یې خپل مخې ته کړي. بیا یې قبلې ته مخ کړي. [۳] ودریدی. تر دې چې نمر ولویدی. ژړوالی هم لږ څه لاړو. او د نمر ټکی پټه شوه.

[٤] نبی کریم ﷺ حضرت اسامه ﷺ په خان پسې کینولی او تیز تیز تلو سره مزدلفې ته راغلو. دلته د یو اذان او دوه تکبیرونو سره د ماښام او ماسخوتن مونځه وشو. او د دې دواړو مونځونو په منځ کې نور هیڅ یې ونه ویل.

**حل اللغات** ⑮ الصَّخَرَاتِ: أي الأَحْجَارُ الْكِبَارُ: دعرفات نه بنکته جبل رحمت سره کاڼي مراد دی (دلته اودریدل مستحب دی) ⑯ حَبْلَ الْمُشَاةِ: اسْمُ مَوْضِعٍ مِنْ رَمْلٍ: د یوځانې نوم دې هلته شړې ډیرې دی ⑰ الْقُرْصُ: أي جُمْعُهُ: ککوري یعنی د نمر سترګه تولیه ډوبه شوه.

[۱] ثُمَّ اضْطَجَعَ حَتّٰى طَلَعَ الْفَجْرُ فَصَلَّى الْفَجْرَ حِيْنَ تَبَيَّنَ لَهُ الصُّبْحُ بِأَذَانٍ وَإِقَامَةٍ، [۲] ثُمَّ رَكِبَ الْقَصْوَاءَ حَتّٰى أَتَى الْمَشْعَرَ الْحَرَامَ، فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ فَدَعَاهُ وَكَبَّرَهُ وَهَلَّلَهُ وَوَحَّدَهُ، [۳] فَلَمْ يَزَلْ وَاقِفًا حَتّٰى أَسْفَرَ جِدًّا فَدَفَعَ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ، [٤] وَأَرْدَفَ الْفَضْلَ ابْنَ عَبَّاسٍ حَتّٰى أَتَى بَطْنَ مُحَسِّرٍ. فَحَرَّكَ قَلِيْلًا، [٥] ثُمَّ سَلَكَ الطَّرِيْقَ الْوُسْطَى الَّتِي تَخْرُجُ عَلَى الْجَمْرَةِ الْكُبْرٰى حَتّٰى أَتَى الْجَمْرَةَ الَّتِي عِنْدَ الشَّجَرَةِ [٦] فَرَمَاهَا بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ، يُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ مِنْهَا مِثْلَ حَصَى الْخَذْفِ رَمٰى مِنْ بَطْنِ الْوَادِي،

**ترجمه** [۱] بیا نبی کریم ﷺ ډډه واچوله (اوده شو)، تر دې چې نمر راوختلی، نو نبی کریم ﷺ د سحر رڼا خوریدو باندې د اذان او اقامت سره د سحر مونځ وکړي. [۲] بیا نبی کریم ﷺ په اوښه سوریدو سره مشعر حرام ته راغلو، او هلته مخ په قبله کیدو سره د الله ﷻ څخه یې دعا وغوښتله. تکبیر یې وکړي، لا اله الا الله یې وویل. او د الله ﷻ وحدانیت یې بیان کړي (یعنې لا اله الا الله وحده لاشریک له) یې تر آخره پورې وویلی. [۳] او هلته په ولاړه په تکبیر وتهلیل وغیره کې مشغول شو. تر دې چې سحر ښه روښانه شو. نو د نمر ختو مخکې د هغه ځای څخه روان شو. [٤] او حضرت فضل بن عباس ﷺ یې خپل شاته سور کړي. کوم وخت چې وادي محسر ته ورسیدي. نو د خپلې شوارلۍ تیز چلولو د پاره یې لږ څه حرکت ورکړي. [٥] او په هغه درمیانې لار روان شو. چې په جمره کبرى اوځته تیریږي. تر دې چې نبی کریم ﷺ هغه جمرې ته ورسیدي. چې ونې ته نزدې ده. [٦] او په هغه یې اووه کاڼي وویشتل. داسې چې په هغه کې یې د هر کاڼي سره تکبیر ویلی. او هغه کاڼي د لوبیا د داني برابر وو. او نبی کریم ﷺ د وادي د منځ څخه وویشتل.

**حل اللغات:** ⑱ فَحَرَّكَ قَلِيْلًا: أي أَسْرَعَ نَاقَتَهُ يَسِيْرًا: یعنی اوښه یې لږه شان تیزه کړه. ⑲ حَصَيَاتٍ: واړه کاڼي. ⑳ حَصَى الْخَذْفِ: الرَّمْيُ بِرُؤُوْسِ الْأَصَابِعِ: دګوتو په سرونو سره کاڼي ویشتل یعنی لږه کول.

[١] ثُمَّ انْصَرَفَ إِلَى الْمَنْحَرِ فَنَحَرَ ثَلَاثًا وَسِتِّينَ بَدَنَةً بِيَدِهِ، [٢] ثُمَّ أَعْطَى عَلِيًّا فَنَحَرَ مَا غَبَرَ وَأَشْرَكَهُ فِي هَدْيِهِ، [٣] ثُمَّ أَمَرَ مِنْ كُلِّ بَدَنَةٍ بِبَضْعَةٍ فَجُعِلَتْ فِي قِدْرٍ فَطُبِخَتْ، فَأَكَلَا مِنْ لَحْمِهَا وَشَرِبَا مِنْ مَرَقِهَا، [٤] ثُمَّ رَكِبَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَفَاضَ إِلَى الْبَيْتِ فَصَلَّى بِمَكَّةَ الظُّهْرَ، [٥] فَأَتَى عَلَى بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ يَسْقُونَ عَلَى زَمْزَمَ، فَقَالَ: انْزِعُوا بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، فَلَوْلَا أَنْ يَغْلِبَكُمُ النَّاسُ عَلَى سِقَايَتِكُمْ لَنَزَعْتُ مَعَكُمْ، [٦] فَنَاوَلُوهُ دَلْوًا فَشَرِبَ مِنْهُ» (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه** [١] د دې څخه روسته د قربانۍ کولو ځای (چې په منی کې دی) واپس راغلو او دلته نبی کریم ﷺ په خپل لاس مبارك سره درې شپیته ۶۳ اوښان ذبح کړل. [٢] او پاتې اوښان يې حضرت علي  وسپارل (چې ذبح يې کړي) نو باقي اووه دیرش اوښان حضرت علي  ذبح کړل. نبی کریم ﷺ د خپلې قربانۍ په څاروو کې حضرت علي  هم شریك کړی وو. [٣] بیا نبی کریم ﷺ حکم وکړې چې د هر یو اوښ د غوښې یوه ټکړه واخستل شي. نو هغه د ټولو غوښو څخه اخستو سره په یوې کټوې کې واچول. او هغه یې پخه کړه. هر کله چې غوښه پخه شوه نو) نبی کریم ﷺ او حضرت علي  د قربانۍ د هغه غوښې څخه وخوړه، او د هغه ښوروا يې وڅکله. [٤] بیا نبی کریم ﷺ سور شو، او د خانه کعبې طرف ته روان شو هلته رسیدو سره یې طواف وکړې، او په مکه کې يې د ماسپخین مونځ وکړې. [٥] بیا د عبد المطلب اولاد (یعني خپل تره حضرت عباس  او د هغوی اولاد ته يې تشریف راوړو) چې د زمزم اوبه يې په خلقو څکلي، نبی کریم ﷺ هغوی ته وفرمایل چې اې د عبد المطلب اولاده! د زمزم اوبه راکاږئ او په چښنې یې چې دا ډېر د ثواب کار دی. که ماته د دې خبري بیره نه واي، چې خلق به ستاسو په اوبو څکلو غلبه پیدا کړي. نو مابه هم ستاسو سره اوبه راخکلې (یعني د دې خبري بیره چې خلق ما په اوبو راخکلو لیدو سره زما په اتباع کې خپله به هم اوبه را خکل شروع کړي او دلته به ډیر زیات جمع شي. چې د هغه په وجه به د زمزم اوبه راخکلو او څکلو دا سعادت ستاسو د لاسه څخه ووځي. که ما سره دا بیره نه وې. نو ما به خپله هم ستاسو خلقو سره اوبه راخکلای او په خلقو به مې څکلای. [٦] نو د عبد المطلب اولاد، نبی کریم ﷺ ته د اوبو یو ډول ورکی. چې د هغه څخه نبی کریم ﷺ اوبه وڅکلي (مسلم)

**حل اللغات:** ⊛ فَأَفَاضَ: أَيْ أَسْرَعَ: په جلتۍ او تلوار سره روان شو ⊛ انْزِعُوا: أَيِ الْمَاءَ: راوکاږئ (اوبه یا بوقي)، ⊛ سِقَايَتِكُمْ: چه تاسو په خلقو باندې اوبه څکوئ

**تسهيلات:**

**نوټ:** دَ حجة الوداع دَ الفاظو تحقیق دې نه وړاندې حدیث نمبر: ٢٥٣٥ (باب الاحرام والتلبيه) کښې تیرشوې دې

**قوله**: فَقَدِمَ الْمَدِينَةَ بَشَرٌ كَثِيرٌ فَخَرَجْنَا مَعَهُ:

**په حجة الوداع کښې د صحابه کرامو تعداد**: دَ حجة الوداع په موقع باندې حضورپاك سره دَ صحابه کرامو څومره تعداد وو په دې کښې دَ بعض حضراتو قول دې چه څلويښت زره نفوس قدسيه شريك وو ① بعض حضرات وائى ۹۰ زره کسان وو ② دَ بعض حضراتو وينا ده چه يولاکهه اوديرش زره صحابه وو بعضو دَ يونيم لاکهو قول هم کړې دې نور اقوال هم دى هريواندازه لګولوسره تعدادخودلې دې يقينى شميرخو چاهم نه وو کړې

**قوله**: لَسْنَا نَعْرِفُ الْعُمْرَةَ:

**دصحابؤ د خيال وجه**: دَدې مطلب دا دې چه زمونږ خيال وو چه حضوراکرم به صرف حج کوى عمره به نه کوى داخيال ځکه وو چه دَ جاهليت په زمانه کښې دَعربودا رواج وو چه هغوى به اشهرالحج کښې عمره کولوته "افجرالفجور" يعنى لويه ګناه ګڼړله حضورپاك غوښتل چه دا رسم ختم شى په دې وجه حضورپاك صحابه کرامو ته دَ عمرې حکم ورکړو دا جمله دې نه دَ وړاندې جملې دَپاره تاکيد دې

**قوله**: وَهَزَمَ الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ: دا دَ غزوه احزاب او غزوه خندق طرف ته اشاره ده دولس زرو کفرانو دَ مدينې محاصره کړې وه تريوې مياشتې پورې هلته پراته وو بياالله تعالى هوا راؤليګله کافران ټول اوتختيدل حضورپاك به هميشه دَ الله تعالى دَ دغه نصرت اوامداد شکريه اداکوله دلته هم دَ دغه شکرذکر دې

**قوله**: لَوْ أَنِّي اسْتَقْبَلْتُ: يعنى که ماته دَ راتلونکى مستقبل دَ امورو علم دَاول نه وې چه بعض خلق به ځان سره څاروى نه راولى اوبعض به راولى بعض به دَ افراد نيت کوى او بعض به په عمره سره وى دغه شان به زما اودَهغوى دَعمل په مينځ کښې فرق راشى که ماته دَدې علم دَ اول نه شوې وې نو مابه کله هم دَ قربانئى څاروې ځان سره نه راوستلو په دې وجه اوس تاسو ټول احرام کولاؤ کړئى او خپل حج عمره کړئى دې دَپاره چه په اشهرالحج کښې دَ عمرې نه کولو رسم مات شى

دَ حجة الوداع په موقع چه کله حضورپاك مکې ته اورسيدو نوهلته دَ خلقو عمل داسې مختلف شو چه بعض خلقو څاروى ځان سره راوستلې وو حضورپاك هم ځان سره راوستلې وو دې خلقو دَ يوم النحر پورې خپل احرام نه شو کولاوولې بعضو ځان سره خپل څاروى نه وو راوستلې هغوى ته حضورپاك فسخ الحج الى العمرة دَپاره اوونيل نو په هغوى سخته اولګيده چه دَ حضورپاك دَعمل خلاف به څنګه کوو بل دا چه دَ حج ورځې هم بالکل ډير کمې پاتې وې بل دَ جاهليت په زمانه کښې دغه شان په اشهرالحج کښې عمره کول به هغه خلقو "افجر الفجور" ګڼړلو په دې باندې حضورپاك دَ تلطف په انداز کښې غصه اوکړه او وئى فرمائيل

که مونه د راتلونکی وخت پته وه چه څه خلق به بغیر د څاروی راخی نو مابه هم ځان سره نه راوستلو. اوس د مسئلې د حدپورې خبره داده چه امام احمد بن حنبل رحمه الله او اهل ظواهر وائي لکه څنګه چه په دې سفر کښې شوی دی د همیشه دپاره داجائزدی چه یوسړې دې خپل حج فسخ کړی او عمره دې کړی هغوی په زیر بحث حدیث کښې د لابدلابد الفاظونه استدلال کړی دی.

جمهور علماء او فقهاء فرمائی چه دا ضابطه نه ده صرف هم په دغه کال د صحابه کرامو دپاره دغه حکم وو دې دپاره چه د جاهلیت رسم مات شی دلیل پرې د ابوداؤد او نسائی داروایت دی "عن بلال عن الحارث عن ابیه قال قلت یارسول الله ارئیت فسخ الحج بالعمرة لنا خاصة ام للناس عامة فقال بل لنا خاصة"

د لابدلابد جواب دادې چه ددې تعلق فسخ سره نه دې بلکه عمره سره دې. په دې جمله باندې هم د بریلیانو په مخ باندې یوه ناترسه څپیړه لګیدې شی چه وائی حضور ماکان وما یکون او د ذرې ذرې علم غیب لری.

**قوله: دَخَلَتِ الْعُمْرَةُ:**

**مذکوره قول مطلب:** داهم د دغه ضابطه او قاعده طرف ته اشاره ده چه اوس په اشهر الحج کښې عمره کول ګناه نه ده اوداحکم د همیشه دپاره دې.

**قوله: بِنَمِرَةَ:**

**د نمرة مصداق:** د عرفات په میدان کښې د یوځائی اومقام نوم نمره دې هم په دغه ځائی د حضورپاك خیمه لګولې شوې وه او نن صبا هم په دغه ځائی مسجد نمره هم په دغه نوم باندې مشهوردې. دلته د ماسپښین اومازیګر مونځ په یوځائی یواذان سره کولې شی لکه چه په مزدلفه کښې په یواذان سره کولې شی.

**قوله: الْمَشْعَرَ الْحَرَامَ:** په مزدلفه کښې د یوغرنوم دې نن صبا دغه ځائی کښې یولوئی جمات دې مزدلفه کښې هرځائی وقوف جائزدې مګردا ځائی بهتردې.

**قوله: بَطْنَ مُحَسِّرٍ:** د مزدلفه نه د منی طرف ته تللوسره منی سره نیزدې یوه وادی ده د کوم نوم چه وادی محسردې. حاجیانوته حکم دې چه دې ځائی کښې به تیز تیز ځی ځکه چه دلته په ابرهه ظالم باندې آسمانی عذاب نازل شوې وو په مزدلفه کښې هرځائی وقوف جائز دې مګر په وادی محسر کښې جائزنه دې.

**قوله: يَغْلِبَكُمُ النَّاسُ:** یعنی که زه د دغه کوهی نه د زمزم ډولچه اوباسم نو ټول خلق به زما په اقتداء دغه کار شروع کړی دغه شان به تاسو دا عهده ځی په دې وجه غوښتلوسره هم زه په ډولچه باندې اوبه نه راوباسم

**[٢٥٥٦] د تنعيم نه د عمري ثبوت**

٢٥٥٦ - [٢] (١) [١] وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: «خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ، [٢] فَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ وَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِحَجٍّ، [٣] فَلَمَّا قَدِمْنَا مَكَّةَ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ وَلَمْ يُهْدِ فَلْيَحْلِلْ، [٤] وَمَنْ أَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ وَأَهْدَى فَلْيُهِلَّ بِالْحَجِّ مَعَ الْعُمْرَةِ، ثُمَّ لَا يَحِلُّ حَتَّى يَحِلَّ مِنْهُمَا،

**ترجمه** [١] بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې مونږ د نبی کريم ﷺ سره د حجة الوداع په موقع روان شو. [٢] نو په مونږ کې بعضې خو هغه وو چې هغوی يواځې د عمري احرام تړلی وو. او بعضې هغه وو چې هغوی يواځې د حج (يا د حج او عمري دواړو) احرام وتړلی. [٣] کوم وخت چې مونږ مکې ته ورسيدو، نو نبی کريم ﷺ وفرمايل چا چې يواځې د عمري احرام تړلی دی. او د ځان سره يې د قربانۍ څاروی نه دي راوستلي، هغه دي د عمري د افعالو څخه روسته د خپل سر وېښته وخريي يا دي قينچي کړي، احرام دي خلاص کړي. او چا چې د عمري احرام تړلی دی. او د قربانۍ څاروی يې د ځان سره راوستلی دی نو هغه دي عمري سره د حج احرام وتړي (يعني حج، عمري سره شاملولو سره دي قارن شي. او تر څو چې هغه د حج او عمري دواړو څخه فارغه نشي، احرام دي نه خلاصه وي.

**حل اللغات** ① لَمْ يُهْدِ: دا د إِهْدَاء نه دي، أَيْ لَمْ يَكُنْ مَعَهُ هَدْيٌ: چا سره چه په حج کښې د قربانۍ څاروی نه وی ② فَلْيَحْلِلْ: أَيْ فَلْيَخْرُجْ مِنَ الْإِحْرَامِ: حلال دي شی د احرام نه دي اوځي (يعنی قصر يا حلق دي اوکړی او احرام دي لرې کړی، ③ فَلْيُهِلَّ: أَيْ مِنْهُمَا: يعنی حج او عمره دي يوځائ اوکړی يعنی قارن به شي

[١] وَفِي رِوَايَةٍ فَلَا يَحِلُّ حَتَّى يَحِلَّ بِنَحْرِ هَدْيِهِ، وَمَنْ أَهَلَّ بِحَجٍّ فَلْيُتِمَّ حَجَّهُ [٢] قَالَتْ: فَحِضْتُ وَلَمْ أَطُفْ بِالْبَيْتِ وَلَا بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، فَلَمْ أَزَلْ حَائِضًا حَتَّى كَانَ يَوْمُ عَرَفَةَ وَلَمْ أُهْلِلْ إِلَّا بِعُمْرَةٍ، [٣] فَأَمَرَنِي النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ أَنْقُضَ رَأْسِي وَأَمْتَشِطَ، وَأُهِلَّ بِالْحَجِّ وَأَتْرُكَ الْعُمْرَةَ:

**ترجمه** [١] په يو روايت کې دا الفاظ دي تر څو چې هغه د بقر عيد (د لوی اختر) په ورځ د خپلي قربانۍ د څاروی د ذبح څخه فارغه نشي، احرام دي نه خلاصه وي. او چا چې د حج احرام تړلی دی که هغه د قربانۍ څاروی د ځان سره راوستلی وي يا يې نه وي راوستلی او هغه د حج سره د عمري احرام هم تړلی وي يا يې نه وي تړلی. هغه دي خپل حج پوره کړي (خو کومو خلقو ته چې د عمري سره د حج فسخ کولو حکم ورکول شوی دی. څرنګه چې په تير روايت کې تير شو. هغه دي خپل حج نه پوره کوي) [٢] بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې زه حائضه شوم. کله مکې ته رسيدو سره. نه ما د عمري د پاره طواف وکړي او نه د صفا او

---

[١]) اخرجه البخاري صحيحه /باب كيف تهل الحائض بالحج والعمرة (رقم -٣١٩) ومسلم في كتاب الحج /باب بيان وجوه الإحرام، وأنه يجوز إفراد الحج والتمتع والقران، وجواز إدخال الحج على العمرة، ومتى يحل القارن من نسكه (رقم -١١١-١٢١١) وابوداود في السنن رقم الحديث ١٧٨١، والنسائي في السنن رقم الحديث ٢٧٦٤

مروه په منځ کې مې سعې وکړه، زه د حیض په حالت کې وم. چې د عرفې ورځ راغله، او د عمرې احرام تړلی وو[٣] خکه نبی کریم ﷺ ماته حکم وکړې چې زه خپل سر خلاص کړم. ویښتان ږمونځ کړم (یعنې احرام خلاص کړم چې کوم څیزونه د احرام په حالت کې ممنوع دی، هغه مباح شی او بیا د حج احرام وتړم) او دا چې عمره پرېږدم (یعنې د حج څخه فارغیدو سره د عمرې د احرام قضاء راوړم)

**حل اللغات:** ④أَنْقُضَ: چه خپل ویښته خلاص کړم، اوسپړم. ⑤أَمْتَشِطَ: ویښته گمنز کړم

[١] فَفَعَلْتُ حَتَّى قَضَيْتُ حَجِّي، بَعَثَ مَعِي عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ أَبِي بَكْرٍ، وَأَمَرَنِي أَنْ أَعْتَمِرَ مَكَانَ عُمْرَتِي مِنَ التَّنْعِيمِ [٢] قَالَتْ: فَطَافَ الَّذِينَ كَانُوا أَهَلُّوا بِالْعُمْرَةِ بِالْبَيْتِ، وَبَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، ثُمَّ حَلُّوا ثُمَّ طَافُوا طَوَافًا بَعْدَ أَنْ رَجَعُوا مِنْ مِنًى [٣] وَأَمَّا الَّذِينَ جَمَعُوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَإِنَّمَا طَافُوا طَوَافًا وَاحِدًا» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** [١] ما دغه شان وکړل، او کوم وخت چې ما حج اداء کړې، نو نبی کریم ﷺ ما سره عبد الرحمٰن ابن ابي بکر تنعیم ته ولیږلی، او ماته یې حکم راکړې، چې مقام تنعیم څخه د احرام تړلو سره، د خپلې قضاء شوي عمرې په بدله کې عمره وکړم. [٢] بي بي عائشه رضی الله عنها وایې چې کومو خلقو چې یواځې د عمرې احرام تړلی وو، هغوئ د عمرې د پاره د خانه کعبې طواف وکړې، او بیا د صفاء او مروه په منځ کې یې سعې وکړه، د دې څخه روسته هغوئ احرام خلاص کړې، خلق د منٰی څخه مکې ته واپس راتلو سره دوباره د خپل حج طواف یې وکړې. چې هغه ته طواف افاضه وایې، [٣] او کومو خلقو چې حج او عمره دواړه جمع کړی وو (یعنې د شروع څخه یې د حج او عمرې دواړو احرام تړلی وو یا وروسته یې د یو بل سره شامل کړې وو) هغوئ یواځې یو یعنی د نحر په ورځ طواف وکړې، بخاري، مسلم

**تسهیلات: قوله:** وَمَنْ أَهَلَّ بِحَجٍّ فَلْيُتِمَّ حَجَّهُ:

**په حدیثونو کښې تعارض او دهغې حل:** دې نه مخکښې روایت کښې دَ "فسخ الحج الی العمرة" حکم دې اودلته دَ حج دَتکمیل اوعدم فسخ حکم دې چه په ظاهره تعارض دې دَدې جواب دادې چه دَ تکمیل حج معامله دَ هغه خلقو ده چاته چه دَ فسخ حج حکم نه ووشوې دَ چاذکرچه دلته په حدیث کښې دې. دې نه مخکښې چه کوم حدیث تیرشوې دې هغه دَ هغه خلقو متعلق دې چاته چه "فسخ الحج الی العمرة" حکم ورکړې شوې وو نوجدا جدا خلق دی جدا جدا حکم دې هیڅ تعارض نشته دې

**قوله:** وَأَمَرَنِي أَنْ أَعْتَمِرَ مَكَانَ عُمْرَتِي مِنَ التَّنْعِيمِ

**د مقام تنعیم تعارف:** مکې مکرمې سره نیزدې دَیوځائی نوم دې چرته چه لوئی جمات دې کوم چه دَ مسجدعائشه په نوم سره مشهور دې چه دَمکې نه دَدریومیلو په فاصله باندې واقع دې او دا ځائی دَ ارض حرم نه بهرپه زمکه دَ حل کښې دې.

**د مسجد عائشې څخه د احرام تړلو جواز:** ليکن دَ اهل ظواهر مسلك دادي چه دَ اهل حرم دَخلقو د عمرې دپاره صرف تنعيم خاص دي عام دَ ارض حل نه احرام نه شي تړلې جمهور فقهاء فرمائي چه اصل حکم دَحرم دزمکې نه وتل دی دَتنعيم څه تخصيص نشته اوتنعيم چونکه نيزدې پريوځې په دې وجه حضورپاك حضرت عائشه ﷺ هلته اوليګله

**قوله:** فَإِنَّمَا طَافُوا طَوَافًا وَاحِدًا:

**دقارن د د طواف او سعی په تعدد کښې مذاهب:**

① ائمه ثلاثه فرمائي چه دَعام حاجي اوقارن فرق صرف دَ نيت کولو او احرام تړلو کښې دي دې نه پس افعال دَحج کښې قارن او غيرقارن ټول برابردي

② احناف فرمائي چه قارن به دوه طوافه اودوه سعی کوی.

**داول فريق دليل:** بحث حديث د دوی مستدل دې په دې کښې د "طوافاً واحداً" واضح الفاظ موجوددی

**داول فريق د دليل دوې جوابونه:** ① دَ "طوافاً واحداً" مطلب دادې چه "انما طافوا الكل منهما طوافاً واحداً" يعنی حج اوعمره دواړونه دَهريودَ پاره يويوطواف دې.

② شيخ الهندنه نقل دی چه دلته دَ طواف نه مراد طواف قدوم نه دې بلکه طواف زيارت مراد دې اوهغه دَ ټولو دَپاره يودې.

③ عقلی دليل دا دې که دَ قارن په افعالو کښې دَ قِران اثر ښکاره نه شي نوبيا دَقِران مطلب څه شو بيا دې ته دَافراد يا تمتع څخه جدا نوم اومقام ولې ورکړې شو؟

**د دويم فريق اول دليل:**

① دَ دارقطني دَ يوحديث نه ثابتيږی دَ قارن دَپاره دوه طواف او دوه سعی دی.

② دَحضرت علی ﷺ اوحضرت ابن مسعود ﷺ نه هم نقل دی چه قارن به دوه طواف او دوه سعی کوی

**د حديث فوائد:** ① په دې حديث سره هغه خلقو ته يو جواب ملاؤ شو څوك چه دَتنعيم نه دَعمرې کولو قائل دی اووائی چه دَ جعرانه نه عمره مسنون ده دَ تنعيم نه نه ده

② دويمه خبره دا ثابته شوه چه دَاهل حرم دَپاره ضروری ده چه هغوی دَ عمرې احرام دَ حل دَ زمکې نه اوتړی دَ حرم دَ زمکې نه دې نه تړی اوتنعيم دَ حل په زمکه کښې دې.

## [٢٥٥٧] حج تمتع ثابت دی

٢٥٥٧-[٣] ( ) ١ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: «تَمَتَّعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ، فَسَاقَ مَعَهُ الْهَدْيَ مِنْ ذِي الْحُلَيْفَةِ، ٢ وَبَدَأَ فَأَهَلَّ بِالْعُمْرَةِ، ثُمَّ أَهَلَّ بِالْحَجِّ، فَتَمَتَّعَ النَّاسُ مَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ ٣ فَكَانَ مِنَ النَّاسِ مَنْ أَهْدَى، وَمِنْهُمْ مَنْ لَمْ يُهْدِ،

**ترجمه** ١ عبد الله ابن عمر ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ عمره د حج سره يو ځای کولو سره تمتع وکړه (يعني فائده يې واخسته په دې طور چې مخکې يې د عمرې احرام وتړلی. بيا د حج، او ذوالحليفه څخه (چېرته چې نبی کريم ﷺ احرام تړلی وو) د قرباني ځاروی يې د ځان سره راوستلی وو، ٢ مخکې نبی کريم ﷺ د عمرې احرام تړلی وو. بيا يې د حج احرام وتړلی، او خلقو هم د نبی کريم ﷺ سره عمره د حج سره يو ځای کولو سره تمتع وکړله، ٣ بعضې خلقو چې هغوئ د عمرې احرام تړلی وو. هغه وو چې د قرباني ځاروی يې د ځان سره راوستلی وو، او بعضې هغه وه چې د قرباني ځاروی يې د ځان سره نه وو راوستلی،

١ فَلَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَكَّةَ قَالَ لِلنَّاسِ: ٢ "مَنْ كَانَ مِنْكُمْ أَهْدَى، فَإِنَّهُ لَا يَحِلُّ مِنْ شَيْءٍ حَرُمَ مِنْهُ حَتَّى يَقْضِيَ حَجَّهُ، ٣ وَمَنْ لَمْ يَكُنْ مِنْكُمْ أَهْدَى، فَلْيَطُفْ بِالْبَيْتِ، وَبِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَلْيُقَصِّرْ، وَلْيَحْلِلْ، ثُمَّ لِيُهِلَّ بِالْحَجِّ، ٤ فَمَنْ لَمْ يَجِدْ هَدْيًا فَلْيَصُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ، وَسَبْعَةً إِذَا رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ،

**ترجمه** ١ کوم وخت چې نبی کريم ﷺ مکې ته ورسيدي نو عمره کونکو خلقو ته يې وفرمايل ٢ چې په تاسو کې چې کوم سړی د قرباني ځاروی د ځان سره راوستلی وي، هغه دې هغه څيز نه حلالوي، چې د هغه څخه منع شوی وي (يعني احرام دې نه خلاصه وي) تر دې چې هغه خپل حج اداء کړي، ٣ او کوم سړی چې د قرباني ځاروی د ځان سره نه وي راوستلی، نو هغه دې د عمرې د پاره د خانه کعبې طواف وکړي، د صفا او مروه په منځ کې دې سعي وکړي، وېښتان دې کټ کړي، بيا دې د عمرې احرام خلاص کړي (يعني کوم څيزونه چې د احرام په حالت کې ممنوع وو، هغه دې مباح کړي) د دې څخه روسته دې د حج د پاره دوباره احرام وتړي، او رمي جمار څخه روسته د سر خريلو څخه مخکې د نحر په ورځ دې قرباني وکړي ځکه چې د حج او عمرې د ادائيګۍ توفيق او د الله ﷻ د دې عظيم نعمت د شکر ګذارۍ په طور متمتع باندې قرباني واجب ده، ٤ او کوم سړي ته چې د قرباني ځاروی ميسر نشي نو هغه دې درې روژې د حج په ورځو کې (يعني د حج په مياشتو کې) د احرام څخه روسته او د قرباني د ورځې څخه مخکې ونيسي، په دې باره

---

( ) اخرجه البخاري في كتاب الحج /باب من ساق البدن معه (رقم-١٦٩١) ومسلم في كتاب الحج /باب وجوب الدم على المتمتع، وأنه إذا عدمه لزمه صوم ثلاثة أيام في الحج وسبعة إذا رجع إلى أهله (رقم-١٧٤ - (١٢٢٧) وابوداود في السنن رقم الحديث ١٨٠٥. والنسائي في السنن رقم الحديث ٢٧٣٢

کې افضله دا ده چې د ذی الحجه په اووم، اتم او نهم تاريخ دري روځي ونيسي او اووه روځي هغه وخت ونيسي هر کله چې خپل اهل وعيال، ته را ورسيږي يعنی د حج د افعالو د فارغيدو څخه روسته دي ونيسي، خواه که په مکه کې دا ټولي روځي ونيسي. خواه کور ته رسيدو سره،

١ فَطَافَ حِينَ قَدِمَ مَكَّةَ، وَاسْتَلَمَ الرُّكْنَ أَوَّلَ شَيْءٍ، ثُمَّ خَبَّ ثَلَاثَةَ أَطْوَافٍ، وَمَشَى أَرْبَعًا، ٢ فَرَكَعَ حِينَ قَضَى طَوَافَهُ بِالْبَيْتِ عِنْدَ الْمَقَامِ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ سَلَّمَ، فَانْصَرَفَ، ٣ فَأَتَى الصَّفَا، فَطَافَ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ سَبْعَةَ أَطْوَافٍ، ثُمَّ لَمْ يَحِلَّ مِنْ شَيْءٍ حَرُمَ مِنْهُ حَتَّى قَضَى حَجَّهُ، ٤ وَنَحَرَ هَدْيَهُ يَوْمَ النَّحْرِ، وَأَفَاضَ فَطَافَ بِالْبَيْتِ، ثُمَّ حَلَّ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ حَرُمَ مِنْهُ، ٥ وَفَعَلَ مِثْلَ مَا فَعَلَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَنْ سَاقَ الْهَدْيَ مِنَ النَّاسِ». (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** ١ بهر حال نبی کریم ﷺ مکي ته د رسيدو سره، د عمري د پاره د خانه کعبي طواف وکړي. او د طواف چې کوم افعال دي، په هغه کې د ټولو ځيزونو څخه مخکې. خو د لبيک ويلو څخه پس، حجر اسود يې ښکل کړه، او په طواف کې دري څله خو په تلوارۍ تلوارۍ سره (يعني وړي ښوررولو او په تيز تلو سره) لاړو او څلور څله په معمولي تلو سره ٢ لاړو. بيا د خانه کعبي چاپيره طواف پوره کولو څخه روسته په مقام ابراهيم يې دوه رکعته مونځ وکړي. او سلام يې وګرځوی (يعني صلوٰة الطواف يې وکړي. د حنفيه وو په نزد د مونځ واجب دی) ٣ د دې څخه روسته د خانه کعبي څخه تلو سره صفا ته راغلو. او د صفا او مرود په منځ کې اووه چکرونه ووهل (يعني سعي يې وکړه) د دې څخه روسته د څه داسې شي سره حلال نه شو. چې د هغه څخه پرهيز کول کيږی (يعنې د احرام څخه وتلی نه وو) تر دې چې نبی کريم ﷺ خپل حج پوره کړي، ٤ او د نحر په ورځ (په لسم ذي الحجه) د خپلي قرباني خاروی يې ذبح کړي (نو اوس د سر خريلو څخه روسته هغه ټول ځيزونه چې د احرام په حالت کې ممنوع وو مباح شو، علاوه د خپلي بي بي سره د هم بستری څخه) او بيا د منی څخه) روان شو (او مکي ته رسيدو سره) د خانه کعبي طواف (يعني طواف افاضه) يې وکړي. او د دې څخه روسته هغه ځيز حلال شو کوم چې ممنوع وو (يعني اوس د طواف څخه د فراغت وروسته د بي بي سره هم بستري هم حلاله شوه) ٥ بيا د کومو خلقو سره چې د قرباني خاروی وو هغوی هم هغه څه وکړل کوم چې نبی کريم ﷺ کړی وو، بخاري، مسلم

**حل اللغات**: ① فَسَاقَ: راوستلي ني وو، ② وَلْيُقَصِّرْ: وينښتان دې کم کړی ③ وَلْيَحْلِلْ: أَيْ: لِيَخْرُجْ مِنْ إِحْرَامِهِ: احرام دې اوسپړی ④ خَبَّ: أَيْ: رَمَلَ: په طواف کښې اوږو خوزولو ته رمل وائی يعنی پهلوانی

تسهيلات:

قوله فَتَمَتَّعَ النَّاسُ مَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**په حديث كښې د حنابلو تائيد او د احنافو توجيه:** د دې حديث نه ثابتيږي چه حضور پاك ﷺ حج تمتع اداكړې دې هم دغه د امام احمدبن حنبل رحمه الله مسلك دې احناف داحديث په قران باندې حمل كوي اود تمتع د الفاظو لغوي معنى اخلي يعنى نفع اوچتول او د قران په صورت كښې دوه چنده نفع اوچتولې كيږي بهرحال دا يو بعيدتاويل دې مګر ددې وجه نه د قران نورو روايتونو پيداكړې دې

**[٢٥٥٨] اشهرالحج كښې عمره كول جائزدى**

٢٥٥٨-[٤] ( )[١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «هَذِهِ عُمْرَةٌ اسْتَمْتَعْنَا بِهَا [٢] فَمَنْ لَمْ يَكُنْ عِنْدَهُ الْهَدْيُ فَلْيَحِلَّ الْحِلَّ كُلَّهُ، [٣] فَإِنَّ الْعُمْرَةَ قَدْ دَخَلَتْ فِي الْحَجِّ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ» . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه** [١] ابن عباس رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل دا عمره ده چې مونږ خني فائده پورته كړى ده، [٢] د چا سره چې د قرباني ځاروى نه وي، هغه دې په هر طور سره حلال شي يعنې د عمرې څخه روسته دى پوره احرام خلاص كړي، [٣] ځكه چې د حج په مياشتو كې عمره كول تر قيامته جائز شوي دي، مسلم

**حل اللغات:** ① اسْتَمْتَعْنَا: فائده مو واخسته، ددې نه مراد دحج نه مخكښې عمره كول او احرام خلاصول دى ② فَلْيَحِلَّ الْحِلَّ: أي: الْحِلَّ التَّامَّ: پوره دې حلال شي يعنې هرڅه دې په خان حلال كړى كوم چه د عمرې داحرام په وجه په دې باندې حرام وو.

**تسهيلات: قوله:** فَإِنَّ الْعُمْرَةَ قَدْ دَخَلَتْ فِي الْحَجِّ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ:

**دعمرې په حج كښې د داخليدومطلب:** بار بار ليكلې شوى دى چه د عربوخلقوبه په جاهليت كښې عمره د اشهرالحج نه جدا ساتله اود دې دپاره به ئې مسجع كلام كولو بخارى شريف كښې داسې حديث دې "عن ابن عباس رضي الله عنه قال كانوا يرون ان العمرة فى اشهر الحج افجر الفجور فى الارض ويجعلون المحرم صفر ويقولون اذا برأ الدبر وعفا الاثر وانسلخ صفر حلت العمرة لمن اعتمر" يعنى كله چه د اوښانو زخمونه صحيح شى اود قدمونو نښې ورانې شى اود صفرمياشت تيره شى بيابه د عمره كونكودپاره عمره حلال شى د دغه رسم او رواج د ختمولو د پاره په دې حديث كښې فرمائيلى شى چه عمره ترقيامته پورې په حج كښې داخله شوه

## وَهٰذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّانِيْ

[١] اخرجه مسلم فى كتاب الحج /باب جواز العمرة فى أشهر الحج (رقم-٢٠٣ - (١٢٤١) والنسائى فى السنن ر قم الحديث ٢٨١٥. والدارمى فى السنن رقم الحديث ١٨٥٦

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [٢٥٥٩] فسخ الحج باندې د صحابه کرامو رضي الله عنهم شک

٢٥٥٩-[٥] ( ) [١] عَنْ عَطَاءٍ قَالَ: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - فِي نَاسٍ مَعِي قَالَ: [٢] «أَهْلَلْنَا أَصْحَابَ مُحَمَّدٍ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِالْحَجِّ خَالِصًا وَحْدَهُ، [٣] قَالَ عَطَاءٌ: قَالَ جَابِرٌ: فَقَدِمَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صُبْحَ رَابِعَةٍ مَضَتْ مِنْ ذِي الْحِجَّةِ، فَأَمَرَنَا أَنْ نَحِلَّ، [٤] قَالَ عَطَاءٌ: قَالَ: حِلُّوا، وَأَصِيبُوا النِّسَاءَ،

**ترجمه** [١] عطاء رحمه الله وايي چې ما د څو سړيو سره چې ما سره په مجلس کې شريکان وو، د جابر ابن عبد الله رضي الله عنه څخه واوريدل چې هغه فرمايل [٢] د حجة الوداع په موقع، مونږ صحابه رضي الله عنهم بغير د عمري د شموليت، خالص د حج احرام وتړی، [٣] عطاء رحمه الله وايي چې حضرت جابر رضي الله عنه وفرمايل بيا چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم د ذي الحجه په څلورم تاريخ په سحر کې مکي ته ورسيدي، نو مونږ ته يي حکم راکړي چې مونږ احرام خلاص کړو. [٤] د عطاء رحمه الله بيان دی چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم دا فرمايلي وو، چې احرام خلاص کړي، او خپلو ښځو ته ورځي (يعني د هغوی سره نزديکت هم کوی)

[١] قَالَ عَطَاءٌ: وَلَمْ يَعْزِمْ عَلَيْهِمْ، وَلَكِنْ أَحَلَّهُنَّ لَهُمْ، [٢] فَقُلْنَا: لَمَّا لَمْ يَكُنْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ عَرَفَةَ إِلَّا خَمْسٌ أَمَرَنَا أَنْ نُفْضِيَ إِلَى نِسَائِنَا، فَنَأْتِيَ عَرَفَةَ تَقْطُرُ مَذَاكِيرُنَا الْمَنِيَّ، [٣] قَالَ: يَقُولُ جَابِرٌ بِيَدِهِ: كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى قَوْلِهِ بِيَدِهِ يُحَرِّكُهَا، [٤] قَالَ: فَقَامَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِينَا،

**ترجمه** [١] او عطاء رحمه الله وايي چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم د ښځو نزديکت واجب کړی نه وو بلکه نبی کريم صلی الله عليه وسلم ښځي د هغوی د پاره حلالي ګرځولي وي (يعني د احرام خلاصولو حکم د وجوب په طور وو، البته د صحبت او مجامعت حکم يواځې د اباحت او جواز په صورت کې وو) [٢] حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې مونږ (د نبی کريم صلی الله عليه وسلم دا حکم اوريدو سره تعجب سره) اوويل هر کله چې زمونږ او عرفې په منځ کې يواځې پنځه ورځي باقي پاتې شوي دي، نو نبی کريم صلی الله عليه وسلم مونږ ته دا حکم راکړی دی، چې مونږ د خپلو ښځو سره مجامعت (صحبت او جماع) وکړو (دا خو به عجيبه خبره وي چه) مونږ د عرفات ميدان ته په داسې حالت کې لاړ شو چې زمونږ د عضو مخصوص څخه مني څاڅي (يعني د شپې مونږ جماع وکړو. او سحر عرفات ته ورسو) دا خبره به د جاهليت په ورځو کې ډيره بده ګڼل کيده. چې د ښځو سره مجامعت او په حج کې دومره قرب اوشي بلکه دا شی يي په حج کې د نقصان باعث ګڼلی. [٣] عطاء رحمه الله وايي چې حضرت جابر رضي الله عنه د دې عضو مخصوص د تحرک تشبيه کولو سره خپل لاس ته اشاره وکړه، او د هغه د لاس اشاره او د خپل لاس ښورول

---

[١] اخرجه مسلم فی کتاب الحج /باب بيان وجوه الإحرام، وانه يجوز إفراد الحج والتمتع والقران، رقم الحديث ٢٨٠٥. وابن ماجة فی السنن رقم الحديث ٢٩٨٠. والنسائي في السنن

نکه چې اوس هم زما په نظر کې گرځي، ④حضرت جابر ﷺ وايي چې نبي کريم ﷺ ته چې زمونږ د دې تردد او تامل (پريشاني) علم وشو، نو زمونږ په منځ کې د خطبې د پاره ودريدلو،

**حل اللغات:** ①لَمْ نَعْزِمْ: أَيْ: لَمْ نُوجِبْ: يعنې واجب نې نه وو گرځولې ②نُفْضِيَ: دا د إِفْضَاء نه دې. أَيْ: نَصِلُ: چه مونږ اورسيږو (دا کنايه ده دجماع نه يعنې چه مونږ دخپلو ښځو سره مجامعت اوکړو)
③تَقْطُرُ: چه څاڅي به،

①فَقَالَ: قَدْ" عَلِمْتُمْ أَنِّي أَتْقَاكُمْ لِلَّهِ، وَأَصْدَقُكُمْ، وَأَبَرُّكُمْ،②وَلَوْلَا هَدْيِي لَحَلَلْتُ كَمَا تَحِلُّونَ، وَلَوِ اسْتَقْبَلْتُ مِنْ أَمْرِي مَا اسْتَدْبَرْتُ لَمْ أَسُقِ الْهَدْيَ فَحِلُّوا، فَحَلَلْنَا، وَسَمِعْنَا، وَأَطَعْنَا.③قَالَ عَطَاءٌ قَالَ جَابِرٌ: فَقَدِمَ عَلِيٌّ مِنْ سِعَايَتِهِ،④فَقَالَ: بِمَ أَهْلَلْتَ، قَالَ: بِمَا أَهَلَّ بِهِ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-⑤فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَأَهْدِ، وَامْكُثْ حَرَامًا،⑥قَالَ: وَأَهْدَى لَهُ عَلِيٌّ هَدْيًا،⑦فَقَالَ سُرَاقَةُ بْنُ مَالِكِ بْنِ جُعْشُمٍ: يَا رَسُولَ اللهِ، أَلِعَامِنَا هَذَا أَمْ لِأَبَدٍ؟ فَقَالَ: لِأَبَدٍ». (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه:** ①او وې فرمايل چې تاسو پوهيږئ چې زه ستاسو په نسبت د الله ﷻ څخه زيات يرېږم، ستاسو څخه زيات ريښتنى او ستاسو د ټولو څخه زيات نيکو کار يم.②که ما سره د قربانۍ څاروى نه واى، نو ما به هم ستاسو په شان احرام خلاص کړى واى، څرنگه چې تاسو احرام خلاص کړي، او که ماته زما دا خبره د مخکې څخه معلومه واى. کومه چې وروسته راته معلومه شويده، نو ما به د قربانۍ څاروى د ځان سره نه وو راوستلى (يعنې که ماته دا معلومه واى، چې احرام خلاصول به په تاسو سخت تيريږي، نو ما به د قربانۍ څاروى د ځان سره نه راوستلى او ما به هم احرام خلاص کړى وي) تاسو (بلا تامل) احرام خلاص کړى، نو مونږ احرام خلاص کړي، او د نبي کريم ﷺ ارشاد مو واوريدلى او اطاعت مو وکړي.③د عطاء ﷫ بيان دى چې حضرت جابر ﷺ وفرمايل د دې څخه روسته حضرت علي د خپل کار څخه راغلو . يعنې هغه د يمن قاضي کيدو سره تللى وو. هر کله چې د هغه ځاى څخه راغلو ، ④نو نبي کريم ﷺ ځنې پوښتنه وکړه چې تا د څه شي احرام تړلى دى؟ حضرت علي عرض وکړي چې د څه شي احرام چې نبي کريم ﷺ تړلى دى (هغه ما هم تړلى دى)⑤بيا نبي کريم ﷺ حضرت علي ته وفرمايل چې د نحر په ورځ د قربانۍ څاروى ذبح کړه، چې دا په قارن واجب دى، او حالت احرام برقرار ساته (يعنې زما په شان اوس ته هم احرام تړلى شاته)⑥حضرت علي د نبي کريم ﷺ د پاره (يا د خپل ځان د پاره) د قربانۍ څاروى راوستلى، ⑦سراقه ابن مالك ابن جعشم ﷺ عرض وکړي چې يا رسول الله! ﷺ د حج په مياشتو کې د عمري جواز يواځې د دې کال د پاره دى يا د هميشه د پاره؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل چې د هميشه د پاره، مسلم

**حل اللغات:** ⑤وَامْكُثْ حَرَامًا: او حالت احرام برقرار ساته (يعنې زما په شان اوس ته هم احرام تړلى ساته)

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت عمر بن عطاء رحمه الله**: نوم عمر دَ پلار نوم عطاء دا تابعي دې. ربنتوني او صدوق دې د هغوی احادیث د محدثینو په نیز معتبر دی. مسلم شریف او ابوداؤد کښې دَ هغوی روایات موجود دی

**تسهیلات: قوله: بِالْحَجِّ خَالِصًا:**

**د نبي علیه السلام د حج بلره کښې د جابر رضي الله عنه خپل خیال**: دا دَحضرت جابر رضي الله عنه خپل خیال او دَخپل علم مطابق بیان دې گنی دَحضرت عائشه رضي الله عنها په روایت کښې دَ افراد تمتع قرآن او صرف دَ عمرې ذکر موجود دې

**دحدیث د بعضې جملو وضاحت:**

①**وَلَمْ يَعْزِمْ عَلَيْهِمْ**: یعنی حضوراکرم خو دَ فسخ الحج حکم تا کیداً کړې وو لیکن دَاحرام کولاوولو نه پس نی بښځوسره جماع کول لازم کړی نه وو صرف جائز او حلال نی گرځولې وو

②**خَمْسٌ**: یعنی دَ یوم عرفه پورې صرف پنځه ورځې پاتې شوې

③ **مَذَاكِيرُنَا الْمَنِيَّ**: یعنی عرفات ته تلو سره دَ مجامعت دَ وجې نه زمونږ دَ اندام مخصوصه نه منی څڅیږی

④**يُحَرِّكُهَا**: یعنی دَاندام مخصوصه نه دَ منی پریوتلو کیفیت حضرت جابر رضي الله عنه دَ لاس په حرکت ورکولوسره دَ واضح کولو کوشش اوکړو کوم چه دَعربو عادت وو چه هغوی به دَ یو کار نقشه دَ اندامونو په حرکت سره ښکاره کوله

⑤**فَقَالَ: لِأَبَدٍ**: یعنی په اشهرالحج کښې عمره کول دَهمیشه دَپاره جائزشوه دا مراد نه دې چه دَ فسخ الحج الی العمرة حکم دَ همیشه دَپاره باقی دې. دا هم دَ دغه یو کال دَپاره وو دې دَپاره چه دَ جاهلیت رسم مات شی

⑥ **وَسَمِعْنَا وَأَطَعْنَا**: یعنی دَ سخت تردد او دیر تامل نه پس مونږ هم هغه فیصله اوکړه دَ کوم چه حضورپاک حکم ورکړې وومونږ اطاعت اوکړو او دَ حضورپاك حکم مو واؤریدو

**[٢٥٦٠] دصحابه وو رضي الله عنهم په تردد د حضور صلی الله علیه وسلم غصه کیدل**

٢٥٦٠–[٦] (١) ①وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - أَنَّهَا قَالَتْ: «قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِأَرْبَعٍ مَضَيْنَ مِنْ ذِي الْحِجَّةِ، أَوْ خَمْسٍ، ②فَدَخَلَ عَلَيَّ وَهُوَ غَضْبَانُ، فَقُلْتُ: مَنْ أَغْضَبَكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَدْخَلَهُ اللَّهُ النَّارَ؟ ③قَالَ: أَوَمَا شَعَرْتِ أَنِّي أَمَرْتُ النَّاسَ بِأَمْرٍ، فَإِذَا هُمْ يَتَرَدَّدُونَ، ④وَلَوْ أَنِّي اسْتَقْبَلْتُ مِنْ أَمْرِي مَا اسْتَدْبَرْتُ مَا سُقْتُ الْهَدْيَ مَعِي حَتَّى أَشْتَرِيَهُ، ثُمَّ أَحِلَّ كَمَا حَلُّوا». (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

(١) اخرجه مسلم في كتاب الحج /باب بيان وجوه الإحرام، وأنه يجوز إفراد الحج والتمتع والقران، وجواز إدخال الحج على العمرة، ومتى يحل القارن من نسكه (رقم-١٣٠ - (١٢١١)

**ترجمه** ① بي بي عائشه ﷺ وايي چې د حجة الوداع په موقع په مکه کې نبی کريم ﷺ د ذی الحجه په څلورم يا پنځم تاريخ ماته د غصی په حالت کې تشريف راوړو. ② ما عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ ته چا په غصه کړي يې؟ الله ﷻ دي هغه په دوزخ کې واچوي. ③ نبی کريم ﷺ وفرمايل چې آيا تاته معلومه نه ده چې ما بعضې خلقو ته د عمري سره د حج فسخ کولو حکم ورکړي، او هغوئ د هغه حکم سره په تردد کې دی. ④ که را خبره ماته د مخکې څخه معلومه واي، کومه چې وروسته راته معلومه شوه ، نو ما به د ځان سره د قرباني ځاروی نه راوستلی او دغه شان احرام به مې خلاص کړی واي. څرنګه چې دي خلقو احرام خلاص کړی دی، او بيا به ما دلته (په مکه کې يا په لار کې) د قربانی ځاروی رانيولی واي، مسلم

**حل اللغات:** ① مَضَيْنَ: د مضی يمضی نه د تيريدلو په معنی کښې دې (يعنی څلور يا پنځه ورځې تيرې شوې وې). ② اسْتَقْبَلْتُ: أَيْ لَوْعَلِمْتُ فِي قَبْلُ: که ماته دمخکښې نه علم وې (چه بعض خلق به ځان سره ځاروی نه راولی اوبعض به راولی بعض به دَ افراد نيت کوی او بعض به په عمره سره وی). ③ مَا اسْتَدْبَرْتُ: أَيْ مَا عَلِمْتُهُ فِي دُبُرِهِ: کومه چه راته روسته معلومه شوه (چه بعضو د قربانئ ځاروی دځان سره راوستلی دی اوبعضو نه دی راوستلي)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَدَخَلَ عَلَيَّ وَهُوَ غَضْبَانُ

**د نبی عليه السلام د غصې وجه:** بعضې صحابه کرامو نه فسخ الحج إلى العمرة د تاخير د وجې نبی عليه السلام له غصه ورغله

# [٣] بَابُ دُخُولِ مَكَّةَ وَالطَّوَافِ

## په مکه کښې دخول او د طواف بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثلاثون حديثاً مشتملة على أربع عشرة مسائل:**

① وقت دخول مكة: ١.
② طواف دخول مكة: ٢.
③ أول فعل بعددخول مكة: ٣، ٤، ٦، ١٥.
④ الرمل والإضطباع في الطواف: ٤، ٥، ٦، ٢٤، ٢٥.
⑤ استلام الحجروالركن اليماني في الطواف: ٦، ٧، ٨، ٩، ١٠، ١١، ١٥، ٢٦.
⑥ الطواف راكبا: ٩، ١٠، ٢٧.
⑦ حرمة طواف الحائض: ١٢.
⑧ حرمة طواف العريان: ١٣.
⑨ الدعاء وقت رؤية البيت: ١٤.
⑩ الطهارة للطواف: ٣، ١٦.
⑪ شان الحجر والركن اليماني الذين يُستلمان في الطواف: ١٧، ١٨، ١٩، ٢٨، ٢٩.
⑫ فضيلة الاستلام والطواف: ٢٠، ٣٠.
⑬ مقام الدعاء عند الطواف وفي مكة: ١٤، ١٥، ٢١، ٢٩.
⑭ السعي بين الصفا والمروة بعد الطواف: ٤، ٥، ٢٢، ٢٣.

قال الله تعالى ﴿وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ﴾ [سورة الحج الايه:٢٩. وقال الله تعالى ﴿وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾ [سورة البقره الايه:١٢٥.

**د باب خلاصه:** په دې باب کښې به هغه احاديث راځي په کوم کښې چه په مکه مکرمه کښې د داخليدو آداب او طريقې ذکر وي. بل دا بيان به وي چه په دې مقدس ښار کښې د کوم طرف نه داخليدل مسنون دي او د کوم طرف نه وتل مسنون دي او په کوم وخت کښې دا اعمال کول پکاردي. بل طواف سعي او د دې د متعلقاتو بيان به وي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

### [٢٥٦١] مکه کښې د دخول او خروج مسنون طريقه

٢٥٦١—[١] (١)① عَنْ نَافِعٍ، قَالَ: «إِنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ لَا يَقْدَمُ مَكَّةَ إِلَّا بَاتَ بِذِي طُوًى حَتَّى يُصْبِحَ، وَيَغْتَسِلَ

[١] اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب من نزل بذي طوى إذا رجع من مكة (رقم-١٧٦٩) ومسلم في كتاب الحج /باب استحباب المبيت بذي طوى عند إرادة دخول مكة. والاغتسال لدخولها ودخولها نهارا (رقم-٢٢٦ - (١٢٥٩))والنسائي في ٢٨١٥ واحمد في المسند:١/٢٣٦

وَيُصَلِّيَ، فَيَدْخُلَ مَكَّةَ نَهَارًا، ٢ وَإِذَا نَفَرَ مِنْهَا مَرَّ بِذِي طُوًى، وَبَاتَ بِهَا حَتَّى يُصْبِحَ، ٣ وَيَذْكُرُ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَفْعَلُ ذَلِكَ». (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** ١ نافع رحمه الله وايي ابن عمر رضي الله عنه چې به کله مکي ته راتلو، نو په ذي طوي کې به يې شپه تيروله، چې سحر به شو، نو غسل او مونځ به يې کولی، بيا به د ورځې په مکه کې داخليدلی، ٢ او کله چې به د مکې څخه واپس تللی، نو هغه وخت به هم په ذي طوي تيريدلی، او تر سحره به يې هلته شپه تيروله، ٣ او ابن عمر رضي الله عنه به بيان کولی چې نبی کريم ﷺ به هم دغه شان کول. بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① نَفَرَ: أَيْ: خَرَجَ: چه واپس به تلو ② بَاتَ: شپه به ئې تيروله.

**تسهيلات:**

**قوله:** بذي طوي:

**د ذی طوی مصداق او په دې کښې د قيام کولو حيثيت:** ذی طویٰ دَ تنعيم سره ارض حرم کښې دَ يوځائی نوم دې هم په دې مقام سره حضورپاك حرم کښې داخل شوې وو او هم دَدې مقام نه به واپس تلو اودلته به ئی يوه شپه قيام کولـ نن صباهم دَمدينې يا جده تلودَ پاره په عام توګه هم دغه لاره استعماليږی. په دې ځائی دَ حضورپاك قيام دَ حج څه حصه نه ده صرف يو عادی امر دې چه دَدې ځائی نه تلل راتلل آسان دی که چرته دَ اتباع نبی قصداو اراده وی نودَ مستحب ثواب ملاويدې شی.

ابن ملك رحمه الله فرمائی مکه کښې دَ ورځې په وخت کښې داخليدل مستحب دی نن صبا په خپل اختيار داخليدل او وتل آسان کار نه دې دَ حج سستم تابعداری لازم ده.

**[٢٥٦٢] د حضور ﷺ مکی ته داخليدل اووتل**

٢٥٦٣- [٢] (١) ١ وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: إِنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «لَمَّا جَاءَ إِلَى مَكَّةَ دَخَلَهَا مِنْ أَعْلَاهَا، ٢ وَخَرَجَ مِنْ أَسْفَلِهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ١ بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي نبی کريم ﷺ چې د حجة الوداع په موقع مکې ته تشريف راوړو، نو په ښهر کې به د هغه د اوچتې حصې د طرف څخه داخل شو، ٢ او د واپس تلو په وخت کې به د ښکته حصې د طرف څخه وتلو. بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① أَعْلَاهَا: د مکې اوچت طرف. ② أَسْفَلِهَا: د مکې ښکته طرف. د اوچت اوښکته طرف مصداق لاندې په شرح کښې ذکر شوې دې.

(١) اخرجه البخاري في كتاب الحج /باب من اين يخرج من مكة؟ (رقم-١٥٧٧) ومسلم في كتاب الحج /باب استحباب دخول مكة من الثنية العليا والخروج منها من الثنية السفلى ودخول بلده من طريق غير التى خرج منها (رقم-٢٢٤ - (١٢٥٨)

**تسهیلات: قوله:** أَعْلَاهَا:

**د مکې د اوچتې حصې څخه مراد:** یعنی حضورپاك چه په حجة الوداع کښې مکې ته تشریف راوړو نود مکې د اوچتې حصې نه ورداخل شو دا اوچته حصه هم هغه ده کومه چه ددې نه مخکښې حدیث کښې ذی طوی په نوم سره یاد کړې شوې ده دمکې مشهورقبرستان جنت المعلی هم دې طرف کښې دې اود بیت الله دوروازه هم دې طرف ته واقع ده دې نه علاوه د ښار دویمه حصه ده کومه چه په ښکته علاقه کښې واقع ده کوم ته چه په دې حدیث کښې «اسفلها» ونیلی شوې ده

**قوله:** أَسْفَلِهَا:

**یو اشکال:** دې نه مخکښې کوم حدیث تیرشوې دې په هغې کښې دا ذکردې چه حضورپاك د ذی طوی نه راغلو اوهم د ذی طوی نه واپس لاړو اودلته د اعلی او اسفل ددوو متضاد لاړو ذکر دې نوآیا په دواړو احادیثو کښې تعارض دې؟

**داشکال جواب:** د دې سوال جواب دادې چه حضورپاك به کله د مکې نه وتلو اودمدینې لارې ته به رسیدلو نوهغه به هم د ذی طوی لار وه نووتل خو بیشکه چه ښکته طرف نه وو لیکن دهغه خاتی نه به راتاؤ شو بیا به ذی طوی ته راتلو او ذی طوی باب الحاره او شارع خالدبن ولید نه وړاندې تلو سره تنعیم سره لګی اودې طرف ته جرول سره تلو کښې جنت المعلی ته رسیږی نوپه دواړو حدیثو کښې هیڅ تعارض نشته. نقشه داسې ده ذی طوی اوږده علاقه ده

**[٢٥٦٣] دَ طواف دَپاره پاکوالې واجب دې**

٢٥٣- [٣] ( )[١] وَعَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَدْ «حَجَّ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] فَأَخْبَرَتْنِي عَائِشَةُ أَنَّ أَوَّلَ شَيْءٍ بَدَأَ بِهِ حِينَ قَدِمَ مَكَّةَ أَنَّهُ تَوَضَّأَ، ثُمَّ طَافَ بِالْبَيْتِ، ثُمَّ لَمْ تَكُنْ عُمْرَةً. [٣] ثُمَّ حَجَّ أَبُو بَكْرٍ، فَإِنَّ أَوَّلَ شَيْءٍ بَدَأَ بِهِ الطَّوَافُ بِالْبَيْتِ، [٤] ثُمَّ لَمْ تَكُنْ عُمْرَةً، ثُمَّ عُمَرُ، ثُمَّ عُثْمَانُ مِثْلَ ذَلِكَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [١] عروه ابن زبیر وايي چې نبی کریم ﷺ حج وکړي، [٢] او بي بي عائشه ﷺ ماته بیان وکړي چې نبی کریم ﷺ مکې ته رسیدو سره د ټولو څخه مخکې چې یې کوم کار وکړي. هغه دا وو چې نبی کریم ﷺ اودس وکړي، او بیا یې د بیت الله شریفي طواف وکړي، یعنی د عمرې طواف یې وکړي. خکه چې نبی کریم ﷺ قارن یا متمتع وو، او عمره ونه شوه. [٣] بیا د نبی کریم ﷺ څخه روسته حضرت ابوبکر ﷺ حج وکړي، نو هغه

( ) اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب من طاف بالبيت إذا قدم مكة، قبل أن يرجع إلى بيته، ثم صلى ركعتين، ثم خرج إلى الصفا (رقم-١٦١٤) ومسلم في كتاب الحج /باب ما يلزم من طاف بالبيت وسعى، من البقاء على الإحرام وترك التحلل (رقم-١٩٠٠ - (١٢٣٥)

هم د بيت الله شريفي د طواف څخه د حج د افعالو ابتدا، وکړه او عمره ونه شوه، [٣] بيا حضرت عمر ﷛ او حضرت عثمان ﷛ هم دغه شان وکړه، بخاري، مسلم

**تسهيلات: قوله**: تَوَضَّأَ:

**د طواف دپاره د اودس کولو حکم**: دَدې نه معلومه شوه چه دَ طواف دپاره پاکي واجب ده که چرې واجب ترك شي نو دم به راځي ليکن دَ جمهورو په نيز پاکي شرط دې دې نه بغير طواف صحيح نه دې

**قوله**: ثُمَّ لَمْ تَكُنْ عُمْرَةً:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال**: دَدې جملې دوه مطلبونه دی

① اول مطلب دادې چه حضورپاك کله په حجة الوداع کښې مکې ته تشريف راوړو نوحضورپاك دَ بيت الله طواف خواوکړو چه دَ حج فسخ کولوسره ئې عمره جوړه نه کړه ځکه چه حضورپاك خپل ځان سره دَ هدی ځاروې راوستي وو بلکه دَ احرام په حالت کښې حضورپاك قيام اوکړو هم دغه عمل حضرت ابوبکر ﷛ اوکړو په دې کلام سره راوی په هغه خلقو باندې رد کول غواړی ځوك چه دا وائی حضورپاك "فسخ الحج الى العمرة" کړې وو

② دَدې جملې دويم مطلب دادې چه حضورپاك او ملګرو هم هغه يوه عمره اوکړه کومه چه حج سره کړې وه دَ حج نه پس ئې جدا عمره نه وه کړې.

**[٢٥٦٤] په طواف کښې دَ رمل ذکر**

٢٥٦٤- [٤] (١) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا طَافَ فِي الْحَجِّ أَوِ الْعُمْرَةِ [٢] أَوَّلَ مَا يَقْدَمُ سَعَى ثَلَاثَةَ أَطْوَافٍ، وَمَشَى أَرْبَعَةً، [٣] ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، ثُمَّ يَطُوفُ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [١] ابن عمر ﷛ وايي نبی کريم ﷺ چې به د حج يا د عمري طواف کولی، [٢] نو مخکې به يې په دري شوطه (چکرو) کې تيز تيز (او وړو خوزولو سره) تلی (يعني رمل به يي کول) او په باقي څلور شوطه چکرو کې به په خپل عام رفتار سره تللی، [٣] بيا به يي دوه رکعاته مونځ کوی، او ددې څخه روسته به يې د صفا او مروه په منځ کې سعي کوله، بخاري، مسلم

**حل اللغات**: ① سَعَى: أَيْ: رَمَلَ: تيز تيز تلو ته سعی وائی خو دلته ترې مراد رمل يعنی پهلوانی کول دی ② مَشَى: په آرام آرام عام رفتار سره تلل

---

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الحج /باب من طاف بالبيت إذا قدم مکة، قبل أن يرجع إلى بيته، ثم صلى رکعتين، ثم خرج إلى الصفا (رقم-١٦١٦) ومسلم فی کتاب الحج /باب استحباب الرمل فی الطواف والعمرة، وفی الطواف الأول فی الحج (رقم-٢٣١ - (١٢٦١)

**تسهيلات: قوله سَعَى:**

**د سعي څخه مراد:** دبيت الله نه چاپيره يو چكر ته شوط وائي او په اووه شوطو سره يو طواف پوره كيږي كله چه سړي دَ حج يا عمره په احرام كښې وي اودَ هغه په ذمه روستو سعى هم وي نودَدې سړى دپاره دَ طواف په اولنو دريو چكرو رمل كول ضروري دي او روستو څلورو چكرو كښې رمل نشته دې. هرهغه طواف دكوم نه پس چه سعى نه وي په هغې كښې رمل كول نه وي.

**[٢٥٦٥] دَصفااومروه په مينځ كښې سعى كول واجب دي**

٢٥٦٥ - [٥] ()[١] وَعَنْهُ قَالَ: «رَمَلَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنَ الْحَجَرِ إِلَى الْحَجَرِ ثَلَاثًا، وَمَشَى أَرْبَعًا، [٢] وَكَانَ يَسْعَى بِبَطْنِ الْمَسِيلِ إِذَا طَافَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [١] ابن عمر ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ به د طواف په وخت د حجر اسود څخه تر حجر اسود پورې په درې چکرو کې خو رمل کوي، او په څلورو چکرو کې به خپل عام رفتار سره تلی، [٢] او کله چې به يې د صفا او مروه په منځ کې سعي کوله، نو په بطن مسيل کې به منډه وهله. مسلم.

**حل اللغات:** ① الْحَجَرِ: أَيِ الْأَسْوَدِ: كانړې ددې نه مراد حجر اسود دې ② بِبَطْنِ الْمَسِيلِ: اِسْمُ مَوْضِعٍ: د يوځاني نوم دې (كوم چه دصفا او مروى په مينځ كښې واقع دې).

**تسهيلات:**

**قوله: بِبَطْنِ الْمَسِيلِ:**

**د بطن المسيل مصداق او وجه تسميه:** دَ صفااومروه په مينځ كښې دَ يومقام نوم دې دَ كوم دَ پيژندګلودپاره چه په غاړوكښې دَ شين رنګ ټيوب لائټس شپه ورځ بليږي. دا ځائې ښكته واقع دې په دې وجه دې ته بطن المسيل وائي يعنى دَ سيلاب او اوبو بهيدو كنده دې ځائې ته ميلين اخضرين هم وائي. دلته تيزه تيزه منډه وهل دَ ټولو فقهاؤ په نيزسنت دى.

**د فقهاؤ مسالك:**

صفامروه په مينځ كښې سعى كول دَ احنافو په نيز واجب دى ليكن دَ حضرت امام شافعى رحمه الله په نيز سعى ركن اوشرط دې دَ امام مالك رحمه الله هم دغه مسلك دې.

[١]) اخرجه البخاري في كتاب الجمعة/باب إذا ارتحل بعد ما زاغت الشمس صلى الظهر ثم ركب(رقم-١١١٤) اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب ما جاء في السعي بين الصفا والمروة (رقم- ومسلم في كتاب الحج /باب استحباب الرمل في الطواف والعمرة. وفي الطواف الأول في الحج (رقم-٢٣٠ - (١٢٦١) ومسلم في كتاب الحج

**[٢٥٦٦] دَ حجر اسود ښکلول**

٢٥٦٦-[٦] (١) ١ وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَمَّا قَدِمَ مَكَّةَ أَتَى الْحَجَرَ فَاسْتَلَمَهُ، ثُمَّ مَشَى عَلَى يَمِينِهِ، ٢ فَرَمَلَ ثَلَاثًا، وَمَشَى أَرْبَعًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** ١ جابر ﷛ وايي نبی کريم ﷺ چې (د حج يا عمرې د پاره) مکې ته تشريف راوړو نو حجر اسود ته راغلو، او هغه يې ښکل کړه، بيا د طواف د پاره د ښي لاس په طرف لاړو، ٢ نو درې خله خو متې (بازو) ښوررولو ښوررولو سره او په تلواري تلواري سره لاړو (لکه چې پهلوانان ځي) او څلور خله د خپل معمولي رفتار سره لاړو، مسلم

**حل اللغات**: ① فَاسْتَلَمَهُ: أَيْ: لَمَسَهُ، وَقَبَّلَهُ: استلام ني اوکړو يعنی لاس ني پرې اولګولو او ښکل ني کړو

**تسهيلات: نوټ**: روستو دَ حجراسود تاريخ راځي دلته صرف دَ حجراسود دَ ښکلولو مسئله راغلې ده.

**قوله**: فَاسْتَلَمَهُ:

**د استلام معنی**: دَ استلام لفظ لاس لګول او ښکلول دواړو دَ پاره استعماليږي خوچه کله دَ دې ذکر دَ حجر اسود دَپاره اوشي نودَ استلام نه ښکلول مراد اخستلې شي. اوکه دَ رکنِ يمانی دَپاره دَ استلام لفظ راشي نوهلته دَ لاس لګولو او اولاس اوړلو په معنی کښې وی دَ ښکلولو په معنی کښې نه راځي

**قوله**: عَلَى يَمِينِهِ:

**دطواف شروع کيدو محل**: حجر اسود سره يوه توره پټه ده چه دَ حجراسود دَ مخې نه شا طرف ته صفاسره ملاوېږی هم په دغه ځائې اودريدوسره طواف شروع کيږي. او په ښي لاس باندې دَ بيت الله دروازه ده هم دَ دې طرف نه دَ طواف چکر لګولې کيږي. په حديث کښې على يمين يعنی ښي طرف نه هم دغه مطلب دې.

**[٢٥٦٧] حضورپاک دَ حجراسود استلام کړې دې**

٢٥٦٧-[٧] (٢) ١ وَعَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ عَرَبِيٍّ، قَالَ: «سَأَلَ رَجُلٌ ابْنَ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - ٢ عَنِ اسْتِلَامِ الْحَجَرِ، فَقَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَسْتَلِمُهُ وَيُقَبِّلُهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** ١ زبير ابن عربي (تابعي) ﷬ وايي چې يو سړي د ابن عمر ﷠ څخه د حجر اسود ښکلولو په سلسله کې پوښتنه وکړه، ٢ نو هغه وفرمايل چې ما نبی کريم ﷺ وليدلی، چې نبی کريم ﷺ به لاس ورسره لګولی او ښکلوله به يې، مسلم

**حل اللغات**: ① يَسْتَلِمُهُ: أَيْ: وَضَعَ الْيَدَ عَلَيْهِ: يعنی لاس به ني په حجر اسود کيخودلو. ② يُقَبِّلُهُ: حجر اسود به ني ښکلولو

(١) أخرجه مسلم في كتاب الحج /باب استحباب الرمل في الطواف والعمرة، وفي الطواف الأول في الحج (رقم-٢٣٢ - (١٢٦١)

(٢) أخرجه البخاري كتاب الحج باب تقبيل الحجر رقم (١٥١)

## [٢٥٦٨] د ركن يماني استلام

٢٥٦٨ـ[٨] ( ) [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: «لَمْ أَرَ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَسْتَلِمُ مِنَ الْبَيْتِ إِلَّا الرُّكْنَيْنِ الْيَمَانِيَيْنِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [١] ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې ما نبی کريم ﷺ د خانه کعبې يواځې دوو رکنو استلام کول ليدلي دي، چې د يمن طرف ته دی. بخاري، مسلم

**حل اللغات** ① الرُّكْنَيْنِ: د رکن تثنيه ده، اړخ اوطرف ته وائی. ② الْيَمَانِيَيْنِ: أَيِ الَّذِي فِيهِ الْحَجَرُ الْأَسْوَدُ: بيت الله په کوم طرف کښې چه حجراسود لګيدلي دې هغې طرف ته رکن يماني وائي.

**تسهيلات: قوله:** إِلَّا الرُّكْنَيْنِ الْيَمَانِيَيْنِ:

**د بيت الله څلور ارکان:** واضح دې وی چه رکن د اړخ په معنی دې، د کعبې شريفې څلور ارکان دی. ①رکن اسود، ② رکن يمانی، دې دواړو ته تغليبا يمانين ونيلې شی، ③او رکن شامی ④او رکن عراقی ته شاميين وئيلې شی،

**د بيت الله د تعمير تاريخ:** د دې متعلق د تاريخ په کتابونو کښې دی چه کله قريش د بيت الله د جوړولو دپاره چنده اوکړه نو د چندې د کميدو په وجه باندې هغوی په قواعد ابراهيم باندې آبادی اونکړه بلکه رکنين شاميين طرف ته ئې څه حصه بيله پريخودلو سره آبادی اوکړه. اوس دا رکنين شاميين د شرقی او غربی ديوال په مينځ کښې واقع دې پس دې کښې دا پريخودلې شوې خانې ته حطيم ونيلې شی، بيا عبدالله بن زبير رضي الله عنهما په خپل دور خلافت کښې دا پريخودلې شوې خانې شاملولو سره په قواعد ابراهيمی باندې بناء کيخودله چونکه د ابن الزبير رضي الله عنهما ددې نوې بنياد د وجې نه ټول ديوالونه په قواعد ابراهيم باندې راغلې وو په دې وجه به هغه د ارکان اربعه استيلام کولو.

بيا ئې حجاج بن يوسف د قريش په قواعد باندې بنياد کيخودلو چه په کوم کښې حطيم پريخودلې شوې وو کوم چه تر اوسه پورې دې او ابن المنذر وغيره روايت کړې دې چه د تولو ارکانو استيلام د جابر، انس، حسن، حسين او سويد بن غفله رضي الله عنهم نه هم ثابت دې پس معاويه رضي الله عنه به فرمائيل ((ليس شئ من البيت مهجورا))

**د رکنين يمانيين استلام او رکنين شاميين عدم استلام باندې اجماع:** امام نووی رحمه الله فرمائی چه د رکنين يمانيين په استلام باندې د ټول امت اجماع ده او جمهور امت په دې باندې متفق دې چه د رکنين شاميين استيلام نه شی کولې. ((لحديث ابن عمر قال لم ار النبی ﷺ يستلم من البيت الا الرکنين اليمانين)) (متفق عليه)

---

[١] اخرجه البخاري في كتاب الحج /باب من لم يستلم إلا الركنين اليمانيين (رقم-١٦٠٩) ومسلم في كتاب الحج /باب استحباب استلام الركنين اليمانيين في الطواف دون الركنين الآخرين (رقم-٢٤٧ - (١٢٦٩) والترمذي في

قاضی ابو الطیب فرمائی چه ائمه امصار او د فقهاء کرام په دې باندې اجماع ده چه د رکنین شامیین استیلام به نه شی کولې، په دې کښې چه کوم د بعض صحابه کرام او تابعین ﷭ اختلاف وو د هغې په بناء اوس د عدم استیلام شامیین باندې اجماع شوې ده.

ب د رکنین یمانین په رکن اسود کښې چونکه حجر اسود دې او هغه په قواعد ابراهیم باندې هم دې په دې وجه به د هغې تقبیل او استیلام دواړه کولې شی او رکن یمانی چونکه په قواعد ابراهیم باندې دې په دې وجه به صرف د هغې استیلام کولې شی (البذل ج ۲ ص ۱۱، الفتح ۳۱۱/۳، التعلیق وغیره)

**[٢٥٦٩] په اوښ باندې سوریدوسره دَ طواف کولو مسئله**

[۲۵٦٩]-[۹] (١) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: «طَافَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ عَلَى بَعِيرٍ، يَسْتَلِمُ الرُّكْنَ بِمِحْجَنٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ابن عباس ﷺ وایي چې نبی کریم ﷺ په حجة الوداع کې په اوښ سوریدو سره طواف وکړي، او د محجن (خمدار لرګي) په ذریعه به یې دحجر اسود استلام کوي. بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① بِمِحْجَنٍ: أَيْ: بِعَصًا مُعْوَجَّةِ الرَّأْسِ: امسا چه دهغې سر راکوږ وو (حضورپاك په دغه لرګی سره حجراوسود مس کړو یائی اشاره اوکړه اوبیائی لرګي ښکل کړو. معلومه شوه داسې کول جائز دی.)

**تسهیلات: قوله:** عَلَى بَعِيرٍ:

**په سورلې باندې د طواف کولو حکم:** دَ شوافع حضراتو په نیز افضل خوهم دغه دی چه طواف دې پیدل اوکړې شی لیکن سوریدوسره طواف کول جائز دی. حضورپاك دَ جواز دَ بیان دَپاره اودَدې مقصددَ پاره چه خلق حضورپاك اووینی اودَ حج احکام زده کړې شی سوریدوسره ئی طواف کړې دې. دَ احناف په نیز پیدل طواف کول واجب دی سوریدو سره جائز نه دی. حضورپاك دَ څه عذر دَ وجې نه په سوریدو سره طواف کړې دې لکه څنګه چه حضورپاك ام سلمه ﷞ ته دَ بیمارئی دَ وجې نه حکم ورکړې وو چه په اوښ باندې سوریدو سره طواف اوکړه.

**اشکال:** په احادیثوکښې په واضحه توګه باندې ذکردی چه دَ حجة الوداع په موقع باندې طواف کښې دَ شروع دریو شوطونو کښې رمل کړې وو نوسوال دادې چه په سورلئی سره رمل څنګه ممکن دې؟

---

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب استلام الرکن بالمحجن (رقم-١٦٠٧) ومسلم فی کتاب الحج /باب جواز الطواف علی بعیر وغیره. واستلام الحجر بمحجن ونحوه للراکب ((رقم-٢٥٣ - (١٢٧٢))

**دَاشکال جواب:** حضورپاك په طواف قدوم کښې رمل کړې وو په هغې کښې حضور ... پیدل وو او په زیر بحث حدیث کښې دَ طواف زیارت ذکر دې چه حضورپاك په اوښ باندې سوریدوسره کړې وو په دې کښې رمل نه وی په دې شرط چه روستو سعی نه وي حضورپاك سورلی دَ څه عذردَ وجې نه استعمال کړې وه بل دَ امت دَ تعلیم دپاره ئې داسې کړې وو دې دپاره چه خلقو حضورپاك اووینی او په طواف باندې پوهه شی اومسائل زده کړې شی

## [۲۵۷۰]د حجر اسود د استلام طریقه

۲۵۷۰-[۱۰]()① وَعَنْهُ «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- طَافَ بِالْبَيْتِ عَلَى بَعِيرٍ، ② كُلَّمَا أَتَى عَلَى الرُّكْنِ أَشَارَ إِلَيْهِ بِشَيْءٍ فِي يَدِهِ وَكَبَّرَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** ① ابن عباس ﷺ وایي چې نبی کریم ﷺ د خانه کعبې طواف په اوښ سپرېدو سره وکړې، ② کوم وخت چې نبی کریم ﷺ د حجر اسود مخې ته راغلو ، نو په یو شي سره (یعنې په لرګي سره) چې د نبی کریم ﷺ په لاس کې وو، دهغه طرف ته اشاره کوله. او الله اکبر به یې ویلی، بخاري.

**حل اللغات:** ① الرُّكْنِ: أَي: الْحَجَرِ الْأَسْوَدِ: ددې رکن نه مراد حجر اسود دې (مخکښې تیرشو چه رکن طرف ته وائی اود بیت الله څلور طرفه دي).

**تسهيلات: قوله:** طَافَ بِالْبَيْتِ عَلَى بَعِيرٍ:

### په سورلئ باندې طواف کولو کښې مذاهب:

① سوریدو سره د طواف کولو متعلق امام شافعی ﷫ فرمائی چه د بیت الله او صفا مروه ترمینځه سوریدو سره طواف کول مکروه دی

② امام ابوحنیفه او امام مالك ﷭ هم بغیر د عذر نه سوریدو سره طواف کولو ته مکروه وئیلې دی پس په لباب المناسک وغیره کښې د احنافو مذهب هم دا نقل کړې شوې دې چه د چا قدرت وی د هغه دپاره مشی فی الطواف واجب ده. ځکه چه په مشی فی الطواف کښې خشوع او خضوع زیاته ظاهرېږی.

**راکبا طواف کولو سره وجوب دم:** اوس که چا راکبا طواف اوکړو یا د چا په اوږه باندې سوریدو سره یا په کناتو یا په ارخ یا په شا باندې خونیدو سره ئې بغیر د عذر نه طواف اوکړو نو ترڅو پورې چه په مکه مکرمه کښې دې اعاده پرې لازم ده یا دم لازم دې ځکه چه هغه واجب ترک کړې دې. او که د څه عذر په وجه باندې ئې داسې اوکړل نو دم وغیره پرې لازم نه دې.

( ) اخرجه البخاری فی کتاب الحج باب التکبیر عند الرکن (رقم-۱۶۱۳)

**د رسول الله ﷺ د راكبا طواف توجيهات:** اوس چه رسول الله ﷺ كوم سوريدو سره طواف كړي دي ① د هغې سبب يا خو دا دې چه رسول الله ﷺ بيمار وو **كما في رواية ابن عباس انه قدم مكة وهو يشتكي فطاف على راحلته.** رواه ابوداؤد.

② يا وجه دا وه چه چونكه هجوم ډير زيات وو په دې وجه ټولو خلقو د رسول الله ﷺ د حج افعال ته كتل او مسئله به ئې تپوسله په دې وجه ئې سوريدو سره طواف اوكړو. **كما هو في رواية جابر رضي الله عنه: انه عليه السلام طاف راكبا ليراه الناس ويسألوه.**

**د حجر اسود ښكلولو طريقه:** دَ حجر اسود دَ ښكلولو طريقه داده چه دواړه لاسونه دَ حجر اسود نه چاپيره دَ چاندئې په څول باندې كيخودې شي او دننه حجراسودښكل كړې شي مگر دَ احرام په حالت كښې دَ احتياط ضرورت دې ځكه چه په حجراسود باندې ډير زيات عطريات لگيدلي وي. كه په څه وجه باندې ښكلول ممكن نه وي نوبيا په دواړو لاسونو باندې اشاره كولوسره "بسم الله الله اكبرولله الحمد" ونيلوسره ښكلولي شي.

## [٢٥٧١] د حجر اسود طرف ته اشاره كول

| |
|---|
| ٢٥٧١-[١١] ()[١] وَعَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَطُوفُ بِالْبَيْتِ، [٢] وَيَسْتَلِمُ الرُّكْنَ بِمِحْجَنٍ مَعَهُ، وَيُقَبِّلُ الْمِحْجَنَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |

**ترجمه:** [١] ابو الطفيل وايې چې ما نبی كريم ﷺ وليدلو، چې سوريدو سره يې د خانه كعبې طواف كولو [٢] او د يو خمدار سروالالرگي سره، چې د نبی كريم ﷺ سره وو د حجر اسود طرف ته اشاره كوله، او لرگي به يې ښكلولي، مسلم.

**حل اللغات:** ① مِحْجَن هغه لرگی ته وائی چه د هغې سر كوگ وی

**تسهيلات: قوله:** وَيَسْتَلِمُ الرُّكْنَ بِمِحْجَنٍ مَعَهُ:

**د محجن په ذريعه د استلام طريقه:** ددې په ذريعه به د حجر اسود بوسه اغستلو صورت دا وو چه نبی عليه السلام به هغه لرگی سره حجر اسود ته اشاره اوكړه او بيا به ئې هغه لرگې ښكل كړو.

**په رواياتو كښې تعارض:** په رواياتو كښې تعارض د بعضو رواياتو نه معلوميږی چه نبی عليه السلام به حجر اسود ښكلولو او د بعضو نه معلوميږی چه نبی عليه السلام به حجر اسود سره لاس اولگولو او بيا به ئې لاس ښكل كړو او د بعضو رواياتو نه معلوميږی چه حجر اسود طرف ته به ئې اشاره اوكړه او ښكل به ئې كړه په دې رواياتو كښې تعارض دې؟

**په رواياتو كښې څوه تطبيقات:** ① دا مختلفو اوقاتو او په مختلفو واقعاتو باندې محمول

() اخرجه مسلم في كتاب الحج /باب جواز الطواف على بعير وغيره واستلام الحجر بمحجن ونحوه للراكب(رقم٢٥٧ - (١٢٧٥)

دی په څنی واقعه کښی نبی علیه السلام حجر اسود له بوسه ورکړه او په بعضو کښي ئې په لاس سره اشاره کړې ده لاس ئې ښکل کړی دي.

② دا په اختلاف أشواط باندې محمول دی چه په څنی چکر کښي به نبی علیه السلام حجر اسود ښکل کړو او په بعضو کښي به ئې اشاره کوله علي هذا القیاس چه کوم صحابي څنګه لیدلي دي نو هم هغه شان ئې روایت کړې دي

**[٢٥٧٢] دَحیض په حالت کښي دې ښځه طواف او سعی نه کوی**

٢٥٧٢-[١٢]()① وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: «خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَا نَذْكُرُ إِلَّا الْحَجَّ، ② فَلَمَّا كُنَّا بِسَرِفَ طَمِثْتُ، فَدَخَلَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَأَنَا أَبْكِي، ③ فَقَالَ: (لَعَلَّكِ نُفِسْتِ؟) قُلْتُ: نَعَمْ. ④ قَالَ: " فَإِنَّ ذَلِكِ شَيْءٌ كَتَبَهُ اللَّهُ عَلَى بَنَاتِ آدَمَ، فَافْعَلِي مَا يَفْعَلُ الْحَاجُّ ⑤ غَيْرَ أَنْ لَا تَطُوفِي بِالْبَيْتِ حَتَّى تَطْهُرِي». (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** ① بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي چې مونږ د نبی کریم ﷺ سره (د حج د پاره) روان شو. نو مونږ به د لبیك ویلو په وخت یواځې د حج ذکر کولی (بعضې حضراتو دا معنی لیکلې ده، چې مونږ یواځې د حج قصد کولی، یعنی اصلي مقصود حج وو، عمره نه وه خو د عمرې ذکر نه کولو سره دا نه لازمیږي، چې عمره په نیت کې هم نه وه) ② بیا چې مونږ مقام سرف ته ورسیدو، نو ځما ایام (د حیض ورځې) شروع شوي، نبی کریم ﷺ ماته تشریف راوړو، او ما (په دې خیال کې) ژړل (چې د حیض په وجه به زه حج ونه کړم) ③ نبی کریم ﷺ زما کیفیت لیدو سره وفرمایل چې شاید ستا د حیض ورځې شروع شوي دي، ما عرض وکړې چې هو. ④ نو نبی کریم ﷺ وفرمایل چې دا خو یو داسې شی دی، چې الله ﷻ د آدم ﷺ د لونو د پاره مقرر کړي دي (د دې په وجه د ژړا او پریشانه کیدو څه ضرورت دی) ته هم هغه افعا ل وکړه، کوم چې حاجیان يې کوي، ⑤ هو تر څو چې پاکه نشې (یعني د حیض ورځې ختمې نشي، او د هغه ځخه روسته ونه لمبیږي) تر هغه وقته د بیت الله شریفي طواف مه کوه، او مه سعي کوه، ځکه چې سعي د طواف ځخه روسته صحیح کیږي، بخاري، مسلم

**حل اللغات**: ① بِسَرِفَ: اسْمُ مَوْضِعٍ: د یوځائي نوم دی چه مکې نه شپږ یا اوه میله فاصله کښې دي. ② طَمِثْتُ: أي: حِضْتُ: زما دحیض ورځې شروع شوي ③ نُفِسْتِ: أي: حِضْتِ: ستا د حیض ورځې شروع شوې

**تسهيلات**: **قوله**: بِسَرِفَ:

**دسرف محل وقوع**: دې ځائی کښي دَ حضرت میمونه رضي الله عنها قبر واقع دي. دَدې نکاح هم په دغه ځائي شوې وه زفاف هم په دغه ځائی شوې اوانتقال ئې هم په دغه ځائی شوې اوقبرئی هم دلته دسرك په غاړه واقع دي

---

() اخرجه البخاري في كتاب الحيض/باب كيف كان بدء الحيض وقول النبي صلى الله عليه وسلم: «هذا شيء كتبه الله على بنات آدم» (رقم-٢٩٤)

**قوله: لَانَذْكُرُ:**

**د مقام سرف تعارف:** "سرف" د يو ځاي نوم دي کوم چه د مکې مکرمې نه تقريبا شپږ ميله او د مقام تنعيم نه د شمال طرف ته دري يا څلور ميله فاصلې باندې واقع دې. دې ځاي کښ د ام المومنين سيده ميمونه رضي الله عنها قبر مبارك دې، او دا عجيب اتفاق دې چه د سيده ميمونه رضي الله عنها نکاح هم په دې ځاي کښې شوې ده، د وادهٔ شپه ئې هم دلته تيره شوې ده او وفات ئې هم دلته شوې دې.

**تعارض:** ددې حديث د وجې نه يو شبهه دا پيدا کيدې شي او هغه دا چه د سيده عائشه رضي الله عنها دا الفاظ ﴿ لانذکر الا الحج ﴾ (مونږ صرف د حج ذکر کولو، خپله د عائشې رضي الله عنها ددې روايت بالکل متضاد دی کوم چه په تير باب کښې تير شوې دی چه په هغې کښې عائشې رضي الله عنها د خپل ځان باره کښې وئيلې دی چه ﴿ ولم اهلل الا بعمرة ﴾ (يعنی ما صرف د عمرې احرام تړلې وو)

**تطبيق:** لهذا د دې ظاهري تضاد د دفع کولو دپاره به دا تاويل کولې شي چه دلته د عائشې رضي الله عنها الفاظ ﴿ لانذکر الا الحج ﴾ نه مراد دا دې چه په دې سفر سره زمونږ اصل مقصد حج وو او چونکه د حج درې قسمونه دی يعنی افراد، تمتع او قران، په دې وجه مونږ ښی بعض خو مفرد وو او بعض متمتع او بعض قارن. ما د تمتع قصد کړې وو پس ما د ميقات نه د عمرې احرام اوتړلو خو مکې ته د رسيدو نه مخکښې زما ايام شروع شو چه د هغې سلسله جاري وه تردې چه د عرفې په ورځ باندې او د وقوف عرفات وخت راغلو او دغه شان د عمرې وخت تيريدلو سره د حج ورځې شروع شوې. پس رسول الله ﷺ ماته حکم اوکړو چه زه د عمرې احرام خو پرانيزم او د حج احرام اوتړم او بيا د طواف او سعی نه علاوه نور د حج افعال اوکړم

## [۲۵۷۳] مشرکينو لره د طواف کعبه څخه منع کول

٢٥٧٣-[١٣] (١) ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: بَعَثَنِي أَبُو بَكْرٍ فِي الْحَجَّةِ الَّتِي أَمَّرَهُ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَلَيْهَا قَبْلَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ يَوْمَ النَّحْرِ فِي رَهْطٍ ٢ أَمَرَهُ أَنْ يُؤَذِّنَ فِي النَّاسِ: ٣ «أَلَا لَا يَحُجُّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ، وَلَا يَطُوفَنَّ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ ابوهريره رضي الله عنه وايي چې د حجة الوداع څخه مخکې په کوم حج کې چې نبی کريم ﷺ حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه، د خلقو امير د حج ليږلی وو، په هغه حج کې د نحر

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الصلاة /باب ما يستر من العورة (رقم-٣٦٩) ومسلم فی کتاب الحج /باب بيان وجوه الإحرام، وأنه يجوز إفراد الحج والتمتع والقران، وجواز إدخال الحج على العمرة، ومتى يحل القارن من نسکه (رقم-١٢٠٠-١٢١١) وابوداود فی کتاب المناسک، باب يوم الحج الأكبر (رقم-١٩٤٦)

(قربانی) په ورځ حضرت ابوبکر رضي الله عنه زه هم د هغه جماعت سره ولیږلم، [٢] چې دا خلک ورکول شوی وو، چې هغه دا اعلان وکړی، [٣] خبردار چې د دې کال څخه روسته هیڅ مشرك حج ونه کړي، او نه یو سړی برېنډ کیدو سره د بیت الله شریفي طواف وکړي.
بخاري، مسلم

**حل اللغات**: ① رَهْطٌ: جماعت او ډله ② عُرْيَانٌ: برېنډ

**تسهيلات**:

**قوله: أَلَا لَا يَحُجُّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ**:

**د مذکوره قول تاریخي پس منظر**: یعنی دَدې کال نه پس دې یو مشرك هم حج نه کوی کله چې حج په ۹هجری باندې فرض شو نو حضورپاك حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه دَحج امیر جوړولوسره حج ته روان کړو اوبیائی پخپله راتلونکی کال حجة الوداع باندې تشریف راوړو په دې سفرکښې دَ حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه دَ روانولونه پس حضرت علی رضي الله عنه نه حضورپاك دَ یوڅو اعلانونو کولوپه غرض سره اولیګلو دا اعلانونه دَعربی دستور مطابق یا پخپله دَ حضورپاك دَ خاندان یوکس کولې شو حضرت ابوبکر رضي الله عنه نه شوکولې چنانچه هم دَدې اعلان دَپاره صدیق اکبر رضي الله عنه حضرت علی رضي الله عنه سره یوجماعت هم اولیګلو هم په دغه جماعت کښې حضرت ابوهریره رضي الله عنه هم وو څوك چه دا واقعه بیانوی مشرکان چونکه نجس دی په دې وجه په دې مقدس او پاکه زمکه باندې هغوی له نه دی راتلل پکار که چرې هغوی راتلل غواړی نو ایمان راوړو سره دې پاك شی او بیادې راشی ﴿ إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَٰذَا ﴾

**قوله: عُرْيَانٌ**:

**په زمانه د جاهلیت کښې د طواف طریقه**: په جاهلیت کښې به خلقو په ډیرشوق سره دَ بیت الله طواف په برېنډه کولو دَهغوی دا خیال وو په کومو کپړو چه مونږ ګناه کړې ده دَهغې په اغوستوسره څنګه طواف کولې شو دویم خیال ئې دا وو چه کوم سړې څومره برېنډ وی هم هغومره به دَ دوزخ دَ اور نه لرې وی چنانچه هغه خلقو به برېنډیدوسره دَ طواف دوران کښې دا شعر هم ونیلو

الیوم یبدو بعضه او کله فما بدا منه فلا احله

یعنی نن زمونږ دَ بدن څه حصې یا ټولې حصې ښکاره کوو کومې حصې دَ بدن چه کولاؤ شوې دا زه په اور باندې حرام ګڼرم اسلام انسان ته دَ شرافت اعلی مقام ورکوی خوشیطان دوی ته دَ ذلت مقام ورکوی

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## [٢٥٧٤] خانه كعبه ليدو سره د دعا د پاره د لاس اوچتولو مسئله

٢٥٧٥-[١٤] ( )[1] ① عَنِ الْمُهَاجِرِ الْمَكِّيِّ، قَالَ: «سُئِلَ جَابِرٌ عَنِ الرَّجُلِ يَرَى الْبَيْتَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ، ② فَقَالَ: قَدْ حَجَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَلَمْ نَكُنْ نَفْعَلُهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** ① مهاجر مكي رحمه الله (تابعي) وايي چي د حضرت جابر رضي الله عنه څخه د هغه سړي په باره كي پوښتنه وشوه، چي خانه كعبه ليدو سره خپل دواړه لاسونه پورته كړي (چي آيا دا مشروع دي كه نه) ② نو جابر رضي الله عنه اوويل كوم وخت چي مونږ د نبى كريم صلى الله عليه وسلم سره حج وكړي، نو داسي مونه كول (يعني دخانه كعبه ليدو سره به مو لاسونه، نه اوچتول، ترمذي، ابوداؤد

**تسهيلات:**

**قوله: يَرَى الْبَيْتَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ، فَقَالَ:**

**خانه كعبي ته كتلو سره دعا كول:** د بيت الله زائر، مكي مكرمي ته رسيدلو سره چه كله مسجد حرام كښ داخليږى هغه خانه كعبي ته كتلو سره دعا غواړى نو د هغه دعا قبليږى په دې وجه مسئله دا ده چه د كعبې محترمي په ښكلى جمال باندې نظر پريوتلو سره چه ئې څه زړه غواړى هغه دې د الله پاك نه اوغواړى.

### په دې دعا كښې لاس اوچتولو كښې مذاهب:

اوس سوال دا دې چه هغه وخت دعا غوښتلو سره خپل دواړه لاسونه هم اوچت كړې شى يا نه؟ پس دا حديث د دې نه انكار كوى،

① د امام ابوحنيفه، امام شافعي او امام مالك رحمهم الله مسلك هم دا دې چه خانه كعبې ته د كتلو په وخت دعا كونكي دې خپل لاسونه نه اوچتوى،

② د امام احمد رحمه الله مسلك دا دې چه د كتلو په وخت دې لاس اوچت كړې شى او دعا دې اوكړې شى. (طيبى)

ملا على قارى په مرقات كښ د امام ابوحنيفه او امام شافعي رحمهما الله مسلك د دې خلاف ليكلې دې، يعنى دهغوى د نقل مطابق د دې دواړو ائمه كرامو په نزد لاس اوچتول مشروع دى خو هم هغوى په خپل يو بل كتاب "مناسك" كښ دې ته مكروه وئيلي دى اگر چه بعض علماء كرامو نه ئې د دې جواز هم نقل كړې دې، د فقه حنفى د مشهور او معتبر كتاب هدايه او در مختار نه هم دا ثابتيږى چه په دې موقع باندې دې لاس اوچت نه كړې شى.

[1] اخرجه ابوداود فى كتاب المناسك باب فى رفع اليدين إذا رأى البيت (رقم-١٨٧٠) والترمذى فى كتاب الحج عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية رفع اليدين عند رؤية البيت (رقم-٨٥٥) والنسائى فى كتاب مناسك الحج/ترك رفع اليدين عند رؤية البيت (رقم-٢٨٩٥)

**د عدم رفع دليل:** ①په حديث الباب کښې دَ لاسونو اوچتولونه انکار شوې دې

**د رفع دلائل:** ①((عن جريج قال كان النبي صلى الله عليه وسلم اذا راء البيت رفع يديه وقال اللهم زد هذا البيت تشريفا وتعظيما وتكريما ومهابة))

②دغه شان په مسند شافعی کښې دا حديث هم دې ((عن ابن عباس عن النبي ترفع الايدي في الصلوة واذا راء البيت وعلى الصفا والمروة))

**جوابونه:** دَجمهورو دَ طرف نه دَ امام احمد رحمه الله دَ دليل ① دَنفی تعلق وجوب سره دې چه لاسونه اوچتول واجب نه دی او دَ اثبات تعلق دَ استحباب سره دې چه لاسونه اوچتول مستحب دی.

② اصولی قاعده ده چه دَنفی او اثبات کله مقابله راشی نو اثبات مقدم وی لهذا دَ نفی اعتبار نشته.

③ ملاعلی قاری رحمه الله دا جواب ورکړې دې چه په اول خل باندې نظر پريوتلو سره لاسونه اوچتولو سره دعا غوښتل پکاردی دَ اثبات تعلق هم دَ دې کتلوسره دې. او دَنفی تعلق بار بار کتل او لاسونه اوچتولو سره دی چه داسې نه دی کول پکار.

**[٢٥٧٥] د سعي په دوران کي د صفا څخه کعبه ليدل او د لاس اوچتولو سره دعا غوښتل**

٢٥٧٥—[١٥] ()① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ «أَقْبَلَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَدَخَلَ مَكَّةَ، ②فَأَقْبَلَ إِلَى الْحَجَرِ فَاسْتَلَمَهُ، ثُمَّ طَافَ بِالْبَيْتِ، ③ثُمَّ أَتَى الصَّفَا، فَعَلَاهُ حَتَّى يَنْظُرَ إِلَى الْبَيْتِ، ④فَرَفَعَ يَدَيْهِ فَجَعَلَ يَذْكُرُ اللّٰهَ مَا شَاءَ وَيَدْعُو». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** ① ابوهريره رضي الله عنه وايي نبی کريم صلی الله عليه وسلم چې د حج او عمري د پاره تشريف راوړو، او په مکه کې به داخل شو، ②نو حجر اسود ته به ورغلی، او هغه به يي ښکل کړه، بيا يې د خانه کعبي طواف وکړي، ③د دې څخه روسته د طواف مونځ کولو سره صفاء طرفته راغلو. په هغه به اوختلو تر دی چې د خانه کعبی طرف ته يي نظر پورته کړي، ④نو د دعا د پاره يي خپل دواړه لاسونه پورته کړل، او څومره چې يي غوښتل، د الله جل جلاله ذکر (يعني تکبير او تهليل) يي کولی، او دعا ئي غوښتله، ابوداؤد.

**حل اللغات:** ① أَقْبَلَ: أَيْ: تَوَجَّهَ: متوجه به شو، ورمخکښې به شو ② فَعَلَاهُ: أَيْ: صَعِدَهُ: ور اوبه ختلو (د صفا غوندی ته).

**تسهيلات:**

**قوله: فَرَفَعَ يَدَيْهِ، فَجَعَلَ يَذْكُرُ اللّٰهَ مَا شَاءَ وَيَدْعُو:**

**په صفا غونډئ باندې تکبير وليلو سره د دعا دپاره لاسونه اوچتول:** د سعی په وخت کله چه

---

(١) اخرجه مسلم فی كتاب الجهاد والسير/باب فتح مكة (رقم-٨٤ - (١٧٨٠)) وابوداود فی السنن رقم الحديث ١٨٧٢

په صفا غونډئ باندې اوخيژی نوهلته دبيت الله طرف ته مخ کولو سره اودريدل پکار دی اوبيا د تکبير اوتهليل کولو او درود وئيلو نه پس دواړه لاسونه اوچتولو سره دعا کول پکار دی.

**تکبیر سره د لاسونو اوچتولو عدم ثبوت:** بعضې خلقو په دغه موقع تکبير سره لاسونه هم اوچتوی، لکه څنګه چه په مونځ کښې د تکبير سره رفع يدين کولې شی، خو په شريعت کښې ددې هيڅ اصل نشته، دا يو غير مشروع او غير مسنون عمل دې.

**[۲۵۷٦]په مونځ او طواف کښې مماثلت**

۲۵۷٦-[۱٦] (¹) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② "«الطَّوَافُ حَوْلَ الْبَيْتِ مِثْلُ الصَّلَاةِ، إِلَّا أَنَّكُمْ تَتَكَلَّمُونَ فِيهِ، ③ فَمَنْ تَكَلَّمَ فِيهِ فَلَا يَتَكَلَّمَنَّ إِلَّا بِخَيْرٍ» ". ④ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ، وَذَكَرَ التِّرْمِذِيُّ جَمَاعَةً وَقَفُوهُ عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ.

**ترجمه:** ① ابن عباس ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ وفرمايل ② د خانه کعبې چاپيره طواف کول د مانځه په مثل دی، مګرداچې تاسو په دې کې کلام کوی، ③ نو کوم سړی چې په طواف کې کلام وکړي نو هغه دې لغو او لايعني او ناخوښه کلام نه کوي، بلکه نيک کلام دې وکړي، ④ ترمذي، نسائي، دارمي، او امام ترمذي رحمه الله ذکر کړی دې چې ځينې خلق دا روايت په ابن عباس ﷺ موقوف کوي (يعني دا د حضرت ابن عباس ﷺ ارشاد دی).

**تسهیلات:**

**قوله:** مِثْلُ الصَّلَاةِ:

**د طواف د مونځ سره د تشبيه ورکولو وجه:** په دې حديث کښې دَ طواف تشبيه مونځ سره ورکړې شوې ده مګر په دواړوکښې دَ فرق ښکاره کولودَپاره استثناء هم موجود ده چه په طواف کښې جائز کلام جائز دی او په مونځ کښې هيڅ قسم کلام جائزنه دې.

**په طواف او مونځ کښې فرقونه:** علماؤ په طواف او مونځ کښې يوڅوفرقونه بيان کړی دی.

① په طواف کښې کلام مفسد نه دې او په مونځ کښې کلام مفسد دې.

② په طواف کښې استقبال قبله نشته په مونځ کښې ضروری دې.

③ په طواف کښې خوراك څښاك جائز دې په مونځ کښې ناجائزدي.

④ دَ طواف دَپاره څه متعين وخت نشته نه څه خاص تعداد دې خودَمونځ دَپاره وخت هم متعين دې او تعداد هم محدود دې.

په دې ټولو خبرو باندې اتفاق دې

(¹) اخرجه الترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الکلام فی الطواف (رقم-٩٦٠) والنسائي في كتاب مناسک الحج/باب إباحة الكلام في الطواف (رقم-٢٩٢٢) واحمد في المسند:٥/٣٧٧

**د طواف دپاره د طهارت په شرطیت کښې مذاهب:**

دَ طواف دَپاره د طهارت په شرطیت کښې اختلاف دې.

① امام شافعي رحمه الله فرمائي چه دَ طواف دپاره طهارت اودغه شان دَبدن پټول شرط دې که چرې دې نه بغیرچاطواف اوکړونوطواف ئې اونه شو.

② امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائي چه بدن پټول او طهارت دَ طواف دَپاره شرط نه دې البته دا څیزونه واجب دی. طواف خو به ئې اوشي لیکن دم به ورکول لازم وی.

**د طهارت د شرطیت دلیل:** زیر بحث حدیث د شرطیت دلیل دې ځکه چې دلته دَ طواف تشبیه دَمونځ سره ورکړې شوې ده اودَ مانځه دَپاره طهارت اوبدن پټول شرط دې. لهذا دَ طواف دَپاره هم شرط دې.

**جواب:** په حدیث کښې دَ طواف چه کومه تشبیه دَمونځ سره ورکړې شوې ده دا په ثواب کښې دې لکه څنګه چه په مونځ کښې لوئی ثواب ملاویږی دغه شان په طواف کښې هم لوئی ثواب ملاویږی. دَ تشبیه په قواعدوکښې قطعاً داخبره نشته دې چه دَمشبه اومشبه به په ټولو اجزاؤ کښې تشبیه وی.

**الزامي جواب:** - که چرې شوافع په ټولو څیزونو کښې دَ تشبیه قول کوی

① په طواف کښې به دَ خوراك څښاك سره دَ طواف فاسد کیدل هم لازم راځی.

② نو بیابه دې باندې په طواف دَ قبلې طرف ته مخ کول هم لازم راځی.

③ دَمونځ دَپاره به وخت هم متعین کولې کیږی اوطواف به محدود کولې هم شی حالانکه دَدې څیزونو شوافع قائل نه دی. معلومه شوه چه دا تشبیه هم په ثواب کښې ده او بس.

**دعدم شرطیت دلیل:** دَ الله تعالی ارشاد دې ﴿وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ﴾ طریقه د استدلال دا ده چې دلته دَ طواف حکم مطلق دې په دې کښې دَ طهارت اودَبدن پټولو ذکرنشته دې. دا دواړه څیزونه دَ احادیثونه ثابت دی او احادیث اخبار آحاد دی. دې نه واجب خو ثابتیدې شی لیکن فرض نه ثابتیږی لهذا دې سره دَ قرآن پاك مطلق آیت مقید کولې نه شی.

**[۲۵۷۷] حجراسود تک سپین کا نړې وو**

۲۵۷۷-[۱۷] (۱) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "«نَزَلَ الْحَجَرُ الْأَسْوَدُ مِنَ الْجَنَّةِ، [۲] وَهُوَ أَشَدُّ (بَيَاضًا) مِنَ اللَّبَنِ، [۳] فَسَوَّدَتْهُ خَطَايَا بَنِي آدَمَ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه** [۱] ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل حجراسود د جنت څخه

[1]) اخرجه الترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل الحجر الأسود. والرکن والمقام واحمدفی المسند:(رقم-۸۷۷) اخرجه الترمذی فی ۳۰۷/۱

راخکته شوي دي، [٢] دا کاڼي مخکې د پېيو څخه هم زيات سپين وو، [٣] خو د ابن آدم گناهونو دا تور کړی دی، احمد، ترمذي، او امام ترمذي رحمه الله فرمايلي دي چې دا حديث حسن صحيح دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** نَزَلَ الْحَجَرُ الْأَسْوَدُ مِنَ الْجَنَّةِ:

**د حجر اسود د جنت څخه راکوزيدو کښې اقوال:** ① حافظ توربشتي رحمه الله فرمائي چه ممکنه ده چه حقيقة هغه جنتي کاڼړې وی او د هغه ځائې نه راکوز کړې شوې وی.

② شيخ عبدالحق رحمه الله فرمائي چه په دې کښې د ايمان امتحان دې چه کافر خو به صراحة انکار اوکړی او ضعيف الايمان به تردد اوکړی او څوك چه کامل الايمان دې هغه به ئې بغير د تردد او تاويل نه قبول کړی ځکه چه په دې کښې د دليل قطعي مخالف هيڅ څيز نشته،

**اشکال:** د اهل زيغ دا اعتراض چه جنت کوم چه دار بقاء دې د هغه ځائې په څيزونو او د دې دار فاني په څيزونو کښې تباين او تضاد دې ځکه چه د هغه ځائې په څيزونو کښې هيڅ قسم تغير او تبديل نه راځي او په دې کاڼړی کښې خو تبديلي راغلې دې ځکه چه د قرامطه او ملاحده په لاسونو چه په کښې کوم چوندی واقع شوې دی هغه پکښې اوسه پورې باقي دی.

**جوابونه:** ① د دې جواب دا دې چه د هغه دار بقاء څيز چه کله د هغه ځائې نه دلته منتقل کيدو سره راشي نو د دې ځائې اثار په هغه کښې ظاهرېږی لکه چه د آدم عليه السلام د هغه ځائې نه دلته راتلو سره په هغوی باندې لوږه تنده راتله.

② يا د (نزول من الجنة) نه مراد دا دې چه د جنتي څيز په شان په دې کښې کرامت، برکت او شرافت دې. کقوله عليه السلام: العجوة من الجنة. دلته هم مراد دا دې چه د رسول الله ﷺ د دعا په برکت سره په عجوه کهجوره کښې هم د جنت د ميوو په شان شفاء او برکت دې.

**قوله:** فَسَوَّدَتْهُ خَطَايَا بَنِي آدَمَ:

**د گناهونو په وجه د حجر اسود توريدو دوه توجيهات:**

① دا هم په حقيقت باندې محمول دې چه مراد ترې په دې خبره باندې تنبيه کول دی چه د گناه سپيرۀ والې دې حده پورې دې چه هغه په جماد کښې هم اثر لری، اوس به د گناهگار د زړه څه حال وی.

② طيبي فرمائيلي دی چه غالبا دا حديث د تمثيل او مبالغې په طور باندې دې.

## [۲۵۷۸] دَ قیامت په ورځ دَ حجراسود ګواهي

۲۵۷۸-[۱۸] (۱) وَعَنْهُ قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي الْحَجَرِ: "وَاللَّهِ لَيَبْعَثَنَّهُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، لَهُ عَيْنَانِ يُبْصِرُ بِهِمَا، وَلِسَانٌ يَنْطِقُ بِهِ، يَشْهَدُ عَلَى مَنِ اسْتَلَمَهُ بِحَقٍّ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې نبي کريم ﷺ د حجراسود په باره کې وفرمایل چې قسم په الله جل جلاله د قیامت په ورځ به الله جل جلاله دا را پورته کړي، بیا به ده ته دوه سترګې ورکول شي، چې د هغه په ذریعه به هغه ويني او دي ته به ژبه ورکول شي، چې د هغه په ذريعه به خبرې کوي، نو دا به د هغه سړي په حق کې شاهدي ورکوي چا چې په حق سره دا ښکل کړی وي، ترمذي، ابن ماجه، دارمي.

**تسهیلات:**

**قوله:** لَهُ عَيْنَانِ:

**د حدیث ظاهري معنی اخستل:** په دې کښې دَ څه تشبیه یا کنایه او مجاز اخستلو ضرورت نشته دې بلکه دا حدیث په خپله ظاهري معنی باندې محمول دې او الله تعالی په دې باندې قادر دې چه هغه په کاڼړي کښې دَ وینا او کتلو طاقت کېږدی. هغه چه دَ انسان په بدن کښې دَ غوښې يوه ټکړه کښې دَ خبرو کولو طاقت کیخودې دې اودَ قیامت په ورځ به هم دَدې انسان خپو لاسونو کښې دَوینا طاقت ایږدی. اودَ داؤد علیه السلام سره دَ تسبیحاتو ونيلو صلاحیت په کلك کاڼړودَ غرونو کښې پیدا کړو دَهغه دَپاره دَ حجراسود ګویا کول او بینائي ورکول هیڅ ګران نه دی. په حدیث کښې دا نه دی چه صرف کاڼړې به خبرې کوی بلکه کاڼړی له به ژبه ورکوی اوسترګې به ورکوی نواوس په دې کښې څه تردد دې.

**قوله:** بِحَقٍّ:

**حق سره د ښکلولو مطلب:** حق سره دَ ښکلولو مطلب دادې چه داسړې به دَ ایمان اوتوحیدوالا وی دَ الله تعالی په وعدو باندې یقین لرونکې وی پوره ادب اواحترام لرونکې به وی اودَ الله تعالی دَ رضا او ثواب په اراده سره دَعقیدت و محبت دَ جذبې لاندې به دا ښکلوی.

**د حجر اسود مثال:** حضرت شیخ الهند رحمه الله لیکلی دی دَ حجراسود مثال دَ مقناطیس او کسوټنی دې دادَ مسلمان ایمان ټیسټ کوی. که چرې په عقیدت او محبت سره دا ښکل کړو نودا به دَ هغه په ایمان باندې ګواهي ورکوی اودَ هغه شفاعت به کوی اوکه دَ چاپه زړه کښې دَدې نفرت راغلو نوفوری توګه باندې به دَهغه ایمان والوزی.

[۱] اخرجه الترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلى الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الحجر الأسود(رقم-۹۶۱) وابن ماجة فی کتاب المناسک/باب استلام الحجر(رقم-۲۹٤٤)

**[۲۵۷۹] حجراسود او مقام ابراهيم دَ جنت ياقوت دي**

۲۵۸۱-[۱۹] (١) ①وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ② "«إِنَّ الرُّكْنَ وَالْمَقَامَ يَاقُوتَتَانِ مِنْ يَاقُوتِ الْجَنَّةِ،③ طَمَسَ اللهُ نُورَهُمَا، وَلَوْ لَمْ يَطْمِسْ نُورَهُمَا لَأَضَاءَ مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**:① ابن عمر ﷺ وايي چې ما د نبی کريم ﷺ څخه واوريدل چې فرمايل يې② حجر اسود او مقام ابراهيم د جنت د ياقوتو څخه دوه ياقوت دي،③ الله ﷻ د دوی نور اوچت کړی دی (چې ايمان بالغيب دی)، که د دوی نور باقي پاتې شوی واي، نو په دي کې شک نشته، چې د مشرق او مغرب په منځ کې به يې تول ه دنيا روښانه کړي وه، ترمذي.

**حل اللغات**: ① الْمَقَامَ: أَيْ: مَقَامَ إِبْرَاهِيمَ: يعني مقام ابراهيم -عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ، ② طَمَسَ: أَيْ: أَذْهَبَ: بوني تلو، ختم ئې کړو. ③ لَأَضَاءَ: روښانه کړی به ئې وو.

**تسهيلات**:

**قوله**: طَمَسَ اللهُ:

**د حجر اسود څخه د سپينوالی اخستلو وجه**: يعنی الله تعالی دَ حجراسود اومقام ابراهيم دَ کانړی نه دَ جنت والا پړق پړوق واخستو اوبيا دَ انسانانو ګناهونو دا تک تور کړو که چرې داسې نه وې نودَ دنيا هره رڼا به ختمه شوې وه اوهم دغه دوه جوهر (مرغلرې) به پرقيدې او دنيابه ئې روښانه ساتله "طمس يطمس" دَرڼا ورانولو اوختمولوته وائی دَ ضرب يضرب نه دې.

**قوله**: يَاقُوتَتَانِ مِنْ يَاقُوتِ الْجَنَّةِ:

**د حجراسود جنتی کانړې کيدلو قصه**: ملاعلی قاری ﷫ په مرقات کښې ليکلی دی چه دَ حجراسود جنتی کانړې کيدل خودَ حضورپاك دَ فرمان نه ثابت دې دويمه هغه قصه هم دَدې تائيد کوی \چه يوخل قرامطه ملحدين (يعنی نادرشاه ايرانی) په مکه مکرمه باندې غالب راغلو نوهغه دَ زمزم کوهې دَ مسلمانانو دَ نعشونونه ډك کړو اوحجر اسود ئې په خپلو څټکونوسره داسې وينا کولوسره اووهلو چه ترکومې پورې به دَ الله تعالی نه سوا ستاعبادت کيږی؟ بيا هغه خلقو حجراسود خپلې علاقې ته يوړو اودَ شلوکالو نه دَځه مودې پورې حجراسود دَهغوی سره وو بيا مسلمانانو ډيره لويه معاوضه اداکړه اودَ حجراسود دَ واپس کيدلو معاهده اوشوه ليکن ايرانی آغاخانيانو اووئيل چه حجر اسود نورو کانړو سره ګډوډ شوې دې اوس مونږ هغه نه پيژنو که چرې مسلمانانوسره دَحجر اسود دَ پيژندګلو څه علامت وی نوهغوی دې راشی اوهغه اوپيژنی اوواپس دې مکې ته

---

[1]) اخرجه الترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في فضل الحجر الأسود، والركن، والمقام واحمدفی المسند:(رقم-۸۷۸) اخرجه الترمذی فی ۲۱۳/۲

یوسی مسلمانو علماؤ سره مشوره اوکړه دٰ وخت علماؤ اوونیل چه حجراسود خود جنتي نه راغلي دی په دې وجه په هغې باندې اور اثر نه شي کولې. تاسو هغوی ته اووایئ چه ټول کاڼړي په اورکښې واچوي چنانچه کله دا امتحان شروع شو نوکوم کاڼړې چه به هغه خلقو په اورکښې اچولو هغه کاڼړې به سوزیدلو او ټکړې کیدوسره به ماتیدلو خوچه کله حجراسودپه اورکښې واچولې شو نوپه هغې باندې اور اثر اونه کړې شو نوبیا هم دغه مکې ته واپس راوړلې شو.

**د قدرت عجائبات:** ونیلی شی چه دا هم دٰ الله تعالی دٰ قدرت دٰ عجائبات نه وه چه کوم وخت حجر اسود قرامطه دٰ حرم نه اوړلو نوهغه په اوښانو باندې بارکړې شو چه په کوم اوښ باندې به ئې کیخودلو هغه اوښ به دٰ حجر اسود دٰ بوج لاندې خنبې شو مړبه شو. ډیر اوښان دغه شان هلاك شولیکن چه کله حجراسود واپس حرم ته راوړلې شو نو یو بیمار اوکمزوری اوښ دا په خوشحالئی سره راوړلو اوهغه ته هیڅ تکلیف ملاؤ نه شو.

**[٢٥٨٠] د حجر اسود د استلام او د طواف فضیلت**

٢٥٨٠-[٢٠] ()[١] وَعَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، «أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يُزَاحِمُ عَلَى الرُّكْنَيْنِ زِحَامًا [٢] مَا رَأَيْتُ أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُزَاحِمُ عَلَيْهِ. [٣] قَالَ: إِنْ أَفْعَلْ، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: "إِنَّ مَسْحَهُمَا كَفَّارَةٌ لِلْخَطَايَا"

**ترجمه:** [١] عبید ابن عمیر رحمه الله (تابعي) وایي چې ابن عمر رضي الله عنه په دي دواړو رکنونو یعنی د حجر اسود او رکن یماني سره په لاس لګولو کې په خلقو چې څرنګه سبقت حاصلولی [٢] دغه شان ما د نبی کریم ﷺ یو صحابي هم (په دي دواړو رکنونو) سبقت کونکی نه دی لیدلی، [٣] او ابن عمر رضي الله عنه به فرمایل چې که زه په سبقت حاصلولو کې کوشش کوم، نو ما مه منع کوی، ځکه چې ما د نبی کریم ﷺ څخه اوریدلي دي، چې دي دواړو رکنونو ته لاس وروړل (لګول) د ګناهونو د پاره کفاره ده.

**حل اللغات:** ①يُزَاحِمُ: أَيْ: يُغَالِبُ النَّاسَ: زور به ئې لګولو، مخکښې کیدو به د خلقو نه.

[١] وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: "مَنْ طَافَ بِهَذَا الْبَيْتِ أُسْبُوعًا، فَأَحْصَاهُ كَانَ كَعِتْقِ رَقَبَةٍ [٢]" وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: "لَا يَضَعُ قَدَمًا وَلَا يَرْفَعُ أُخْرَى إِلَّا حَطَّ اللّٰهُ عَنْهُ بِهَا خَطِيئَةً وَكَتَبَ لَهُ بِهَا حَسَنَةً». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] او ما د نبی کریم ﷺ څخه دا هم واوریدل چې کوم سړی د خانه کعبې اووه خله طواف وکړي، او د دې محافظت وکړي (یعني د طواف واجبات، سنن او اداب په ځای کړي) نو د دې ثواب د غلام آزادولو د ثواب برابر دی. [٢] او ما واوریدل چې نبی کریم

[١]اخرجه الترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی استلام الرکنین (رقم-٩٥٩) والنسائی فی کتاب مناسک الحج/ذکر الفضل فی الطواف بالبیت (رقم-٢٩١٩) واحمد فی المسند:٣١٢

ﷺ فرمايل (د طواف په وقت) كله چې څوك قدم ايږدي، او بيا هغه اوچتوي، نو الله ﷻ هغه ته د قدم اينبودلو په عوض كې د هغه ګناه ختموي او د قدم د پورته كولو په عوض كې نيكي ليكي (يعنى طواف كونكي چې قدم ايږدي، نو هغه څخه ګناه لري كوي او هر كله چې قدم پورته كړي نو د هغه په نيكيو كې اضافه كېږي، دغه شان په پوره طواف كې د هغه ګناه ختمېږي، او په نيكيو كې اضافه كېږي) ترمذي.

**حل اللغات:** ② أُسْبُوعًا: أَيْ: سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ: ـ يې اووه خله طواف اوكړي. ③ فَأَحْصَاهُ: أَيْ: بَعُدَّهُ: حفاظت ئې اوكړي (يعنى دطواف د واجباتو، سنت او آدابو لحاظ اوساتي). ④ أَحَطَّ: أَيْ: وَضَعَ، وَمَحَا: لرى كوى او ختموى.

**تسهيلات:**

**قوله:** يُزَاحِمُ عَلَى الرُّكْنَيْنِ:

**د ازدحام څخه مراد:** دَ دې مطلب دا شوچه حضرت ابن عمر ﷺ به خلقو ته تكليف رسولو استلام خوسنت دې او په دې موقع باندې تكليف رسول حرام دى. مطلب دادې چه هغوى به بيږه كوله او زور به ئې لګولو ليكن دَجواز دَ حد پورې په كوم كښې چه دَ چا څه تكليف نه وى. حضورپاك يوځل حضرت عمر ﷺ ته اوفرمائيل: ((انك رجل قوي لاتزاحم على الحجر فتوذي الضعيف ان وجدت خلوة فاستلمه والا فاستقبله وهلل وكبر رواه أحمد الشافعي))

بعض رواياتو كښې دى چه دَحضرت ابن عمر ﷺ به دې مزاحمت او زور لګولو كښې به بعضې وخت پوزه زخمى كيدله او وينه به ترې بهيدله. ملاعلى قارى ﷫ فرمائى عامو صحابه كرامو به بيږه نه كوله دَ هغوى تابعدارى كول زيات بهتردى خصوصاً په هغه زمانه كښې ١هجرى. واقعى ملاعلى قارى ﷫ رښتيااوفرمائيل چه نن صبا دَ مزاحمت داسې كيفيت وى چه ښځې بې پردې كيدوسره په مينځ كښې ورخښې شى. آخردَ يومستحب كار پاره دَحرام كار ارتكاب كول دكوم ځائى عقل مندى ده.

**قوله:** إِنْ أَفْعَلْ:

**د مذكوره قول مفهوم:** دا شرط دې دَ دې جزا محذوف ده كوم چه "فلاالام" دې يعنى كه زه دَحجراسود په تقبيل كښې مزاحمت اوكړم نوزه ملامت كيدې نه شم ځكه چه مادَ حضورپاك نه دَدې لوئى فضيلت اوريدلې دې.

**قوله:** أُسْبُوعًا:

**د اسبوعاً په مفهوم كښې درې اقوال:**

① يعنى دَ اووه چكرو يو طواف اوكړه. يعنى دَ دې دَ آداب خيال ساتئى او په كامل اومكمل توګه باندې طواف كوئى. ملاعلى قارى ﷫ فرمائى چه دَدې كلام هم دغه مطلب دې اودَ حديث مفهوم هم دغه دې.

④ اووه ورخويوري هره ورځ بلاناغه طواف کول مراد دي. ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي چه دا مطلب دَدې حديث په مفهوم کښې نشته دې.
⑤ روزانه اووه طوافونه کول مطلب دې خو دا ډيره بعيد خبره ده.

**[۲۵۸۱]دَ طواف يوه دعا**

۲۵۸۱-[۲۱] (¹)① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ السَّائِبِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: «سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: مَا بَيْنَ الرُّكْنَيْنِ: ②﴿رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ﴾ [البقرة: ۲۰۱]». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① عبد الله ابن السائب رضي الله عنه وايي چې ما واوريدل نبی کريم ﷺ به د دواړو رکنونو يعنی د حجر اسود او د رکن يماني په منځ کې دا دعا کوله: ② رَبَّنَا اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ (اى زمونږ ربه! مونږ ته په دنيا کې هم خير راکړې، او په آخرت کې هم خير راکړې، او مونږ د دوزخ د عذاب څخه محفوظ کړې، ابوداؤد.

**دراوي مختصر تعارف:**

**حضرت عبدالله بن السائب رضي الله عنه:** نوم عبدالله کنيت ابوعبدالرحمن مخزومي قريشي دې.دَهغه نه دَمکې والا قراءت زده کړې. علامه ذهبی رحمه الله فرمائي چه ده ته دَ نبی کريم ﷺ صحبت مبارك حاصل دې اوهغه دَحضرت ابی بن کعب رضي الله عنه نه قرآن زده کړې وو.
**وفات:** دَهغوی انتقال دَحضرت عبدالله بن زبير دَجنګ په زمانه کښې شوې.
**مرويات:** دَهغوی نه ټول اووه ⑥ روايتونه نقل دی دَ دې نه په مسلم کښې يوروايت دې بخاری کښې يو هم نشته اوباقی احاديث دَ احاديثو په نورو کتابونوکښې دی.

**تسهيلات:**

**نوټ:** د مذکوره دعا مفهوم په بل مقام کښې ذکرشوې دې.

**[۲۵۸۲]دَ حضورپاکﷺ دَ سعی منظر**

۲۵۸۲-[۲۲] (²)① وَعَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: أَخْبَرَتْنِي بِنْتُ أَبِي تُجْرَاةَ قَالَتْ: ② دَخَلْتُ مَعَ نِسْوَةٍ مِنْ قُرَيْشٍ دَارَ آلِ أَبِي حُسَيْنٍ، ③ نَنْظُرُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَهُوَ يَسْعَى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ ④ فَرَأَيْتُهُ يَسْعَى، وَإِنَّ مِئْزَرَهُ لَيَدُورُ مِنْ شِدَّةِ السَّعْيِ ⑤ وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: («اسْعَوْا فَإِنَّ اللّٰهَ كَتَبَ عَلَيْكُمُ السَّعْيَ»). رَوَاهُ فِي: "شَرْحِ السُّنَّةِ" وَرَوَاهُ أَحْمَدُ مَعَ اخْتِلَافٍ.

**ترجمه** ① بې بې صفيه بنت شيبه وايي چې د ابو تجراة لور ماته بيان وکړې ② چې زه د

¹) اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک . باب الدعاء فی الطواف (رقم-۱۸۹۲) واحمد فی المسند:۴۱۱/۳
²) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحديث ۱۹۲۱، والدارقطنی من کتاب الحج رقم الحديث ۸۷ من باب المواقيت، واحمد فی المسند ۶/ ۴۲۱

قریشو د ښځو سره د آل ابو حسین کور ته ورغلم،[۳] چې مونږ نبی کریم ﷺ د صفاء او مروه په منځ کې په سعي کولو ووینو، او دغه شان مونږ د نبی کریم ﷺ د جمال باکمال څخه مشرف او د نبی کریم ﷺ د عمر او برکت څخه مستفید شو،[۴] ما نبی کریم ﷺ د صفاء او مروه په منځ کې داسې سعي کونکی و لیدلو، چې د نبی کریم ﷺ تهبند (لنګ) په سعي (منډه) کې د تیزۍ په وجه (د نبی کریم ﷺ د پښو چاپیره) تاویدلی[۵] او ما واوریدل چې نبی کریم ﷺ فرمایل ټول خلق سعي وکړی، ځکه چې الله ﷻ ستاسو دپاره سعي لیکلي ده، شرح السنه، دا روایت امام احمد رحمه الله د کمی بیشي سره نقل کړی دی.

**حل اللغات:** ①مِئْزَرَهُ: تهبند، لنګ، ②لَيَدُورُ: أَيْ: حَوْلَ رِجْلَيْهِ: تاویدلو یعنی په خپو کښې ئې چاپیره ګیدلو.

**تسهیلات:**

**قوله: وَهُوَ يَسْعَى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ:**

**د سعی تعریف او مشروعیت:** دَ صفا او مروه په مینځ کښې اووه چکرې لګولو نوم سعی ده چه دَ حج یو اهم حکم دې. دَ صفا مروه غرونه اوس باقی نه دی پاتې دَ صفا څخه څوکه شان پاتې ده او دَ مروه کانړې دَ وخت حکومتونو په ماتولو ماتولو ختم کړی دی. دَ دواړو په خپل مینځ کښې فاصله تقریبًا دوه نیم فرلانګه ده. سعی په اصل کښې دَ حضرت هاجره رضی الله عنها دَ هغه منډو یادګار دې کومې چه هغې دَ مور روونکی بچی دَ ځان بچ کولو دَپاره دَ اوبو په لټون کښې وهلې وې. دَ صفا مروه په لاندینئی حصه کښې هغې دَ ډیرې پریشانتی دَ وجې نه تیزه منډه وهلې وه هم په دې وجه هلته دَ میلین اخضرین په مینځ کښې منډه وهلې کیږی. مګر عجیبه داده چه دادَ یوې ښځې یادګار دې مګر دَ ښځو دَپاره دلته منډه وهل منع دی دَ دې وجه داده چه امت محمدیه دَ خپل رسول الله ﷺ دَ وجې نه دا منډه وهی او حضوریاك دَ ښځو دَپاره دا منډه جائزنه ده ګرځولې صرف دَ سرو دَپاره ده. دَ اسلام نه وړاندې په صفا غرباندې به یوبت وو دَ کوم نوم چه اصاف وو هم دَ دغه وجې نه دَ دې غر نوم صفا شو او په مروه باندې یوبل بت دَ کوم نوم چه نائله وو اصاف سړې وو او نائله ښځه وه دواړو په حرم کښې زنا اوکړه نو دَ دواړو مسخ کیدو سره کانړی جوړ شو. اهل جاهلیت دا یوه کرشمه ګنړلو سره هریو خپل معبود جوړ کړو. ابوطالب په خپله قصیده لامیه کښې دَدې بتانو هم دغه شان تذکره کړې ده.

**قوله: فَإِنَّ اللهَ كَتَبَ عَلَيْكُمُ السَّعْيَ:**

**حدیث نه د امام مالک او امام شافعی استدلال او د احنافو توجیه:** دَ امام مالك رحمه الله او امام شافعی رحمه الله په نیز سعی فرض ده. هغوی دَدې حدیث دَ لفظ کتب نه استدلال کړې دې چه په حج کښې سعی فرض ده که چاپریخوده نو حج ئې باطل کیږی. لیکن امام ابوحنیفه رحمه الله

اوامام احمد رحمه الله لفظ كتب دَ وجب په معنى كښې اخستې دې په دې وجه په حج كښې سعى واجب ده كه چا پرېخوده نو حج نې اوشوليكن دم وركول به لازم وى احنافو ( فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا ) نه استدلال كړې دې او په ظنى حديث سره فرض نه ثابتيږى

**قوله: وَإِنَّ مِئْزَرَهُ لَيَدُورُ:**

**د مذكوره جملې مطلب:** يعنى دَ تيزې منډې وهلودَ وجې نه دَ احرام لاندينې څادر : حضورپاك په پنډو باندې وړاندې روستو او اخوا ديخوا خوزيدلو

**[٢٥٨٣] حضورپاك ﷺ په سورلۍ سعى كړې ده**

٢٥٨٣-[٢٣] (١) وَعَنْ قُدَامَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمَّارٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَسْعَى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ عَلَى بَعِيرٍ، لَا ضَرْبَ، وَلَا طَرْدَ، وَلَا إِلَيْكَ إِلَيْكَ»، رَوَاهُ فِي: "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** قدامه ابن عبد الله ابن عمار رضي الله عنه وايي چې ما نبى كريم ﷺ د صفا او مروه په منځ كې په اوښ سوريدو سره په سعي كولو ليدلى دى، او هغه وخت نه وهل وو، نه شړل وه، او نه د لرې شئ (اخوا ته شي آوازونه وو) شرح السنة.

**حل اللغات:** ① لَا ضَرْبَ: وهل به نه وو. ② لَا طَرْدَ: شړل به نه وو. ③ إِلَيْكَ إِلَيْكَ: اخواشه ديخوا شه (لكه په كتره ګونړه كښې چه خلقو ته وئيلې شى چه اخواشئ يعنى لاره پريږدئ).

**تسهيلات:**

**قوله: عَلَى بَعِيرٍ:**

**په روايات وكښې تعارض:** دَدې حديث نه معلومه شوه چه حضورپاك په اوښ سوريدوسره سعى كړې ده اودې نه وړاندې حديث نمبر ٢٥٨٢ اونورو څه احاديثونه معلوميږى چه نبى عليه السلام پيدل سعى كړې ده. دا په ظاهره تعارض دې.

**دتعارض جواب:** دَدې جواب علماء داوركړې دې چه حضورپاك په يوه موقع باندې پيدل سعى كړې ده او په بله موقع باندې نې په سورلئى سعى كړې ده. نودَ جدا جدا وختونوسره تعارض ختم شو.

**په سورلۍ باندې د سعى كولو حكم:** پاتې شوه دامسئله چه سوريدو سره سعى كول جائزدى كه نه؟ نودَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزپيدل سعى كول واجب ده اوكه چا په سورلئى سره سعى اوكړه نو په هغه به دم لازم راځى. حضورپاك دَ بدنى كمزورئى يا بيمارئ دَ وجې نه به داسې كړى وى يا دَ امت دَتعليم دپاره به نې داسې كړې وى اودَ امت دَ تعليم دَ پاره ممنوع فعل كله كله كولې شى په كوم كښې چه ثواب هم ملاويږى.

(١) اخرجه الترمذى فى كتاب الحج عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية طرد الناس عند رمى الجمار(رقم-٩٠٣) وابن ماجة فى كتاب المناسك/باب رمى الجمار راكبا (رقم-٣٠٣٥) واحمد فى المسند: ٤١٣/٣

**قوله:** لَاضَرْبَ:

**بعدم ضرب مطلب** :یعنی دَ لارې خالی کولودَپاره به خلق نه شو وهلې لکه څنګه چه مغرور او کبرژن خلق دَ خپل شان خودلودَپاره غریب عوام په وهلو سره دیکې ورکوی.

**قوله:** وَلَاطَرْدَ:

**بعدم طرد مطلب او وجه:** یعنی په ژبه سره شړلو اوزغلولودَپاره چغې صورې به نه شوې وهلې لکه چه کبرژن اوظالمان چه دَ شان خودلودَپاره دَهغوی چمچې چغې وهی او وانی چه اخواشئی لرې شئی بچ شئی مهمان خصوصی راروان دې لکه دا نن صباچه کیږی.

**[٢٥٨٤]په طواف کښې دَ اضطباع حکم**

٢٥٨٤-[٢٤] ()[١] وَعَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - [٢]قَالَ: «إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - طَافَ بِالْبَيْتِ مُضْطَبِعًا بِبُرْدٍ أَخْضَرَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:**[١] یعلی بن اُمیه وایی [٢]چې نبی کریم ﷺ په داسې حالت کې طواف وکړې چې د شنې کربنو والاڅادر په ذریعه یې اضطباع کړې وو، ترمذی، ابن ماجه، دارمي.

**حل اللغات:** ① مُضْطَبِعًا: دَ احرام څادر دَ ښی طرف ته ترخ لاندې اوباسی اودَهغې پلاؤ په ګسه اوږه باندې واچولې شی. ② بُرْدٍ: څادر.

**تسهیلات:**

**قوله:** مُضْطَبِعًا:

**د اضطباع اصطلاحی تعریف او یوه ضابطه:** اضطباع دَ طواف دَ سنتو نه دې دَ احرام دَ سنتو نه نه دی. لهذا دَ احرام په عام احوال کښې اضطباع کول ثابت نه دی. اودَ اضطباع په حالت کښې مونځ کول مکروه دی. ضابطه داده چه هرهغه طواف دَ کوم نه پس چه سعی وی دَهغې دَ شروع په دریو چکروکښې رمل او اضطباع مسنون دی اودَ کوم نه پس چه سعی نه وی په هغې کښې اضطباع نشته دې نه رمل شته . په دې راتلونکی حدیث نمبر : ٢٥٨٥کښې دَ اضطباع طریقه خودلې شوې ده. دَ مصر خلق یوشان په اضطباع کښې وی. داسې اضطباع سره دَ احرام شان ښکاره کیږی.

**په طواف کښې دَ اضطباع طریقه:** دَملاعلی قاری ؒ دکلام نه معلومیږی چه دَ مونځ په حالت کښې اضطباع مکروه ده او په عام حالاتوکښې چه عوام کومه اضطباع کوی دَدې څه اصل نشته دې دامستحب نه ده په دې کلام سره اشاره ملاویږی که یوسړې په عام احوال

[١]) اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک ، باب الاضطباع فی الطواف (رقم-١٨٨٣) والترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء أنّ النّبی صلیّ الله علیه وسلم طاف مضطبعا(رقم-٨٥٩) وابن ماجة فی کتاب المناسک باب الاضطباع (رقم-٢٩٥٤) واحمد فی المسند: ٤/ ٢٢٣

کښې اضطباع مستحب نه ګنړي بغیرد استحباب نه دا اختیاروی نوکیدې شي چه جنر
وی احرام د لباس په شان یو لباس دې که د سهولت د وجې نه اوړه ښکاره وی نو منع
وی دګرمئی په موسم کښې اضطباع سره ډیرآرام ملاویږی البته د مونځ په وخت اضطباع
مکروه ده

**قوله:** بِبُرْدٍ أَخْضَرَ: ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی په دې کښې شنې کړښې وې پوره څادرشین نه وو

**[۲۵۸۵] په طواف کښې د اضطباع طريقه**

٢٥٨٥–[٢٥] (١) ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَأَصْحَابَهُ اعْتَمَرُوا مِنَ الْجِعْرَانَةِ ٢ فَرَمَلُوا بِالْبَيْتِ ثَلَاثًا، ٣ وَجَعَلُوا أَرْدِيَتَهُمْ تَحْتَ آبَاطِهِمْ، ثُمَّ قَذَفُوهَا عَلَى عَوَاتِقِهِمُ الْيُسْرَى. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ ابن عباس رضی الله عنهما وايي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم او صحابه وو رضی الله عنهم د جعرانه (چې د مکې او طائف په منځ کې د يو ځای نوم دی) د هغه ځای څخه يي عمره وکړه، ٢ تولو د خانه کعبې د طواف څخه (مخکې) درې چکرو کې رمل وکړي، ٣ او هغوی په طواف کې خپل څادرونه د ښي بغل د لاندې څخه ويستلو سره په خپله ګسه اوږه اچولي وه، ابوداؤد

**حل اللغات:** ① أَرْدِيَتَهُمْ: د رداء جمع ده، څادرونه. ② قَذَفُوهَا: أَيْ: طَرَحُوهَا: راوائې چول دا څادرونه

**تسهیلات:**

**قوله:** وَجَعَلُوا أَرْدِيَتَهُمْ تَحْتَ آبَاطِهِمْ

**د اضطباع مسنونیت:** اضطباع په پوره طواف کښې سنت ده، او رمل یعنی تیز او پهلوانئ سره تلل د طواف په ړومبودرې چکرونو کښې کیږی، دومره خبره په ذهن کښې کینوئ چه اضطباع صرف د طواف په وخت مستحب ده، د طواف نه علاوه په نورو وختونو کښې مستحب نه دی، او بعضې خلق چه داحرام د ابتداء نه اضطباع اختیاروی ددې هم څه اصل نه ملاویږی بلکه د مونځ په وخت کښې دا مکروه دی.

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۵۸۶] حجراسود او د رکن یماني د استلام اهمیت**

٢٥٨٦–[٢٦] (٢) ١ عَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: «مَا تَرَكْنَا اسْتِلَامَ هَذَيْنِ الرُّكْنَيْنِ: الْيَمَانِي وَالْحَجَرِ فِي شِدَّةٍ وَلَا رَخَاءٍ مُنْذُ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَسْتَلِمُهُمَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

(١) ابوداؤد: كتاب الحج، باب الاضطباع في الطواف ٦/ ٩، حديث: ١٨٨٦.
(٢) اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب الرمل في الحج والعمرة (رقم-١٦٠٦) ومسلم في كتاب الحج /باب استحباب استلام الركنين اليمانيين في الطواف دون الركنين الآخرين (رقم-٢٤٥ - (١٢٦٨)

**ترجمه:** ① ابن عمر رضي الله عنهما وايي كله چې ما نبی كريم ﷺ د دواړو ركنونو په آستلام ليدلی دی، مونږ د دې دواړو ركنونو يعنی د ركن يماني او حجر اسود استلام نه په هجوم كې كله پرېښی دی او نه بغير هجوم كې (يعني په هيڅ حالت كې مونږ دا سعادت نه دی پرېښی، بخاري، مسلم،

**حل اللغات:** ① زِحْمَةٍ: أَيْ: زِحَامٍ: ګڼره، رش، ② رَخَاءٍ: أَيْ: خَلَاءٍ: چه ګڼره يعنی خلق د پرېنه وی.

۲۵۸۷–()① وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا: قَالَ نَافِعٌ: «رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ يَسْتَلِمُ الْحَجَرَ بِيَدِهِ، ثُمَّ قَبَّلَ يَدَهُ» ② وَقَالَ: مَا تَرَكْتُهُ مُنْذُ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَفْعَلُهُ».

**ترجمه:** ① او د بخاري او د مسلم په يوه روايت كې دا دي چې نافع رحمه الله اوويل چې ما ابن عمر رضي الله عنهما وليدلی چې هغه به حجر اسود په لاس سره مسح كوله، او بيا به يې هغه لاس ښكل كړي، ② او فرمايل به يې چې د كله څخه ما نبی كريم ﷺ په داسې كولو ليدلی دی، ما هيڅ كله دا نه دي ترك كړي.

**[۲۵۸۸] د عذر په سبب سپرېدو سره طواف كول جائز دی**

۲۵۸۸–[۲۷] ()① «وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا-: ② شَكَوْتُ إِلَى رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنِّي أَشْتَكِي. ③ فَقَالَ: "طُوفِي مِنْ وَرَاءِ النَّاسِ، وَأَنْتِ رَاكِبَةٌ" ④ "فَطُفْتُ وَرَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يُصَلِّي إِلَى جَنْبِ الْبَيْتِ يَقْرَأُ بِالطُّورِ ﴿وَكِتَابٍ مَسْطُورٍ﴾ [الطور: ۲]». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① بي بي ام سلمه رضي الله عنها وايي ② چې ما د حج په ورځو كې نبی كريم ﷺ ته شكايت وكه، چې زه ناجوړه يم، چې د هغه په وجه پياده پښي طواف نشم كولی، ③ نبی كريم ﷺ وفرمايل چې ته د خلقو څخه يو طرف ته شه، چې په سوارلی طواف وكړي، ④ نو ما دغه شان طواف وكه، او ما په دي دوران كې وليدل چې نبی كريم ﷺ د بيت الله شريفي په خوا كې (يعني د خانه كعبي د ديوار سره متصل) مونځ كوی، او په مانځه كې د والطور وكتاب مسطور قرائت كولی، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① شَكَوْتُ: شكايت مې اوكړو. ② فَطُفْتُ: نو طواف مې اوكړو.

**تسهيلات:** **قوله:** وَأَنْتِ رَاكِبَةٌ

**د سورة طور په لوستلو كښې دوه احتمالات:**

① سورة طور به نبی عليه السلام په يو ركعت كښې لوستلې وی او په دويم ركعت كښې به ئې بل يو سورة وئيلې وی لكه چه د نبی كريم ﷺ عادت مبارك وو،

② سورة طور به ئې په دواړو ركعتونو كښې وئيلې وی.

() اخرجه مسلم في صحيح رقم الحديث ۲۴۶/ ۱۲۶۸ وابوداود في السنن رقم الحديث ۱۸۷۶

() اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب المريض يطوف راكبا (رقم-۱۶۳۳) كتاب الحج /باب جواز الطواف على بعير وغيره واستلام الحجر بمحجن ونحوه للراكب ۲۵۸ - (۱۲۷۶)

**په سورلۍ باندې د طواف کولو حکم:** ددې حديث نه معلومه شوه چه دځه عذر په وجه د بيت الله طواف دسوريدلو په حالت کښې کول جائزدی بغير دعذر نه جائز نه دی، ځکه چه پياده تلو سره طواف واجب دی

**[۲۵۸۹] حجر اسود ته دَ حضرت عمر رضي الله عنه خطاب**

۲۵۸۹ - [۲۸] ()[۱] وَعَنْ عَابِسِ بْنِ رَبِيعَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: " «رَأَيْتُ عُمَرَ يُقَبِّلُ الْحَجَرَ[۲] وَيَقُولُ: إِنِّي لَأَعْلَمُ أَنَّكَ حَجَرٌ مَا تَنْفَعُ وَلَا تَضُرُّ،[۳] وَلَوْلَا أَنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُقَبِّلُكَ مَا قَبَّلْتُكَ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [۱] عابس ابن ربيعه (تابعي) رحمه الله وايي چې ما وليدل حضرت عمر فاروق رضي الله عنه حجر اسود مُچي (ښکل) کړه،[۲] او د هغه مخکې يې دا فرمايل، په دې کې هيڅ شک نشته . زه پوهېږم چې ته يوکانی يې، نه خو نفع ورکولی شي، نه نقصان،[۳] که نبی کريم صلى الله عليه وسلم ستا په ښکلولو ما نه وي ليدلی نو مابه هيڅ کله نه وي ښکل کړی، بخاري، مسلم.

**دراوي مختصر تعارف:**

**حضرت عابس بن ربيعه رضي الله عنه:** دا تابعی دې اوحافظ ابن حجر رحمه الله دې په کبار تابعينو کښې ګڼلې دې (کذا فی تقريب) دې دَ قبيله نخع وو هم په دې وجه باندې هغه ته نخعی وائی کوفی دې او علماؤ دې په ثقاتوکښې شميرکړې دې.(کذافی تقريب)

**تسهيلات:**

**قوله:** مَاتنفعولاتضر:

**د حجر اسود د ښکلولو مسنونيت:** يعنی ته يوکاڼې نفع نقصان ستا په لاس کښې نشته دې اودَ رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ تعليماتو په رڼا کښې ستاښکلول دَ ثواب کاردې. په حضرت عمر رضي الله عنه هندوانو باندې واضحه کړه چه مسلمانان داکوم کاڼې ښکلوی دادَ دې کاڼې عبادت نه دې بلکه دَ حضورپاك دَ سنت اواطاعت دَ وجې نه مسلمانان دا ښکلوی. نن صبا اکثر کافران اومشرکان هندوان وغيره داګڼرې چه مسلمانان هم دکاڼو عبادت کوی حالانکه دې کافرانوته معلومه نه ده چه يومسلمان هم دَ بيت الله دَپاره سجده نه کوی بيت الله خو يو رخ اوطرف دې اصل سجده اوعبادت خو خالص دَ الله تعالی دَپاره دې. دغه شان حجراسود

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب الحج /باب ما ذکر فی الحجر الأسود (رقم-۱۵۹۷)ومسلم فی کتاب الحج /باب استحباب تقبيل الحجر الأسود فی الطواف (رقم-۲۵۱ - (۱۲۷۰) وابوداود فی کتاب المناسک باب فی وقت الإحرام (رقم-۱۷۷۳) والترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب ما جاء فی تقبيل الحجر (رقم-۸۶۰) والنسائی فی کتاب مناسک الحج /باب تقبيل الحجر (رقم-۲۹۳۷) وابن ماجة فی کتاب المناسک /باب استلام الحجر (رقم-۲۹۴۳)

ځه واجب الاطاعت کاڼړي نه دي نه يومسلمان دَدې عبادت کوی دَدې ښکلول دَ رسول الله ﷺ په سنت باندې عمل کولودپاره دی په کوم چه ثواب ملاویږی. په يوروايت کښې دی چه حضورپاك فرمائيلي اې حجراسود ته کاڼړې دَ نفع نقصان مالك نه ئی که چرې ماته دَ خپل رب دَ طرف نه حکم نه وې نوما به ته نه ښکلولې. (ابن ابی شيبه)

دَ مستدرك حاكم روايت دې چه دَ حضرت عمر ﷺ دَدې کلام په جواب کښې حضرت على ﷺ اوفرمائيل او دا کاڼړې نفع اونقصان رسولې شی دَدې مطلب دادې چه دَ دې په ښکلولو سره ثواب ملاويږی کومه چه نفع ده اودَدې په توهين سره ايمان ځی کوم چه نقصان دې. بعض رواياتوکښې دی حجر اسود په زمکه کښې دَ الله تعالى ښې لاس دې

**[۲۵۹۰]په رکن يماني دعا اوهلته د متعين فرشتو آمين**

---

۲۵۹۰–[۲۹] ()[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ:[۲] " «وُكِّلَ بِهِ سَبْعُونَ مَلَكًا - يَعْنِي الرُّكْنَ الْيَمَانِيَ[۳] - فَمَنْ قَالَ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ، رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ - قَالُوا: آمِينَ» " رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

---

**ترجمه:**[۱] ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] په رکن يماني اويا فرشتي متعيني دي،[۳] کوم سړی چې دا دعا وايي نو فرښتي وربانديې آمين وايي، دعا دا ده: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ، اى الله! ﷻ زه ستا څخه د ګناهونو معافي او په دنيا او آخرت کې عافيت غواړم، اې زمونږ ربه؟ مونږ ته په دنيا کې هم خير راکړي او په آخرت کې هم خير راکړي، او مونږ د اور د عذاب څخه وساتي، ابن ماجه.

**حل اللغات:** ① وُكِّلَ: مقرر او متعين دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** يَعْنِي الرُّكْنَ الْيَمَانِيَ

**د رکن يمانی په وخت کښې دعا کول:** هرکله چه د رکن يمانی دا فضيلت دې نو د حجر اسود فضيلت خو به دې نه هم زيات وی، ليکن دا هم کيدې شی چه دا فضيلت او فرق صرف رکن يمانی سره خاص وی اود حجر اسود دپاره ددې نه علاوه نور فضيلتونه وی.

**په حديثونو کښې تعارض:** په دې حديث کښې دی چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم به د رکن يمانی سره دعا کوله او په حديث نمبر ۲۵۸۱ کښې تيرشو چې نبی کريم صلی الله عليه به د رکن يمانی او حجر اسود پ. مينځ کښې دعا کوله په ظاهره تعارض دې.

**دتعارض حل:** کله نبی کريم ﷺ د طواف په دوران کښې رکن يمانی ته اورسيدو او په تلو

---

() اخرجه ابن ماجة فی کتاب الحدود/باب تلقين السارق (رقم-۲۵۹۷)

کښې نې دا دعا شروع کړه، نو ښکاره خبره ده چه دا دعا ونیل به د رکن یمانی او حجر اسود په مینځ کښې وی، څکه چه طواف کولو کښې د دعا دپاره اودریدل خو صحیح نه دی، نوکوم خلق چه د طواف په دوران کښې اودریږی او دعا کوی هغوی غلطی کوی

## [٢٥٩١] په طواف کښې دَ تسبیحاتو دیر لوئی ثواب دې

٢٥٩١-[٣٠] ()[١] وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "[٢] «مَنْ طَافَ بِالْبَيْتِ سَبْعًا، وَلَا يَتَكَلَّمُ إِلَّا بِـ" سُبْحَانَ اللّٰهِ، وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ، وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ، وَاللّٰهُ أَكْبَرُ، وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ» [٣] مُحِيَتْ عَنْهُ عَشْرُ سَيِّئَاتٍ، وَكُتِبَ لَهُ عَشْرُ حَسَنَاتٍ، وَرُفِعَ لَهُ عَشْرُ دَرَجَاتٍ، [٤] وَمَنْ طَافَ فَتَكَلَّمَ، وَهُوَ فِي تِلْكَ الْحَالِ - خَاضَ فِي الرَّحْمَةِ بِرِجْلَيْهِ كَخَائِضِ الْمَاءِ بِرِجْلَيْهِ» ". (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ).

**ترجمه:** [١] ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] کوم سړی چې د خانه کعبې طواف اووه څله وکړي، او د طواف په دوران کې سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ، څخه علاوه بل څه کلام ونه کړي، [٣] نو د هغه لس ګناهونه به محوه کېږي، د هغه د پاره لس نیکي لیکل کېږي، او د هغه لس درجې اوچتیږي، [٤] او کوم سړی چې طواف وکړي، اود طواف په حالت کې کلام وکړي، نوهغه د خپلو دواړو پښو سره د رحمت په دریاب کې داسې داخلیږي، څرنګه چې په خپلو دواړو پښو سره په اوبو کې داخلیږي۔ ابن ماجه.

**حل اللغات:** ① مُحِيَتْ: أَيْ: أُزِيلَتْ: ختمیږی، لرې کیږی. ② خَاضَ: أَيْ: دَخَلَ: داخلیږی.

**تسهیلات:**

**قوله:** کخائض الماء:

**د من طاف فتکلم په تفسیر کښې دری اقوال:** ① د "ومن طاف فتکلم" نه تر آخره پوري چه کوم کلام نقل کړې شوې دې داهم هغه ړومبې کلام په دویم ځل راوړلې شوې دې اودَتکلم نه هم دغه تسبیحات مراددی او په دې تکرار کښې دا فائده ده چه دې سره یو معقول څیز محسوس اومشاهد جوړولوسره پیش کړې شو.

② یعنی کوم سړې چه په طواف کښې څه دنیاوی خبرې اونه کړی بلکه صرف تسبیحات اولولی اوطواف اوکړی نوهغه ته به لوئې درجې ملاویږی خوچه کوم سړې په طواف کښې تسبیحات هم اولولی او څه نور نیك کلام هم اوکړی نوهغه لکه چه دَ رحمت په تالاب کښې خپه ورداخل کړه. دَدې توجیه نه معلومیږی چه دا دویمه درجه دَ اول درجې نه زیاته غوره ده. ملاعلی قاری رحمه الله وغیره هم دغه طرف ته تلی دی.

[١]) اخرجه ابن ما جه في كتاب الحدود/باب تلقين السارق (رقم-٢٥٩٧)

④ دَعلامه ابن حجر رحمه الله رائې داده چه ومن طاف فتکلم نه مباح کلام مراد دې اودا درجه درومبې درجې په نسبت کمه ده. په رومبی کلام کښې خودَ لویو لویو درجاتو ذکر اوکړې شو اوګناه معاف کړې شوه لیکن په دې دویمه مرحله کښې صرف دومره اوخودلې شو چه د دغه سړی خپې دَ رحمت په سمندر کښې دی ځکه چه دې په طواف کښې دې لیکن خبرې کوی په دې وجه دَ ده درجه پریوتله دا توجیه زړه ته بنه لګی سره دَدې چه ملاعلی قاری رحمه الله په دې سره خوشحال نه دې.

ماچه دَملاعلی قاری رحمه الله په مرقات کښې اوکتل نو ماته اندازه اوشوه چه عمومًا ملاعلی قاری رحمه الله دَ علامه ابن حجر رحمه الله یوې توجیه صحیح منلو ته تیارنه دې. هغه په خپله شرح کښې دَ تولو نه زیات سختوالې هم دَ ابن حجر رحمه الله په کلام باندې کړې دې.

# [۴]بَابُ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ]

## دَوقوف عرفات بیان

**خلاصة الباب:**

**فیه اثنتا عشر حدیثاً مشتملة علی ست مسائل:**

① الذكر وقت الذهاب إلى عرفات: ۱۔
② كون عرفات كلها موقفاً: ۲، ۴، ۵۔
③ فضل يوم عرفة : ۳، ۸، ۹، ۱۱۔
④ خطبة عرفة: ۶۔
⑤ الذكر والدعاء في عرفات: ۷۔
⑥ الأمر بالوقوف بعرفات : ۱۰۔

**د عرفات تعارف:** دَ مکې مکرمې نه تقریبًا ۱۵میل یعنی ۲۵کلومیټر باندې دَ یوډیر لوئی میدان نوم عرفات دې دَدې په مینځ کښې یوه اوچته غونډئی ده کوم ته چه جبل رحمت وائی. لفظ عرفه دَ ځائی او ورځې دواړو دَپاره وئیلې شی لیکن لفظ عرفات صرف دَ ځائی دَپاره استعمالیږی.

واضح دې وی چه وقوف عرفه د حج یو رکن عظیم دې، او وقوف په عرفې باندې هم په دې مکان کښ اودریدل مراد دی اګر چه یو ساعت وی او د خوب په حالت ولې نه وی.

**د عرفه وجوه تسمیه:** ①عرفه د مخصوص مکان نوم دې هغه مکان ته عرفه په دې وجه وئیلې شی چه د ادم علیه السلام او هوا رضي الله عنها د راکوزیدو نه پس په دې مقام باندې ملاقات او تعارف شوې وو.

③یا په دې مکان کښې سیدنا جبرائیل علیه السلام او سیدنا ابراهیم علیه السلام ته الله پاك د مناسك حج تعلیم ورکولو سره الله پاك فرمائیلې وو (عرفت) ابراهیم علیه السلام فرمائیلې وو (عرفتُ)

④یا په دې وجه چه هغه مکان ډیر معظم او مشهور دې ګویا چه هغه د تعریف نه مخکښې معروف دې په دې وجه ورته عرفه وئیلې شي.

په مذکوره صورتونو کښې عرفه د معرفه نه ماخوذ دې،

⑤ بعض فرمائي چه دا عرفه بفتح العین وسکون الراء نه ماخوذ دې په معنی د خوشبوئي والا، چونکه په منی کښې د ذبائح بوئي بد لګي په دې وجه د هغې په مقابله کښې دې مکان ته عرفه اوئیلې شوه،

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[٢٥٩٢] دَعرفه په ورځ تلبیه وئیل زیات افضل دی**

٢٥٩٢–[١] (١) ①عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ الثَّقَفِيِّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- «أَنَّهُ سَأَلَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، ②وَهُمَا غَادِيَانِ مِنْ مِنًى إِلَى عَرَفَةَ: كَيْفَ كُنْتُمْ تَصْنَعُونَ فِي هَذَا الْيَوْمِ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ③- فَقَالَ: كَانَ يُهِلُّ مِنَّا الْمُهِلُّ فَلَا يُنْكَرُ عَلَيْهِ، وَيُكَبِّرُ الْمُكَبِّرُ مِنَّا فَلَا يُنْكَرُ عَلَيْهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① د محمد ابن ابي بکر ثقفي (تابعي) رحمه الله په باره کې منقول دی چې هغه د انس رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه، ② کله چې هغه دواړه سحرد وخته د منی څخه عرفات ته تلل، چې تاسو خلقو به نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره د عرفې په ورځ څه کول؟ ③ نو هغه اوویل په مونږ کې به لبيك والالبيك وايې، نو هغه به چا د دی څخه نه منع کولی، او تکبیر ویونکي به تکبیر ویلي، او هغه به د دې څخه نه شو منع کولی، بخاري، مسلم.

**حل اللغات**: ① غَادِيَانِ: د غُدُوٌ نه د اسم فاعل تثنیه صیغه ده، أي: ذَاهِبَانِ أَوَّلَ النَّهَارِ: د سحر په وخت کښې تللو ته وائی. ② يُهِلُّ: أي يَرْفَعُ صَوْتَهُ: په اوچت آواز سره تلبیه وئیل ③ الْمُهِلُّ: د اسم فاعل صیغه ده، أي: الْمُلَبِّي: په اوچت آواز سره تلبیه کونکې

**تسهیلات:**

**قوله: كَانَ يُهِلُّ مِنَّا الْمُهِلُّ فَلَا يُنْكَرُ عَلَيْهِ:**

**دحاجیانو دپاره په میدان عرفات کښې دتلبیه کثرت**: علامه طیبی فرمائی چه د عرفې په ورځ حاجیانو له تکبیر وئیل جائز خو دی لکه چه نور اذکار ورله جائز دی خو سنت نه دی بلکه په دغه ورځ سنت دادی چه تلبیه اووائی چه ترڅو د جمرهٔ عقبه د رمی نه فارغ شوی نه وی.

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب التلبية والتكبير إذا غدا من منى إلى عرفة (رقم-١٦٥٩) ومسلم فی کتاب الحج/باب التلبية والتكبير فى الذهاب من منى إلى عرفات فى يوم عرفة (رقم-٢٧٤) - (كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فى المستحاضة أنها تجمع بين الصلاتين بغسل واحد(رقم-١٢٨) واحمد فى المسند:٣/١١٠

**د غیر حاجیانو دپاره د تکبیرات تشریق کثرت**: د حاجیانو نه علاوه نورو خلقو لـه پـه ټولـو ښارونو کښې د عرفې په سحر (۹ذوالحجه) نه د ایام تشریق د اخر یعنې ۱۳ ذي الحجـه د مازیګر پورې د هر فرض مونځ نه پس که حج کښې وی او که جح نه علاوه وی خو هغوی لـه تکبیر ونیل واجب دی سړو لـه یو ځل پـه اوچت آواز سره او ښځو لـه پـه رو آواز سره لقوله تعالی: ((وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللهِ فِيٓ أَيَّامٍ مَّعْلُومٰتٍ)) (مرقات ج۵ ص ۳۳۰)

**[۲۵۹۳] منی کښې قربانی او په عرفات اومزدلفه کښې دَ وقوف ځائی**

۲۵۹۳-[۲] ()[۱] وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] «نَحَرْتُ هَاهُنَا وَمِنًى كُلُّهَا مَنْحَرٌ، فَانْحَرُوا فِي رِحَالِكُمْ، [۳] وَوَقَفْتُ هَاهُنَا وَعَرَفَةُ كُلُّهَا مَوْقِفٌ، وَوَقَفْتُ هَاهُنَا وَجَمْعٌ كُلُّهَا مَوْقِفٌ» . (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه**: [۱] د جابر ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] ما خو په دي ځای کې قرباني کړیده، هسي په منٰی کې هر ځای قربان ګاه (د قرباني ځای) دی، نو تاسو په خپلو خیمو کې قرباني وکړي، [۳] او ما خو په دي ځای کې وقوف کړی دی هسي په عرفات کې هر ځای موقف (د پاتې کیدو ځای) دی او ما خو پـه دي ځای کې وقوف کړی دی، هسي د مزدلفي هر ځای موقف دی، مسلم.

**حل اللغات**: ① نَحَرْتُ: دواحد متکلم صیغه ده، ما قرباني کړې ده، ② مَنْحَرٌ: أَيْ: مَحَلُّ نَحْرٍ: قربان ګاه یعنی د قرباني کولو ځائې، ③ رِحَالِكُمْ: أَيْ: مَنَازِلِكُمْ: د پاتې کیدو ځائې (یعنی په منٰی کښې چرته چه خپله خیمه لګولې وی یا قیام ګاه ئې جوړکړې وی). ④ مَوْقِفٌ: د وقوف یعنی ایساریدلو ځائې.

**تسهیلات:**

**قوله: وَوَقَفْتُ هَاهُنَا وَعَرَفَةُ كُلُّهَا مَوْقِفٌ:**

**دټول میدان عرفات موقف کیدل**: چونکه حضورپاك عرفات اومزدلفه کښې په یویوځائی کښې وقوف فرمائیلې وو نوګمان کیدې شو چه وقوف هم په دغه ځائی کښې کیدل پکاردی چرته چه حضورپاك کړې دې. نو په دې سره دامت دپاره یولوئی حرج پیدا کیدې شو. په دې وجه حضورپاك اوفرمائیل چه ما په کوم ځائی کښې هم وقوف کړې بس اومې کړو لیکن عرفات پوره په پوره دَ وقوف ځائی دې اودَ بطن عرنه دَ وقوف نه حضورپاك منع فرمائیلې ده. دغه شان مزدلفه ټول په ټول دَ وقوف ځائی دې او په وادی محسرکښې وقوف کول منع دی. دغه شان منی ټوله په ټول قربان ګاه ده سره دَدې چه حضورپاك په یوخاص ځائی کښې قربانی فرمائیلې وه. دَ مزدلفه یونوم "جمع" هم دې دَ کومې تذکره چه په احادیثوکښې شوې ده.

---

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الحج /باب ما جاء أن عرفة کلها موقف (رقم-۱۴۹ - (۱۲۱۸)

## [٢٥٩٤]دَعرفې دَورځې فضيلت

٢٥٩٤-[٣] (١)[١] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] «مَا مِنْ يَوْمٍ أَكْثَرَ مِنْ أَنْ يُعْتِقَ اللّٰهُ فِيهِ عَبْدًا مِنَ النَّارِ مِنْ يَوْمِ عَرَفَةَ، [٣] وَإِنَّهُ لَيَدْنُو، ثُمَّ يُبَاهِي بِهِمُ الْمَلَائِكَةَ، فَيَقُولُ: مَا أَرَادَ هٰؤُلَاءِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] داسې هيڅ ورځ نشته چې په هغه کې الله جل جلاله بنده د عرفې د ورځې څخه زيات د اُور څخه آزادوي (يعني د عرفې په ورځ په عرفات کې الله جل جلاله د ټولو ورځو څخه زيات بنده ګانو ته د اُور څخه د نجات او د خلاصی لار زيري ورکوي) [٣] او بلاشبه (په دې ورځ) الله جل جلاله (د خپل رحمت او مغفرت سره) بنده ګانو ته نژدې کيږي، بيا د فرشتو په مخکې په حج کونکو فخر کوي، او فرمايي چې دا خلق څه غواړي؟ (دا چې څه هم غواړي) زه به يې دوی ته ورکړم، مسلم.

**حل اللغات:** ① لَيَدْنُو: أَيْ: يَقْرُبُ: نژدې کيږي (الله تعالی په خپل فضل اورحمت سره). ② يُبَاهِي: وَالْمُبَاهَاةُ الْمُفَاخَرَةُ: فخر کوی (الله تعالی په حاجيانو باندې).

**تسهيلات:**

**قوله: فَيَقُولُ: مَا أَرَادَ هٰؤُلَاءِ:**

**دمذکوره جملې مفهوم:** يعنی ددې خلقو څه اراده ده يعنی خپل اهل او عيال ئې پريخودې دې، وطن ئې پريخودې دې او دلته راغلی دی او ځان سترې کوی. په دې سره که دوی دا اراده کوی چې د دوی ګناهونه معاف شی، رب رضا شی، قربِ خداوندی او د الله رضا حاصل شی نو دا څيزونه به دوی ته ملاؤ شی.

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## [٢٥٩٥]دَامام دَموقف نه لرې موقف کښې بدينت نشته

٢٥٩٥-[٤] (٢)[١] عَنْ عَمْرِو بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ صَفْوَانَ، عَنْ خَالٍ لَهُ يُقَالُ لَهُ يَزِيدُ بْنُ شَيْبَانَ، قَالَ: [٢] «كُنَّا فِي مَوْقِفٍ لَنَا بِعَرَفَةَ يُبَاعِدُهُ عَمْرٌو مِنْ مَوْقِفِ الْإِمَامِ جِدًّا، [٣] فَأَتَانَا ابْنُ مِرْبَعٍ الْأَنْصَارِيُّ، فَقَالَ: إِنِّي رَسُولُ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِلَيْكُمْ: [۴] يَقُولُ لَكُمْ: "قِفُوا عَلَى مَشَاعِرِكُمْ، [٥] فَإِنَّكُمْ عَلَى إِرْثٍ مِنْ إِرْثِ أَبِيكُمْ إِبْرَاهِيمَ -عَلَيْهِ السَّلَامُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

---

[١] اخرجه مسلم فی کتاب الحج /باب فی فضل الحج والعمرة، ويوم عرفة (رقم-٤٣٦ - (١٣٤٨)، والنسائی فی السنن رقم الحديث ٣٠٠٣ وابن ماجة فی السنن رقم الحديث ٣٠١٤

[٢] اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک . باب موضع الوقوف بعرفة (رقم-١٩١٩) والترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب ما جاء فی الوقوف بعرفات والدعاء بها(رقم-٨٨٣) والنسائی فی کتاب مناسک الحج /باب رفع اليدين فی الدعاء بعرفة (رقم-٣٠١٤)

**ترجمه** [۱] عمرو بن عبد الله بن صفوان (تابعي) رحمه الله د خپل ماما څخه چې د هغه نوم يزيد ابن شيبان وو، نقل کوي چې هغه وفرمايل [۲] مونږ په ميدان عرفات کې په داسې ځای کې پاتې شوي وو، کوم چې زمونږ د پاره متعين وو، او عمرو هغه ځای د امام د موقف (د ودريدو د ځای) څخه ډير لرې بيانولی، [۳] نو ابن مربع انصاري مونږ ته راغلو او هغه اوويل چې زه د نبی کريم ﷺ قاصد جوړيدو سره تاسو ته راغلو يم، [۴] او د نبی کريم ﷺ ستاسو د پاره دا پيغام دی چې تاسو خلق په خپل مشاعر (يعني د خپل عبادت په ځای) پاتې اوسئ، [۵] چې تاسو د خپل پلار حضرت ابراهيم عليه السلام د ميراث په پيروي قائم اوسئ، ترمذي، ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه.

**حل اللغات**: ① يُبَاعِدُهُ: أَيْ: يَصِفُهُ بِالْبُعْدِ: هغه بيان کوو چه دا ځائې ډير لرې وو. ② قِفُوا: أَيْ: اثْبُتُوا: ولاړ او قائم اوسئ، ③ مَشَاعِرِكُمْ: جمع د مَشْعَر ده، وَهُوَ الْعَلَمُ: علامت او نښې ته وائی خو دلته ترې مراد دحج او عبادت ځائې دي. أَيْ: مَوْضِعُ النُّسُكِ وَالْعِبَادَةِ، ④ إِرْثٍ: أَيْ: مُتَابَعَةٍ: ارث ميراث ته وائی خو دلته ترې مراد تابعداری کول دی.

**تسهيلات**:

**قوله**: قِفُوا عَلَى مَشَاعِرِكُمْ..الخ:

**د حديث پس منظر او مفهوم**: دَعربو دستور وو چه هرې يوې قبيلې به په عرفات کښې دَخپل خان او خپل خاندان والوسره يوځائی کيدو سره دَ وقوف دَ ځائی تعين کولو. يزيد بن شيبان رضي الله عنه فرمائی زمونږ دَ خاندان يوسړی چه نوم ئی عمرو وو داځائی ئی دَ حضورپاك دَ موقف نه ډير لرې محسوس کولو او حضورپاك ته نيزدې کيدل ئی غوښتل. حضورپاك ته دَدې علم اوشو نو رسول الله ﷺ ابن مربع نومې صحابی رضي الله عنه اوليګلو اودَ هغه خاندان خلقو ته ئی دا پيغام ورکړو چه تاسو به چرته دَ نن نه مخکښې قيام کولو اوس هم په هغه ځائی کښې وقوف عرفات اوکړئی. عرفات ټول موقف دې تاسو خو ټول دَخپل نيکه ابراهيم عليه السلام په ميراث باندې يئی هم هغه راتينګ کړئی او ماله نيزدې مه راځئی.

**[۲۵۹۶] حدود حرم کښې هرځائی قربانی کيدې شی**

> ۲۵۹۶–[۵] ()[۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«كُلُّ عَرَفَةَ مَوْقِفٌ، وَكُلُّ مِنًى مَنْحَرٌ، وَكُلُّ الْمُزْدَلِفَةِ مَوْقِفٌ، [۳] وَكُلُّ فِجَاجِ مَكَّةَ طَرِيقٌ وَمَنْحَرٌ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**: [۱] جابر رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] پوره ميدان عرفات د ودريدو ځای دی، ټوله منی قربان ګاه ده (د قرباني کولو ځای دی) ټوله مزدلفه د پاتې کيدو ځای دی [۳] او د مکې هره لاره (او د هغې هره کوڅه) او لاره د قربانی کولو ځای دی، ابوداؤد، دارمي.

[1]) اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک، باب الصلاة بجمع (رقم-۱۹۳۷) ابن ماجة فی کتاب المناسک/باب الذبح (رقم-۳۰۴۸) واحمد فی المسند: ۳/۳۲۶

**حل اللغات:** ① مَنْحَرٌ: أي: مَحَلُّ نَحْرٍ: قربان ګاه یعنی د قربانۍ کولو ځائې، ② فِجَاجٌ: د فَجٍّ جمع ده، معنی الطَّرِيقُ الْوَاسِعُ: کهلاؤ لارې ته وائی.

**تسهیلات:**

**قوله: وَكُلُّ فِجَاجِ مَكَّةَ طَرِيقٌ وَمَنْحَرٌ:**

**په پوره حرم کښې د قربانۍ کولو جواز:** د حدیث د آخری کلماتو مطلب دادې چه په کومه لاره هم مکې ته څئ نو جائز دی اوپه مکه کښې چه کوم ځائې غواړئ د قربانۍ څاروی ذبح کړئ نوجائز دی، ځکه چه دقربانۍ څاروي په حرم کښې ذبح کول پکاردی اومکه په حرم کښې واقع ده، دا بله خبره ده چه د قربانۍ څاروي په منی کښې د ذبح کولو دستور جوړشوې دې، ځکه چه د قربانۍ په ورځ چه دا د ذی الحجې لسمه ورځ ده، حاجیان په منی کښې وی، په دې وجه خپله قربانی هم هلته کوی.

**د قربانۍ دپاره افضل ځائې:** نبی کریم ﷺ دا خبره د جواز بیانولو په خاطر ارشاد فرمائیلې ده، ګنی نوهغه ځائې کښې افضل ده، چرته چه نبی علیه السلام وقوف کړې وو، چرته چه نبی علیه السلام د قربانۍ څاروي ذبح کړې دې، اوهغه لاره افضل ده په کومه چه نبی علیه السلام مکې ته راغلې دې.

**[۲۵۹۷] دَعرفه په ورځ حضورپاک صلی الله علیه وسلم څنګه خطبه ورکړه او دَ لاؤډسپیکر ثبوت**

۲۵۹۷ - [٤] (¹) ① وَعَنْ خَالِدِ بْنِ هَوْذَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: ② رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَخْطُبُ النَّاسَ يَوْمَ عَرَفَةَ عَلَى بَعِيرٍ، قَائِمًا فِي الرِّكَابَيْنِ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① خالد بن هوذه رضی الله عنه وايي ② چې ما ولیدل چې نبی کریم ﷺ د عرفې په ورځ په میدان عرفات کې، په اوښ دپاسه په دواړو رکابو ودریدلی او د خلقو په مخکې یې خطبه ارشاد وفرمایله. ابوداؤد.

**حل اللغات:** ① الرِّكَابَيْنِ: د رکاب تثنیه ده، پاندان، سورلۍ ته د ورختلو اود کیناستلو په وخت د خپو ایخودو ځائې ته رکاب وائی.

**تسهیلات:**

**قوله: عَلَى بَعِيرٍ، قَائِمًا:**

**د آواز اوچتولو دپاره د مختلفو طریقو استعمال:** یعنی حضورپاک په ولاړ اوښ باندې په ولاړه خطبه ارشاد اوفرمائیله دې دپاره چه دَ لرې لرې خلقوته آواز اورسیدې شی. چونکه مجمع زیاته وه اوهغه وخت دَ لاؤډسپیکر انتظام نه وو په دې وجه حضورپاک خپل قدرتی آواز اوچتولو دپاره دَهغه وخت ټولې طریقې اختیارکړې. اول حضورپاک اوښ اودرولو

¹) اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک، باب الخطبة علی المنبر بعرفة (رقم-۱۹۱۷) واحمد فی المسند:۳۰/۵

بياني په هغې باندې كجاوه كېخوده بيا په هغې باندې پخپله اودرېدو داد آواز اوچتولو طريقې وې بعض رواياتو كښې دي چه په كوم ځائي به د حضورپاك آواز ختميدو نود هغه ځائي نه به حضرت على ﷺ د حضورپاك فرمان وراندې كولو.

**د آله مكبر الصوت د جواز حكم**: دا په هغه زمانه كښې د مكبرالصوت د آله د جوازطرف ته اشاره وه چه انسان په كومه طريقه هم خپل آواز وراندې كولې شي نوهغه وراندې كول پكاردى. نن صبا چونكه اليكټرانك نظام قائم شوې دې لهذا د مكبرالصوت په ذريعه آواز تر لرې لرې پورې رسولې شي داجائزدى. البته چه د ضرورت لاندې وى د ضرورت نه زيات نه وى دې د پاره چه د الله تعالى مخلوق ته تكليف نه وى.

د حضورپاك په زمانه كښې په مسجدنبوى كښې د مكبرينو مقرر كول هم د لاؤډسپيكر په جائزكيدوباندې دليل دې ځكه چه د مكبرينو په ذريعه د امام آواز د خلقو د آخره پورې رسولوانتظام پخپله حضورپاك كړې دې نود لاؤډسپيكر په ذريعه هم دغه ځه كيږى چه آواز اوچتيږى او وراندې رسيږى.

### [٢٥٩٨] د يوم عرفه دعا

٢٥٩٨-[٧] ()١ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ "«خَيْرُ الدُّعَاءِ دُعَاءُ يَوْمِ عَرَفَةَ، ٣ وَخَيْرُ مَا قُلْتُ أَنَا وَالنَّبِيُّونَ مِنْ قَبْلِي: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ، وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**: ١ عمرو بن شعيب رحمه الله دخپل پلار (شعيب رحمه الله) څخه او هغه د خپل نيكه (عبد الله ابن عمرو رضي الله عنه) څخه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ د ټولو څخه بهتره دعا د عرفې د ورځي ده (هغه كه په ميدان عرفات كې وغوښتل شي يا په بل ځاى كې) ٣ او په هغه كلماتو كې چې ما يا زما څخه مخكې نبيانو (بطور دعا) ويلې دي، د ټولو څخه بهتر كلمات دادي لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، د الله ﷻ څخه سوا بل معبود نشته چې يكتا او تنها (يكى يو) دى د هغه څوك شريك نشته ، د هغه د پاره بادشاهت دى، او د هغه د پاره تعريف دى او هغه په هر شي قادر دى، دا روايت ترمذي نقل كړى دى

**تسهيلات**: **قوله**: خَيْرُ الدُّعَاءِ دُعَاءُ يَوْمِ عَرَفَةَ:

**د عرفې د ورځې خاص دعا**: په بهترينو دعاگانو كښې دا دعا ډير ثواب او زر قبليدو والا ده امام طيبى فرمائى چه دلته اضافت لامى دې يعنى داسې دعا چه كومه د عرفې سره مختص وى.

---

١) اخرجه الترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٥٨٥)

۲۵۹۹- ( )[1] وَرَوَى مَالِكٌ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ إِلَى قَوْلِهِ "لَا شَرِيكَ لَهُ".

**ترجمه** [1] او مالك دا روايت د طلحه بن عبيد الله څخه د الفاظ لاشريك له پورې نقل كړي دي

## [۲۶۰۰] دَ عرفه ورځ دَ شيطان دَ ذلت او خوارۍ ورځ ده

۲۶۰۰- [۸] ( )[1] وَعَنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ كَرِيزٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [2] "«مَا رُئِيَ الشَّيْطَانُ يَوْمًا هُوَ فِيهِ أَصْغَرُ، وَلَا أَدْحَرُ، وَلَا أَحْقَرُ، وَلَا أَغْيَظُ مِنْهُ فِي يَوْمِ عَرَفَةَ، [3] وَمَا ذَاكَ إِلَّا لِمَا يَرَى مِنْ تَنَزُّلِ الرَّحْمَةِ، وَتَجَاوُزِ اللَّهِ عَنِ الذُّنُوبِ الْعِظَامِ، إِلَّا مَا رُئِيَ يَوْمَ بَدْرٍ» [4]" فَقِيلَ: مَا رُئِيَ يَوْمَ بَدْرٍ؟ قَالَ [5] "فَإِنَّهُ قَدْ رَأَى جِبْرِيلَ يَزَعُ الْمَلَائِكَةَ، رَوَاهُ مَالِكٌ مُرْسَلًا، وَفِي: "شَرْحِ السُّنَّةِ" بِلَفْظِ "الْمَصَابِيحِ".

**ترجمه** [1] طلحه بن عبيد الله بن كريز وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [2] داسې هيڅ ورځ نشته چې په هغه كې شيطان دومره زيات ذليل، درمانده او دومره زيات حقير دشړي شوې شوى نه دې ليدلې شوي، څومره چې هغه د عرفې په ورځ وي (يعني هسې خو شيطان د هميشه څخه د خلقو نيكي ليدو سره د غيظه ډك او حقير وي خو د عرفې په ورځ د ټولو ورځو څخه زيات دخښمه ډك وي او ذليل او خوار هم) [3] او د دې سبب دا دى چې هغه په دې ورځ په هر خاص او عام د الله ﷻ نازليدونكې رحمت او د هغه د طرف څخه د لويو لويو ګناهونو معافيويني، هو د بدر په ورځ هم شيطان دغه شان ليدل شوى وو (يعني د غزوه بدر په ورځ چې مسلمانانو ته د عزت او دَ اسلام شوكت حاصل شو، نو په هغه ورځ هم شيطان د عرفې د ورځې په شان يا د دې څخه هم زيات ذليل او خوار او دخښمه ډك وو) [4] عرض وشو چې دبدر په ورځ څه ليدل شوي وه؟ نبي عليه السلام وفرمايل [5] چې د بدر په ورځ شيطان وليدل چې حضرت جبرائيل ﷺ د مشركينو سره د جنګ د پاره د فرشتو صفونو ته ترتيب وركوي، دا روايت امام مالك رحمه الله بطريق ارسال نقل كړى دى، او په شرح السنه كې دا روايت د مصابيح د الفاظو سره نقل شوى دى.

**حل اللغات:** ① لَا أَدْحَرُ: د دَحْرٌ نه اسم تفضيل دې، هُوَ الطَّرْدُ وَالْإِبْعَادُ: شړلو او لرې كولو او تختولو ته وائي. ② أَصْغَرُ: دا د صغارنه دي، أَيْ: أَذَلُّ، وَأَحْقَرُ: ذليله او خوار، سپك، ③ لَا أَحْقَرُ: أَيْ: أَسْوَأُ حَالًا: بدحاله. لعنتى. ④ لَا أَغْيَظُ: أَيْ: أَكْثَرُ غَيْظًا: دغصې نه ډك. ⑤ تَنَزُّلِ الرَّحْمَةِ: رحمت نازليدل. ⑥ تَجَاوُزِ اللَّهِ: معاف كول دالله تعالى (ګناهونو لره).

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت طلحه بن عبيد الله رضي الله عنه:** نوم ئې طلحه وو ابو محمد ئې كنيت وو فياض اوخير ئې لقب. دَ پلارنوم عبيدالله دَمورنوم صعبه وو. دَ حضرت طلحه نسب شې مه پيړئى كښې

[1]) اخرجه مالک فی الموطا کتاب الحج /باب جامع الحج (رقم-۲۴۶)

[2]) اخرجه مالک فی الموطا کتاب الحج /باب جامع الحج (رقم-۲۴۵)

رسول الله ﷺ سره ملاوشوې وو. دَ هجرت نبوی ﷺ نه ۲۵/۲۴ کاله وړاندې پیداشوې وو. دَ ۱۸/۱۷ کالوپه عمرکښې بصرې ته تلې وو هلته یوراهب دَ رسول الله ﷺ دَ بعثت زیرې ورکړو بیا دَ ابوبکر ﷺ په دعوت باندې په اسلام کښې داخل شو.

دَ غزوه بدر په موقعه هغه مدینه کښې موجود وو دَ دې نه علاوه په ټولو غزواتوکښې شرکت کړې وو اوپه بیعت رضوان کښې هم موجود وو. اودَ نورو خلفاؤ په زمانه کښې په جنګونوکښې شریك شوې وو. حضرت طلحه ﷺ ډیر زیات سخی وو. دَ فقیرانو او مسکینانو دَ پاره به دَ هغه دروازه هروخت کولې وه. حضرت قیس بن ابی حازم ﷺ وائی چه مادَحضرت طلحه ﷺ نه بغیردَ غوښنې ورکونکې بل څوك نه دی لیدلی. الله تعالی هغه ته مال هم ډیرزیات ورکړې وو دَ هغه روزانه ګټه تقریبًا زر دیناره وه. (۱)

**وفات:** په جنګ جمل کښې شهید کړې شو هغه وخت دَ هغه عمر ۶۲ یا ۶۳ کال وو هم په دې میدان کښې اول خښ کړې شو خو دلته به اوبه جمع کیدلې. په خوب کښې اولیدلې شو فرمائیلې زما قبر یومحفوظ ځائ ته بدل کړئی. نوحضرت عبدالله بن عباس ﷺ دَ حضرت ابوبکر ﷺ مکې ن په لس زره درهم واخستلو هلته ئی بدل کړو. دَ دومره ورځونه پس ئی هم جثه محفوظ وه تردې چه سترګوسره نیزدې ئی کوم کافور لګولې وو هغه هم هلته موجود وو. (۲)

**مرویات:** دَ هغوی ۳۸ روایات نقل دی دوه بخاری اومسلم دواړوکښې دی. دوه بخاری اودرې مسلم کښې منفرد دی. دَ نورو حالاتودَ پاره اوګورئی ① طبقات ابن سعد:۱۵۳/۳ ② اسدالغابة:۵۹/۱ ③ فتح الباری:۶۶/۷ ④ سیرت ابن هشام:۳۱۵/۲ ⑤ تهذیب التهذیب وغیره

**تسهیلات:**

**قوله:** يَزَعُ الْمَلَائِكَةَ:

**دبدرپه ورځ د شیطان تیښته:** یعنی دَ فرښتو کمان ئی کولو اوهغوی منع کولې. دَ بدر په ورځ شیطان دَ سمندرطرف ته اوتختیدو کله چه هغه فرښتې اوکتلې نومنډې وهلې تردې چه سمندر کښې خپل ځائی ته اورسیدو خو هلته هم حصارنه شو بلکه هلته ئی په سمندر کښې غوپه اولګوله او لاسونه ئی دَ آسمان طرف ته اوچت کړل او وئی وئیل اې الله زما دَ مرګ چه کومه وعده تاکړې وه هغه مه هیره وه.

(۱) طبقات ابن سعد). (۲) اسدالغابه: ۱۶۱/۳).

(۳) البخاري في الزكاة باب وجوب الزكاة ومسلم في الإيمان باب الدعاء إلى الشهادتين وشرائع الإسلام)

## [٢٦٠١] دَ یوم عرفه فضیلت

٢٦٠١-[٩] (١)[١] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٢]- «إِذَا كَانَ يَوْمُ عَرَفَةَ، إِنَّ اللهَ يَنْزِلُ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا فَيُبَاهِي بِهِمُ الْمَلَائِكَةَ، [٣] فَيَقُولُ: انْظُرُوا إِلَى عِبَادِي، أَتَوْنِي شُعْثًا غُبْرًا ضَاجِّينَ مِنْ كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ، [٤] أُشْهِدُكُمْ أَنِّي قَدْ غَفَرْتُ لَهُمْ،

**ترجمه** [١] جابر رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] د عرفې په ورځ الله تعالی د دنیې په آسمان نزول فرمايي (يعني د رحمت، احسان او كرم سره نزدې كېږي) او بيا د فرښتو په مخكې په حاجيانو فخر كوي، [٣] او فرمايي چې لږ زما د بنده ګانو طرف ته وګورئ، دوی ماته پريشانه او په ګرځ لړلي ويښتانو، او لبيك او د ذكر سره آوازونه اوچتولو سره د لرې لېرې ځخه راغلي دي، [٤] زه تاسو په دې خبره ګواه جوړوم، چې ما دوی وبخښل (په دې اوريدو سره)

**حل اللغات:** ① فَيُبَاهِي: وَالْمُبَاهَاةُ الْمُفَاخَرَةُ: فخر كوي (الله تعالی په عرفه والو باندې). ② شُعْثًا: د أَشْعَثَ جمع ده، وَهُوَ الْمُتَفَرِّقُ مِنَ الشَّعْرِ: سربيرو ويښتو والا انسان ته وائي. ③ غُبْرًا: د أَغْبَرَ جمع ده، وَهُوَ الَّذِي الْتَصَقَ الْغُبَارُ بِأَعْضَائِهِ: ګرد جن چه په اندامونو ئې خاوري دوړې لګېدلې وی. ④ ضَاجِّينَ: ضَجَّ يَضُجُّ نه دَ اسم فاعل صيغه ده، أَيْ: رَافِعِينَ أَصْوَاتَهُمْ بِالتَّلْبِيَةِ: په اوچت آواز سره تلبيه ويونكی. ⑤ فَجٍّ: أَيْ: طَرِيقٍ: لار ته وائي. ⑥ عَمِيقٍ: أَيْ: بَعِيدٍ: لرې والی ته وائي.

فَيَقُولُ الْمَلَائِكَةُ: يَا رَبِّ! فُلَانٌ كَانَ يُرَهَّقُ، وَفُلَانٌ، وَفُلَانَةُ [٢] قَالَ: يَقُولُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ: قَدْ غَفَرْتُ لَهُمْ» [٣]. قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «فَمَا مِنْ يَوْمٍ أَكْثَرَ عَتِيقًا مِنَ النَّارِ مِنْ يَوْمِ عَرَفَةَ». رَوَاهُ فِي: "شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه** [١] فرښتې وايي چې اې پروردګاره! په دوی کې فلانی سړی هم دی، چې د هغه طرف ته د ګناه نسبت كېږي، او فلانی سړی او فلانی ښځه هم ده، چې ګنهګار دی، [٢] نبی كريم ﷺ وفرمايل چې الله تعالی فرمايي چې ما دوی هم وبخښل، [٣] بيا نبی كريم ﷺ وفرمايل چې داسې يوه ورځ نشته، چې په هغه كې د يوم عرفې برابر خلقو ته د اور ځخه د نجات او دخلاصی لار پروانه وركول كېږي، شرح السنه.

**حل اللغات:** ⑦ يُرَهَّقُ: أَيْ: يُتَّهَمُ بِالسُّوءِ: چه دګناه نسبت ورته كولې شی. ⑧ عَتِيقًا: آزاد كړې شوې، (هغه څوك چه د آزادېدو پروانه ورته ملاو شی).

**تسهیلات: قوله:** يَنْزِلُ:

**د الله تعالی د نزول څخه مراد:** يعنی الله تعالی دَعرفه په ورځ دَ دنيا آسمان ته راځی دانزول او الفاظ دَ متشابهات دَقبيل نه دی په كوم كښې چه سلف صالحين داسې توجيهه كوی "ای ماىليق بشانه" متاخرين په دې كښې تاويل كوی چه دَ نزول نه دَ رحمت نزول مراد دې.

---

١) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحديث ١٩٣١

**قوله: فَيُبَاهِي:**
**په انسان د فخر کولو وجه:** یعني الله تعالی د فرښتو په وړاندې په حاجیانو باندې فخرکولوسره فرمائي چه تاسوئیلی وو چه انسان مه پیداکوه اوس اوګورئی دا زما بندیګان په کوم حال کښې زما په وړاندې ژړاګانې اوزاری کوی

**قوله: فُلَانٌ كَانَ يُرْهَقُ**
**د مذکوره جملې مطلب:** مطلب دا چه فلانکی سړی اوفلانکې ښځې خو به د ګناه ارتکاب کولو خلقو به د هغوی طرف ته د ګناه نسبت کولو چه داخلق به ګناه کښې اخته وو الله تعالی به فرمائی ما دوئی اوبخښل.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [٢٦٠٢] وقوف هم په عرفات کښې کول پکاردی

٢٦٠٣-[١٠] ()[١] «عَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: كَانَ قُرَيْشٌ، وَمَنْ دَانَ دِينَهَا[٢] يَقِفُونَ بِالْمُزْدَلِفَةِ، وَكَانُوا يُسَمَّوْنَ الْحُمْسَ، فَإِنَّ سَائِرَ الْعَرَبِ يَقِفُونَ بِعَرَفَةَ،[٣] فَلَمَّا جَاءَ الْإِسْلَامُ أَمَرَ اللَّهُ - تَعَالَى - نَبِيَّهُ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ يَأْتِيَ عَرَفَاتٍ، فَيَقِفُ بِهَا، ثُمَّ يَفِيضُ مِنْهَا،[۴] فَذَلِكَ قَوْلُهُ عَزَّ وَجَلَّ: ﴿ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ﴾ [البقرة: ١٩٩]». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[١] د مؤمنانو مور، بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي چې قريش او هغه خلق چې د قريشو د طريقې پابنده وو،[٢] په مزدلفه کې به يې قيام کولی، او قريشو ته به حمس يعنی بهادر او شجاع ويل کيده (د قريش څخه علاوه) او ټول اهل عرب به په ميدان عرفات کې وقوف کولی[٣] ليکن کوم وخت چې اسلام راغلو ، نو الله ﷻ خپل نبي ته حکم ورکړي، چې ميدان عرفات ته راشي، او هلته وقوف وکړي، او بيا د هغه ځای څخه واپس شي،[۴] نو د الله ﷻ د دې ارشاد: ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ، بيا د کوم ځاي څخه چې نور خلق واپس کيږي، د هغه ځاي څخه تاسو هم واپس کيږئ ، د دې دا معنی ده، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① دَانَ: أيْ: تَبِعَهُمْ: تابعداری او پیری ئې اوکړه دهغوی، ② يُسَمَّوْنَ الْحُمْسَ: د أَحْمَسَ جمع ده، بِمَعْنَى الشَّجَاعَةِ: بهادر، زړه ور، ③ يَفِيضُ: راکوزيدلو به، واپس به شو.

**تسهيلات: قوله: كَانَ قُرَيْشٌ:**

**د قريشو د عرفات په ځاي مزدلفه کښې ايساريدل:** قريش د حرم شريف متولی وو هغوی له په عامو عربو باندې بهادرئی او سخاوت کښې اوچتوالي حاصل وو ليکن دې خلقو به

---

[١] اخرجه البخاری فی کتاب تفسير القرآن/باب «ثم أفيضوا من حيث أفاض الناس_ [البقرة: ١٩٩] (رقم-٤٥٢٠) ومسلم فی کتاب الحج /باب فی الوقوف وقوله تعالیٰ: «ثم أفيضوا من حيث أفاض الناس_ [البقرة: ١٩٩] (رقم-١٥١ - (١٢١٩)

پخپله هم د خان اوچت ګڼرلو دپاره څه امتيازي صورتونه اختيارول. هم په دې کښې يو امتيازي صورت دا وو چه داخلق به د وقوف دپاره عرفات ته نه ختل بلکه ښکته به مزدلفه کښې به نې قيام کولو اوونيل به نې مونږ بهادرخلق يو زمونږ يوجدا شان دې مونږ ته امتيازي مقام حاصل دې. مونږ د حرم شريف کونترې يو چه کله د ارض حرم نه بهر نه څي چونکه مزدلفه په ارض حرم کښې ده اوعرفات د حرم نه بهر دې. نودا خلق به په مزدلفه کښې حصاريدل اوعام عرب به پورته عرفات ته ختل. قريش به باقي عربو د حمس په نوم بانديې يادول يعنې بهادر سرداران. کله چه اسلام راغلو نوهغې انساني مساوات قائم کړل اوقريشوته نې حکم ورکړو چه پورته ختو سره وقوف اوکړنې او بيا عامو خلقو سره مزدلفه ته راکوزيږنې. د قرآن پاک د آيت هم دغه مطلب دې.

**[٢٦٠٢] په مزدلفه کښې د حضورپاک ﷺ د دعا په قبليدو د ابليس پريشاني**

٢٦٠٣-[١١] ()[١] وَعَنْ عَبَّاسِ بْنِ مِرْدَاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - دَعَا لِأُمَّتِهِ عَشِيَّةَ عَرَفَةَ بِالْمَغْفِرَةِ،[٢] فَأُجِيبَ: "أَنِّي قَدْ غَفَرْتُ لَهُمْ مَا خَلَا الظَّالِمَ، فَإِنِّي آخُذُ لِلْمَظْلُومِ مِنْهُ" [٣] قَالَ: "أَيْ رَبِّ، إِنْ شِئْتَ أَعْطَيْتَ الْمَظْلُومَ مِنَ الْجَنَّةِ، وَغَفَرْتَ لِلظَّالِمِ" فَلَمْ يُجَبْ عَشِيَّتَهُ، [٤] فَلَمَّا أَصْبَحَ بِالْمُزْدَلِفَةِ أَعَادَ الدُّعَاءَ، فَأُجِيبَ إِلَى مَا سَأَلَ.

**ترجمه** [١] عباس ابن مرداس ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ د عرفې په ماښام کې د خپل امت د پاره د بخښش دعا وغوښتله [٢] چې قبوله شوه او الله ﷻ وفرمايل چې ما ستا امت وبخښلی، علاوه د بنده ګانو د حقوقو څخه چې زه د ظالم څخه د مظلوم حق اخلم، [٣] نبی کريم ﷺ عرض وکړي چې اې زما پروردګاره! که ته غواړې نو مظلوم ته (د هغه د حق په بدله کې چې ظلم پرې شوي دي) د جنت نعمتونه ورکړې، او ظالم هم وبخښې، خو د عرفې په ماښام کې دا دعا قبوله نه شوه، [٤] هر کله چې په مزدلفه کې سحر شو نو نبی کريم ﷺ بيا هغه دعا وغوښتله او نبی کريم ﷺ چې کوم شی وغوښتلی، هغه ورته ورکول شو،

[١] قَالَ: فَضَحِكَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَوْ قَالَ تَبَسَّمَ [٢] - فَقَالَ لَهُ أَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ: بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي، إِنَّ هَذِهِ لَسَاعَةٌ مَا كُنْتَ تَضْحَكُ فِيهَا، [٣] فَمَا الَّذِي أَضْحَكَكَ - أَضْحَكَ اللَّهُ سِنَّكَ؟ [٤] قَالَ: "إِنَّ عَدُوَّ اللَّهِ إِبْلِيسَ، لَمَّا عَلِمَ أَنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ قَدِ اسْتَجَابَ دُعَائِي، وَغَفَرَ لِأُمَّتِي، [٥] أَخَذَ التُّرَابَ، فَجَعَلَ يَحْثُوهُ عَلَى رَأْسِهِ، وَيَدْعُو بِالْوَيْلِ وَالثُّبُورِ، [٦] فَأَضْحَكَنِي مَا رَأَيْتُ مِنْ جَزَعِهِ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ فِي: كِتَابِ "الْبَعْثِ وَالنُّشُورِ" نَحْوَهُ.

**ترجمه** [١] راوي وايي چې نبی کريم ﷺ وخندل يا راوي دا اوويل چې نبی کريم ﷺ مسکی شو [٢] (د دې ليدو سره) حضرت ابوبکر صديق او حضرت عمر ﷺ اوويل چې يا رسول الله! زمونږ مور او پلار دې په تا قربان وي، دا داسې وخت دی چې په دې کې تا نه

(١) اخرجه ابن ماجة في كتاب المناسک/باب الدعاء بعرفة (رقم-٣٠١٣) واحمد في المسند: ١٤/٤

خندل (يعني دا وخت د خندا خو نه دى) ③ بيا څه شى ته وخندولى؟ الله ﷻ دي ستا غابنونه هميشه په خندا لري (يعني الله ﷻ دي تا هميشه خوشحاله لري) ④ نبى كريم ﷺ وفرمايل چې د الله ﷻ دښمن ابليس ته چې دا معلومه شوه ، چې الله ﷻ بزرگ وبرتر زما دعا قبوله کړه، او زما امت يې وبخښلې ⑤ نو هغه خاوره واخيستله او په خپل سر يې اچوله، او واويلا يې كوله او چغې او سورې وهل يې شروع کړل، ⑥ نو د هغه دې بدحواسې او پريشانې زه په خندا مجبوره کړم، ابوداؤد ، بيهقي.

**حل اللغات:** ① يَحْثُوهُ: أي: يَكُبُّهُ: اچولې ئې خاورې، بِالْوَيْلِ: أي: الْعَذَاب: عذاب او تباهى، ② الثُّبُورِ: أي: الْهَلَاكِ: هلاكت، يعنى داسې به ئې وئيل چه: يَا هَمِّي، وَعَذَابِي احْضُرْ: يا زما عذابه او هلاكته زه راشه. ③ جَزَعِهِ: پريشانى، ژړا او فرياد.

**تسهيلات:**

**قوله: قَدْ غَفَرْتُ لَهُمْ مَا خَلَا الْمَظَالِمَ:**

**په ليلة المزدلفه كښې د گناهونو د معافۍ اعلان:** په عرفه كښې چه كومه دعا کړې شوې وه په هغې كښې خو د مظالم نه علاوه نور گناهونه معاف کړې شوې وو خو په مزدلفه كښې چه كومه دعا اوكړې شوه په هغې كښې د ټولو گناهونو باره كښې راغلې دى، نو د حديث د ظاهر نه خو هم دا معلومه شوه چه كه حقوق الله وى او كه حقوق العباد ټول معاف شو او دا حديث ابن ماجه، طبرانى، حكيم ترمذى او عبدالله بن احمد او ابن جرير او بيهقى وغيرهم ﷭ روايت کړې دې،

**د ابن جوزى په دې حديث د ضعف حكم:** ابن الجوزى ﷫ فرمائى چه ﴿ لايصح هذا الحديث تفرد به عبدالعزيز بن رواد ولم يتابع عليه ﴾

**د ضعف جواب:** په دې باندې حافظ ابن حجر ﷫ رد كولو سره فرمائى چه دې ته امام ضياء صحيح وئيلې دې او ابوداؤد هم څه حصه نقل كولو نه پس سكوت کړې دې، هم دغه شان د دې حديث نور طرق هم دى هر يو طريق د بلې دپاره موئد دې.

**په حج باندې د گناهونو په معاف كيدو كښې اقوال:**

① اوس د دې د معنى متعلق امام طبرانى ﷫ فرمائى چه دا په هغه ظالم باندې محمول دې چا چه توبه نه وى کړې او نه د حقوق د ادا كولو نه عاجز شوې وى.

② دَ امت نه مراد دَ حضوراكرم سره په حج كښې شريك صحابه كرام دى مطلق امت مراد نه دې لهذا دا فضيلت دَ هغه صحابه كرامو پورې محدود دې كوم چه په حجة الوداع كښې موجودوو.

③ امام بیهقی رحمه الله فرمائی چه د دې حدیث دپاره شواهد کثیره دی. که دا حدیث صحیح وی نو حجت دې ګڼلې د الله پاك ارشاد ﴿ ويغفر ما دون ذلك لمن يشاء ﴾ کافی دې چه ظلم هم په ﴿ ما دون ذلك ﴾ کښې داخل دې. (الفتح ٣/٢٩٠، التعليق ٣/٢٢٣، الاشعة ٢/٣٦٤)

④ دا فضیلت هغه حاجیانو ته حاصل دې د چا حج چه قبول شوې وی.

# [٥] بَابُ الدَّفْعِ مِنْ عَرَفَةَ وَالْمُزْدَلِفَةِ

## د عرفات او مزدلفه نه د واپسۍ بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه اربعة عشر حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① كيفية الدفع من عرفة: ١، ٢، ٧، ٨، ١٣.

② التلبية وقت الدفع من عرفة: ٣، ٧، ١٢.

③ الجمع بين الصلاتين فى عرفة والمزدلفة: ٤، ٥، ١٤.

④ صلوة الفجر بغلس فى المزدلفة: ٥.

⑤ التقدم فى الدفع من مزدلفة بعذر: ٦، ١٠، ١١.

⑥ وقت الدفع: ٩.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [٢٦٠٤] د سید الکونین ﷺ د مِنٰی نه واپسی

٢٦٠٤-[١] ([1]) ① عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: ② «سُئِلَ أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ: كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَسِيرُ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ حِينَ دَفَعَ؟ ③ قَالَ: كَانَ يَسِيرُ الْعَنَقَ، فَإِذَا وَجَدَ فَجْوَةً نَصَّ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ① هشام بن عروه رحمه الله د خپل پلار (عروه) څخه نقل کوي چې هغه وفرمایل ② د حضرت اسامه بن زید رضی الله عنه څخه پوښتنه وشوه چې د حجة الوداع په موقع د عرفات څخه په راتلو کې د نبی کریم ﷺ رفتار څه وو؟ ③ هغه وفرمایل چې د نبی کریم ﷺ رفتار تیز نه وو، او چیرته چې به فراخه لار پیدا شوه نو خپله سوارلی به یې زغلوله، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① دَفَعَ: أي: انْصَرَفَ: چه واپس کیدلو به، ② الْعَنَقَ: أي: السَّيْرَ السَّرِيعَ: تیز تیز منډې وهلو ته وائی ③ فَجْوَةً: أي: سَعَةً: خالی او کولاؤ ځائی ته وائی. په اصل کښې د دوو څیزونو په مینځ کښې خلا ته فجوة وائی. ④ نَصَّ: أي: سَارَ سَيْرًا أَسْرَعَ: تیز منډې وهلو ته نص وائی.

---

[1] اخرجه البخاری فی كتاب الحج/باب أمر النبي صلى الله عليه وسلم بالسكينة عند الإفاضة. وإشارته إليهم بالسوط (رقم-١٦٧١)

**تسهيلات:**

**نوټ:** د حديث مطلب آسان دې باقي د ګرانو لغاتو معانی د حل اللغات په عنوان سره واضح شوی دی

**[٢٦٠٥] داسې جلتي مناسب نه ده چه تر مکروهاتو ورسوی**

٢٦٠٥-[٢] ()[١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، أَنَّهُ دَفَعَ مَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ عَرَفَةَ [٢] فَسَمِعَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَرَاءَهُ زَجْرًا شَدِيدًا، وَضَرْبًا لِلْإِبِلِ، [٣] فَأَشَارَ بِسَوْطِهِ إِلَيْهِمْ، [٤] وَقَالَ: "«يَا أَيُّهَا النَّاسُ، عَلَيْكُمْ بِالسَّكِينَةِ، فَإِنَّ الْبِرَّ لَيْسَ بِالْإِيضَاعِ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] د ابن عباس ﷺ په باره کې منقول دی چې هغه د عرفه په ورځ (د عرفات څخه د منیٰ طرف ته) په واپس راتلو کې د نبی کریم ﷺ سره ملګري وو، [٢] د هغه بیان دی چې (په لاره کې) نبی کریم ﷺ د خپل وروسته (په اوچت آوازونو سره د څاروو د شړلو او د اوښانو د وهلو) شور واوریدلی، [٣] نو نبی کریم ﷺ خپلې دُرې سره د خلقو طرف ته اشاره وکړه، چې خلق متوجه شي او د نبی کریم ﷺ خبره واوري، [٤] او وې فرمایل چې اې خلقو! په آرام او اطمینان سره تلل تاسوته ضروري دی، څکه چې نیکي منډې وهل نه دي، بخاري.

**حل اللغات:** ① زَجْرًا شَدِيدًا: أَيْ: سَوْقًا لِلدَّوَابِّ، بِرَفْعِ الْأَصْوَاتِ: په تیز آواز سره څاروی شړل، ② ضَرْبًا: وهل. ③ بِالْإِيضَاعِ: وَهُوَ حَمْلُ الْإِبِلِ عَلَى سُرْعَةِ السَّيْرِ: په زبردستۍ سره اوښان تيزول، په تيز تلو باندې اوښان مجبوره کول.

**تسهيلات:**

**قوله: بِالْإِيضَاعِ:**

**په حدیث کښې اشکال:** تیز سیل سیر اودَ اوښانو شړلو ته ایضاع وائی یعنی نیکی دَ اوښانو په منډه کولوسره نه حاصلیږی بلکه نیکی کولو او دَ بدئی نه بچ کیدو سره نیکی ملاویږی لهذا نیکی کوئی او اوښان مه زغلوئی. دلته دا سوال دې چه سابقه حدیث کښې دَ تیز تللو ذکر دې اودا مطلوب او محبوب ګرځولې شوی دی دلته دَدې نفی ده؟

**د اشکال جواب:** دَ دې جواب دادې چه په کومو زغلولو کښې دَ مخلوق خدا ایذا او تکلیف وی هغه دَمکروهات نه دې ګنی "فاستبقوا الخيرات" کښې دَ نیکئی طرف ته په تیزئی سره وړاندې کیدل ممدوح ګرځولې شوی دی نو په دواړو روایتونو کښې تضاد نشته دې.

[١] اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب «فمن تمتع بالعمرة إلى الحج فما استيسر من الهدي فمن لم يجد فصيام ثلاثة أيام في الحج وسبعة إذا رجعتم تلك عشرة كاملة ذلك لمن لم يكن أهله حاضري المسجد الحرام» [البقرة: ١٩۶] (رقم-١۶٨۶) ومسلم في كتاب الحج /باب استحباب إدامة الحاج التلبية حتى يشرع في رمي جمرة العقبة يوم النحر (رقم-٢۶۶-(١٢٨٠)

## [۲٦۰٦] تر رمی جمره عقبه پورې برابر په تلبيه کې مشغوليدل

۲٦۰٦-[۳]( )[۱] وَعَنْهُ، «أَنَّ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ كَانَ رِدْفَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مِنْ عَرَفَةَ إِلَى الْمُزْدَلِفَةِ[۲] ثُمَّ أَرْدَفَ الْفَضْلَ مِنَ الْمُزْدَلِفَةِ إِلَى مِنًى،[۳] فَكِلَاهُمَا قَالَ: لَمْ يَزَلِ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يُلَبِّي حَتَّى رَمَى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [۱] ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې د عرفات څخه تر مزدلفه اسامه بن زيد رضي الله عنه په نبي کريم ﷺ پسې وروسته سور وو، [۲] بيا نبی کريم ﷺ د مزدلفې څخه تر منی پورې فضل بن عباس په ځان پسې وروسته سور کړي، [۳] او د دې دواړو بيان دی چې نبی کريم ﷺ برابر لبيک ويلی، تر دې چې نبی کريم ﷺ جمره عقبه (اخيرنۍ جمره) وويشتله (يعني د قربانۍ په ورځ چې يې په جمره عقبه اولنی کاڼي وويشتله نو تلبيه يې موقوف کړه) بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ: ددې نه مراد جمرة عقبة الاولى يعنی غټ شيطان دی کوم چه د اختر په ورمبۍ ورځ ويشتلې کيږي.

## [۲٦۰۷] په مزدلفه کې جمع بين الصلاتين

۲٦۰۷-[٤]( )[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ: «جَمَعَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ بِجَمْعٍ،[۲] كُلَّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا بِإِقَامَةٍ[۳] -وَلَمْ يُسَبِّحْ بَيْنَهُمَا، وَلَا عَلَى إِثْرِ كُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** [۱] ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې نبی کريم ﷺ په مزدلفه کې د ماښام او ماسخوتن مونځونه جمع کړل (يعني د ماسخوتن په وخت کې يې دواړه مونځونه يو ځای وکړل) [۲] او په هغه کې د هر يو د پاره تکبير اوويل شو (يعني د ماښام د پاره جدا تکبير وشو، او د ماسخوتن د پاره جدا) [۳] او نبی کريم ﷺ نه خو د دې دواړو په منځ کې څه نفل مونځ وکړي، او نه د دې دواړو څخه د هر يوه څخه پس، بخاري.

**حل اللغات:** ① بِجَمْعٍ: أَيْ: بِالْمُزْدَلِفَةِ: دا د مزدلفه نوم دی ② لَمْ يُسَبِّحْ: أَعْنِي النَّافِلَةَ: يعنی نفل مونځ دې نه کوی. ③ عَلَى إِثْرِ: أَيْ: عَقِيبَ: روسته، پس

**تسهيلات:**

**قوله:** جَمَعَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ بِجَمْعٍ:

**د ماښام او ماسخوتن په يو وخت کښې جمع کول:** مزدلفه کښې جمع بين الصلوتين د ماسخوتن په وخت کيږی د ماښام مونځ روستو کولو سره د ماسخوتن په وخت کښې کيږی

( ) اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب «فمن تمتع بالعمرة إلى الحج فما استيسر من الهدي فمن لم يجد فصيام ثلاثة أيام في الحج وسبعة إذا رجعتم تلك عشرة كاملة ذلك لمن لم يكن أهله حاضري المسجد الحرام» [البقرة: ۱۹۶] (رقم-۱٦۸٦) ومسلم في كتاب الحج/باب استحباب إدامة الحاج التلبية حتى يشرع في رمي جمرة العقبة يوم النحر (رقم-۲٦٦-(۱۲۸۰))

( ) اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب من جمع بينهما ولم يتطوع (رقم-۱٦۷۳)

کوم ته چه جمع تاخيرى وائى. په عرفات کښې جمع بين الصلوتين دَ ماسپښين په وخت کیږی. دَمازيګر مونځ وړاندې کولې شی دې ته جمع تقديم وائى.

**قوله: بِجَمْعٍ:**

**په مزدلفه کښې د جمع بين الصلاتين په صورت کښې د اقامت په تعداد کښې مذاهب:**

•اقامة• په دې باندې دَ ټولو اتفاق دې چه مزدلفه کښې دَمابنام او ماسخوتن مونځ دَ ماسخوتن په وخت کول جائز اومامور به دې. اختلاف په دې کښې دې چه دَ دواړو مونځونو دَپاره به يو اقامت وى که دوه اقامتونه به وى.

① دَامام مالك رحمه الله مذهب دادې چه دوه اذان اودوه اقامتونه کيدل پکاردى. دَامام بخارى رحمه الله هم دغه رائې ده.

② دَامام شافعى رحمه الله امام ابوحنيفه رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نيزدادى چه يو اذان اودوه اقامتونو سره به اداکولې شى. دَ احناف نه يو قول داسې نقل دې که دَ دواړو فرضو په مينځ کښې دَ سلام نه علاوه بل څه فاصله نه وى نودَ دويم مونځ دَپاره نه دَ اذان ضرورت دې اونه دَ اقامت ضرورت دې. [البنياية: ۴/۱۱۵].

**[٢٦٠٨] دَ جمع بين الصلوتين نه جمع صورى مراد ده**

٢٦٠٨-[٥] ()① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: ② "«مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- صَلَّى صَلَاةً إِلَّا لِمِيقَاتِهَا، ③ إِلَّا صَلَاتَيْنِ: صَلَاةَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ بِجَمْعٍ، ④ وَصَلَّى الْفَجْرَ يَوْمَئِذٍ قَبْلَ مِيقَاتِهَا»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه وايي ② چې ما هيڅ کله نه دي ليدلي، چې نبی کريم صلی الله علیه وسلم يو مونځ د خپل وخت څخه علاوه په يو بل وخت کې کړی وي، ③ سوا د دوو مونځونو څخه چې هغه د ماښام او ماسخوتن مونځونه دي چې په مزدلفه کې يې کړی وو، ④ او په هغه ورځ (يعني په مزدلفه کې د قرباني په ورځ) د سحر مونځ نبی کريم صلی الله علیه وسلم د وخت څخه مخکې کړی وو، بخاري، مسلم.

**تسهيلات: قوله:** إِلَّا لِمِيقَاتِهَا:

**د احنافو په جمع صورى باندې دليل:** حضرت ابن مسعود رضی الله عنه فرمائى حضورپاك کله هم يومونځ دَدې نه علاوه په بل وخت کښې نه دې کړې صرف مزدلفه کښې دَماسخوتن اومابنام دَماسخوتن په وخت کښې کړې دې. دې نه معلومه شوه چه دَحضور پاك نه کوم دَ جمع بين الصلوتين احاديث نقل دى هغه په جمع صورى باندې محمول دى جمع حقيقى صرف مزدلفه او عرفات کښې شوې ده اوهم دغه دَ احناف مسلك دې.

[1]) اخرجه البخارى فى كتاب الحج/باب متى يصلى الفجر بجمع (رقم-١٦٨٢) ومسلم فى كتاب الحج /باب استحباب زيادة التغليس بصلاة الصبح يوم النحر بالمزدلفة. والمبالغة فيه بعد تحقق طلوع الفجر (رقم-٢٩٢ - (١٢٨٩)

**قوله: وَصَلَّى الْفَجْرَ الخ:**

**حدیث کښې په اسفار باندې دلیل:** یعنی دَ فجرمونځ هم حضورپاك په خپل وخت کښې دننه لیکن دَ اسفار نه مخکښې ورکړې دې. دې نه معلومه شوه چه حضورپاك به دَ سحر مونځ دَ اسفارپه وخت کښې ورکولو. صرف په مزدلفه کښې دَ سحر مونځ دَ اسفار په ځائې په غلس کښې ورکړې وو. دَدې جملې نه هم دَ احناف تائید کیږی ځوك چه دَ اسفارفی الفجر قائل دی.

**[۲٦٠٩] دَمزدلفه نه دَ ښځو او ماشومانو دَ فجر نه مخکښې روانول جائز دی**

٢٦٠٩-[٦] (١) «وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: "أَنَا مِمَّنْ قَدَّمَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَيْلَةَ الْمُزْدَلِفَةِ فِي ضَعَفَةِ أَهْلِهِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ ابن عباس ﷠ وائي چې نبی کریم ﷺ د خپل اهل وعیال د کمزور او ضعیف خلقو کومه ډله چې د مزدلفه په شپه د مخکې څخه لیږلي وه، په هغه کې زه هم شامل وم، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① ضَعَفَةِ: د ضَعِيفِ جمع ده، کمزوری خلق، ددې نه زنانه او ماشومان وغیره مراد دی.

**تسهیلات:**

**قوله: فِي ضَعَفَةِ أَهْلِهِ:**

**د مبیت بالمزدلفه په حکم کښې مذاهب:**

په مزدلفه کښې د شپې تیرولو متعلق په سلف کښې اختلاف دې کوم ته چه وقوف مزدلفه هم ونیلې شی.

① د ابن خزیمه او ابن بنت الشافعی په نزد په مزدلفه کښې شپه تیرول رکن دې،

② د امام مالك او امام شافعی ﷫ په نزد په مزدلفه کښې شپه تیرول سنت دی.

③ د امام ابوحنیفه، احمد، اسحاق، ثوری، عطاء، زهری، مجاهد وغیرهم ﷭ په نزد کوم چه د امام شافعی ﷫ هم یو قول دې په مزدلفه کښې شپه تیرول واجب دی په بغیر عذره ترك باندې ئې دم لازم دې. که د رش وغیره د عذر د وجې نه راغلو نو دم نشته.

**د مبیت بالمزدلفه د فرضیت دلیل:** دلیل دا آیت کریمه دې ﴿ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ﴾ د دې په شان امر قطعی نه رکنیت ثابتیږی،

**د فرضیت د دلیل مختلف جوابونه-** ① شیخ ابن همام ﷫ فرمائی چه په آیت مذکوره کښې

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب من قدم ضعفة أهله بليل، فيقفون بالمزدلفة، ويدعون، ويقدم إذا غاب القمر (رقم-١٦٧٨) ومسلم فی کتاب الحج /باب استحباب تقديم دفع الضعفة من النساء وغيرهن من مزدلفة إلى منى في أواخر الليل قبل زحمة الناس، واستحباب المكث لغيرهم حتى يصلوا الصبح بمزدلفة (رقم-٣٠١ - (١٢٩٣)

مطلقا وقوف بالمزدلفه متعلق صيغه د امر نه ده راغلې بلکه د ذکر متعلق امر راغلی دی لهذا کوم وقوف چه مقید بالذکر وی په هغې باندې امر راغلی دی، په کلام مقید کښې قید مقصود وی نو ګویاذکر مقصود دی خوذکر بالاجماع رکن نه دی،لهذا وقوف به هم رکن نه وی.

⑦قال ابن عباس: أَنَا مِمَّنْ قَدَّمَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَيْلَةَ الْمُزْدَلِفَةِ فِي ضَعَفَةِ أَهْلِهِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. په دې سره رکنیت منتفی کیږی ځکه چه رکن د څه عذر په وجه باندې نه ساقط کیږی. (العینی ٤/٦٩١، الفتح ٣/٣٣٣، البذل ٣/١٧٠)

**د وجوب دلیل:** د وجوب دلیل د عروه رضي الله عنه دا حدیث دی ( انه علیه السلام قال من شهد صلاتنا هذه ووقف بعرفة قبل ذلك لیلا اونهارا فقد تم حجه، قال الحاکم صحیح علی شرط جمیع اهل الحدیث ) دلته د وقوف بالمزدلفه سره تول حج معلق کړې شو کوم چه د وجوب علامت دې خو که دا وقوف د څه عذر مثلا ضعف یا مرض یا خوف یا ازدحام په بناء ترك کړې وی نو په دې باندې هیڅ دم وغیره لازم نه دې.

[٢٦١٠] دَ جمرات دَ ویشتلو دَپاره کا نړی دَچرته نه اوچت کړی شي؟

—[٧] ()① «وَعَنْهُ عَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، وَكَانَ رَدِيفَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-② أَنَّهُ قَالَ فِي عَشِيَّةِ عَرَفَةَ، وَغَدَاةِ جَمْعٍ لِلنَّاسِ حِينَ دَفَعُوا: "عَلَيْكُمْ بِالسَّكِينَةِ③" وَهُوَ كَافٌّ نَاقَتَهُ حَتَّى دَخَلَ مُحَسِّرًا، وَهُوَ مِنْ مِنًى،④ قَالَ "عَلَيْكُمْ بِحَصَى الْخَذْفِ الَّذِي يُرْمَى بِهِ الْجَمْرَةُ"⑤. وَقَالَ لَمْ يَزَلْ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يُلَبِّي حَتَّى رَمَى الْجَمْرَةَ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**① عبد الله ابن عباس رضي الله عنه د فضل ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کوي اودي (د مزدلفې څخه منی ته په راتلو کې) دنبي کریم ﷺ په سوارلی شاته سور وو، ② د هغه بیان دی چې د عرفې په ماښام (د عرفات څخه مزدلفې ته په راتلو کې) او د مزدلفې په سحر (د مزدلفه څخه منی ته په تلو کې) خلقو سوارلی په تیزۍ سره شړل او وهل شروع کړل، نو نبی کریم ﷺ هغوئ ته وفرمایل چې په اطمینان سره تلل ستاسو د پاره ضروري دی، ③ او هغه وخت خپله نبي کریم ﷺ خپله اوښه راټینګولو سره روان وو، تر دې چې نبی کریم ﷺ وادي مُحسّر کې چې منی ته نزدې د مزدلفه په آخري حصه کې دی ورسیدلی، ④ نو وې فرمایل چې تاسو (ته ددې میدان څخه) د خذف په شان کانړي (یعنی واړه واړه کانړي) پورته کول پکار دي چې جمره په ویشتل کیږی ⑤ او فضل بن عباس رضي الله عنه به ویل چې نبی کریم ﷺ تر رمی جمره پورې برابر لبیك ویلی (یعني په جمره عقبه اول کانړي چې یې ویشتلو نو لبیك ویل یې موقوف کړل) مسلم

---

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الحج /باب استحباب إدامة الحاج التلبیة حتی یشرع فی رمي جمرة العقبة یوم النحر (رقم-٢٦٨ - (١٢٨٢) والنسائی فی کتاب مناسک الحج/باب: التلبیة فی السیر(رقم-٣٠٥٥)

**حل اللغات**: ① دَفَعُوا: أي: انْصَرَفُوا: چه راواپس شو. ② عَلَيْكُمْ بِالسَّكِينَةِ: لازم او ضروری دی په تاسو په آرام سره تلل ③ كَافٍّ: أي: مَانِعٌ مِنَ السُّرْعَةِ: راقابو کړې نې وه چه تیزه تیزه نه ځي. ④ مُحَسِّرًا: أي: مَوْضِعٌ منی سره نږدې د مزدلفې په آخری حد کښې د یوځائې نوم دې. ⑤ بِحَصَى: د حصاة جمع ده گیټکوته وائي. الْخَذْفِ: یعنی په دومره اندازه گیټکې چه د دوو گوتو په مینځ کښې راشي چه د لوبیا دانې نه لږ شان لوئي وي.

**تسهیلات: قوله: مُحَسِّرًا**

**د وادی محسر محل وقوع**: وادی محسرد مزدلفه اومنٰی په داسې مینځ کښې واقع ده چه نه پوره په منٰی کښې ده اونه پوره په مزدلفه کښې ده. زیاته حصه ئې منٰی سره لگیدلې ده هم په دې مقام په ابرهه باندې عذاب نازل شوې وو. لهذا دلته حصاریدل جائزنه دی. نن صبا ظالمان او خائن معلمین دحاجیانو دپاره هم دغه ځائی کښې خیمې لگوی.

**په منی کښې دالله تعالی د قدرت نښې:**

① دلته غوښه سخاکیږی نه. بل هغه تپوسان اوکارغان نه راځي

② هلته ځائی نه کمیږی هرچاته ځائی ملاویږی.

③ په کروړونوکانړی ویشتلې شی خو هلته ډیرې نه جمع کیږی. اوس څه ټرکونه راځي اوچته وی خوهغه هم څه په کم مقدار کښې وی. اصل کښې چه کوم کانړی قبول شی هغه فرښتې اوچته وی.

**د کانړو اوچتولو ځائې**: دا ضروری نه دی چه کانړی به هم د مزدلفه نه اوچتولې شی خو چونکه مزدلفه په لارکښې راځي نوخلق ئې د هغه ځائی نه اوچته وی په دې کښې آسانتیا ده.

**[٢٦١١] د حضور ﷺ د طرف څخه د خپل وصال اطلاع**

۲٦١١-[٨] ()[1] ① وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «أَفَاضَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ جَمْعٍ وَعَلَيْهِ السَّكِينَةُ، ② وَأَمَرَهُمْ بِالسَّكِينَةِ، وَأَوْضَعَ فِي وَادِي مُحَسِّرٍ، وَأَمَرَهُمْ أَنْ يَرْمُوا بِمِثْلِ حَصَى الْخَذْفِ. ③ وَقَالَ: "لَعَلِّي لَا أَرَاكُمْ بَعْدَ عَامِي هَذَا» ". ④ لَمْ أَجِدْ هَذَا الْحَدِيثَ فِي الصَّحِيحَيْنِ إِلَّا فِي: " جَامِعِ التِّرْمِذِيِّ " مَعَ تَقْدِيمٍ، وَتَأْخِيرٍ.

**ترجمه** ① جابر رضي الله عنه وايي چې نبی کریم ﷺ (د منٰی د پاره) د مزدلفې څخه روان شو، نو د نبی کریم ﷺ په رفتار کې سکون او وقار وو، ② او نبی کریم ﷺ نورو خلقو ته هم په سکون او اطمینان سره د تلو حکم ورکوي، البته په میدانِ محسر کې نبی کریم ﷺ اوښه تیز رفتاری سره تیره کړه او نبی کریم ﷺ خلقو ته حکم ورکړي چې د خذف کانړو په شان

[1] اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک، باب التعجیل من جمع (رقم-١٩٤٤) والترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الإفاضة من عرفات (رقم-٨٨٦)

يعني د نخودو او چولی برابر) اووه کانړو سره ويشتل وکړی③ او نبی کريم ﷺ صحابه وو ﷺ ته دا هم وفرمايل چې شايد د دې کال څخه روسته زه تاسو ونه وينم④ صاحب د مشکوٰة فرمايي چه) ما دا حديث په بخاري او مسلم کې پيدا نه کړي، خو په ترمذي کې دا حديث د تقديم او تاخير سره مذکور دی.

**حل اللغات:** ① أَفَاضَ: أيْ أَسْرَعَ: په جلتۍ او تلوار سره روان شو. ② جَمْع: أيْ: بِالْمُزْدَلِفَةِ: دا د مزدلفه نوم دی ③ أَوْضَعَ: أيْ: أَسْرَعَ: تيزه ئې کړه. ④ يَرْمُوا: چه اولی.

**تسهيلات:**

**قوله: لَعَلِّي لَا أَرَاكُمْ بَعْدَ عَامِي هَذَا:**

**د حجة الوداع وجه تسميه:** دحديث د آخری الفاظو مطلب دادې چه دا کال زما د دنياوی ژوند آخری کال دې، راروان کال به زه ددې دنيا نه رخصت کيږم، په دې وجه تاسو زما نه د دين احکام اوحج مسائل زده کړئ، نوهم په دې وجه دې حج ته حجة الوداع وئيلې شی، چه ددې حج په موقع باندې نبی کريم ﷺ ددين احکام پوره طور باندې خلقو ته اورسول اوخپل صحابه ئې رخصت کړل، الوداع ئې ورته اووئيل، بيا راروان کال يعنی په دولسمه هجرئ د ربيع الاول په مياشت کښې د نبی عليه السلام وصال اوشو.

**قوله: لَمْ أَجِدْ هَذَا الْحَدِيثَ فِي الصَّحِيحَيْنِ:**

د صاحب مشکوٰة د قول مطلب دادې چه صاحب د مصابيح دا حديث په ړومبی فصل کښې نقل کړې دې، ددې نه دا معلوميږی چه دا حديث د صحيحنو يعنی دبخاری اود مسلم دې، حالانکه داسې نه ده، بلکه دا د ترمذی حديث دې، په دې وجه صاحب دمصابيح له پکار خو دا وو چه دا روايت ئې د ړومبی فصل په ځائې په دويم فصل کښې نقل کړې وې، اګرچه په دې صورت کښې به د تقديم اوتاخير اعتراض بيا هم باقی پاتې کيدو.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [٢٦١٢] دعرفات اومزدلفه نه د واپسئ وخت

٢٦١٢-[٩] ()① عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ قَيْسِ بْنِ مَخْرَمَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: «خَطَبَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: ② " إِنَّ أَهْلَ الْجَاهِلِيَّةِ كَانُوا يَدْفَعُونَ مِنْ عَرَفَةَ حِينَ تَكُونُ الشَّمْسُ كَأَنَّهَا عَمَائِمُ الرِّجَالِ فِي وُجُوهِهِمْ قَبْلَ أَنْ تَغْرُبَ، ③ وَمِنَ الْمُزْدَلِفَةِ بَعْدَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ حِينَ تَكُونُ كَأَنَّهَا عَمَائِمُ الرِّجَالِ فِي وُجُوهِهِمْ. ④ وَإِنَّا لَا نَدْفَعُ مِنْ عَرَفَةَ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ، وَنَدْفَعُ مِنَ الْمُزْدَلِفَةِ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ، ⑤ هَدْيُنَا مُخَالِفٌ لِهَدْيِ عَبَدَةِ الْأَوْثَانِ، وَالشِّرْكِ» ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ. وَقَالَ فِيهِ: " خَطَبَنَا " وَسَاقَهُ بِنَحْوِهِ.

() اخرجه الحاکم فی المستدرک ٢/ ٢٧٧

**ترجمه** [١] محمد بن قيس بن مخرمه ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ د خطبه ورکولو په وخت ارشاد وفرمايلی [٢] چې په ايام جاهليت کې (يعني د اسلام څخه مخکې) خلق به د عرفات څخه هغه وخت تلل چې نمر به د لويدو څخه مخکې د خلقو په مخونو دسرپود پټکو په شان په نظر راتلو (يعني د عرفات څخه د غروب آفتاب څخه مخکې به تلل) [٣] او د مزدلفې څخه به د طلوع آفتاب (د نمر ختو) څخه روسته هغه وخت روانيدل، کله چې به نمر د خلقو په مخونو دسرپود پټکو په شان په نظر راتلو (يعني نمر به ښه غټ اوروښانه وو مصحح)، [٤] خو مونږ به د عرفات څخه تر هغه وقته نه ځو، تر څو چې نمر غروب شوی نه وي، او د مزدلفې څخه به مونږ د نمر د ختو څخه مخکې روانيږو، [٥] ځکه چې زمونږ طريقه د بت پرستو او مشرکانو څخه مختلفه ده، بيهقي.

**حل اللغات:** ① يَدْفَعُونَ: أَيْ: يَرْجِعُونَ: واپس کيدل به، ② عَمَائِمُ الرِّجَالِ: د سړو پټکی، ③ هَدْيُنَا: أَيْ: سِيرَتُنَا وَطَرِيقَتُنَا: زمونږ دين او طريقه، ④ عَبَدَةِ الْأَوْثَانِ: أَيْ: الْأَصْنَامِ: د بتانو عبادت کونکی.

**تسهيلات: قوله:** كَأَنَّهَا عَمَائِمُ الرِّجَالِ:

**د جاهليت په زمانه کښې د پټکی استعمال:** دَ نمردَ ډوبيدوطرف ته اشاره ده پټکی سره ئې تشبيه ورکړې ده ځکه چه کله نمر دَ ډوبيدو مقام ته راشي نودَانسان په مخ لګی اودَ دې شعاګانې دَ انسان مخ پټولوسره پړقه وی. پټکې هم چه کله مخامخ شی هغه هم دَ نمر دَ شعاګانو په شان لګی. دې نه معلومه شوه چه عربو به دَ اسلام نه وړاندې هم پټکی استعمالول "والعمائمه التيجان العرب" مشهورقول دې. دلته دا اوخودلې شوچه په جاهليت کښې به خلق دَ نمر دَ ډوبيدونه وړاندې دَعرفات نه راکوزيدل اسلام منع کړل او وئې وئيل چه کله نمر ډوب شي نوبيا مزدلفه ته ځئی. دغه شان دَ مزدلفه نه دَ وتلووخت دَ نمردَ راختلونه وړاندې اودَ سحردَ راختلونه پس دې. کله چه معمولی رڼاخوره شی نو دَ مزدلفه نه روان شئی ليکن دَجاهليت خلقو به دَ نمر دَ راختلو انتظارکولو او کوه ثبيريه ئې مخاطب کولو وئيل به ئې "اطلع ثبير اطلع".

**قوله:** رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ: دلته دَ مشکوة په نسخه کښې بياض دې بله نسخه کښې رواه البيهقی فی شعب الايمان دې.

**[٢٦١٢] جمره عقبه به دَ نمر دَراختلونه پس ويشتلې شي**

٢٦١٣-[١٠] (١) [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَدَّمَنَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَيْلَةَ الْمُزْدَلِفَةِ - أُغَيْلِمَةَ بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ - عَلَى حُمُرَاتٍ، [٢] فَجَعَلَ يَلْطَحُ أَفْخَاذَنَا، وَيَقُولُ: [٣] "أُبَيْنِيَّ، لَا تَرْمُوا الْجَمْرَةَ

(١) اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک، باب التعجيل من جمع (رقم-١٩٤٠) والنسائی فی کتاب مناسک الحج/باب: وقت رمي جمرة العقبة يوم النحر (رقم-٣٠٦٣) وابن ماجة فی کتاب المناسک/باب من تقدم من جمع لرمي الجمار (رقم-٣٠٢٥) وأحمد فی المسند: ٣٤٦/١

حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** [١] ابن عباس ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ مونږ د مزدلفی په شپه (يعني د عيد الاضحٰی په شپه) کې منٰی ته وليږلو، او د عبد المطلب د خاندان مونږ څو وړو کيان وو (چې نبی کريم ﷺ د شپې ليږلي وو) او خري زمونږ سورلی وي، [٢] نبی کريم ﷺ (به زمونږ د روانګی په وخت د محبت او الفت له مخه) زمونږ په ورونو لاس مبارك راتير ولی، او فرمايل به يې [٣] چې زما وړو بچيانو! تر څو چې نمر راونه خيژي، تاسو ځلي (يعني جمره عقبه) په کاڼړو مه ولی، ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه.

**حل اللغات:** ① أُغَيْلِمَةَ: أَيْ: صِبْيَانَهُمْ: دا دَ اغلمة تصغير دي اغلمه دَ غلام جمع ده. ماشومانو ته وائی. ② حُمُرَاتٍ: جمع د حُمُر ده، او حُمُر جمع د حِمَار ده، خرو ته وائی. ③ يَلْطَحُ: الضَّرْبُ بِبَاطِنِ الْكَفِّ لَيْسَ بِالشَّدِيدِ تَلْطِفًا: دَ فتح يفتح نه دي دَ لاس دَ تلی سره دَ محبت په توګه دَ چا وهلو ته لطح وائی. ④ أُفَيْخَاذَنَا: د فخذ جمع ده، ورونونه يعنی پنډئ ته وائی. ⑤ أُبَيْنِيَّ: دَ ابن تصغير دي چه دَ ياء متکلم طرف ته منسوب دي يعني اي زما خوړو بچو. ⑥ لَا تَرْمُوا: مه اولئ، ⑦ الْجَمْرَةَ: أَيْ: جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ يَوْمَ الْعِيدِ: ددې نه مراد جمرة عقبة الاولی يعنی غټ شيطان دي کوم چه د اختر په ړومبئ ورځ ويشتلې کيږی.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تَرْمُوا الْجَمْرَةَ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ:

## د جمرة العقبه د رمی په وخت کښې مذاهب:

① د جمره نه جمرة العقبة يوم العيد مراد دي. د امام شافعی، شعبی، طاؤس او عطاء په نزد د صبا صادق د راختلو نه مخکښې او د نيمې شپې نه پس د جمره عقبه رمی جائز ده.

② د امام ابوحنيفه، احمد، اسحاق، مالك بلکه جمهور په نزد رمی د جمره عقبه به د طلوع شمس نه پس کوی او که د طلوع شمس نه مخکښې او د صبح صادق نه پس رمی اوکړې شوه نو دا هم جائز ده او که د صبح صادق نه مخکښې په شپه کښې رمی اوکړې شوه نو د هغې اعاده به لازم وی

**د امام شافعی دلائل:** ① حديث عَبْدِ اللّٰهِ مَوْلَى أَسْمَاءَ قَالَ قَالَتْ لِي أَسْمَاءُ وَهِيَ عِنْدَ دَارِ الْمُزْدَلِفَةِ هَلْ غَابَ الْقَمَرُ قُلْتُ لَا. فَصَلَّتْ سَاعَةً ثُمَّ قَالَتْ يَا بُنَيَّ هَلْ غَابَ الْقَمَرُ قُلْتُ نَعَمْ. قَالَتِ ارْحَلْ بِي. فَارْتَحَلْنَا حَتّٰى رَمَتِ الْجَمْرَةَ (الحديث) رواه مسلم د

**جواب:** د دې حديث څخه جواب دا دې چه اسماء ﷺ چه سحر روانه شوه د هغې په بيان کولو کښې مولی اسماء مبالغه کړې ده او په غلس شديد باندې د ليل اطلاق کولو کښې ئې د توسع نه کار اخستلې دې. اصل کښې اسماء د صبا صادق د راختلو نه پس فورا رمی کولو سره راغلې وه، د هغې نه مولی اسماء ﷺ په شپه کښې د رمی کولو نه تعبير اوفرمائيلو.

② ابوداؤد په روايت كښې ( فقلت انا رمينا الجمرة بليل وغـلسنا، وعن عائشة ارسل النبي ﷺ بام سلمة ليلة النحر فرمت الجمرة قبل الفجر الحديث رواه ابوداؤد) د دې احاديثو نه معلومه شوه چه رمی جمار د سحر نه مخکښې کړې شوې دې، او د طلوع فجر نه مخکښې شپه وی.

**جوابونه:** ① د دې حديث ( فرمت الجمرة قبل الفجر) څخه جواب دا دې چې په دې کښې د قبل الفجر نه رمي بالليل مراد نه دې بلکه رمی قبل صلاة الفجر مراد دې.

② طيبي رحمه الله فرمائی چه رمی قبل الفجر د ام سلمه رضي الله عنها دپاره کيدې شی چه خصوصی حکم وی (الفتح ٣/٣٣٣، البذل ٣/١٧٠، التعليق ٣/٢٢٩)

**د احنافو دليل:** حديث ابن عباس يَقُولُ: "أُبَيْنِيَّ، لَا تَرْمُوا الْجَمْرَةَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ وهو دليل على عدم جواز الرمي في الليل وعليه ابوحنيفة والاكثرون خلافا للشافعي كما في التعليق)

**[٢٦١٤] دَامام شافعی مستدل**

—[١١] ()[١] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: [٢] «أَرْسَلَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِأُمِّ سَلَمَةَ لَيْلَةَ النَّحْرِ [٣] فَرَمَتِ الْجَمْرَةَ فِي الْفَجْرِ، ثُمَّ مَضَتْ فَأَفَاضَتْ، [٤] وَكَانَ ذَلِكَ الْيَوْمُ الْيَوْمَ الَّذِي يَكُونُ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عِنْدَهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] د مؤمنانو مور بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي [٢] چې نبی کريم ﷺ بي بي ام سلمه رضي الله عنها د بقر عيد (د قربانۍ د اختر يعنی د لوی اختر) په شپه د مزدلفې څخه منی ته اوليږله [٣] نو هغه هلته رسيدو سره د سحر څخه مخکې په جمره عقبه کانړي ووېشتلی، بيا د هغه ځخه مکې ته راغله، او طواف افاضه يې وکړي (چې فرض دی) [٤] او دا هغه ورځ وه چې په هغه کې نبی کريم ﷺ د هغی سره وو، يعنی دا د بی بی ام سلمه رضي الله عنها د خل ورځ وه. ابوداؤد

**حل اللغات:** ① مَضَتْ: أَيْ: ذَهَبَتْ مِنْ مِنًى: د منی نه واپس لاړه، ② فَأَفَاضَتْ: أَيْ: طَافَتْ طَوَافَ الْإِفَاضَةِ: طواف افاضه يعنی طواف زيارت.

**تسهيلات: قوله:** بِأُمِّ سَلَمَةَ:

**حديث نه د جمهورو جواب:** داحديث دَامام شافعی رحمه الله دليل دې چه دَ سحر دَ راختلونه وړاندې جمره عقبه ويشتل جائزدی سره دَدې چه دَ نمرد راختلونه پس غوره دی. جمهورو داحديث په څه عذر او څه وجه باندې حمل کړې دې چه دلته څه خصوصيت وو ګنی عام حکم هم هغه دې چه دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په روايت کښې دې. دې نه وړاندې بيان شوې دې چه دَ نمرد راختلونه پس دَ جمره عقبه رمی ده.

---

(١) اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک، باب التعجيل من جمع (رقم-١٩٤٢)

**[٢٦١٥]په عمره كښې تلبيه كله موقوف كولې شي**

[١٢]()[١]وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ "يُلَبِّي الْمُقِيمُ، أَوِ الْمُعْتَمِرُ حَتَّى يَسْتَلِمَ الْحَجَرَ" رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَقَالَ: وَرُوِيَ مَوْقُوفًا عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ.

**ترجمه:**[١] ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي چې مقيم او عمره كونكى دې د حجر اسود د مچې (ښكلولو) تر وخته لبيك وايي، ابوداؤد رحمه الله دا روايت بطريق مرفوع نقل كړى دى، او ويلي يې دي چې دا حديث په ابن عباس رضي الله عنهما موقوف دى.

**حل اللغات:** ① يُلَبِّي: تلبيه يعنى لبيك..الخ، دعا دې وانى. ② الْمُقِيمُ: په مكه كښې اوسيدونكي. ③ الْمُعْتَمِرُ: عمره كونكي.

**تسهيلات:**

**قوله: يُلَبِّي الْمُقِيمُ، أَوِ الْمُعْتَمِرُ:**

**د معتمر څخه مراد:** د مقيم نه مراد هغه معتمر دې كوم چه په مكه مكرمه كښې مقيم وى، او د معتمر نه آفاقى معتمر مراد دې. اوس حرف (او) د تنويع دپاره دې يا د دواړو نه مطلقا معتمر مراد دې نو حرف (او) د شك دپاره دې، ابوداؤد دا حديث مرفوعا نقل كولو سره فرمائى (وروى موقوفا) دلته مصنف رحمه الله د ابوداؤد صرف (روى موقوفا) نقل كړو نو اقتصار مخل د مصنف د طرف نه شوې دې، مناسب دا وه چه اول ئې د ابن عباس نه مرفوعا نقل كړې وې او بيا ئې (روى موقوفا) وئلي وې، دا حديث په دې باب كښې استطرادا او تبعا راوړلې شو.

**د معتمر د تلبيه قطع كولو په وخت كښې مذاهب:**

① د معتمر د قطع تلبيه متعلق اختلاف دې، امام مالك رحمه الله فرمائى چه د معتمر نظر چه كله په بيت الله باندې پريوځى نو تلبيه دې منقطع كړى، د امام مالك نه هم دا روايت دې چه د مكې كورونو ته كتلو سره دې تلبيه قطع كړى.

② د امام ابوحنيفه، شافعى، احمد، اسحاق او ثورى په نزد چه كله د حجر اسود استيلام اوكړى نو تلبيه دې قطع كړى.

**د حاجى د تلبيه قطع كولو په وخت كښې مذاهب:**

① بيا د حج كونكى د قطع تلبيه متعلق اختلاف دې، پس د امام مالك، سعيد بن المسيب او حسن بصرى رحمهم الله وغيرهم په نزد به حج كونكې په عرفه كښې د وقوف كولو نه پس تلبيه قطع كړى، كمافى الهداية ج ص٢٢۶.

[١]اخرجه ابوداود فى كتاب المناسك، باب متى يقطع المعتمر التلبية (رقم-١٨١٧)

② د امام ابوحنیفه، صاحبین، امام شافعی، احمد، اسحاق، ثوری، عطاء، طاؤس او جمهور امت په نزد دې د رمی جمرة عقبه پورې تلبیه نه قطع کوی.

**د تلبیه قطع کولو په وخت کښې د فریق ثانی خپل مینځ کښې اختلاف:** ① بیا فریق ثانی کوم چه جمهور دی د هغوی ترمینځه اختلاف دې، د احمد او اسحاق په نزد د رمی جمره د پوره کولو پورې دې تلبیه نه منقطع کوی.

② د امام ابوحنیفه شافعی او ثوری رحمهم الله وغیرهم په نزد دې د رمی الجمرة د اولنی کانړی سره تلبیه قطع کړی

**د اول فریق دلیل:** روی ابن خزیمه عن ابن عباس عن الفضل قال افضت مع النبی ﷺ من عرفات فلم یزل یلبی حتی رمی الجمرة العقبة ویکبر مع کل حصاة ثم قطع التلبیة مع اخر حصاة.

**د دویم فریق دلیل:** کما روی البیهقی عن ابی وائل عن عبد الله قال نظرت النبی ﷺ فلم یزل یلبی حتی رمی الجمرة العقبة (کما فی الهدایة ۱/۲۲۹)

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٢٦١٦] حضور ﷺ د عرفات او مزدلفې پوره درمیانې لار پر سورلۍ قطع کړه**

٢٦١٢–[١٣] ()[1] ① عَنْ يَعْقُوبَ بْنِ عَاصِمِ بْنِ عُرْوَةَ، أَنَّهُ سَمِعَ الشَّرِيدَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- يَقُولُ: ② "«أَفَضْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَمَا مَسَّتْ قَدَمَاهُ الْأَرْضَ حَتَّى أَتَى جَمْعًا»" رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** ① د یعقوب بن عاصم بن عروه (تابعي) رحمه الله څخه روایت دی، هغه د شرید (صحابي) رضی الله عنه څخه واوریدل، ② چې زه (د عرفات څخه) په واپس تلو کې د نبی کریم ﷺ سره ملګری وم. د نبی کریم ﷺ قدم مبارك په زمکه نه وولګیدلی تر دې چې مزدلفې ته راورسیدو، ابوداؤد.

**حل اللغات:** ① أَفَضْتُ: أَيْ: رَجَعْتُ: راواپس شوم (د عرفات نه). ② فَمَا مَسَّتْ: نه وو لګیدلی، ③ قَدَمَاهُ: قدمونه مبارک د نبی علیه السلام. ④ جَمْعًا: أَيْ: مُزْدَلِفَةَ.

**د شرید رضي الله عنه مختصر تعارف:** د شرید نه مراد شرید بن سوید دې، ددوی نوم مالک وو دوی د خپل قوم یو سړې قتل کړو او مکې ته اوتختیدو، او اسلام ئې قبول کړو. نبی کریم ﷺ ددوی نوم شرید کیخوده، ددوی حالات شاته تیر شوی دی.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَمَا مَسَّتْ قَدَمَاهُ الْأَرْضَ حَتَّى أَتَى جَمْعًا

**د مذکوره جملې مفهوم:** ددې مطلب دا نه چه رسول الله ﷺ په تول لاره په زمکه باندې قدم

[1] اخرجه احمد فی المسند: ٤/٣٨٩

نه دي ایخودي، بلکه په بخاری شریف کښې روایت دي. چه د عرفات نه واپسئ باندې نبي د غر یوې درې (کنډو) ته تشریف یوړلو، او هلته نې متیازې اوکړې اوبیا نې اودس اوکړو، په دې لیدلو سره حضرت اسامه ﷺ عرض اوکړو اې دالله رسوله ﷺ! ایا دمونځ وخت شوې دې؟ نبی علیه السلام اوفرمائیل چه مونځ خو راروان دې، بعضو ونیلی دی چه نبی علیه السلام اودس اوکړو اوبیا په سورلئ باندې سور شو.

**[٢٦١٧] دَ حجاج بن یوسف حج**

| |
|---|
| ٢٦١٧-[١٤] ()١ وَعَنِ ابْنِ شِهَابٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ "أَخْبَرَنِي سَالِمٌ ٢ أَنَّ الْحَجَّاجَ بْنَ يُوسُفَ عَامَ نَزَلَ بِابْنِ الزُّبَيْرِ، سَأَلَ عَبْدَ اللَّهِ: ٣ كَيْفَ نَصْنَعُ فِي الْمَوْقِفِ يَوْمَ عَرَفَةَ؟ ٤ فَقَالَ سَالِمٌ: إِنْ كُنْتَ تُرِيدُ السُّنَّةَ فَهَجِّرْ بِالصَّلَاةِ يَوْمَ عَرَفَةَ ٥. فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ: صَدَقَ، إِنَّهُمْ كَانُوا يَجْمَعُونَ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ فِي السُّنَّةِ. |

**ترجمه:** ١ ابن شهاب رحمه الله وایي چې د عبد الله ابن عمر رضي الله عنهما خوی سالم رحمه الله ماته خبرراکې ٢ چې حجاج ابن یوسف په کوم کال حضرت عبد الله ابن زبیر رضي الله عنهما قتل کړې، په هغه کال هغه (مکي ته د راتلو څخه پس) د عبد الله ابن عمر رضي الله عنهما څخه پوښتنه وکړه، ٣ چې مونږ د عرفي په ورځ د وقوف په دوران کې څه وکړو؟ (یعنې په عرفات کې په هغه ورځ د ماسپخین او مازیګر مونځ د وقوف څخه مخکې وکړو یا د وقوف په دوران کې یا د وقوف څخه پس؟) ٤ د دې جواب سالم رحمه الله ورکړې که ته په سنت عمل کول غواړې، نو د عرفي په ورځ (د ماسپخین او مازیګر مونځ) د وخته وکړه (دې جواب اوریدو سره) ٥ عبد الله ابن عمر رضي الله عنهما وفرمایل چې سالم صحیح وایي ځکه چې صحابه وو رضي الله عنهم به د سنت طریقه اختیارولو د پاره د ماسپخین او مازیګر مونځ یو ځای کولی،

**حل اللغات:** ① فَهَجِّرْ: أي: الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ: نو وختې اوکړه (د ماسپښین او مازیګر مونځونه)،

| |
|---|
| ١ فَقُلْتُ لِسَالِمٍ: أَفَعَلَ ذَلِكَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ ٢ فَقَالَ سَالِمٌ: وَهَلْ تَتَّبِعُونَ فِي ذَلِكَ إِلَّا سُنَّتَهُ؟! رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |

**ترجمه:** ١ نو ماسالم ته اوویل چې آیا داکار رسول علیه السلام کړي وو؟ ٢ نو سالم په جواب کې وفرمایل چې صحابه ووخوهم داکار دنبي علیه السلام دسنتو په اتباع کې کاوی بخاری.

**حل اللغات:** ② تَتَّبِعُونَ: اتباع یعنی تابعداری به کوله تاسو.

**تسهیلات:**

**قوله:** عَامَ نَزَلَ بِابْنِ الزُّبَيْرِ:

**ابن زبیر رضی الله عنه دمظلومیت واقعه:** دَ ابن زبیر نه مراد حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنه دي. دَ حجاج بن یوسف دَ ظلم داستان څه پټه خبره نه ده. داسې دَ ظلم او زیاتی یوعلامت

---

() اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب الجمع بین الصلاتین بعرفة (رقم-١٦٦٢)

وو ۱۲۴۰۰۰ سرې اوتړل او بې ګناه ئې قتل کړې وو. هغه ته به خوراك ترهغه وخته پورې مزه نه ورکوله ترکومې چه به ئې دهغې نه مخکښې قتل نه وو کړې. دې ظالم په حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنهما باندې په مکه کښې حمله اوکړه اوحضرت عبدالله ئې شهید کړو. دې نه پس عبدالملك بن مروان دې دَ حج امیر جوړولوسره مکې ته روان کړو اوحکم ئې ورکړو چه دَحج په ټولو مسائلوکښې دَحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه رهنمائي حاصله کړه چنانچه هم په دې سلسله کښې حجاج بن یوسف دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه مسئله معلوموی

# [۶] بَابُ رَمْيِ الْجِمَارِ

## دجمراتو دَ ويشتلو بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه تسعة أحاديث مشتملة على ثماني مسائل:**

① الرمي راكباً: ۱، ۶.
② الرمي بمثل حصى الخذف: ۲.
③ وقت الرمي: ۳.
④ مكان الرمي : ۴.
⑤ وجوب الرمي بسبع حصيات : ۴، ۵.
⑥ غرض الرمي: ۷.
⑦ عدم البناء بمنى للاستظلال: ۸.
⑧ عدم الوقوف بعد رمي جمرة العقبة: ۹.

قال الله تعالى ﴿ فَمَنْ تَعَجَّلَ فِيْ يَوْمَيْنِ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۚ وَمَنْ تَاَخَّرَ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۙ لِمَنِ اتَّقٰى ﴾
[۱] سورة بقره الايه: ۲۰۳.

الجمار دَ جمرة جمع ده په لغت کښې جمرة وړوکی کاڼړی ګیټکی ته وائی اوکه چرې دا لفظ دَ باب تفعل نه راشی نو تجمر دَ جمع کیدو په معنی کښې دې. عرب وائی "تجمر بنوفلان" دَ فلانکې قبیلې خلق جمع شو. "وفي الحديث ان آدم عليه السلام رمى ابليس بمنى فاجمر بين يديه اى اسرع فسمى الجمارية" (طيبى) الكاشف.

**په درې څیزونو باندې د استجمار اطلاق:**

دَ استجمار اطلاق په دريو څيزونو باندې کيږی

① په انګيټهی کښې چه کله عود اچولې شی اودَهغې نه سرې لوګې اخلی هغې ته هم استجمار وائی.

④ دَ استنجاء دَپاره چه کله سرې طاق کانړي یا لوټې استعمالوی په هغې دَ استجمار اطلاق کیږی

⑤ په منٰی کښې چه کله سرې دغه ستنې په کانړو باندې اولی کومې چه هلته جوړې شوی دی هغې ته هم استجمار وائی. چونکه حاجیان صاحبان دلته جمع کیږی هم او کانړی هم اولی په دې مناسبت سره دې ته استجمار اوونیلې شو.

**د رمی الجمار تاریخی پس منظر:** اهل تاریخ لیکی چه کله حضرت ابراهیم علیه السلام حضرت اسماعیل علیه السلام دَ ذبح کولو دَپاره په منٰی کښې قربان ګاه طرف ته بوتللو نو ابلیس یوځل دَ حضرت ابراهیم علیه السلام په زړه کښې وسوسه واچوله. حضرت ابراهیم علیه السلام هغه په اووه کانړو باندې اوویشتلو دې نه پس ابلیس غائب شو او په دویم او دریم مقام باندې رابښکاره شو هلته هم حضرت ابراهیم علیه السلام هغه په اووه کانړو باندې اوویشتلو. الله تعالی دَحضرت ابراهیم علیه السلام دا عمل دَ حاجیانو دَپاره دَ یادګار په توګه باقی اوساتلو او حاجیان دَ شیطان نه دَ نفرت او دَ رحمن سره دَ عقیدت په بنیاد باندې کانړی ویشتلې شی.

پخوانئ زمانه کښې دا ستنې ښکته په زمکه باندې جوړې شوې وې اوس هم دا په زمکه باندې دی لیکن دَدې دَپاره لوئی پل جوړ کړې شوې دې او په پل کښې دَ تنور په شان درې سوري دی دَهغې لاندې دا ستنې دی اوس لاندې په زمکه باندې هم رمی کیږی خود پاسه هم خلق رمی کوی. کانړی ښکته په ستن باندې لګی په دې کښې آسانی ده.اوس دَ سعودی حکومت داخیال دې چه په دې پل باندې دَ پاسه دغه شان یوځو پلونه جوړ کړی دې دَ پاره چه دَ جمرات په رمی کښې آسانی وی ځکه چه خلق زیات تر هم په رمی کښې مړه کیږی.

**د رمی جمرات حکم:** رمی جمرات دَ جمهورو په نیز واجب ده په ترك كولو سره دم واجب کیږی. امام مالك رحمه الله دې ته سنت مؤکده وائی مګر په ترك كولو باندې جبر نقصان لازم ګرځوی نو دا اختلاف لفظی پاتې شو.

**د جمراتو د محل وقوع بیان:** په جمراتو کښې یو دَ جمرة العقبه په نوم سره مشهوره ده دا دَ حرم شریف طرف ته واقع دې چه مسجد خیف سره دې. دې نه پس جمرة الوسطی دې چه دَ مزدلفه طرف ته په مینځ کښې واقع دې او دریم جمرة الاولی دې دا دَ مزدلفه نه دَ راتلو په وخت دَ ټولونه اول په لار کښې راځی. دَ مزدلفه نه راتلونکی حاجی له دَ ټولونه مخکښې جمرة الاولی راځی بیا جمرة وسطی او بیا جمرة عقبه چه آخیره ده. دې ته عقبه ځکه وائی چه دا دَ ټولو شاته ده.

**د رمی الجمرات ترتیب:** په لسم ذوالحجه باندې صرف هم دا جمره عقبه ویشتلې شی. حضرت ابراهیم علیه السلام دَ ټولونه اول شیطان هم په دغه ځائی کښې ویشتلې وو.

دې نه پس په یوولسم دولسم او دیارلسم ذوالحجه پورې دریواړه جمرات هم په دغه ترتیب

سره ویشتلې شي په کوم ترتیب چه دا ولاړ دي. یعنی دَ مزدلفه دَ طرف نه تیولو نه اول جمرة الاولی ویشتلې شي بیا وسطی او آخره کښې عقبه ویشتلې شي په دویمه او دریمه ورځ لازم دی چه دَ زوال نه پس جمرات اوویشتلې شي دې نه وړاندې معتبرنه دی. مګر نن صباء دَ سعودی عرب علماؤ دَ مجبورئی دَ وجې نه اجتهادی صورت جوړولوسره دا فتوی ورکړې ده چه دَ جمرات رمی هروخت جائزده. دا فتوی ډیره ښه ده. دځلورمې ورځې رمی اختیاری ده یعنی که یوسړې په دیارلسم ذوالحجه باندې دَسحردَ راختونه وړاندې دَمنٰی نه اووتلو نو په هغه باندې دَ دیارلسم ذوالحجه رمی نشته دې. دا دَ احنافو مسلك دې اوکه دَ طلوع فجر نه پس په منٰی کښې پاتې شو نواوس دَځلورمې ورځې یعنی دیارلسم ذوالحجه رمی په ده باندې لازم ده اودا رمی دَ نمردَ راختونه پس جائز ده دَ نمرد زوال پورې انتظارکول ضروری نه دی.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۲۶۱۸] رمی پیدل غوره ده که په سورلئ؟

۲۶۱۸–[۱] ()[۱] «عَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ يَرْمِي عَلَى رَاحِلَتِهِ يَوْمَ النَّحْرِ، [۲] وَيَقُولُ: " لِتَأْخُذُوا عَنِّي مَنَاسِكَكُمْ، [۳] فَإِنِّي لَا أَدْرِي لَعَلِّي لَا أَحُجُّ بَعْدَ حَجَّتِي هَذِهِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] جابر ﷺ وایې چې ما ولیدل چې د نحر (قربانۍ) په ورځ نبی کریم ﷺ په خپلې سورلۍ سور کانړي یې ویشتلې، [۲] او فرمایل یې چې زما څخه د حج افعال زده کړې، [۳] ځکه چې زه نه یم خبرچې شاید خپل د دې حج څخه روسته بیا زه حج ونه کړم، مسلم

**تسهیلات:**

**قوله:** عَلَى رَاحِلَتِهِ يَوْمَ النَّحْرِ:

**په سورلۍ باندې رمی کول:** دَدې حدیث نه معلومیږی چه حضوراکرم دَ جمره عقبه رمی په لسم ذوالحجه دَ ورځې سوریدو سره کړې. رمی دَ څلورو ورځوپورې وی په دې باندې دَ تیولو ائمه حضراتو اتفاق دې چه څلور واړه ورځې رمی پیدل هم جائز دی اوکه چاته تکلیف نه وی اوممکن وی نو سوریدوسره هم جائزده. دَ رمی راکبًا اوماشیاً په جواز کښې دَ چااختلاف نشته

### د رمی راکباً او ماشیاً په افضلیت کښې مذاهب:

البته دَدې په افضلیت کښې اختلاف دې چه کومه طریقه افضل ده.

① دَ اسحاق بن راهویه رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نیز رمی مطلقًا ماشیاً افضل ده.

② دَ امام مالك رحمه الله په نیز دَ یوم نحرنه پس دریوارو ورځوکښې رمی ماشیاً غوره ده اوکه

---

[۱]) اخرجه مسلم فی کتاب الحج /باب استحباب رمیِ جمرةِ العقبة یوم النحرِ راکبا، وبیانِ قولِه صلی الله علیه وسلم «لتاخذوا مناسککم» (رقم-۳۱۰ - (۱۲۹۷)

په یوم النحر کښې جمره عقبه ته چرته راکبًا اورسی نو راکبًا غوره ده اوکه ماشیاً رسیدلې دې نو ماشیاً غوره ده.

③ دَ شوافع په نیزدا تفصیل دې که دَ جمره عقبه پورې چرته په یوم النحر کښې راکبًا اورسیدو نو راکبًا غوره ده اوکه ماشیاً رسیدلې دې نو ماشیاً غوره ده دې نه پس دَ دوارو ورځو رمی ماشیاً غوره ده اودَ آخری ورځې رمی راکبًا غوره ده.

④ دَ احناف په نیز صاحب دَ هدایه په هدایه کښې لیکلی دی دَ کوم رمی نه پس چه بله رمی ده نو رومبې رمی پیدل کول غوره دی ځکه چه په دې کښې وقوف وی اودعاوی اودا پیدل زیات بهترده په کوم کښې چه تواضع ده اودَ کومې رمی نه پس چه رمی نشته دې لکه جمره عقبه نو په دې کښې راکبًا رمی غوره ده. په احنافو کښې دادَ امام ابویوسف رحمه الله مسلك دې اواکثر احنافو هم په دې فتوی ورکړې ده دا ډیره ښه ده.

**د مرګ په وخت کښې د فقهی مسئلې تعلیم ورکول:** ابراهیم بن جراح رحمه الله فرمائی زه په مرض الوفات کښې امام ابویوسف رحمه الله ته لاړم نو هغه سترګې کولاؤ کړې مانه ئې تپوس اوکړو رمی ماشیاً غوره ده که راکبًا؟ ماوئیل ماشیاً غوره ده. (فتاوی خانیه هم دغه شان لیکلی دی) امام ابویوسف رحمه الله اوفرمائیل دادې غلط اووئیل ما اووئیل راکبًا غوره ده (فتاوی ظهیریه هم داسې لیکلی دی)

امام ابویوسف رحمه الله اوفرمائیل داهم غلط ده بیا هغوی پخپله اوفرمائیل دَ کومې رمی نه پس چه بله رمی وی هغه ماشیاً غوره ده اوکوم نه پس چه رمی نشته دې هغه راکبًا غوره ده. ابراهیم رحمه الله فرمائی چه زه دَهغه نه پاسیدم لاړم. اوس لاره دَ کور دروازې ته رسیدلې روم چه دَهغوی دَمرګ آواز راغلو ماته په دغه حالت کښې دَ هغه حرص علی العلم باندې ډیره حیرانتیا اوشوه. [تعلیق الصبیح: ۲۳۱۲/۳].

## د کا نړو تعداداو دهغې د ویشتلو طریقه

۲۶۳۱-[۲] (١) وَعَنْهُ قَالَ: "«رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَمَى الْجَمْرَةَ بِمِثْلِ حَصَى الْخَذْفِ»" رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** جابر رضي الله عنه وايي ما نبی کریم صلی الله علیه وسلم د خذف سنګریزو په شان یعنی په ورو ورو کانړو سره په رمي جمار کولو لیدلی دی، (٢) ، مسلم.

**حل اللغات:** ① حَصَى الْخَذْفِ: دَ حصاة جمع ده ګیټکوته وائی. الْخَذْفِ: یعنی په دومره اندازه ګیټکې چه دَ دوو ګوتو په مینځ کښې راشی چه دَ لوبیا دانې نه لږ شان لوئی وی.

---

(١) اخرجه مسلم فی کتاب الحج /باب استحباب کون حصی الجمار بقدر حصی الخذف (رقم-۳۱۳ - (۱۲۹۹)

(٢) په جمره (شیطان) د ورو کانړو د ویشتلو طریقه په ځو طریقو سره منقول ده خو زیاته آسانه او صحیح طریقه دا ده چې وړه کانړی دی د شهادت په ګوته او د متې ګوتی په سرونو نیولو سره وویشتل شی او اوس معمول هم داسی دی.

**تسهیلات: قوله:** الْخَذْفِ:

**دخذف څخه مراد:** دا هغه وړوکی کاڼړی ته وائی کوم چه په دوو ګوتو کښې سړی نیسی او اولي داد چنړې د دانې نه لړشان لوئی وی. ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی د لوبیا د دانې برابر یا د کهجوری د هډوکی برابریاچه د ګوتې د بند برابر وی نه دې نه لوئی وی اونه وړوکې

**د رمی جمرات ویشتلو آسانه طریقه:** د دې حدیث نه معلومه شوه چه د وړوکو کاڼړو استعمال مسنون دې نن صباخلق چپړې اوڅپلئی وغیره باندې ویشتل کوی دا غلط دی یا لوئی کاڼړی اوولی داهم غلط دی په کوم سره چه د چا د سرماتیدو خطره وی د کاڼړو ویشتلو راجح او آسانه طریقه داده چه په غټه ګوته اود شهادت په ګوته کښې اونیسی اولی اودا دعا دې لولی "بسم الله الله اکبر رضی للرحمان وترغیما للشیطان".

**[۲٦۲۰] د رمی جمار وخت**

۲٦۲۰-[۳] ()[۱] وَعَنْهُ قَالَ: "«رَمَى رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- الْجَمْرَةَ يَوْمَ النَّحْرِ ضُحًى،[۲] وَأَمَّا بَعْدَ ذَلِكَ، فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] جابر رضی الله عنه وایي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د قربانی په ورځ د څاښت په وخت (یعنې: زوا ل څخه مخکې) په څلې کاڼړي وویشتلی،[۲] او په ورروسته ورځو کې یې د زوال څخه روسته کاڼړي وویشتلی، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ⓵ضُحًى: د څاښت وخت (د نمر راختلو نه واخله تر د زوال پورې).

**تسهیلات: قوله:** ضُحًى:

**د رمی جمرات وختونه:** د چاښت وخت د سحرد راختونه واخله د نمرد زوال نه لږ وخت مخکښې پورې وی. د زوال نه مخکښې کاڼړی ویشتل صرف په لسم د ذوالحجه د ورځې جائز دی او په نورو ورځوکښې جائز نه دی. اوکه څوك په دیارلسم ذوالحجه د شپې وخت مکې ته واپس نه شو اوطلوع فجر په منٰی کښې اوشو نو اوس په هغه باندې د دیارلسم تاریخ رمی واجب کیږی مګر په دې کښې دا رعایت دې چه د زوال نه مخکښې رمی کول جائز دی

**په ټولو وختونوکښې د رمی د جواز فتوی:** په کال ۲۰۰۵ء کښې د سعودی عرب دحکومت علماؤ د رمی جمرات د وختونو باره کښې یو اجتهادی حکم په وجه د مجبورئی جاری کړې دې چه کوم سړې کوم وخت هم رمی جمارکولې شی هغه دې کوی که هغه مخکښې د زوال نه وی یا روستود زوال نه وی یا د شپې. زه وایم دا ډیره ښه فیصله ده. د کاڼړی په ستن پورې لګیدل ضروری نه دی بلکه پورته په پل باندې چه کوم تنور شان جوړشوې دې هغې ته رسول ضروری دی. که چرې یوسړې یوډك موټی کاڼړی ستنې سره کیږدی نودې اعتبار نشته دې.

[۱] اخرجه البخاری فی صحیحه ۵۷۹/۳ تعلیقا ومسلم فی کتاب الحج /باب بیان وقت استحباب الرمی (رقم-۳۱٤ - (۱۲۹۹))

## [۲٦۲۱] دَرمي جمار په وخت تكبير

۲٦۲۰-[٤] (١) ① «وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ② أَنَّهُ انْتَهَى إِلَى الْجَمْرَةِ الْكُبْرَى، فَجَعَلَ الْبَيْتَ عَنْ يَسَارِهِ، وَمِنًى عَنْ يَمِينِهِ، ③ وَرَمَى بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ يُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ، ④ ثُمَّ قَالَ: هَكَذَا رَمَى الَّذِي أُنْزِلَتْ عَلَيْهِ سُورَةُ الْبَقَرَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه په باره کې منقول دي، ② چې هغه د رمي د پاره جمره کبرئ (يعني جمرة عقبه) ته ورسيدي، نو داسې ودريدلو، چې خانه کعبه يې خپل ښې طرف ته کړه او منئ يې چپ طرف ته، ③ او بيا هغه اووه کاڼي داسې وويشتل، چې د هر کاڼي د ويشتلو په وخت يې تکبير ويلې ④ بيا هغه وفرمايل چې دغه شان هغه ذات گرامي (يعني نبي کريم ﷺ) کاڼي ويشتلي دي چې په هغه سورة بقره نازل شوي دي، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① حَصَيَاتٍ: دَ حصاة جمع ده گيټکوټه وائي.

**تشريحات: قوله: يُكَبِّرُ:**

**درمي جمرات په وخت مسنون ذکر:** دَ رمي جمار په وخت کوم يوذکرالله يا تکبير وي هغه جائز دي. علماؤ مختلف الفاظ ليکلي دي. په عام توګه باندې هم هغه کلمات ليکلي شوي کوم چه پورته ذکر دي. يعنې "بسم الله الله اکبر رضاً للرحمان وترغيماً للشيطان" په دې حديث سره اووه کاڼړي په يوستن باندې ويشتل ثابت شو اونن صبا هم په دې باندې عمل کيږي.

**درمي جمرات کيفيت:** په دې حديث کښې دَ نبي کريم ﷺ دَ اودريدو دَ ځائي نقشه پيش کړې شوې ده يعنې چه کله بيت الله گس طرف ته وي اومنئ اکثرحصه اومزدلفه ښي طرف ته وي او دَجمره طرف ته مخ وي هم په هغه ځائي باندې حضورپاك اودريدوسره کاڼړي اوويشتل (البقرة). چونکه دَحج مسائل او فضائل زيات تر سورت بقره کښې ذکر دي په دې وجه ابن مسعود رضي الله عنه دَ سورت بقره نوم واخستو گنې پوره قرآن په حضورپاك باندې نازل شوې دي.

## [۲٦۲۲] په هره يوه جمرة باندې اووه کاڼړي ويشتل واجب دي

۲٦۲۱-[٥] (١) ① وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ② «الِاسْتِجْمَارُ تَوٌّ، وَرَمْيُ الْجِمَارِ تَوٌّ، وَالسَّعْيُ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ تَوٌّ، وَالطَّوَافُ تَوٌّ، ③ وَإِذَا اسْتَجْمَرَ أَحَدُكُمْ فَلْيَسْتَجْمِرْ بِتَوٍّ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

[1] اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب من رمى جمرة العقبة فجعل البيت عن يساره (رقم-١٧٤٩) ومسلم في كتاب الحج /باب رمي جمرة العقبة من بطن الوادي وتكون مكة عن يساره ويكبر مع كل حصاة (رقم-٣٠٥ - (١٢٩٦) وابوداود في كتاب المناسك باب في رمي الجمار (رقم-١٩٧٤) والترمذي في كتاب الحج عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء كيف ترمى الجمار(رقم-٩٠١) والنسائي في كتاب مناسك الحج/باب: المكان الذي ترمى منه جمرة العقبة (رقم-٣٠٧٢) وابن ماجة في كتاب المناسك/باب من اين ترمى جمرة العقبة (رقم-٣٠٣٠) واحمد في المسند: ٤٥٨/١

[1] اخرجه مسلم في كتاب الحج /باب بيان ان حصى الجمار سبع (رقم-٣١٥ - (١٣٠٠)

**ترجمه** ① جابر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② استنجاء تاك [طاق] ده (يعني د استنجاء د پاره دري لوټي اخستل پكار دي) ګټي ويشتل تاك دی (يعني اووه ګټی ويشتل پكار دي) د صفاء او مروه په منځ كې سعي تاك ده (يعني د دې دواړو په منځ كې اووه خله چكر وهل پكار دی) د خانه كعبې شاوخوا طواف تاك دي (يعني د اوو چكرو يو طواف دي) ③ او كه په تاسو كې څوك د ګربتې دود اخستل غواړي، نو هغه ته پكار دی چې تاك (يعني دري يا پنځه يا اووه خله) واخلي، يعنى خوشبو هم تاك لګول پكار دی، مسلم

**حل اللغات:** ① الِاسْتِجْمَارُ: أَيْ: الِاسْتِنْجَاءُ بِالْأَحْجَارِ: په كاڼو لوټو سره استنجاء كول. ② تَوٌّ: دالفظ دَ طاق او وتر په معنى كښې دي، مثلا يو، دري، پنځه وغيره.

**تسهيلات:** **قوله:** الِاسْتِجْمَارُ:

**داستجمار د لفظ اطلاقات:** دَاستجمار لفظ په مختلفوڅيزونو باندې وئيلې شي په دې حديث كښې دَ دغه څيزونو ذكر دې. مثلاً دَ استنجاء دَ لوټو دَ استعمال دَپاره دالفظ دلته راغلې دې اودكاڼړو ويشتلودَپاره هم دا لفظ دلته راغلې دې. سره دَدې چه دلته په دې كښې استجمارنشته دې مګر څيز هم يودې. دغه شان دَ لوګی دَاخستلو دَپاره دا لفظ استجمار راغلې دې په انګيټئی كښې چه كله عود اچولې شی او خوشبوسره لوګې اوچتيږی اوبو سړې دغه لوګې دَ خوشبوئی حاصلولودَپاره اخلی نودې ته هم استجماروائی.

**قوله:** تَوٌّ:

**د تاق عدد الفضليت:** په دې حديث كښې اوخودلې شوچه دَ استنجاء لوټې درې استعمالول پكاردی چه طاق دی. رمی جمار طاق دې كوم چه اووه كاڼړی دی. دَ صفامروه په مينځ كښې دَ سعی چكرې اووه دی كوم چه طاق دی. دَ طواف چكرې اووه دی كوم چه طاق دی دغه شان لوګې اخستل طاق دی چه درې خل وی يا پنځه خل يا اووه خل وی دَ خلقو په مزاج باندې منحصر ده.

## الْفَصْلُ الثَّانِي

### [٢٦٢٢] په سورلئی باندې رمی جمار

٢٦٢٣—[٦] (١) ① عَنْ قُدَامَةَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمَّارٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: «رَأَيْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَرْمِي الْجَمْرَةَ يَوْمَ النَّحْرِ عَلَى نَاقَةٍ صَهْبَاءَ، ② لَيْسَ ضَرْبٌ، وَلَا طَرْدٌ، وَلَيْسَ قِيلُ: إِلَيْكَ إِلَيْكَ» رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ، وَالتِّرْمِذِيُّ، النَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

(١) اخرجه الترمذى فى كتاب الحج عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية طرد الناس عند رمي الجمار(رقم-٩٠٣) والنسائى فى كتاب الجهاد/باب: وجوب الجهاد (رقم-٣٠٩٢) وابن ماجة فى كتاب المناسك/باب رمي الجمار راكبا (رقم-٣٠٣٥) واحمد فى المسند: ٤١٢/٣

**ترجمه:**[١] قدامه بن عبدالله ابن عمار ﷺ وايي چې ما د قرباني په ورځ نبي کريم ﷺ وليدلو، چې نبي کريم ﷺ په خپلې اوښې صهباء باندې سور (په جمره عقبه) يې ګټې ويشتل،[٢] نه هلته وهل وه، نه شړل او نه د لرې او دورې شي آوازونه وو، شافعي، ترمذي، نسائي، ابن ماجه، دارمي.

**حل اللغات:** ① صَهْبَاءَ: دا د نبي عليه السلام د يوې اوښې نوم دی، وَهِيَ: الَّتِي يُخَالِطُ بَيَاضَهَا حُمْرَةٌ: صهباء هغې اوښې ته وائي چه سور سپينګ رنګ باندې مشتمل وي. ② ضَرْبٌ: أَيْ: مَنْعٌ: وهل، منع کول. ③ لَاطَرْدُ: دَفْعٌ بِالْعُنْفِ: په نرمئ سره شړل، اخوا کول. ④ لَيْسَ قِيلَ: نه پکښې دا خبره وه چه: ⑤ إِلَيْكَ إِلَيْكَ: اخوا شئ، لرې شئ يعنى لاره پريږدئ.

**تسهيلات:**

**قوله:** ضَرْبٌ، وَلَاطَرْدٌ:

**د ضرب او طرد وضاحت:** دَ اميرانو اوبادشاهانو دَ سورلئى مخکښې نقيب اوچوب دار دَ لارې صفا کولو دَپاره ځى اوخلق دَ لارې نه دَ اخوا کولودَپاره وهى اوهغوى پرده کوى هم دې ته ضرب وطرد وائى. دا خلق په خله باندې چغې صورې وهى چه اخوا شئى لرې شئى مهمان خصوصى راروان دې لاره پريږدئى. حضورپاك سره به داسې معامله نه وه عاجزى به وه او تواضع او ډيره اوچته نقشه به وه.

**[٢٦٢٤] سعي اورمي د ذکر الله ذريعه**

٢٦٢٤-[٧] ()[١] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ:[٢] "«إِنَّمَا جُعِلَ رَمْيُ الْجِمَارِ وَالسَّعْيُ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ لِإِقَامَةِ ذِكْرِ اللَّهِ» ".[٣] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:**[١] بي بي عائشه ﷺ د نبي کريم ﷺ څخه نقل کوي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل [٢] په ځلو ګټې ويشتل او د صفاء او مروه په منځ کې چکر لګول د ذکر الله د قيام د پاره دی، [٣] ترمذي، دارمي، امام ترمذي فرمايلي دی چې دا حديث حسن صحيح دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** لِإِقَامَةِ ذِكْرِ اللهِ

**سعى او جمراتو ويشتلو ته د عبادت وئيلو وجه:** د صفا و مروه په منځ کښې سعى کول او جمرات باندې کانړى ويشتل په ظاهر کښې عبادت نه ښکارى په دې وجه نبى عليه السلام اوفرمائيل چه دا کار هم د الله عبادت د پاره کولې شى.

() اخرجه ابوداود فى كتاب المناسك /باب فى الرمل (رقم-١٨٨٨) والترمذى فى كتاب الحج عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء كيف ترمى الجمار(رقم-٩٠٢)وأحمدفى المسند:

**[٢٦٢٥] مِنٰی کښې دَ چاډپاره ځائی متعین کول جائز نه دی**

٢٦٣٥-[٨] ()١ وَعَنْهَا قَالَتْ: «قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، أَلَا نَبْنِي لَكَ بِنَاءً يُظِلُّكَ بِمِنًى؟ ٢ قَالَ: "لَا، مِنًى مُنَاخُ مَنْ سَبَقَ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** ١ بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې مونږ عرض وکړ چې يا رسول الله! ﷺ آيا مونږ ستاسو د پاره په منٰی کې څه داسې عمارت جوړ نه کړو چې ستا د پاره د سايې ځای وي. ٢ نبی کريم ﷺ وفرمايل چې يا، منٰی د هغه سړي د اوښ د چوکيدلو (کيناستلو) ځای دی، چې مخکې ورسيږي، ترمذي، ابن ماجه، دارمي.

**حل اللغات:** ① أَلَانَبْنِي: د متکلم صيغه ده، آيا جوړنه کړو مونږ، ② بِنَاءً: عمارت، کور. ③ يُظِلُّكَ: چه سورې اوکړي په تاسو باندې، ④ مُنَاخُ: أَيْ: مَوْضِعُ الْإِنَاخَةِ: د اوښ کيناستلو، چوکيدلو ځائې

**تسهيلات: قوله: مِنًى مُنَاخُ:**

**په منی کښې د تخصيص مقام ممانعت:** دَ اوښ کينولو ځائی ته وائی دلته صرف سکونت او قيام مراد دې يعنی په منٰی کښې دَ يوسړی دَ پاره څه خاص ځائی نه دی جوړول پکار ځکه چه په منٰی باندې دَهغه سړی حق دې څوك چه مخکښې هلته اورسی. صحابه کرامو غوښتل چه دَ خيمې په ځائی يومختصر شان مکان اوعمارت وی چرته چه حضورپاك آرام اوکړی. رسول الله ﷺ په دې وجه منع اوفرمائيله چه راتلونکی وخت کښې به دا دليل جوړوی او ټوله منٰی به په آبادئی باندې راګيره کړی.

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٢٦٢٦] په جمراتوباندې وقوف**

٢٦٣٦-[٩] (١)١ عَنْ نَافِعٍ قَالَ: إِنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يَقِفُ عِنْدَ الْجَمْرَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ وُقُوفًا طَوِيلًا ٢ يُكَبِّرُ اللّٰهَ، وَيُسَبِّحُهُ، وَيَحْمَدُهُ، وَيَدْعُو اللّٰهَ، ٣ وَلَا يَقِفُ عِنْدَ جَمْرَةِ الْعَقَبَةِ. رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه** ١ نافع وايي چې ابن عمر رضي الله عنهما به مخکني دواړو ځلوته نژدې تر ډېر وخته ودريدلی ٢ او هلته به د الله جل جلاله په تکبير، د الله جل جلاله په تسبيح او د الله جل جلاله په تحميد کې مشغول وو او (لاس اوچتولو سره) د الله جل جلاله څخه به يي دعا غوښتله ٣ او د جمرهٔ عقبه سره به نه ودريدلی، مالك.

(١) اخرجه المالک فی الموطا فی کتاب الحج /باب رمی الجمار(رقم-٢١٢) واحمد فی المسند:٦/١٣٩
(٢) اخرجه مالک فی الموطا رقم الحديث ٢١٢ من کتاب الحج

**تنظيمات:**

**قوله:** يَقِفُ عِنْدَ الْجَمْرَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ وُقُوفًا طَوِيلًا:

**په يولسم دولسم او ديارلسم تاريخ د رمى جمراتو ترتيب:** په دې روايت كښې دَ يولسم دولسم اوديارلسم تاريخ دَ رمى جمرات ترتيب خودلې شوې دې ګنى په لسم ذوالحجه باندې صرف دَ جمره عقبه رمى كيږى. بهرحال جمره اولى نه پس دَ دعادَ پاره لږشان وخت اودريدل مسنون دى. بيا دَ وسطى نه پس هم مسنون دى البته جمره عقبه نه پس قيام نشته دې. سره دَدې چه دعا په هرمقام باندې كيږى تفصيل وړاندې تيرشوې دې.

# [٧]بَابُ الْهَدْيِ

## دَ هدى بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية عشر حديثاً مشتملة على عشر مسائل:**

① إشعار الهدي وتقليدها: ١، ٢، ٥، ٦-

② ذبح الهدي عن الغير: ٣، ٤-

③ الركوب على الهدي للضرورة: ٧، ٨-

④ ما يصنع بالهدى وقت العطب: ٩، ١٥-

⑤ جواز الهدى عن سبعة نفر: ١٠-

⑥ كيفية نحر الهدي: ١١-

⑦ عدم إعطاء أجر الجزار من الهدي: ١٣-

⑧ جواز الأكل عن لحوم الهدي والأضحية: ١١، ١٧، ١٨-

⑨ ما يهدى من الحيوانات: ١، ٢، ١٤-

⑩ الإذن في الأكل من الهدي: ١٦-

قال الله تعالى ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحِلُّوا شَعَائِرَ اللَّهِ وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَلَا الْهَدْيَ وَلَا الْقَلَائِدَ ﴾ (سورت مائده الايه:٢.

**قوله:** وَلَا الْهَدْيَ:

**د لفظ هدى وضاحت:** په ها باندې فتحه اودال ساكن دې. داهغه ځناورته وائى چه دَ ثواب دَپاره په حرم شريف كښې ذبح كولې شى. په دې كښې چيلئى ګډه ګډ، غوا ميخه او اوښ ټول جائزدى. البته په دې ځناوروكښې دَ صحت دَپاره هم هغه شرائط دى كوم چه دَ قربانئى

شرائط دی دَ هدی دوه قسمونه دی: ① واجب ② نفل. بيا دَ هدی واجب مختلف قسمونه دی. ① هدی قران ② هدی تمتع ③ هدی جنايات ④ هدی نذر ⑤ هدی احصار.

**د الهدی وجه تسميه**: بيا دَ هدی وجه تسميه داده چه بنده دَ خپل رب په دربار کښې دَقربانئی هديه ليګی لغت کښې دَهديه ليګلو په معنی کښې هم راځی اودَ هديه په معنی کښې هم راځی. په بعضې جناياتو باندې دَ بدنه قربانی ضروری کيږی بدنه اوښ او غواڈ پاره وئيلې کيږی. دې نه علاوه په عام جناياتو کښې دَ هدی قربانی وی اوهدی ګډه چيلئی او ګډ دپاره وئيلې کيږی تفصيل راروان دې.

**هدی او اضحيه کښې فرق**: هدی مکان سره مخصوص ده دَ زمان قيدنشته دې او اضحيه زمان سره مخصوص ده دَ مکان څه قيدنشته دې.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۲٦۲۷]اشعارکول او دغاړه کښې اچولوحکم

٢٦٢٧-[١] ()[١] عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: "«صَلَّى رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الظُّهْرَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ، [٢] ثُمَّ دَعَا بِنَاقَتِهِ، فَأَشْعَرَهَا فِي صَفْحَةِ سَنَامِهَا الْأَيْمَنِ، وَسَلَتَ الدَّمَ عَنْهَا، وَقَلَّدَهَا نَعْلَيْنِ، [٣] ثُمَّ رَكِبَ رَاحِلَتَهُ، فَلَمَّا اسْتَوَتْ بِهِ عَلَى الْبَيْدَاءِ أَهَلَّ بِالْحَجِّ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [١] ابن عباس ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ (د حج په سفر کې) ذو الحليفه ته رسيدو سره د ماسپخين مونځ وکړي، [٢] او خپله اوښه (چې د قربانی د پاره وه) هغه يې طلب کړه او د هغې اوښې د بوک ښی اړخ يې زخمي کړي، او د هغې وينه وچولو سره د هغې په څټ کې د دوو چپلو هار واچولی، [٣] او د دې څخه روسته د خپلې (سوارلی) په اوښه (چې د هغه نوم قصواء وه) سور شو، او کوم وخت چې په مقام بيداء باندې اوښه نبی کريم ﷺ آخستو سره ودريدله، نو نبی کريم ﷺ دحج د پاره لبيك وويلی، مسلم.

**حل اللغات**: ① فَأَشْعَرَهَا: أَيْ: طَعَنَهَا: په نيزه ئې اووهله يعنی زخمی ئې کړه، ② صَفْحَةِ: حصه اړخ ③ سَنَامِهَا: قوب د اوښ، ④ سَلَتَ: أَيْ: مَسَحَ: اوچه ئې کړه (يعنی وينه ئې ترې صفا کړه). ⑤ قَلَّدَهَا: په غاړه کښې ئې ورته رازوړند کړل ⑥ نَعْلَيْنِ: د نعل تثنيه ده، دوه چپلې، ⑦ اسْتَوَتْ: اودريدله، ⑧ الْبَيْدَاءُ: په ذو الحليفه کښې د يو ځائې نوم دې. ⑨ أَهَلَّ: أَيْ رَفَعَ صَوْتَهُ بِالتَّلْبِيَةِ: په اوچت آواز ئې تلبيه شروع کړه.

[١]) اخرجه مسلم فی کتاب الحج /باب تقليد الهدي وإشعاره عند الإحرام (رقم-٢٠٥ - (١٢٤٣) وابوداود فی کتاب المناسک ، باب في الإشعار (رقم-١٧٥٢) والنسائی فی کتاب مناسک الحج/باب سلت الدم عن البدن (رقم-٢٧٧٤) واحمد فی المسند: ١/٢١٦

تسهیلات: **قوله**: فَأَشْعَرَهَا:

د **اشعار تعریف**: حرم شریف ته د بوتلونکی څاروی د قب یوطرف ته په نیزه وغیره سره وهل او زخمي کولوسره رنګین کولونوم اشعار دي. اودغه څاروی په غاړه کښې د څرمن ټکړه تړل یاد څپلو او هډوکو غاړه کنی ته قلاده وائی. په عربو کښې د جاهلیت د زمانې داورواج وو په دې عمل سره به په څاروی کښې یوه نښه اوعلامت جوړیدو چه دا د هدی خناور دې. د عربوټولو قبانلو به د هغې احترام کولو او د هغې د حفاظت خیال به ئې کولو او هیڅ قسم کار به ئې ورسره نه لرلو. اسلام دغه طریقه په ځائې اوساتله دې د پاره چه د بیت الله طرف ته د شړلې شوو هدایا حفاظت په ځائی پاتې شی. تردې خود چاهم اختلاف نښته دې او په غاړه کنې اچولو کښې هم د چا اختلاف نشته البته په اشعار کښې د فقهاؤ اختلاف دې.

**قوله**: دَعَا بِنَاقَتِهِ، فَأَشْعَرَهَا:

**د شعار لغوی او اصطلاحی معنی**: په لغت کښې اشعار د علامت لګولو په معنی راځی، په اصطلاح کښې د اشعار معنی اوښ یا اوښه په قب کښې زخمي کولو ته وائی چه معلومه شی چه دا د قربانئ څاروې دې

**د اشعار په حکم کښې مذاهب** :

① د دې اشعار متعلق اختلاف دې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د جمهور سلف او خلف په نزد دا اشعار سنت دې.

② امام ابوحنیفه او ابراهیم نخعی رحمهما الله فرمائی چه اشعار مکروه دې

**د اشعار د مسنونیت دلائل**: ① حدیث ابن عباس ﴿صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الظُّهْرَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ، ثُمَّ دَعَا بِنَاقَتِهِ، فَأَشْعَرَهَا فِي صَفْحَةِ سَنَامِهَا الْأَيْمَنِ، وَسَلَّتَ الدَّمَ عَنْهَا (ای ازاله والصلع القطع) الحديث رواه مسلم،

② عن عائشة قالت فتلت قلائد بدن النبی ﷺ بیدی ثم قلدها واشعرها﴾

**د اشعار د کراهت دلیل**: امام ابوحنیفه وغیره ځکه اشعار ته مکروه وائی چه دا مثله ده.

﴿وروی عن عمران بن حصین ان النبی ﷺ قام خطیبا الانهانا عن المثلة﴾

**استدلال**: کله چې د اشعار متعلق د سنت او مثله کیدو ترمینځه تعارض شو نو د اصولو په قاعده باندې حرمت لره ترجیح وی.

**دامام ابوحنیفه په نیز د اشعار د کراهت وجه**: اعلم الناس بمذاهب الفقهاء خاص کر اعلم بمذهب ابی حنیفه، امام طحاوی رحمه الله هم دغه شان شیخ ابو منصور ماتریدی فرمائی چه د امام ابوحنیفه رحمه الله د نفس اشعار او د هغې د سنتیت منکر نه دې.

① اصل کښې خبره داده چه د امام ابوحنیفه رحمه الله د زمانې خلقو چونکه په اشعار کښې مبالغه

کوله تردې چه د زخم د ګرمۍ د وجې نه به د حجاز د ګرمۍ د وجې نه د اوبن د هلاکت وېره
راتله په دې وجه عوام کوم چه د حد اشعار نه ناخبر وو د هغوی د وجې نه د سد باب دپاره د
کراهیت حکم اوکړې شو خو کوم خلق چه د حد اشعار نه خبر وو چه صرف څرمن به پرې
کولې شی نه غوښه، اوس چه هر کله ثابته شوه چه امام ابوحنیفه د اشعار منکر نه دې نو
په امام الهمام باندې دا اعتراض بې بنیاده دې چه هغه د سنیت اشعار منکر دې.

② امام محمد رحمه الله خپل کتاب کښې دَ اشعار متعلق احادیث او اثار نقل کولونه پس
فرمائیلی دی "وبهذا ناخذ التقلید افضل من الاشعار والاشعار حسن" په دې عبارت کښې امام
محمد رحمه الله دَ احنافو اتفاقی مسلك نقل کړې دې. که امام ابوحنیفه رحمه الله دَ اشعار منکر وې
نو امام محمد رحمه الله به دَهغې ذکرضرور فرمائیلو ځکه چه دَهغوی عادت او دَ کتاب طرز هم
دغه دې چه هغوی دَ خپل مینځ اختلاف ضرور بیانوی. معلومه شوه چه مطلق اشعار دَ
امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز جائزبلکه حسن دې.

③ امام ابوحنیفه رحمه الله دَتقلید په مقابله کښې اشعار ته ترجیح ورکول اودا غوره ګنړلو ته
مکروه وئیلی دی ځکه چه تقلید دَټولوائمه حضراتو په نیز دَاشعار نه افضل دې.

**[٢٦٢٨] په چیلو کښې قلاده وی**

٢٦٣٨ - [٢] (١) ① وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ ② «أَهْدَى النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مَرَّةً إِلَى الْبَيْتِ غَنَمًا، فَقَلَّدَهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① د مؤمنانو مور بي بي عائشه رضی الله عنها فرمايي ② چې نبی کريم صلی الله علیه وسلم (یو ځل) بزې (چیلۍ) د هَدي په طور خانه کعبې ته ولیږلی او د هغوئ په څټ کې یې هار واچولی، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① أَهْدَى: د هدی په طور ئې اولیږل. ② غَنَمًا: بزې، چیلۍ، ③ فَقَلَّدَهَا: غاړکئ ئې ورته واچولې

**تسهیلات: قوله:** فَقَلَّدَهَا:

**د تقلید تعریف:** تقلید یعنی قلادة اچول، د دې سره نعل یا څرمن معلق کول مراد دی چه د هدی کیدو علامت شی

**په تقلیدغنم کښې مذاهب:**

① د امام شافعی او د امام احمد په نیزګډ یا ګډې ته غاړکۍ اچول مستحب دی.

② امام ابو حنیفه او امام مالک د تقلید غنم قائل نه دی.

(١) اخرجه مسلم فی الحج /باب استحباب بعث الهدى إلى الحرم لمن لا يريد الذهاب بنفسه واستحباب تقليده وفتل القلائد وأن باعثه لا يصير محرما ولا يحرم عليه شيء بذلك (رقم -(رقم-٣٦٧- (١٣٢١)

**اول فریق اول دلیل:**

① را روان حدیث ((عن عائشة قالت فتلت قلائد بدنة النبي ....الخ))د دوی مستدل دی.

**اول فریق دویم دلیل:** د حضرت عائشې رضی ا لله عنها روایت ((کنت أفتل قلائد هدي رسول الله غنما))د دوی مستدل دی.

**دویم فریق دلیل:** ((وَلَا الْهَدْيَ وَلَا الْقَلَآئِدَ))د دوی مستدل دی. هغه داسې چې دې کښې عطف د مغایرت تقاضا کوی چونکه هدي دوه قسمه ده یو قابل تقلید او بل غیر قابل تقلید او غنم غیر قابل تقلید دی.

**اول فریق د اول او دویم دلیل دوه جوابونه:**

① د حضرت عائشه رضي الله په روایت کښې د تقلید ابل یا د تقلید بدنه ذکر دي په حدیث الباب کښې اسود متفرد دي لهذا دا شاذ دي.

② علامه انور شاه کشمیری صاحب فرمائی چه تقلید دوه قسمه دي تقلید بالنعال او تقلید بالخیط المفتول د فقه په کتابونو کښې نفی د قسم اول مراد ده او په حدیث الباب کښې اثبات د قسم ثانی دي.

**[٢٦٢٩] دَبل دَطرف نه دَقربانئ مسئله**

٢٦٣٠-[٣]()① وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ،قَالَ: ②«ذَبَحَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-عَنْ عَائِشَةَ بَقَرَةً يَوْمَ النَّحْرِ».رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① حضرت جابر ﷛ وايي ② چې نبی کریم ﷺ د قربانۍ په ورځ د بي بي عائشې ﷝ د طرف څخه یوه غوا ذبح کړه، مسلم.

**تسهیلات:**

**قوله: عَنْ عَائِشَةَ بَقَرَةً:**

**د شوافعو مستدل:** دا حدیث به د شوافع د مذهب مطابق داسې وی چه عائشې ﷝ ته چه کله په مقام سرف کښې حیض راغلو نو عمره ئې ترک نه کړه بلکه افعال عمره ئې په افعال حج کښې داخل کړل او عائشه ﷝ قارنة شوه په دې وجه د حج د فراغت نه پس رسول الله ﷺ د هغې د طرف نه د دم شکریه په طور غوا ذبح کړه.

**د دې مستدل څخه جواب:** د احنافو وینا دا ده چه د احادیث نه ثابت دی چه د رسول الله ﷺ تولې بیبیانې د عائشې ﷝ نه علاوه متمتعه وې، عائشې ﷝ صرف د عمرې احرام تړلې وو، په مقام سرف کښې چه په هغې باندې حیض راغلو نو رسول الله ﷺ ورته د ترک عمره او د احرام بالحج المفرد حکم ورکړو. اوس عائشه ﷝ مفرده جوړه شوه. د حج د

¹ اخرجه مسلم فی کتاب الحج /باب الاشتراک فی الهدي وإجزاء البقرة والبدنة کل منهما عن سبعة (رقم-٣٥٧ - (١٣١٩)

فراغت نه پس عبدالرحمن بن ابی بکر ﷺ ته حکم ورکولو سره په هغې باندې عمره هم اوکړې شوه نو دا عمره د هغه عمرې متروکې قضاء ده
رسول الله ﷺ چه د عائشې ﷺ د طرف نه غوا ذبح کړه هغه د ترک عمره د جنایت دم وو او د عائشې ﷺ نه علاوه چه کومې نورې بيبيانې متمتعه وې په هغوی باندې د تمتع دم واجبْ وو پس رسول الله ﷺ د هر يو د طرف نه يو يو څاروې ذبح کړو. كمَا روى النسائي عن عائشة قالت ذبح عنا النبي ﷺ يوم حجنا بقرة بقرة.

**[٢٦٢٠] د نبی کریم ﷺ د خپلو بیبیانو د طرف څخه قربانی**

٢٦٣٠-(١) وَعَنْهُ، قَالَ: «نَحَرَ النَّبِيُّ عَنْ نِسَائِهِ بَقَرَةً فِي حَجَّتِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: د جابر ﷺ څخه روایت دی چې نبی کریم ﷺ د حجة الوداع په موقع د خپلو بیبیانو مبارکو د طرف څخه یوه غوا ذبح کړه، مسلم.

**تسهیلات: قوله**: عَنْ نِسَائِهِ:

**په غوا کښې داووه کسانوڅخه د زیاتو په شراکت کښې مذاهب**:

ښکاره هم دغه ده چه حضورپاك دَ ازواج مطهرات دَ اجازت نه پس دَهغوی دَ طرفه قربانی کړې وی خکه چه دَ ژوندی سړی اجازت دَ قربانئی دَپاره ضروری دې.

① دامام مالك ﷺ فرمائی چه که یوه کورنئی وی نودَ پوره کورنئی دَطرف نه یوه قربانی کافی کیږی.

② دَ ائمه ثلاثه په نیز یوه غوا یا یواوښ یا یوه میخه کښې صرف اووه کسان شریکیدوسره قربانی کولې شی زیات نه شی کولې. البته

**داول فریق دلیل**: په ظاهره دا حدیث الباب دَدوی دلیل دې

**دفریق اول د دلیل جواب**: دادلیل یقینی نه دې خکه چه ممکن دی چه دَ اووه ازواج مطهرات دَ طرفه دا قربانی شوې وی.

**[٢٦٣١] صرف دَهدایا څناور لیږلوسره محرم کیږی نه**

٢٦٣١-[٥] (٢) ① وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: ② «فَتَلْتُ قَلَائِدَ بُدْنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِيَدَيَّ، ③ ثُمَّ قَلَّدَهَا، وَأَشْعَرَهَا، وَأَهْدَاهَا، ④ فَمَا حَرُمَ عَلَيْهِ شَيْءٌ كَانَ أُحِلَّ لَهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① بی بی عائشه ﷺ فرمایی ② چې ما د نبی کریم ﷺ د اوښانو د پاره په خپلو

---

[1] اخرجه مسلم فی کتاب الحج /باب الاشتراک فی الهدی وإجزاء البقرة والبدنة کل منهما عن سبعة (رقم-٣٥٧ - (١٣١٩))

[2] اخرجه البخاری فی کتاب الحج /باب من أشعر وقلد بذی الحليفة ثم أحرم (رقم-١٦٩٦) ومسلم فی کتاب الحج /باب استحباب بعث الهدی إلی الحرم لمن لا يريد الذهاب بنفسه واستحباب تقليده وفتل القلائد وأن باعثه لا يصير محرما ولا يحرم عليه شیء بذلک (رقم-(رقم-٣٦٩ - (١٣٢١))

اِمونو سره پتې جوړي کړي، [٣]او بيا د هغه اوښانو په څټ کې يې واچولي، او د هغوئ بوکونه، يې زخمي کړل، او بيا يې هغه بطور د هدي خانه کعبي ته وليږل (يعني په سنه٩هـ کې چې حج فرض شو، او حضرت ابوبکر صديق ﷺ د حاجيانو امير جوړولو سره مکي مکرمي ته وليږل شو، نو د هغه سره د نبي کريم ﷺ د طرف څخه بطور هدي اوښان وليږل شو)[٤]او د دې په وجه په نبي کريم ﷺ څه داسې شی حرام نشو، کوم چې د نبي کريم ﷺ د پاره حلال وو، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ①فَتَلْتُ: لاس باندې رسئ غړلو او جوړولو ته وائي. ②قَلَائِدَ: جمع د قِلَادَة ده، وَهِيَ مَا تُعَلَّقُ بِالْعُنُقِ: غاړکۍ ته وائي يعني غاړه کښې چه کوم څيز رازوړند کړې شي. ③بُدْنِ: د بَدَنَة جمع ده، وَهِيَ نَاقَةٌ، أَوْبَقَرَةٌ تُنْحَرُ بِمَكَّةَ: هغې قرباني ته وائي چه په مکه کښې قرباني کړې شي (د بدنه معنى ده څړبول دوى به هم دا څاروى د قربانئ د پاره څړبول نوځکه ورته بدنة وائي). ④أَشْعَرَهَا: أَيْ: طَعَنَهَا: په نيزه ئې اووهله يعنى زخمي ئې کړه، ⑤أَهْدَاهَا: د هدى په طور ئې اوليږل (هدى هغه قربانۍ ته وائي چه د قربانۍ د پاره مکې ته اوليږلې شي).

**تسهيلات: قوله:** فَمَا حُرِّمَ:

**د حضرت عائشه ﷺ د حضرت ابن عباس ﷺ په قول باندې رد کول:** يعنى حضورپاك پخپله په مدينه منوره کښې وو ليکن حضورپاك دَ هدايا څاروى دَ بيت الله شريف طرف ته روان کړل په دې سره حضورپاك محرم جوړنه شو ځکه چه صرف قلاده يا اشعار کولوسره سړې په احرام کښې نه داخليږى ترکومې پورې چه احرام تړلوسره دَنيت نه پس تلبيه اونه وائي. حضرت عائشه ﷺ دَدې حديث په بيانولو سره په حضرت ابن عباس ﷺ باندې رد کول غواړى چه فرمائي چه کوم سړى غاړکئي واچوله يائې اشعار اوکړو او څاروى ئې دَ مکې طرف ته روان کړل مګر پخپله په کورکښې وى نو په هغه باندې هغه ټول څيزونه حرام کيږى کوم چه په محرم باندې حرام کيږى.

**[٢٦٣٢] دوړى څخه د هدې څاروى دپاره غاړکى جوړول**

٢٦٣٢-[٦] (١)[١]وَعَنْهَا، قَالَتْ: «فَتَلْتُ قَلَائِدَهَا مِنْ عِهْنٍ كَانَ عِنْدِي،[٢]ثُمَّ بَعَثَ بِهَا مَعَ أَبِي». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[١]بي بي عائشه ﷺ فرمايي چې ما د هغه وړيوڅخه چې ما سره وې، پتې جوړې کړې او بيا هغه پتې مې د هغه اوښانو په څټ کې واچولې، [٢]بيا هغه يې په طور د هديې زمادپلار بزرګوار (حضرت ابوبکر صديق ﷺ) سره (خانه کعبي) ته وليږل، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ①عِهْنٍ: أَيْ: صُوفٍ مُلَوَّنٍ، أَوْمَصْبُوغٍ: رنګ شوې وړئ.

---

(١) اخرجه البخاري فى كتاب الحج /باب من قلد القلائد بيده (رقم-١٧٠٠) و مسلم فى كتاب الحج /باب استحباب بعث الهدي إلى الحرم لمن لا يريد الذهاب بنفسه واستحباب تقليده وفتل القلائد وأن باعثه لا يصير محرما ولا يحرم عليه شيء بذلك ٣٦٩ - (١٣٢١)

**تسهیلات:**

**قوله: ثُمَّ بَعَثَ بِهَا مَعَ أَبِي:**

## د هدی په ارسال د مرسل په محرم کیدو کښې مذاهب:

① امام ابن المنذر رحمه الله فرمائی چه د ابراهیم نخعی، عطاء، ابن سیرین رحمهم الله، ابن عباس، ابن عمر، عمر او علی رضی الله عنهم په نزد که یو سړې مکې مکرمې ته هدی لیږلو سره په خپل کور کښې مقیم وی نو په هغه باندې هغه ټول څیزونه حرامیږی کوم چه په محرم باندې حرام دی ② خود ائمه اربعه او ټولو فقهاء امصار، ابن مسعود، عائشه، انس، ابن الزبیر او نورو صحابه کرام او تابعین رضی الله عنهم په نزد په د هدی په ارسال سره هغه سړې نه محرم کیږی بلکه هغه به حلال وی.

**د محرم ګرځیدو دلیل:** مرسل محرم ځکه چه هدی لیږونکې د لیږونکی نائب دې چه هر کله په نائب باندې حرام دې نو په اصل باندې به هم هغه څیز حرام وی کوم چه په نائب باندې د احرام په حالت کښې حرام دې،

**د عدم محرم ګرځیدو دلیل:** في رواية عائشة قالت فَتَلْتُ قَلَائِدَهَا مِنْ عِهْنٍ كَانَ عِنْدِي، ثُمَّ بَعَثَ بِهَا مَعَ أَبِي». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، وفي رواية عن عائشة كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يُهْدِي مِنَ الْمَدِينَةِ فَأَفْتِلُ قَلَائِدَ هَدْيِهِ ثُمَّ لَا يَجْتَنِبُ شَيْئًا مِمَّا يَجْتَنِبُ الْمُحْرِمُ. رواه مسلم:

**[٢٦٢٣] دَ مجبورئی او ضرورت په وخت دَ هدی څاروی باندې سوریدل جائز دی**

٢٦٢٣-[٧] ()① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- رَأَى رَجُلًا يَسُوقُ بَدَنَةً،② فَقَالَ: "ارْكَبْهَا". فَقَالَ: إِنَّهَا بَدَنَةٌ③. قَالَ: "ارْكَبْهَا". فَقَالَ: إِنَّهَا بَدَنَةٌ④. قَالَ: "ارْكَبْهَا، وَيْلَكَ" فِي الثَّانِيَةِ، أَوِ الثَّالِثَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضی الله عنه وایي چې نبی کریم ﷺ یو سړی ولیدلی چې اوښ یې شړلی، ② نبی کریم ﷺ ورته وفرمایل چې په دي اوښ سور شه، هغه اوویل چې دا خو هدی ده زه په دي څرنګه سور شم، هغه دا ګڼله چې په هدیي سوریدل په هیڅ حال کې هم جائز نه دي، ③ نبی کریم ﷺ ورته بیا وفرمایل چې په دي سور شه، هغه هم دا بیا اوویل چې دا هدیي ده. ④ نبی کریم ﷺ ورته وفرمایل چې په دې سور شه په تا افسوس دی (چې زه تاته د سوریدو د پاره وایم، او ته د خپل طرف څخه عذر بیانوي) نبی کریم ﷺ دا خبره دوه یا دري ځله وفرمایله، بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① يَسُوقُ: شړلې ئې اوښې، ② وَيْلَكَ: افسوس دې په تا.

---

[1] اخرجه البخاري في كتاب الحج /باب ركوب البدن (رقم-١٦٨٩) ومسلم في كتاب الحج /باب جواز ركوب البدنة المهداة لمن احتاج إليها (رقم-٣٧١ - (١٣٢٢) وابوداود في كتاب المناسك، باب في ركوب البدن (رقم-١٧٦٠)

**تسهیلات:**

**قوله: ارْكَبْهَا، وَيْلَكَ:**

**په هدي باندې د سوريدو په حکم کښې مذاهب:**

د هدي په څاروی باندې د سوریدو متعلق هم اختلاف دې، ① ابن المنذر رحمه الله فرمائی چه د احمد او اسحاق په نزد کوم چه د عروه بن زبیر او اهل ظواهر رحمهم الله مذهب هم دې چه مطلق هدي که واجبی وی یا نافله په هر یو باندې سوریدل په هر صورت کښې جائز دی که هغه مضطر وی یا عاجز وی

② ابن عبدالبر د امام ابوحنیفه، شافعی، مالك او اکثر فقهاء رحمهم الله نه نقل کړی دی چه بغیر د ضرورت نه د هدی په څاروی باندې سوریدل مکروه دی، که ضرورت وی نو جائز دی.

**د جواز دليل: حديث ابي هريرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَأَى رَجُلًا يَسُوقُ بَدَنَةً، فَقَالَ: "ارْكَبْهَا". فَقَالَ: إِنَّهَا بَدَنَةٌ. قَالَ: "ارْكَبْهَا" الحديث متفق عليه، واخرج احمد من حديث علي انه سُئِلَ: يَرْكَبُ الرَّجُلُ هَدْيَهُ؟ فَقَالَ: لَا بَأْسَ بِهِ قَدْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمُرُّ بِالرِّجَالِ يَمْشُونَ فَيَأْمُرُهُمْ يَرْكَبُونَ هَدْيَهُ، هَدْيَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. اسناده صالح،**

**د عدم جواز دليل: حديث جابر مرفوعا اركبها بالمعروف اذا الجئت اليها، رواه مسلم، روى سعيد بن منصور من طريق ابراهيم النخعي قال يركبها اذا اعيا قدر ما يستريح على ظهرها»**

**[٢٦٣٤] كه ضرورت او مجبوري وی نو پر هدی سپریدل جائز دی که داسی نه وی نو نه دی جائز**

٢٦٣٣-[٨] (١) ① وَعَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ قَالَ: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - «سُئِلَ عَنْ رُكُوبِ الْهَدْيِ، ② فَقَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "ارْكَبْهَا بِالْمَعْرُوفِ إِذَا أُلْجِئْتَ إِلَيْهَا حَتَّى تَجِدَ ظَهْرًا"». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① ابو زبیر (تابعي) رحمه الله وايي چې ما واوریدل چې د جابر بن عبد الله رضي الله عنهما څخه په هديي د سوریدو په باره کې پوښتنه وشوه، ② نو هغه وفرمايل چې ما د نبی کریم ﷺ څخه اوریدلي دي چې تر څو تاته بله سوارلی حاصله نشي او ته په سوریدو مجبوره یي، نو په هغه هديي (د دی احتیاط) سره سور شه (چي هغه ته څه ضرر او تکلیف ونه رسیږي)، مسلم

**حل اللغات:** ① أُلْجِئْتَ: أَيْ: اضْطُرِرْتَ: چه ته مجبوره نې، ② ظَهْرًا: أَيْ: مَرْكُوبًا: شا يعني سورلی (څاروي چه په هغې باندې سورلی کیدلې شي).

(١) اخرجه مسلم في كتاب الحج /باب جواز ركوب البدنة المهداة لمن احتاج إليها (رقم-٣٧٥ - (١٣٢٤) وابوداود في كتاب المناسك. باب في ركوب البدن (رقم-١٧٦١) والنسائ في كتاب مناسك الحج /ركوب البدنة بالمعروف (رقم-٢٨٠٢)

**تسهیلات:**

**قوله:** اِرْكَبْهَا بِالْمَعْرُوفِ إِذَا أُلْجِئْتَ إِلَيْهَا حَتَّى تَجِدَ ظَهْرًا:

**د مجبورۍ په حالت کښې په هدی بانډې سوریدل:** ① که د سوریدلو په صورت کښې هدی ته څه ضرر نه رسیږي نو په هغې باندې سوریدل جائز دی،

② احنافو په نزد دا مسئله ده که ضرورت او مجبوري وي نو په هدی باندې سوریدلې شي ګنې نه شي، لهذا په کومو روایتونو کښې چه په هدی باندې د سوریدو مطلق طور باندې جواز ملاوېږي هغه روایتونه په ضرورت او مجبورۍ باندې محمول دي.

**[٢٦٢٥] که دَ قربانۍ څاروي په لارکښې مرګ ته نیزدې شي نوسرې به څه کوي؟**

٢٦٢٥-[٩] ()[١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ: «بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِسِتَّةَ عَشَرَ بَدَنَةً مَعَ رَجُلٍ، وَأَمَّرَهُ فِيهَا. [٢] فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، كَيْفَ أَصْنَعُ بِمَا أُبْدِعَ عَلَيَّ مِنْهَا؟ [٣] قَالَ انْحَرْهَا، ثُمَّ اصْبُغْ نَعْلَيْهَا فِي دَمِهَا، ثُمَّ اجْعَلْهَا عَلَى صَفْحَتِهَا، وَلَا تَأْكُلْ مِنْهَا أَنْتَ وَلَا أَحَدٌ مِنْ أَهْلِ رُفْقَتِكَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] ابن عباس ﷺ فرمايي چې نبی کريم ﷺ يو سړی (چې د هغه نوم ناجيه اسلمي وو) د شپاړس ١٦ اوښانو سره مکې ته وليږلی او هغه سړی يې د هغه اوښانو محافظ جوړ کړي (چې نه يواځې هغه اوښان په حفاظت سره بوځي، بلکه مکې ته رسيدو سره هغه ذبح هم کړي) [٢] هغه سړي عرض وکړي چې يا رسول الله! ﷺ په دوی کې چې کوم (د ستړيا په وجه) نللی نشي (يا د کمزورۍ وغيره په وجه قريب المرګ شي) نو د هغه سره څه وکړم؟ [٣] نبی کريم ﷺ وفرمايل چې ته هغه ذبح کړه، او بيا هغه دواړی څپلي (چې په طور د هار د هغه په څټ کې دي) د هغه په وينه کې رنګولو سره د هغې نښه د هغه د بوک په اړخ ولګوه، او د هغه غوښه مه ته خپله خوره او نه دې ستا په ملګروکې څوك خوري، مسلم.

**حل اللغات:** ① أَمَّرَهُ: أَيْ: جَعَلَهُ أَمِيرًا: اميرئې مقرر کړو (چه دا قربانی په مکه کښې ذبح کړی). ② أُبْدِعَ: دا په معنی د حبس يعنی بنديدو سره دي، أَيْ: انْقَطَعَ بِهِ: چه د ګرځيدو نه وی. ③ اصْبُغْ: أَيْ: اغْمِسْ: دا دَ اصباغ نه دي دَ رنګ کولو په معنی کښې دي يعنی په وينو کښې رنګ کړه، ④ صَفْحَتِهَا: پلن بنکاره ظرف د هغې (يعنی د قربانۍ د قوب پلنوالي).

**تسهیلات:**

**قوله:** أُبْدِعَ عَلَيَّ:

**د لفظ ابدع على تحقيق:** دَ ابداع نه دَ مجهول صيغه ده کومه سورلی چه ستړې کيدوسره تللې نه شي ياد کمزورئی دَ وجې نه دَ تګ نه عاجزه شي هغه دَ ابدع او ابداع په الفاظوسره

---

[١]) اخرجه مسلم في كتاب الحج /باب ما يفعل بالهدي إذا عطب في الطريق (رقم-٣٧٧ - (١٣٢٥) وابوداود في كتاب المناسك . باب في الهدي إذا عطب قبل أن يبلغ (رقم-١٧٦٣) واحمد في المسند: ٢١٧/١

یادولې شی. دَ ابدع صله په عام توګه "ب" راځی لیکن دلته ابدع دَ حُبِس معنې ته متضمن ده په دې وجه په صله کښې "علیٰ" راوړلې شوې دې. چونکه دادَ هدایا اوښان وو په دې وجه په دې باندې سوریدل جائزنه وو لهذا "علیٰ" صله راوړل ضروری وو دې دَپاره چه دا واضحه شی چه په دې باندې څوك سور شوې نه دې څکه چه کله صله "ب" کښې راځی نوهغه دَ سوردَپاره وئیلې شی لکه "ابدعٰی" زه په سورلئی ووم چه هغه زما دَ اوړلونه عاجزه شوه.

**قوله: نَعْلَيْهَا:**

**د نعلیها څخه مراد:** دې نه مراد هم دغه څپلئی دی چه دَ هدیه دَ ځناور په غاړه کښې دَ نښې په توګه اچولې شوې وې. مطلب دا چه دا مرګ ته نیزدې ځناور ذبح کړه اودَ دې په غاړه کښې پرتې دواړه څپلئی دَدې په وینه رنګ کړئی دې دَپاره چه څوك مالدار سړې دَدې غوښه استعمال نه کړی. "اجعلها" کښې ضمیرمفرد راوړلې شوې دې دا "کل واحدة منها" دَ تاویل په بنیادباندې دې.

**قوله: عَلَى صَفْحَتِهَا:**

**دهدې څاروې نښاندار کول:** مطلب دا چه دغه غاړه کئی په وینورنګ کولوسره دَ قب طرف ته دَدې نښه اولګوئی دې دَپاره چه معلومه شی چه دا دَ هدی څاروې دې کوم چه دَ حرم دَ رسیدونه وړاندې ذبح کړې شوې دې دَدې غوښه مالدارانو له خوړل جائزنه دی.

**قوله: وَلَا تَأْكُلْ مِنْهَا:**

**دهدې د غوښې خوړلو ممانعت:** یعنی دَ دغه هدی نه مه ته پخپله خوره اونه دې دَ قافلې څوك ملګرې خوری سره دَدې چه دَ قافلې څوك ملګرې فقیرمسکین ولې نه وی. دَ هدی دَ غوښې دَ خوړلو ممانعت دَ دې وجې نه دې که محافظ او دَ قافلې والاته دَ غوښې خوړلو اجازت ورکړې شی نوممکن ده چه هغه خلق دَ غوښې خوړلو او جوړولودَپاره بهانه جوړه کړی صحیح سالم څاروې راونیسی ذبح ئې کړی. په دې وجه دَ قافلې دَهریوکس دَپاره دَدغه خوړلو ممانعت اوکړې شو.

**یواشکال:** دغه شان کولوسره خو به په صحراکښې دَ څاروی غوښه ضائع شی.

**داشکال جواب:** خواؤشا فقیران به دَ خوراك دَپاره وی که آبادی نه وی نو په لاره تیریدونکی مسافر قافلې به راشی په هغوی کښې به غریبانان اوفقیران وی هغوی به هدی پیژندلوسره اوخوری اومالداران به ئې نه خوری.

**دهدیه دوه قسمونه:**

① هغه هدی چه دَ حرم دَ زمکې پورې رسیدلې وی. دَدې حکم دادې چه هغه هدی تطوع وی یا هدی قران وی یا هدی تمتع وی صاحب هدی دَهغې نه خوړلې شی اودَهغه ملګری

هم خوړلې شي که غريبانان وي او که مالداران خو که هم دغه هدى دَ نذر وي يا دَجنايت وي نو صاحب هدى هم دَدې نه نه شي خوړلې او نور مالداران هم نه شي خوړلې دا صرف دَفقرا حق دې.

② هغه هدى چه دَحرم دَ زمکې دَرسيدو نه وړاندې عاجز راتلو يا کمزوري کيدو دَ وجې نه ذبح کړې شوې وي.

**د دويم قسم هدى دوه صورتونه او د هر يو حکم:**

① د احنافو په نيز که دويم قسم هدى واجب وي نو مالك ته اختيار دې چه دې کښې څه تصرف کول غواړي اودې کړي که پخپله خوري که په نورچا خوري که خرڅه وي.

② که چرې دا هدى تطوع اونفلي وي او مالك ته دَدې په بدله کښې دَ بلې قربانئ کولو اراده هم نه وي نو په دې صورت کښې نه مالك دا خوړلې شي او نه مالداران خوړلې شي اونه په دغه قافله کښې شريك غريبانان دا خوړلې شي. دې سره به هم هغه معامله کولې شي کومه چه په زيربحث حديث کښې ذکر ده چه دَ ذبح کولو نه پس به څپلئ په وينو کښې لړپړکولې شي او دې سره به ئې اړخ کښې لګوى دې دَپاره چه راتلونکي فقيران دا اوخوري.

**احنافو په نيز د زيربحث حديث محمل:** احناف دَ زيربحث حديث حکم په هدى تطوع باندې حمل کړې دې. دا حديث سره دَدې چه دَدې حکم نه بالکل ساکت اوخاموش دې ليکن بيهقي په سنن کبرىٰ کښې يو مرفوع حديث نقل کړې دې په دې کښې دَغه هدى سره دَتطوع اونفل الفاظ موجود دي دَدې وجې نه احنافو دا فيصله کړې ده.

**د واجب او نفلي هدي په حکم کښې د فرق وجه:** اوس په دې کښې څه فرق دې چه دَ واجب هدى نه مالك هم خوړلې شي مالداران او ملګري او فقيران هم خوړلې شي ليکن دَ هدى تطوع نه دَ دې فرق وجه داده چه کله هدى واجب وي نو دَ دې په بدله کښې به دويمه هدى ورکول اودې کړي ليکن په هدى تطوع کښې دَدې بدل نشته په دې وجه هغه دَمالك په ذمه هغه اوس دا هدى په مکمل توګه دَ مالك دَاختيار نه بهرشوه په دې وجه هغه په دې کښې هيڅ تصرف نه شي کولې. که مالك دَ دغه نفلي هدى دَ بدلې ورکولو وعده اوکړي نو بيا به دَ قافلې والا نه وي.

نه مالك خوړلې شي نه اغنياء او نه رفقاؤ نه فقراء خوړلې شي؟

واجب وي لهذا ړومبې هدى دَ مالك ملکيت کښې پاتې شوه دَهغه اختيار دې چه څه کوى شان لازم شوه لکه چه هغه نذر کړې وي بل مالك دَدې دَ بدل دَپاره بالکل تيار نه دې لهذا دغه هدى تطوع خوړل هم جائز شي ګنى دا صرف دَ فقراء حق دې شرط دادې چه دَ دغه

**[٢٦٣٦] په اوښ او غوا کښې اووه کسان شريکيدې شي**

٢٦٣١-[١٠] ()[١] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [٢]«نَحَرْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ الْبَدَنَةَ عَنْ سَبْعَةٍ [٣] وَالْبَقَرَةَ عَنْ سَبْعَةٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر ﷺ وايي [٢] چې مونږ د حديبيه په کال د نبی کريم ﷺ سره د اوو سړو د طرف څخه اوښ ذبح کړي [٣] او د اوو سړو د طرف څخه مو غويي ذبح کړي، مسلم.

**تسهيلات:**

**قوله:** الْبَدَنَةَ عَنْ سَبْعَةٍ:

**په قرباني کښې د شراکت حکم:** دَ ګډې چيلئی په قربانئی کښې په اتفاق سره شراکت ناجائزدې او په اوښ غوا کښې دَ اووه کسانو شراکت جائزدې په دې شرط چه دَ ټولو نيت هم دَ قربانئی کولووی او قربانئی اوهدی نه قرابت مقصودوی که دَ قرابت نوعيت جدا جدا ولې نه وی. مثلاً دَ يونيت دَ قربانئی دې دَ دويم نيت دَهدی دې دَ دريم نيت دَ عقيقې وغيره دې. دَ امام مالک رحمه الله په نيز په يوڅاروی کښې هم شراکت جائزنه دې که قربانی وی که هدی وی که هغه اوښ وی که غوا وی اوکه چيلئی وی.

**[٢٦٣٧] دَاوښ دَ نحر طريقه**

٢٦٣٢-[١١] ()[١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، «أَنَّهُ أَتَى عَلَى رَجُلٍ قَدْ أَنَاخَ بَدَنَتَهُ يَنْحَرُهَا، [٢] قَالَ: ابْعَثْهَا قِيَامًا مُقَيَّدَةً سُنَّةَ مُحَمَّدٍ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». - مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] د ابن عمر ﷺ په باره کې منقول دی چې هغه يو داسې سړي ته ورسيدلی چې خپل اوښ يې کينولو سره نحر کولی، [٢] هغه ورته وفرمايل چې دا اوښ ودروه، او دده ګسه پښه وتړه (اودغه شان اوښ نحر کولوسره) د نبی کريم ﷺ طريقه اختيار کړه، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① أَنَاخَ: د اوښ کينولو دپاره استعماليږی. ② ابْعَثْهَا: أَيْ: أَقِمْهَا: اونې دروه. ③ مُقَيَّدَةً: أي مَعْقُولَةَ الْيَدِ الْيُسْرَى: ګسه خپه ورله اوتړه.

**تسهيلات: قوله:** أَنَاخَ بَدَنَتَهُ يَنْحَرُهَا:

**نحر او ذبح کښې فرق:** اوښ په سينه کښې په نيزه يا چاړه وهلونوم نحر دې. دَ چيلئی وغيره مرئی په چاړه سره پرې کولونوم ذبح ده. دَ نحر طريقه داده چه اوښ اودرولې شی او دَهغه ګسه خپه په رسئی سره تړلې شی اوبيا دَ هه په سينه کښې چاړه وهلې شی دې دَپاره چه وينه تړې اوځی او هغه په زمکه باندې پريوځی.

() اخرجه مسلم فی كتاب الحج /باب الاشتراک فی الهدی واجزاء البقرة والبدنة كل منهما عن سبعة (رقم-٣٥٠ - (١٣١٨)
() اخرجه البخاری فی كتاب الحج/باب نحر الابل مقيدة (رقم-١٧١٣) ومسلم فی كتاب الحج /باب نحر البدن قياما مقيدة (رقم-٣٥٨ - (١٣٢٠) وابوداود فی كتاب المناسک . باب كيف تنحر البدن (رقم-١٧٦٨)

**[۲٦۲۸] دهدي باره کښې څه هدايات**

۲٦۲۸-[۱۲] (¹)[۱]وَعَنْ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: «أَمَرَنِي رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[۲]- أَنْ أَقُومَ عَلَى بُدْنِهِ، وَأَنْ أَتَصَدَّقَ بِلَحْمِهَا، وَجُلُودِهَا وَأَجِلَّتِهَا، [۳]وَأَنْ لَا أُعْطِيَ الْجَزَّارَ مِنْهَا قَالَ: "نَحْنُ نُعْطِيهِ مِنْ عِنْدِنَا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت علي وايي چې نبی کريم ﷺ ماته هدايت وکړي[۲] چې زه د نبی کريم ﷺ د اوښانو خبر ګيري وکړم، د هغوئ غوښه خيرات کړم، او د هغوئ چمړهي اوکتي هم صدقه کړم،[۳] او دا چې قصاب ته د هغه څخه هيڅ څيز (په طور د مزدوري) ورنه کړم او نبی کريم ﷺ وفرمايل چې مزدوري به مونږ د خپل ځان څخه ورکوو. بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① أَجِلَّتِهَا: داَ جِلَال جمع ده، او جلال د جُل جمع ده، د ځاروو کتې ته وائي.

② الْجَزَّارَ: دې نه قصاب مراد دې.

**تسهيلات:**

**قوله: عَلَى بُدْنِهِ:**

**دحجة الوداع په موقع د نبی کريم صلی الله عليه وسلم د قربانو شمار:** دَ حجة الوداع په موقع باندې حضورپاك دَ سلو اوښانو قرباني ورکړې وه. درې شپيته اوښان حضورپاك په خپل لاس مبارك سره ذبح کړل باقي حضرت علی ﷺ ذبح کړل. په دې سره دَ حضورپاك دَ اوچت سخاوت اندازه کيږي. بيا به هريواوښ بل ته ديکه ورکولوسره دَنحر دَ پاره دَ حضورپاك طرف ته وړاندې کيدلو په دې سره دَ رسول الله ﷺ دَ اوچت محبوبيت اندازه کيږي. بهرحال په زيربحث حديث کښې دَ اوښانو نه مراد هم هغه اوښان دی چه په حجة الوداع کښې رسول الله ﷺ دَ هدی په توګه مکې مکرمې ته راوړلې وو.

**قوله: الْجَزَّارَ:**

**دقرباني د ځاروی څخه د انتفاع حکم:** مطلب دا چه هدی سره متعلق هريو څيز که هغه غوښه وی اوکه څرمن وی که رسئی وی اوکه جول وغيره وی قصاب ته په مزدورئی کښې ورکول جائز نه دی. بلکه دَخپل جيب نه دَهغه مزدوري ورکول پکاردی. هم دې ته په کتلوسره فقهاؤ ليکلی دی چه دَ قربانئی دَ ځاروی پيئی ويستل جائز نه دی بلکه دَهغې په غولانځه يخې اوبه اچولوسره پيئی اوچول پکاردی يا دَ ويستلو نه پس هغه صدقه کول پکاردی.

¹) بخاري، کتاب الحج باب نحر الابل مقيدة ٦/ ٣٦٨ حديث ١٧١٣ ومسلم کتاب الحج ٨/ ٣٤٤ حديث ٣٢٥٥.

**[٢٦٣٩] دَ دريوورځونه زياته دَ قربانۍ غوښه ساتل جائز دي**

٢٦٣٩- [١٣] () ١ وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «كُنَّا لَا نَأْكُلُ مِنْ لُحُومِ بُدْنِنَا فَوْقَ ثَلَاثٍ، ٢ فَرَخَّصَ لَنَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: "كُلُوا وَتَزَوَّدُوا" فَأَكَلْنَا، وَتَزَوَّدْنَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضرت جابر ﷺ وايي چې مخکې به مونږ د خپلې قرباني غوښه د دريو ورځو نه زيات نه خوړله، ٢ بيا نبی کريم ﷺ مونږ ته اجازت راکړي، او وې فرمايل چې خوري يې او توښه کوي يې (يعني د دريو ورځو روسته هم) نو مونږ به خوړله او توښه کوله، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① رَخَّصَ: اجازت ئې ورکړو. ② تَزَوَّدُوا: أي ادْخِرُوا: ذخيره کوئ، د توښې په طور ئې د بيا دپاره ساتئ.

**تسهيلات: قوله: فَرَخَّصَ:**

**دري ورځو څخه زياته قربانۍ د غوښې خوړلو اجازت:** دَاسلام په شروع کښې دَخوراك څښاك دَ څيزونو سخته تنگی وه په دې وجه حضوړپاك حکم ورکړې وو چه دَدريو ورځونه زيات دَ قربانئ غوښه په کورونو کښې مه ايږدئی بلکه زياتی صدقه کوئی. روستو بيا دَدې اجازت اوشو چه کيخودلې شئی..

## الْفَصْلُ الثَّانِي

**[٢٦٤٠] دښمنان اسلام ته خفګان رسول مستحب دی**

٢٦٤٠- [١٤] () ١ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَهْدَى عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فِي هَدَايَا رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - جَمَلًا كَانَ لِأَبِي جَهْلٍ ٢ فِي رَأْسِهِ بُرَةٌ مِنْ فِضَّةٍ - ٣ وَفِي رِوَايَةٍ: مِنْ ذَهَبٍ - يَغِيظُ بِذٰلِكَ الْمُشْرِكِينَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ ابن عباس ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ د حديبيه په کال د خپلې هديې په څاروی اتو کې د ابو جهل اوښ هم بيولی وو (دا اوښ د بدر په غزا کې په مال غنيمت کې راغلي وو) ٢ چې د هغه په سر (يعني پزه) کې د سپينو زرو تنکۍ (کړۍ) وه، ٣ په يوه روايت کې دي، چې هغه تنکۍ د سرو زرو وو، او د دې څخه مقصد دا وو، چې مشرکين په غيظ او غضب کې راوستل وو، ابو داؤد.

**حل اللغات:** ① بُرَةٌ: ددې جمع برات ده، أي: حَلْقَةٌ: کړئ، تنکۍ (يو ګول رِنګ او پيزوان چه څاروو ته په پوزه کښې اچولې شی چه قابو کړې شی). ② يَغِيظُ: غصه کول ئې.

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب وما يأکل من البدن وما يتصدق (رقم-١٧١٩) ومسلم فی کتاب الأضاحی/باب بيان ما کان من النهي عن أکل لحوم الأضاحي بعد ثلاث في أول الإسلام، وبيان نسخه وإباحته إلى متى شاء (رقم-٣٠-١٩٧٢) واحمد فی المسند: ٣/٣٨٨

[2] اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک. باب فی الهدی (رقم-١٧٤٩) واحمد فی المسند: ١/٢٣٤

**تسهيلات:**

**قوله:** كَانَ لِأَبِي جَهْلٍ:

**د ابوجهل اوښ په صلح حديبيه کښې:** يعنی دَ حديبيه په موقع باندې چه کوم وخت حضورپاك او صحابه کرامو دَ عمرې دَ پاره تشريف راوړې وو هغه وخت دَ رسول الله ﷺ هدايا کښې هغه اوښ هم وو چه په کال ۲هجری کښې دَ جنګ بدر په موقع دَ ابوجهل نه په مال غنيمت کښې ملاؤشوې وو اوحضورپاك په خپله حصه کښې ساتلې وو. بيائی دَ ذبح کولودَ پاره خپل ځان سره په عمره کښې راوستې وو ليکن قريشو حضورپاك حرم ته دَ داخليدودَپاره پرينخودو. دا اوښ ئی صرف دَدې دپاره راوستې وو چه کافران دَ دې په ليدو باندې اوسوزی اوهغوی خفه شی اوپه هغوی باندې رعب کينی چه دادَهغوی دَ مردار سردار اوښ وو.

### [٢٦٤١]د قريب المرګ هدی حکم

—[١٥]()١ وَعَنْ نَاجِيَةَ الْخُزَاعِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: «قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، كَيْفَ أَصْنَعُ بِمَا عَطِبَ مِنَ الْبُدْنِ؟٢ قَالَ: " انْحَرْهَا، ثُمَّ اغْمِسْ نَعْلَهَا فِي دَمِهَا، ثُمَّ خَلِّ بَيْنَ النَّاسِ، وَبَيْنَهَا فَيَأْكُلُونَهَا» ". رَوَاهُ مَالِكٌ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ١ ناجيه خزاعي رضي الله عنه وايي چې ما عرض وکړو، يا رسول الله ﷺ د هديي په ښاروو کې چې کوم ښاروی قريب المرګ وي، نو د هغه سره څه وکړم؟٢ نبی کريم ﷺ وفرمايل چې هغه ذبح کړه، او هغه چمپل (چي د هغه په ښټ کې په طور د هار وي) د هغه په وينه کې رنګ کړه (او د هغه په ذريعه د هغه په غاړه نښه جوړه کړه) د دې څخه روسته هغه ښاروی د خلقو په منځ کې پرېږده (يعني د هغه د غوښو خوړلو څخه فقراء مه منع کوه) چې هغه يي وخوري، مالك، ترمذي، ابن ماجه

**حل اللغات:** ① عَطِبَ: أَيْ: عَيِيَ وَعَجَزَ: هغه ښاروي چه د تلو نه عاجزه او ستړې شی يا قريب المرګ شی.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَعَنْ نَاجِيَةَ الْخُزَاعِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ..الخ:

**د رواياتو په مينځ کښې دفع د تعارض:** ناجيه اسلمی بعض ځائی کښې ناجيه اسلمی دی بعض رواياتوکښې ناجيه خزاعی دې داځه تضاد نه دې نه دوه سړی دی بلکه هم يوسړې دې. خزاعی هم دې او اسلمی هم دې. دَ لوئی او وړې قبيلې فرق دې خزاعه لويه قبيله ده.

[1]) اخرجه الترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء إذا عطب الهدی ما يصنع به (رقم-٩١٠) وابن ماجة فی کتاب المناسک/باب فی الهدی. إذا عطب (رقم-٣١٠٦) ومالک فی الموطا کتاب الحج/باب العمل فی الهدی إذا عطب أو ضل (رقم-١٤٨) واحمد فی المسند: ٤/٣٣٤

(١) وَرَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ، عَنْ نَاجِيَةَ الْأَسْلَمِيِّ.

ترجمه: ١ او ابوداؤد او دارمي دا روايت د حضرت ناجيه اسلمي رضي الله عنه څخه نقل کړی دی.

**[٢٦٤٢] د قربانۍ د ورځې فضيلت او د رسول الله ﷺ مبارک محبوبيت**

[١٦] (٢) ١ وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قُرْطٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ "«إِنَّ أَعْظَمَ الْأَيَّامِ عِنْدَ اللَّهِ يَوْمُ النَّحْرِ، ثُمَّ يَوْمُ الْقَرِّ» ٣". قَالَ ثَوْرٌ: وَهُوَ الْيَوْمُ الثَّانِي. ٤ قَالَ: «وَقُرِّبَ لِرَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَدَنَاتٌ خَمْسٌ أَوْ سِتٌّ، فَطَفِقْنَ يَزْدَلِفْنَ إِلَيْهِ بِأَيَّتِهِنَّ يَبْدَأُ، ٥ فَلَمَّا وَجَبَتْ جُنُوبُهَا قَالَ: فَتَكَلَّمَ بِكَلِمَةٍ خَفِيَّةٍ لَمْ أَفْهَمْهَا، ٦ فَقُلْتُ: مَا قَالَ، قَالَ: مَنْ شَاءَ اقْتَطَعَ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَذُكِرَ حَدِيثَا ابْنِ عَبَّاسٍ وَجَابِرٍ فِي "بَابِ الْأُضْحِيَةِ".

ترجمه: ١ عبد الله ابن قرط رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ د الله تعالی په نزد په ټولو ورځو کې ډيره لويه ورځ (د فضيلت له مخه) د قربانۍ ورځ (يعني د ذي الحجه لسم تاريخ) دی، او بيا د قرّ ورځ، ٣ د حديث راوي حضرت ثور رضي الله عنه وايي، چې دا (د قر ورځ) دويمه ورځ (يعني د ذ الحجه يولسم تاريخ دی) ٤ عبد الله رضي الله عنه وايي چې (کله د قربانۍ په ورځ) نبی کريم ﷺ ته هغه اوښان راوستل شو، چې د پنځو يا شپږو په تعداد کې وو، نو اوښانو (يو په بل سبقت کولو سره) نبی کريم ﷺ ته نژدې راتلل شروع کړل، چې کوم يو غواړي مخکې دي ذبح کړي، ٥ راوي وايي هرکله چې دا څاروی په اړخ وغورځيدل (يعني ذبح يې کړل) نو نبی کريم ﷺ قلار يوخه وفرمايل، چې زه وربان‌دی پوهه نه شوم، ٦ نو ما (د هغه سړي څخه چې ما سره نژدې وو) پوښتنه وکړه چې نبی کريم ﷺ څه وفرمايل؟ هغه اوويل چې نبی کريم ﷺ دا وفرمايل چې کوم سړی غواړي (د هديې) د دی څاروو (د غوښو) څخه دي کټ کولو سره د خان سره يو سی، ابوداؤد. اود ابن عباس او جابر رضي الله عنهما حديث ښې په باب الاضحيه کښې ذکر کړې دې.

**حل اللغات:** ① يَوْمُ الْقَرِّ: أَيْ: يَوْمُ الْقَرَارِ: د آرام اود سکون ورځ (يوولسم د ذی الحجه باندې حاجيان د مناسک حج نه په آرام اوپه سکون شی نو ځکه دغه ورځ ته ورځ د قرار وائی). ② فَطَفِقْنَ: أَيْ: شَرَعْنَ: شروع شو (اوښان د قربانۍ)، ③ يَزْدَلِفْنَ: أَيْ: يَتَقَرَّبْنَ: نژدې کيدلې (يوبل نه وړاندې کيدلې نبی عليه السلام ته). ④ جُنُوبُهَا: أَيْ: سَقَطَتْ عَلَى الْأَرْضِ: راوغورځيدې په زمکه (يعنی ذبح کړې شوې). ⑤ اقْتَطَعَ: أَيْ: أَخَذَ قِطْعَةً: پرې ديکړی (يعنی د غوښې بوټۍ دې خانله کټ کړی).

(١) اخرجه ابوداود في كتاب المناسك. باب في الهدي إذا عطب قبل أن يبلغ (رقم-١٧٦٢)
(٢) اخرجه ابوداود في كتاب المناسك. باب في الهدي إذا عطب قبل أن يبلغ (رقم-١٧٦٥)

**تسهيلات: قوله: أَعْظَمَ الأَيَّامِ:**

**د ذوالحجې د اولې عشرې او د رمضان آخرې عشرې په باره کښې د افضليت تحقيق:** په کتاب الصوم او ابواب عيدين کښې دا بحث ليکلې شوې دې چه آيا عشره ذوالحجه غوره ده که عشره اخيره دَرمضان غوره ده دلته يوه بله وجه ليکم هغه دا چه عشره ذوالحجه دَ اشهرالحرام په نسبت سره غوره ده يعنې دَ فضيلت تقابل په عشره ذوالحجه او عشره رمضان کښې نه دې بلکه دا تقابل په اشهرالحرام کښې دې نودَاحترام په څلورو واړو مياشتوکښې دا لس ورځې دَ ټولونه غوره دی. پاتې شو رمضان او آخرې عشره نوهغه مطلقًا دَ ټولومياشتو په نسبت غوره دی. باقي توجيهات د تسيهيلات ابواب العيدين کښې اوګورئی.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [٢٦٤٤]دَ قرباني غوښه ذخيره کول څنګه دی؟

٢٦٤٤–[١٧] ()[١] عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ: -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[٢]«مَنْ ضَحَّى مِنْكُمْ، فَلَا يُصْبِحَنَّ بَعْدَ ثَالِثَةٍ، وَفِي بَيْتِهِ مِنْهُ شَيْءٌ[٣]". فَلَمَّا كَانَ الْعَامُ الْمُقْبِلُ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، نَفْعَلُ كَمَا فَعَلْنَا الْعَامَ الْمَاضِي؟[٤]قَالَ: "كُلُوا، وَأَطْعِمُوا، وَادَّخِرُوا، فَإِنَّ ذَلِكَ الْعَامَ كَانَ بِالنَّاسِ جَهْدٌ، فَأَرَدْتُ أَنْ تُعِينُوا فِيهِمْ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [١] سلمه ابن اکوع ؓ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢]په تاسو کې چې کوم سړی قرباني کوي نو د دريمې ورځې څخه روسته دې په داسې حال کې نه سحر کوي، چې د هغه په کور کې د قرباني غوښه موجوده وي (يعني د قرباني غوښه دې د دريو ورځو څخه زياته نه ساتي)[٣] بيا چې دويم کال راغلو ، نو بعضې صحابه وو ؓ عرض وکړي چې يا رسول الله! ﷺ آيا مونږ په دې کال هم هغه شان وکړو؟ څرنګه چې په تير کال مو کړي وو؟ (يعني د تيرکال په شان سږ کال هم د قرباني غوښه د دريو ورځو څخه روسته نه پريږدو؟)[٤] نبی کريم ﷺ وفرمايل چې خوری او خوروی، او جمع (ذخيره) کوی په اصل کې تيرکال خلق په محنت، مشقت او محتاجی کې اخته وو، په دې وجه ما د جمع کولو څخه منع کولو سره دا مې غوښتل، چې تاسو خلق د هغه ضرورتمندو مدد وکړي او اوس هغه شان ضرورت او حاجت نشته، څکه که تاسو د قربانی غوښه جمع کول غواړي، نو تاسو ته اجازت دی، بخاري، مسلم.

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الأضاحی/باب ما يؤکل من لحوم الأضاحی وما يتزود منها (رقم-٥٥٦٩) ومسلم فی کتاب الأضاحی/باب بيان ما کانَ مِن النهيِ عَن أکلِ لحومِ الأضاحي بعدَ ثلاث فِي أولِ الإسلامِ، وبيانِ نسخِهِ وإباحتِهِ إلى متى شاء (رقم-٣٤ - (١٩٧٤)

**حل اللغات**: ① ضَحّٰی: أَيْ: فَعَلَ الْأَضْحِيَةَ: چه قرباني کوي. ② جَهْدٌ: په فتحې سره په معنی د جوع يعنی لوږه او محتاجی، اوپه ضمې سره په معنی د مشقت سره (دلته ترې لوږه اومحتاجي مراد ده). ③ أَنْ تُعِيْنُوا: أَيْ: تُعِيْنُوا الْفُقَرَاءَ: چه تاسو مدد اوکړئ (د فقراؤ يعنی د لوږو حاجتمندو).

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت سلمه بن اکوع ؓ**: نوم سنان، ابومسلم ابواياس کنيت.پوره نوم ئی سنان بن عبدالله بن عبدالله بن قشير بن خزيمه.(٢)

دَغزوه حديبيه نه پس په ټولوغزواتو کښې شرکت کړې وو.دَ صلح حديبيه په سلسله کښې په بيعت رضوان کښې هم موجود وو او هغه په دې موقع باندې دَ رسول الله ﷺ په لاس مبارك باندې درې ځل بيعت اوکړو اوهغه داسې چه هم حضوراکرم ﷺ اوفرمائيل سلمه بيعت به نه کوې؟ عرض ئی اوکړو چه کړې مې دې.وئی فرمائيل چه بيا اوکړه څه بدی نشته.تقريبًا په ١۴ غزواتوکښې شرکت کړې وو په اووه کښې حضورﷺ سره او اووه دَ نبی کريم ﷺ نه بغير.(٣)

په هغه کښې څلور صفتونه په پوره اوکامله درجه کښې موجود وو.① دَ الله تعالی په لارکښې به ئی ښه خرچ کولو.② صدقات به ئی دَخپل ځان دَ پاره بالکل حرام ګنړل ③ دَ ټولو اوامرو او نواهي به ډير احتياط ساتلو.(۴) ④ دَ بهادرئی باره کښې په اصابه کښې دی کــان الشجعـان ويسبق الفرس عدوًا (۵)

هغه دَ بهادرانو نه يو وو چه په منډه کښې به ئی اسونو سره مقابله کوله اودَهغوی نه به هم وړاندې کيدلو.دَصلح حديبيه په موقع باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل په بهتر سورو کښې ابوقتاده او په بهتر پياده خلقو کښې سلمه بن اکوع دې.حضورﷺ هغه ته دوه حصې ورکړې يوه دَ سور او بله دَ پياده.(۶)

**وفات**: دَحضرت عثمان دَشهادت نه پس ربذه کښې سکونت اختيارکړو اوهم هلته ئی واده اوکړو بيا يوځل مدينې منورې ته راغلو نوڅلور ورځې پس په مدينه کښې۷۴ﻫ کښې انتقال شو.(اصابه ۱۱۸/۳)

**مرويات**: دَ هغه دَ روايتونو شمير ۷۷ دې.په کومو کښې چه ١۶ بخاری اومسلم دواړو کښې دی ۵کښې بخاری او ۹ کښې مسلم منفرد دی.(تهذيب الکمال ١۴٨)

**تسهيلات: قوله: وَادَّخِرُوا:**

**د درې ورځو نه زياته د قربانۍ غوښې ذخيره کولو د ممانعت پس منظر:** په مدينه منوره کښې يوکال سخت قحط راغلې وو اوهسې هم دَ اسلام په شروع کښې سخته تنګی وه نو حضورپاك فرمان جاری کړو چه دَ دريو ورځونه زيات دَ قربانئی غوښه په کورونوکښې مه ذخيره کوئی بلکه په نورو فقيرانو باندې تقسيم کړئی. صحابه کرامو هم داسې اوکړه. کله

چه دویم کال راغلو او اوچ کالی لاړه نو حضور پاك دَ غوښې ذخیره کولو اجازت ورکړو

**د قربانۍ د غوښې په تقسیم کښې مستحب طریقه:** فقهاؤ مستحب طریقه داخودلې ده چه دَ قربانئی دَ غوښې یوه حصه په غریبانانو باندې تقسیم کړئی دویمه حصه خپلوانو عزیزانو او خپلو دوستانو کښې تقسیم کړئی سره دَدې چه هغوی مالدار وی او دریمه حصه دَخپل بال بچ دَپاره په کورکښې کیږدئی. اوکه یوسړې بال بچ دار وی او بال بچ ئی ډیر وی نوهغه دَتقسیم کولونه بغیردَ قربانئی غوښه په کورکښې ذخیره کولې شی. لیکن چه کله یوسړې دومره لوئی رقم ورکولوسره قربانی کوی نویقیناً دَهغه نیت دَ ثواب وی دَدې تقاضا ده چه هرمالدار په قربانئی کولوکښې یوه حصه فقیرانو دَپاره خاص کړی او په قربانئی کښې دَ قربانئی جذبه په زړه کښې پیداکړی داسې نه وی چه دَ قربانئی په نوم ډیر مقدار کښې غوښه راپیدا کړه او په برف خانوکښې ستهورکولوسره کیخوده او پوره کال پورې خوری. دا دَ څناور قربانی شوه سړی خو هیڅ هم قربانی نه کړه.

**[۲٦٤٥] د درې ورځو څخه زیاتې د قربانۍ غوښې خوړل**

د۳۳ـ[۱۸] ()١ وَعَنْ نُبَيْشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- "٢«إِنَّا كُنَّا نَهَيْنَاكُمْ عَنْ لُحُومِهَا أَنْ تَأْكُلُوهَا فَوْقَ ثَلَاثٍ لِكَيْ تَسَعَكُمْ. جَاءَ اللهُ بِالسَّعَةِ،٣ فَكُلُوا، وَادَّخِرُوا وَاتَّجِرُوا.٤ أَلَا وَإِنَّ هَذِهِ الْأَيَّامَ أَيَّامُ أَكْلٍ وَشُرْبٍ، [وَبِعَالٍ] وَذِكْرِ اللهِ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ نبیشه ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ مونږ تاسو د قربانی یا هدیي د غوښې په باره کې د دې خبري څخه منع کول چې تاسو یې د دریو ورځو څخه زیات وخوری، او د هغه وجه دا وه، چې وسعت وي (یعنې چې داسې ستاسو فقراء هم د دی غوښې څخه فائده واخلي) اوس الله ﷻ وسعت راوستلی دی، ٣ څکه تاسو چې (تر څو غواړی) خوری یې او جمع کوی یې (او د دی غوښې څخه د صدقه او خیرات په ذریعه) ثواب حاصلوي ٤ او یاد لري چې دا (څلور) ورځي (چې په منی کې تیریږي) د خوراك او څښاك ورځي دي (په دې ورځو کې روژه نیول حرام دي) او د الله ﷻ د یادولو ورځي دي. ابوداؤد.

**حل اللغات:** ① تَسَعَكُمْ: أَيْ: لِتَكْفِيَكُمْ وَفُقَرَاءَكُمْ: چه وسعت وی په تاسو (یعنی ستاسو او ستاسو د محتاجو خلقو دپاره دا کافی شی). ② السَّعَةِ: فراخی. ③ اتَّجِرُوا: د باب افتعال نه په معنی د اجر سره، أَيْ: اطْلُبُوا بِالتَّصَدُّقِ: یعنی چه تاسو په صدقه اوخیرات سره ثوابونه حاصل کړئ ④ بِعَالٍ: أَيْ: جِمَاعٍ: جماع کول.

---

(١) اخرجه ابوداود فی کتاب الضحایا/باب فِي حبسِ لحومِ الأضاحِي (رقم-۲۸۱۳)

**تسهیلات:** **قوله:** فَكُلُوا،وَادَّخِرُوا وَاتَّجِرُوا:

**د لفظ واتجروا ماخذ او معنی:** دَدې حدیث تشریح اوتوضیح هم هغه ده کومه چه دَدې نه دَ اندینی حدیث وه. البته په دې حدیث کښې "وأتجروا" لفظ راغلې دې دالفظ دَ اتجار نه دې کوم چه دَ اجر اوثواب په معنی کښې دې. علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه داد باب افتعال نه دې دَحصول اجردپاره امر دې دالفظ دَتجارت نه نه دې ځکه چه دَتجارت دپاره "وتجروا" مشدد راځی دلته شد نشته دې. بله خبره داهم ده چه دَ قربانئی په غوښه کښې تجارت کول راخرڅول ناجائزدی په دې وجه دالفظ دَاجرنه دې دَتجارت نه نه دې.

## [٨]بَابُ الْحَلْقِ

### دَسرخرولوبیان

**خلاصة الباب:**

**فيه تسعة أحاديث مشتملة على خمس مسائل:**

① ذكر الحلق والقصر: ١، ٣، ٨.

② فضيلة الحلق فى الحج: ٣، ١٤.

③ استعمال الطيب قبل الإحرام و بعد التحليل أى الحلق : ٦.

④ طواف الإفاضة بعد الحلق: ٧.

⑤ عدم الحلق للمرأة: ٨، ٩.

قال الله تعالى ﴿ وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتَّى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ ﴾ [سورت بقره الايه:١٩٧]. وقال الله تعالى ﴿لَتَدْخُلُنَّ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ إِنْ شَاءَ اللَّهُ آمِنِينَ مُحَلِّقِينَ رُءُوسَكُمْ وَمُقَصِّرِينَ ﴾ [سورت فتح الايه:٢٧].

دَ رسول الله ﷺ نه چرته ثابت نه دی چه حضورپاك دَ حج او عمرې نه علاوه سر خرولې وی بلکه حضورپاك همیشه ویښته ساتلی دی مشهور هم دغه دی. حاجی چه کله دَ مزدلفه نه په لسم ذوالحجه باندې دَ منی نه راځی نو په هغه ورځ دَ هغه په ذمه ډیرزیات کارونه دی. دتولونه اول حاجی جمره عقبه په کاڼړو ولی دې نه پس ځی قربانی کوی که هغه صاحب حیثیت متمتع یا قارن وی، هغې نه پس سرخروی او احرام کولاوولوسره ګندلې شوې کپړې اچوی. دَ حاجی دَ پاره دا اول تحلیل دې یعنی ښځې سره دَ جماع نه علاوه هرڅه حلال کیږی. بیا حاجی لاړشی طواف زیارت کوی. داد هغه تحلیل ثانی دې اوس دَ حاجی دپاره دَ احرام دَممنوعاتونه هیڅ څیز منع کونکې پاتې نه شو. دَ سر ویښته خرول او لنډول ددواړو ذکر په آیت کښې راغلې دې دواړه جائزدی لیکن صاحب مشکوة صرف دَحلق ذکر کولوسره دې طرف ته اشاره کړې ده چه دَقصر نه حلق غوره دې.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [٢٦٤٦] سر خرول افضل دی

٢٦٤٦-[١] ()[١]عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-حَلَقَ رَأْسَهُ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ،[٢]وَأُنَاسٌ مِنْ أَصْحَابِهِ، وَقَصَّرَ بَعْضُهُمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [١] ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې نبی کريم ﷺ په حجة الوداع کې خپل سر مبارك وخريلی[٢] او په صحابه و رضي الله عنهم کې ځنو سر وخريلی او ځنو خپل ويښتان قينچي کړل، بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ①حَلَقَ: سر ئې اوخرئيلو. ②قَصَّرَ: ويښته ئې کم کړل.

**تسهيلات: قوله:** حَلَقَ رَأْسَهُ:

### د سر د حلق په باره کښې مذاهب:

① د امام مالك او احمد په نزد د جميع سر حلق واجب دي

② د امام ابوحنيفه او امام شافعي رحمهما الله په نزد د ټول سر حلق مستحب او افضل دي اقتداء بالنبی ﷺ خو د بعض سر حلق واجب دي

**د ټول سر د حلق دليل:** أن النبی ﷺ حلق جميع راسه وقال خذوا عنی مناسككم»

**جواب:** چه کله په احاديث کښې د جميع سر او بعض سر دواړو حلق ثابت دي په دې وجه احنافو د دفع تعارض دپاره اوفرمائيل چه د ټول سر حلق افضل دي او د بعض سر حلق واجب دي، چه په دواړه قسم احاديثو باندې عمل راشی،

**دبعض سر دحلق دليل:** عن ابن عباس قال قال لی معاوية انی قصرت من راس النبی ﷺ متفق عليه.

**استدلال:** دلته حرف «من» تبعيضيه دي، ووقع عند احمد عن عطاء ان معاوية حدث انه اخذ من اطراف شعر النبی ﷺ د دې نه هم د سر د بعض حصې حلق ثابت شو،

### په بعض حلق کښې مذاهب:

① بيا د دې بعض متعلق امام شافعي رحمه الله فرمائی چه کم از کم د درې ويښتو پرې کول واجب دی.

② د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد د ربع الراس حلق کافی دې لکه چه په اودس کښې د ربع الراس مسح واجب ده.

١) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی/باب حجة الوداع (رقم-٤٤١١) ومسلم فی کتاب الحج /باب تفضيل الحلق على التقصير وجواز التقصير (رقم-٣١٦ - (١٣٠١)

**د قصر په نسبت د حلق د افضليت دوه دلائل:** بيا د قصر په نسبت حلق افضل دې ①: د حلق د افضليت دليل دا دې چه رسول الله ﷺ د محلقين دپاره ډير كرته دعا اوفرمائيله او د عطف تلقيني په طور نې د مقصرين دپاره صرف يو كرت دعا اوفرمائيله، كمافي حديث ابن عمر رضي الله عنهما انه ﷺ قَالَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ: "اللَّهُمَّ ارْحَمِ الْمُحَلِّقِينَ. قَالُوا: وَالْمُقَصِّرِينَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: "اللَّهُمَّ ارْحَمِ الْمُحَلِّقِينَ". قَالُوا: وَالْمُقَصِّرِينَ، يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: وَالْمُقَصِّرِينَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

②حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه حلق په دې وجه هم افضل دې چه حلق ابلغ في العبادة او خضوع او ذلت او د زړه په صدق باندې دال دې. او قصر كونكې په خپل ځان باندې د ډول ځه ځيزونه باقي ساتي. (الفتح ٣/٣٣٨، البذل ٣/١٨١، الهداية ١/٢٣٠)

**[٢٦٤٧] د رسول الله ﷺ ويښته پرې كول**

٢٦٤٧-[٢] ()١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: «قَالَ لِي مُعَاوِيَةُ: إِنِّي قَصَّرْتُ مِنْ رَأْسِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عِنْدَ الْمَرْوَةِ بِمِشْقَصٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**١ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي چې ماته معاويه رضي الله عنه بيان وكړې چې نبى كريم ﷺ ته مي مروه ته نژدې د سر ويښتان په قينچي لنډ كړل، بخاري، مسلم.

مشقص: بعضې حضرات فرمايي چې غټې قينچي تـه وايي، او دا معنى ډيره صحيح او زياته مناسبه ده.

**حل اللغات:** ①مِشْقَص: ددې جمع مشاقص راځي، لويه قينچي.(د ويښتو پرې كولو آله أستره وغيره).

**تسهيلات: قوله:** بِمِشْقَصٍ:

**د لفظ بمشقص تحقيق:** اكثرشارحينو مشقص دَغشى پل او مخ ګرځولې دې ليكن دا خبره زړه ته نه لګى بعض حضراتو وئيلى دى چه مشقص لوئى قينچى ته وائى او هم دا خبره صحيح ده.

**قوله:** إِنِّي قَصَّرْتُ مِنْ رَأْسِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د امير معاويه د تقصير په زمان باندې اشكال:** دلته اشكال دا دې چه معاويه رضي الله عنه چه كوم تقصير كړې وو هغه په حج كښې دې كه په عمره كښې دې، د تقصير في الحج قائل كيدل په دې وجه صحيح نه دى چه د حج حلق يا تقصير په منى كښې كيږى نه د مروه سره، او بله دا چه رسول الله ﷺ چه كوم حلق كړې وو هم هغه ثابت بالرواية دې نه تقصير، لهذا دا تقصير به په عمره كښې وى.

١) اخرجه البخارى فى كتاب الحج/باب الحلق والتقصير عند الإحلال (رقم-١٧٣٠) ومسلم فى كتاب الحج /باب التقصير فى العمرة (رقم-٣-٢٠٩ - (١٢٤٦) وابوداود فى كتاب المناسك/باب فى الإقران (رقم-١٨٠٢) والنسائى فى كتاب مناسك الحج/باب أين يقصر المعتمر (رقم-٢٩٨٧) واحمد فى المسند: ٩٦/٤

**د نبي كريم په ځلوره واړه عمرو باندې روايت الباب حمل كولو باندې اشكال:** بيا اشكال دا دې چه رسول الله ﷺ دا تقصير د څلورو عمرو نه په كومه عمره كښې كړې دې،

① د صلح حديبيه په موقع باندې چه ئې كوم د عمرې احرام تړلې وو په هغې باندې محمول كول ئې صحيح نه دى ځكه چه رسول الله ﷺ هغه وخت په حديبيه كښې حلق كړې وو مكې ته نه وو داخل شوې، او معاويه رضي الله عنه هغه وخت مسلمان شوې هم نه وو،

② په عمرة القضاء باندې محمول كول ئې هم صحيح نه دى ځكه چه د اهل سير نه دا ثابته ده چه دې وخته پورې معاويه رضي الله عنه مسلمان شوې نه وو بلكه فتح مكه كومه چه په ٨ هجرى كښې اوشوه په هغه كال باندې مسلمان شوې وو **كماهوالصحيح المشهور.**

عمرة القضاء په ٧ هجرى كښې واقع شوې ده،

③ په حجة الوداع كښې چه رسول الله ﷺ عمره كړې وه په هغې باندې محمول كول ئې هم صحيح نه دى ځكه چه رسول الله ﷺ او هغه څوك چه هغوى سره هدى وه هغوى ټول په دې ورځ باندې نه وو حلال شوې بلكه چا سره چه هدى وه هغوى ته ئې د حلال كيدو حكم كړې وو

④ دا تقصير په عمره جعرانه كومه چه د فتح مكه په كال يعنى په ٨ هجرى كښې د ذى قعدې په مياشت كښې شوې وه باندې حمل كول هم صحيح نه دى ځكه چه په بعض الفاظ د صحيح كښې راغلې دى چه ﴿ **وذلك(اى التقصير) فى حجته،وفى رواية النسائى بأسناد صحيح وذلك فى ايام العشر وهذا انما يكون فى حجة الوداع،كماهوفى المواهب**﴾

**جوابونه:** ① اوس چه په هيڅ صورت باندې محمول كول ئې صحيح نه شو نو امام نووى رحمه الله فرمائى چه دا به په عمره جعرانه باندې محمول كولې شى. اوس به اشكال دا وى چه په بعض صحيح رواياتو كښې چه ﴿ **وذلك فى حجته**﴾ دې او په نسائى كښې چه كوم ﴿ **وذلك فى ايام العشر**﴾ دې

② د دې متعلق حافظ توربشتى فرمائى چه د زمانې په هر قسمه حوادث او مصيبتونو كښې كوم چه په معاويه رضي الله عنه باندې وو د هغې په بناء باندې كيدې شى چه د ﴿ **وذلك فى حجته**﴾ الفاظ د معاويه رضي الله عنه نه يا د هغوى نه د لاندې راوى نه ﴿ **خطاء يا نسيانا**﴾ صادر شوې وى ګينې اصل كښې د تقصير واقعه په عمره د جعرانه كښې وه. (العينى ٤/٧٤٤، التعليق ٣/٢٤٠)

**[٢٦٤٨] د سر خرونكو د پاره د حضور پاك دعاء**

٢٦٣٨ـ [٣] (¹) ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ: ② "اللّٰهُمَّ ارْحَمِ الْمُحَلِّقِينَ. قَالُوا: وَالْمُقَصِّرِينَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟ ③ قَالَ: "اللّٰهُمَّ ارْحَمِ الْمُحَلِّقِينَ". قَالُوا:

¹) اخرجه البخارى فى كتاب الحج /باب الحلق والتقصير عند الإحلال (رقم-١٧٢٧) ومسلم فى كتاب الحج /باب تفضيل الحلق على التقصير وجواز التقصير (رقم-٣١٧-(١٣٠١)

وَالْمُقَصِّرِينَ، يَا رَسُولَ اللهِ؟ قَالَ: وَالْمُقَصِّرِينَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابن عمر ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ په حجة الوداع کې وفرمايل. [٢] اې الله! ﷺ په سر خريونکو رحم وکړې، صحابه وو ﷺ عرض وکړي چې يا رسول الله! ﷺ د ويښتانو قينچي کونکو د پاره هم د رحمت دعا وکړه، نبی کريم ﷺ وفرمايل چې اې الله! ﷺ په سر خريونکو رحم وکړې، صحابه وو ﷺ بيا عرض وکړي چې يا رسول الله! ﷺ ويښتان قينچي کونکو د پاره هم د رحمت دعا وکړه، [٣] نو نبی کريم ﷺ وفرمايل چې په ويښتانو قينچي کونکو هم رحم وکړې، بخاري، مسلم.

**تسهيلات:**

**قوله:** اللّٰهُمَّ ارْحَمِ الْمُحَلِّقِينَ:

دې نه معلومه شوه چه عمره اوحج کښې سرخرول افضل دی قصر افضل نه دې. قرآن کريم کښې هم حلق مقدم ذکر کړې شوې دې.

**[٢٦٤٩] د سرخرونکو د پاره درې ځله دعا کول**

٢٦٣١-[٤] ( )[١] وَعَنْ يَحْيَى بْنِ الْحُصَيْنِ، عَنْ جَدَّتِهِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا -، «أَنَّهَا سَمِعَتِ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ دَعَا لِلْمُحَلِّقِينَ ثَلَاثًا، وَلِلْمُقَصِّرِينَ مَرَّةً وَاحِدَةً». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] يحيی ابن حصين (تابعي) ﷫ د خپلې انا محترمی ښځه (چې د هغی کنيت ام الحصين دی) نقل کوي چې هغه د نبی کريم ﷺ ښخه د سر خريونکو د پاره درې ځله او د ويښتانو د قينچي کونکو د پاره (په آخر کې) يو ځل دعا کول واوريدل، مسلم.

**تسهيلات:**

**قوله:** دَعَا لِلْمُحَلِّقِينَ ثَلَاثًا:

**د محلقينو د پاره د دوه ځله دعا کولو وجه:** بعض رواياتو کښې د حلق والو د پاره د حضورپاك د طرف نه د ددوه ځله د رحمت د دعا ذکر دې لکه څنګه چه دې نه وړاندې روايت کښې دی بعض رواياتو کښې د دريو ځلو ذکر دې. لکه چه زيربحث روايت کښې دی اوبعضو رواياتو کښې د څلورو ځلو ذکر موجود دې په دې رواياتو کښې هيڅ تضادنشته دې. په مختلف مواقع اومختلف مجالس کښې حضورپاك د محلقينو د پاره د رحمت دعا فرمائيلې ده. په يومجلس کښې دوه ځل بل کښې درې ځل او بل کښې څلور ځل دعافرمائيلې ده.

---

[١] اخرجه مسلم فی کتاب الحج /باب تفضيل الحلق على التقصير وجواز التقصير (رقم-٣٢١ - (١٣٠٣)

**[٢٦٥٠] حضورپاك د ښي طرف وېښته حلق كولو سره په صحابه كرامو كښې تقسيم كړل**

٢٦٥٠-[٥] ( )[١] وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَتَى مِنًى، فَأَتَى الْجَمْرَةَ،[٢] فَرَمَاهَا، ثُمَّ أَتَى مَنْزِلَهُ بِمِنًى، وَنَحَرَ نُسُكَهُ،[٣] ثُمَّ دَعَا بِالْحَلَّاقِ، وَنَاوَلَ الْحَالِقَ شِقَّهُ الْأَيْمَنَ،[٤] ثُمَّ دَعَا أَبَا طَلْحَةَ الْأَنْصَارِيَّ، فَأَعْطَاهُ إِيَّاهُ،[٥] ثُمَّ نَاوَلَ الشِّقَّ الْأَيْسَرَ، فَقَالَ: "احْلِقْ" فَحَلَقَهُ، فَأَعْطَاهُ أَبَا طَلْحَةَ،[٦] فَقَالَ: "اقْسِمْهُ بَيْنَ النَّاسِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[١] حضرت انس ﷜ وايي چې نبی کريم ﷺ د منى څخه د راتلو وروسته جمره عقبه ته تشريف راوړو ،[٢] هلته يې كانړي وويشتلی، بيا يې په منى كې خپل قيام گاه ته تشريف راوړو، او د خپلي هدي څاروی يې ذبح كړي،[٣] د دې څخه روسته سر خريونكي (چې د هغه نوم معمر ابن عبد الله وو) راوغوښتلی او د خپل سر مبارك ښی طرف ته حصه يې د هغه مخې ته كړه هغه د نبی كريم ﷺ د سر مبارك هغه رسته اړخ وخريلي،[٤] بيا نبی كريم ﷺ ابوطلحه انصاري ﷜ راوغوښتلی او هغه ته يې هغه خريلي وېښتان وركړه،[٥] د دې څخه روسته نبی كريم ﷺ د خپل سر مبارك كسه حصه خريونكي طرف ته كولو سره وفرمايل چې اوس دا وخريه نو هغه وخريل، دا وېښتان هم نبی كريم ﷺ ابوطلحه انصاري ﷜ ته وركړل،[٦] او ورته يې وفرمايل چې دا وېښتان په خلقو كې تقسيم كړه، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① نُسُكَهُ: د نَسِيكَة جمع ده، وَهِيَ الذَّبِيحَةُ: ذبح شوی څاروی ته وائی (ددې نه مراد هغه بدنه يا هدی ده كوم چه مكې ته اوليږلې شی اوهلته ذبح كړې شی). ② الْحَلَّاق: وَهُوَ الْمُزَيِّنُ: سر خرئيونكې، نانی. ③ نَاوَلَ: ورمخې ته ئې كړو، ور برابر ئې كړو. ④ شِقَّهُ الْأَيْمَنَ: خپل ښې طرف.

**تسهيلات:**

**قوله: شِقَّهُ الْأَيْمَنَ:**

**د تبرك بالاثار الصالحين ثبوت:** دې نه معلومه شوه چه حاجى دَخپل سر هغه وېښته اول كټ كړې كوم چه ښى طرف كښې دى. اودَدې حديث نه داهم معلومه شوه چه دَ تبرك په توگه حضورپاك دَخپل سر مبارك وېښته مبارك په صحابه كرامو ﷺ كښې تقسيم كړل حضورپاك دَدې پوره اهتمام اوكړو اوحكم ئې وركړو چه "اقسمه بين الناس" په خلقو كښې دا تقسيم كړه دې سره "تبرك بالآثار الصالحين" ثابتيږى. دكوم طرف ته چه ملاعلى قارى ﷫ مرقات كښې بار بار اشاره كوى. افسوس چه نن صبا نجدى حضرات دې حديث ته اهميت وركړى اونجدى سره لږ شان وجدى هم شى.

١) اخرجه مسلم فى كتاب الحج /باب بيان أن السنة يوم النحر أن يرمى. ثم ينحر. ثم يحلق والابتداء فى الحلق بالجانب الأيمن من رأس المحلوق (رقم-٣٢٦ - (١٣٠٥)

[٢٦٥١] دَ احرام نه مخكې او دَ حلق نه پس دَ خوشبوئي د استعمال جواز

[٦] ( ) ١ وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ٢ «كُنْتُ أُطَيِّبُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَبْلَ أَنْ يُحْرِمَ، ٣ وَيَوْمَ النَّحْرِ قَبْلَ أَنْ يَطُوفَ بِالْبَيْتِ (بِطِيبٍ) فِيهِ مِسْكٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: ١ بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي ٢ چې ما به نبي كريم ﷺ ته د احرام تړلو څخه مخكې خوشبو لګوله (احرام كه د حج وو، او كه د عمرې او كه د دواړو) ٣ او ما به د نحر (قرباني) په ورځ هم د خانه كعبې د طواف څخه مخكې (خو د سر خريلو او جامو اغوستو څخه پس) نبي كريم ﷺ ته خوشبو لګوله، او خوشبو هم هغه چې په هغه كې به مشك وو، بخاري، مسلم.

تسهيلات:

قوله: وَيَوْمَ النَّحْرِ قَبْلَ أَنْ يَطُوفَ بِالْبَيْتِ:

**د احرام څخه وړاندې دخوشبوئي حكم:** دَاحرام نه مخكښې دَخوشبوئی استعمال په ويښتو اوكپړو باندې جائز دې ليكن په بدن باندې داسې عطرنه دی لګول پكار چه دَ احرام نه پس په بدن باندې باقي پاتې شی او دَ حلق نه پس دَ هرقسم خوشبوئی استعمال جائز دې لكه چه دَدې حديث نه ثابته ده.

[٢٦٥٢] د اختر په ورځ په منى كښې د ماسپخين مونځ كول

[٧] ( ) ١ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَفَاضَ يَوْمَ النَّحْرِ، ثُمَّ رَجَعَ، فَصَلَّى الظُّهْرَ بِمِنًى». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه: ١ ابن عمر رضي الله عنهما راوي دی چې نبي كريم ﷺ د نحر په ورځ (د رَمي او قرباني څخه فارغيدو سره) مكې ته تشريف راوړو، او د ځابنت په وخت يې فرض طواف وكړي، بيا (په هغه ورځ) د هغه ځاي څخه واپس شو، او د ماسپخين مونځ يې په منى كې وكړي، مسلم.

تسهيلات: قوله: بِمِنًى:

**درواياتو په مينځ كښې دفع تعارض:** رسول الله ﷺ دَ نحر په ورځ دَ ماسپښين مونځ په منى كښې اداكړو. سوال دادې چه دَحضرت جابر رضي الله عنه روايت كوم چه دَ حجة الوداع په قصه كښې ذكردې په هغې كښې تصريح موجود ده چه حضورپاك دَ نحر په ورځ دَ ماسپښين

١) اخرجه البخاري فى كتاب الحج/باب الطيب عند الإحرام، وما يلبس إذا أراد أن يحرم، ويترجل ويدهن (رقم-١٥٣٩) ومسلم فى كتاب الحج /باب الطيب للمحرم عند الإحرام (رقم-٤٦ - (١١٩١) وابوداود فى كتاب المناسک/باب الطيب عند الإحرام (رقم-١٧٤٥) والترمذى فى كتاب الحج عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الطيب عند الإحلال قبل الزيارة (رقم-٩١٧) والنسائى فى كتاب مناسک الحج/باب إباحة الطيب عند الإحرام (رقم-٢٦٨٥) وابن ماجة فى كتاب المناسک/باب الطيب عند الإحرام (رقم-٢٩٢٦) واحمد فى المسند:١٨٦/٦

) اخره مسلم فى كتاب الحج /باب استحباب طواف الإفاضة يوم النحر (رقم-٣٣٥ - (١٣٠٨))

مونږ په مکه کښې کړې وو او دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په دې حدیث کښې مذکوردی چه منی کښې نی کړې وو داتضاددې.

دَدې جواب دادې چه په حقیقت کښې حضورپاك په یوم نحر کښې دَ ماسپښین مونږ هم په مکه کښې اداکړې وو لکه چه دَحضرت جابر رضي الله عنه په روایت کښې دی او په منی کښې حضورپاك صرف نفل کړې وو حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نفل فرض اوګنړل اودَ ماسپښین ذکر نی اوکړو.

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## [٢٦٥٣] دَ ښځې دَپاره سر خرول منع دی

٢٦٥٣-[٨] ()[١] عَنْ عَلِيٍّ، وَعَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَا: «نَهَى رَسُولُ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ تَحْلِقَ الْمَرْأَةُ رَأْسَهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ..

**ترجمه**:[١] حضرت علي رضي الله عنه او بي بي عائشه رضي الله عنها دواړه راویان دي چې نبی کریم ﷺ: ښځی د سر خریلو څخه منع فرمایلي ده، ترمذي.

**تسهيلات**:

**قوله**: نَهَى رَسُولُ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-أَنْ تَحْلِقَ الْمَرْأَةُ رَأْسَهَا:

**د ښځې دپاره په حج یا عمره کښې عدم حلق**: په حج او عمره کښې هم دَښځودَپاره دَ سر ویښته پرې کول حرام دی اودَدې نه علاوه هم خرول حرام دی. دَ ښځودَپاره دَ سر ویښته ساتل واجب دی لکه څنګه چه دَ سړو دَپاره ږیره ساتل واجب دی.

## [٢٦٥٤] ښځې دې صرف قصر کوی

٢٦٥٤-[٩] (١)[١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] «لَيْسَ عَلَى النِّسَاءِ الْحَلْقُ، إِنَّمَا عَلَى النِّسَاءِ التَّقْصِيرُ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ. [وَهَذَا الْبَابُ خَالٍ مِنَ الْفَصْلِ الثَّالِثِ]

**ترجمه** [١] ابن عباس رضي الله عنهما راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل[٢] سر خریل د ښځو د پاره ضروري نه دي، بلکه هغوئ ته یواځی خپل ویښتان قینچي کول پکار دي، ابوداؤد، ترمذي، دارمي،

---

() اخرجه الترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة الحلق للنساء (رقم-٩١٤)

(١) اخرجه ابوداود فی السنن رقم الحدیث ١٩٨٥، والدارمی فی السنن رقم الحدیث ١٩٠٦، والداقطنی رقم الحدیث ١٦٥ من کتاب الحج

**تسهيلات:**

**قوله:** لَيْسَ عَلَى النِّسَاءِ الْحَلْقُ:

**د ښځو د پاره د قصر طريقه**: دَ ښځو دَپاره دَ قصر طريقه داده چه هغه پخپله يادَ خپل محرم په ذريعه ټول ويښته په موټى کښې اونيسى اودَ ګوتې دَ بند برابردې پرې کړى. داخبره يادساتل پکاردى چه مروه سره څه ماشومانو قينچى نيولې ولاړوى اودَ خلقو په سر ټك لګولوسره يوڅو ويښته پرې کوى اووائى چه داقصردې داغلط دې داقصرکافى نه دې دې نه ځان ساتل ضرورى دى. کـه دَ شوافع پـه نيزجـائزوى نودَهغوى دَپاره جائزښـه دى دَ احنافوفتوىٰ داسې نه ده.

# [٩] بَابٌ

**خلاصة الباب:**

**فيه أربعة أحاديث مشتملة على مسئلة واحدة.**

① عدم الحرج في التقديم والتأخيرفي مناسک الحج : ١، ٢، ٣، ٤-

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [٢٦٥٥] افعال حج کښې دَتقديم اوتاخير مسئله

٢٦٥٥-[١] ([1]) ① عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-، «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَقَفَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ بِمِنًى لِلنَّاسِ يَسْأَلُونَهُ، ② فَجَاءَهُ رَجُلٌ، فَقَالَ: لَمْ أَشْعُرْ. فَحَلَقْتُ قَبْلَ أَنْ أَذْبَحَ، ③ فَقَالَ: " اذْبَحْ، وَلَا حَرَجَ ". فَجَاءَ آخَرُ، فَقَالَ: لَمْ أَشْعُرْ، فَنَحَرْتُ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ، ④ فَقَالَ: " ارْمِ، وَلَا حَرَجَ ". فَمَا سُئِلَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنْ شَيْءٍ قُدِّمَ، وَلَا أُخِّرَ إِلَّا قَالَ: " افْعَلْ، وَلَا حَرَجَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① عبد الله ابن عمرو ابن العاص ﷛ وايي چې نبى کريم ﷺ د حجة الوداع په موقع په منٰى کې پاتې شو، چې خلق ځني مسائل معلوم کړي، ② يو سړى په خدمت کې حاضر شو، هغه اوويل چې د نا واقفيت په وجه ما د ذبح کولو څخه مخکې خپل سر خريلى دى؟ ③ نبى کريم ﷺ ورته وفرمايل چې اوس ذبح وکړه، په دي کې څه حرج نشته، بيا يو بل سړى راغلو، عرض يي وکړ چې ما د کانړو ويشتلو څخه مخکې څاروى ذبح کړى دى؟ ④ نبى کريم ﷺ ورته وفرمايل چې اوس کانړي ووله، په دي کې څه حرج نشته، دغه شان د نبى کريم ﷺ څخه چې د څه فعل هم د تقديم او تاخير په باره کې سوال وشو، نو نبى کريم ﷺ ورته دا وفرمايل چې اوس يي وکړي، په دي کې څه حرج نشته، بخاري،

[1]) اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب الفتيا على الدابة عند الجمرة (رقم-١٧٣٦) ومسلم في كتاب الحج /باب من حلق قبل النحر. أو نحر قبل الرمي (رقم-٣٢٧ - (١٣٠٦)

مسلم اد مسلم په یو بل روایت کې داسې دي، چې یو سړی د نبی کریم ﷺ په خدمت کې حاضریدو سره عرض وکړي چې ما د کانړو ویشتلو څخه مخکې سر خریلی دی، نبی کریم ﷺ ورته وفرمایل چې اوس کانړي ووله، په دي کې څه حرج نشته یو بل سړی راغلو، هغه اوویل چې ما د خانه کعبې فرض طواف د کانړو ویشتلو څخه مخکې کړی دی، نبی کریم ﷺ ورته وفرمایل چې اوس کانړي ووله په دي کې څه حرج نشته.

**حل اللغات:** ① لَمْ أَشْعُرْ: أَيْ: مَا عَرَفْتُ: زه پوهه نه شوم. ② لَاحَرَجَ: أَيْ: لَا إِثْمَ عَلَيْكَ: هیڅ باک نشته، هیڅ ګناه نشته (یعنی په تا څه فدیه یا دم نه لازمیږی).

**تسهیلات:**

**قوله:** فَقَالَ: "اذْبَحْ، وَلَا حَرَجَ:

**د یوم النحر معمولات:** واضح دې وی چه د ذی الحجة یوم النحر معمولات بالاتفاق څلور دی، اول رمی د جمره عقبه، بیا نحر د هدی یا ذبح، بیا حلق یا تقصیر، بیا طواف افاضه.

**دیوم النحر په احکامو کښې د ترتیب حکم او د فقهاؤ اقوال:** او د دې ترتیب په مطلوبیت باندې هم د علماء کرامو اجماع ده خو د دې ترتیب په سنیت یا وجوب کښې اختلاف دې

① امام شافعی، احمد صاحبین بلکه د جمهور سلف او فقهاء اصحاب الحدیث ﷺ په نزد دا مذکوره ترتیب سنت دې د ترتیب په خلاف کولو باندې دم نه واجب کیږی،

② د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد په قول د شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله د یوم النحر په مناسك اربعه کښې ترتیب واجب دې په دې وجه په خلاف ترتیب کولو باندې به دم لازم وی. هم دا د ابراهیم نخعی مذهب هم دې،

③ امام مالك رحمه الله فرمائی چه په حلق قبل الرمی باندې فدیه واجب ده. او طواف افاضه لره په رمی باندې مقدم کولو کښې دم واجب دې،

**د امام مالک دلائل:**

① ما روی ابن ابی شیبة فی مصنفه عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: مَنْ قَدَّمَ شَيْئًا مِنْ حَجِّهِ، أَوْ أَخَّرَهُ، فَلْيُهْرِقْ لِذَلِكَ دَمًا، واخرج ایضا عن سعید بن جبیر، وابراهیم النخعی وجابر بن زید نحو ذلك،

② واخرج الطحاوی عن ابی سعید الخدری قال سئل النبی ﷺ وهو بین الجمرتین عن رجل حلق قبل ان یرمی قال لاحرج ثم قال عباد الله! وضع الله تعالی الضیق والحرج وتعلموا مناسککم فانها من دینکم)

**د شافعی دلیل:** حدیث عبدالله بن عمرو بن العاص أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَقَفَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ بِمِنًى لِلنَّاسِ يَسْأَلُونَهُ، فَجَاءَهُ رَجُلٌ، فَقَالَ: لَمْ أَشْعُرْ. فَحَلَقْتُ قَبْلَ أَنْ أَذْبَحَ، فَقَالَ: "اذْبَحْ، وَلَا حَرَجَ". فَجَاءَ آخَرُ، فَقَالَ: لَمْ أَشْعُرْ، فَنَحَرْتُ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ، فَقَالَ: "ارْمِ، وَلَا حَرَجَ". فَمَا سُئِلَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ شَيْءٍ قُدِّمَ، وَلَا أُخِّرَ إِلَّا قَالَ: "افْعَلْ، وَلَا حَرَجَ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ځکه چه په کوم تقدیم او تاخیر باندې ﴿لاحرج﴾ فرمائیلې شوې دې د هغې نه د اثم او فدیه دواړو رفع کول مراد دی ځکه چه لفظ د ﴿حرج﴾ په معنی د ﴿الضیق﴾ اثم او فدیه دواړو ته شامل دې او فدیه یعنی دم که واجب وې نو رسول الله ﷺ به ضرور بیان کړې وې ځکه چه دې وخت کښې د بیان کولو ضرورت وو، لهذا په دې قسم ځومره احادیثو کښې چه د ﴿لا حرج﴾ لفظ دې هغه ټول د جمهورو دلیل دې،

**جواب:** امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه په دې حدیث کښې چونکه هغه حضرات بنه پوهیدل په دې وجه ئې ورته د مناسك حج د زدکړې حکم ورکړو، معلومه شوه چه الله پاك د هغوی نه کوم حرج او ضیق دفع کړې دې هغه د امر مناسك نه د جهالت په بناء دې نه د بلې وجې نه، اوس چه کوم د عدم علم په بناء د رفع حرج متعلق اوفرمائیلې شو د هغې نه رفع اثم مراد دې نه رفع دم.

### [۲٦٥٦] کانړی ډ ورځې ویشتل پکاردی

۲٦٥٦–[۲] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: «كَانَ نَبِيُّ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُسْأَلُ يَوْمَ النَّحْرِ بِمِنًى،[۲] فَيَقُولُ: لَا حَرَجَ،[۳] فَسَأَلَهُ رَجُلٌ، فَقَالَ: رَمَيْتُ بَعْدَمَا أَمْسَيْتُ. فَقَالَ: "لَا حَرَجَ"». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابن عباس رضی الله عنهما وایي چې د قربانۍ په ورځ په منٰی کې خلقو د نبی کریم ﷺ ځخه د تقدیم او تاخیر په سلسله کې مسائل معلومول، [۲] او هغه په جواب کې دا فرمایل چې څه حرج نشته ،[۳] یو سړی د نبی کریم ﷺ ځخه پوښتنه وکړه، چې ما د ماښام کیدو ځخه روسته کانړي ویشتلی دی؟ نبی کریم ﷺ ورته وفرمایل چې هیڅ حرج نشته ، بخاري.

**تسهیلات: قوله:** بَعْدَمَا أَمْسَيْتُ:

**د یوم النحر د جمره عقبه به تاخیر کښې مذاهب:**

دَ ذوالحجه دَ لسم تاریخ رمی جمره عقبه کښې که یوسړې دومره تاخیر اوکړو چه شپه شوه

① دَ جمهورو په نیز به په دې سړی باندې دم واجب شی.

② دَامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزداسې ترتیب دې چه دَ طلوع آفتاب نه واخله دَ نمر دَ زوال پورې جمره عقبه په کانړو ویشتل مسنون او بهترین وخت دې. دَ زوال شمس نه واخله ترڈ نمر ډوبیدوپورې دَ جواز وخت دې. دَ نمر ډوبیدونه پس دَ شپې وخت کښې جمره عقبه په کانړو ویشتل مکروه دی داسې نه دی کول پکار. خوکه چا داسې اوکړه نو په هغه به دم نه راځی. دا اختلاف صرف دَ جمره عقبه په کانړو ویشتلوکښې دې دَ باقی ورځو په رمی کښې نشته دې.

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب إذا رمی بعد ما أمسی، أو حلق قبل أن یذبح، ناسیا أو جاهلا (رقم-۱۷۳۵)

**د زیر بحث حدیث څخه جواب:** زیر بحث حدیث کښې "لاحرج" احناف دَ دغه سړی په عذر باندې حمل کوی چه دَهغه څه مجبوری وه.

**دسعودی حکومت فتوی:** نن صبا ۲۰۰۵ء کښې دَ سعودی عرب حکومت دَ حرج اومجبورتنی لاندې اجتهاد کولوسره دا فیصله کړې ده چه دَ جمرات په رمی کښې دَ شپې او ورځې څه قید نشته دې اودَ زوال نه مخکښې هم دَ ټولو جمراتو دَ رمی اجازت دې دې حضراتو په خپل اعلان کښې دَ امام ابوحنیفه دَ اقوالو مختلف حوالې هم ورکړې دی زما په خیال دا ډیره ښه فیصله ده دې دَپاره چه په کولاؤ وختونوکښې رمی اوشی.

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## [۲۶۵۷] په مختلفو طریقوسره د مناسکو د جواز فتوی

۲۶۵۷-[۳] ()[۱] عَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «أَتَاهُ رَجُلٌ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أَفَضْتُ قَبْلَ أَنْ أَحْلِقَ، [۲] فَقَالَ: "احْلِقْ، أَوْقَصِّرْ، وَلَا حَرَجَ" [۳]. وَجَاءَ آخَرُ، فَقَالَ: ذَبَحْتُ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ. قَالَ: "ارْمِ، وَلَا حَرَجَ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت علي فرمايي چې يو سړی د نبی کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو، او عرض يې وکړې چې يا رسول الله! ﷺ ما طواف افاضه يعنی فرض طواف د سر خريلو څخه مخکې کړی دی؟ [۲] نبی کريم ﷺ ورته وفرمايل چې اوس سر وخريه يا ويښتان قينچي کړه. په دې کې څه گناه نشته، [۳] دغه شان يو بل سړی راغلو، عرض يې وکړې چې ما د کانړو ويشتلو څخه مخکې څاروی ذبح کړی دی؟ نبی کريم ﷺ ورته وفرمايل چې اوس کانړي ووله. په دې کې څه گناه نشته، ترمذي [اخرجه الترمذی].

**تسهيلات:**

**قوله:** فَقَالَ: "احْلِقْ، أَوْقَصِّرْ، وَلَا حَرَجَ:

**دامام شافعی مستدل:** دا حديث د امام شافعی رحمه الله دليل دی چه په دې ارکانه اربعه کښې ترتيب مسنون دې په تقديم او تاخير سره دم نه لازميږی.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۲۶۵۸] د مسلمان د بې عزته کولو وعيد

۲۶۵۸-[٤] ()[۱] عَنْ أُسَامَةَ بْنِ شَرِيكٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: «خَرَجْتُ مَعَ رَسُولِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -

[۱]) اخرجه الترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فیمن حلق قبل أن یذبح. او نحر قبل أن یرمی واحمدفی السند:(رقم-۹۱۶)

[۲]) اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک/باب فیمن قدم شیئا قبل شیء فی حجه (رقم-۲۰۱۵)

فَكَانَ النَّاسُ يَأْتُونَهُ، فَمِنْ قَائِلٍ: يَا رَسُولَ اللهِ، سَعَيْتُ قَبْلَ أَنْ أَطُوفَ، أَوْ أَخَّرْتُ شَيْئًا، أَوْ قَدَّمْتُ شَيْئًا، فَكَانَ يَقُولُ: "لَا حَرَجَ إِلَّا عَلَى رَجُلٍ اقْتَرَضَ عِرْضَ مُسْلِمٍ وَهُوَ ظَالِمٌ، فَذَلِكَ الَّذِي حَرِجَ وَهَلَكَ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] اسامه بن شریک ﷺ وايي چې ماتـه دنبي کـريم ﷺ سره د حـج د ادائيګـۍ سعادت حاصل شوی دی، [۲] نو د حج په دوران کې چې کوم خلق د مسائلو پوښتلو د پاره د نبی کریم ﷺ په خدمت کې حاضریدل په هغوئ کې به چا دا ویل چې یا رسول الله! ﷺ ما د طواف کعبه څخه مخکې سعي کړېده (یا د افعال منی څخه) ما دا کار مخکې کړی دی یا دا کار ما وروسته کړی دی؟ [۳] نو نبی کریم ﷺ بـه هغـه تـه فرمایل چې په دې کې هیڅ ګناه نشته ، بلکه ګناه په هغه سړي ده چې د ظالم کیدو په وجه د یو مسلمان بې عزتي وکړي، نو دا هغه سړی دی چې ګنهګار دی، او هلاك شو، ابوداؤد.

**حل اللغات:** ① اقْتَرَضَ: أَي: اقْتَطَعَ: دَ پرې کولو په معنی کښې دې یعنی کوم سړی چه دَ یو مسلمان بې عزتي او توهین اوکړی، ظلم پرې اوکړی. ② عِرْضَ: عزت او ناموس.

**تسهیلات:**

**قوله:** سَعَيْتُ قَبْلَ أَنْ أَطُوفَ، أَوْ أَخَّرْتُ شَيْئًا:

**دطواف نه مخکښې د سعی کولو حکم:** که د احرام تړلو اود طواف قدوم یا طواف نفل نه مخکښې سعی اوکړې شی نوصحیح به نه وی، یعنی دطواف افاضه نه مخکښې په سعی کولو کښې هیڅ باک نشته، خودا ضروری ده چه سعی د احرام او طواف نه پس وی اګرچه نفل طواف وی. په دې وجه ما دکعبې دطواف نه مخکښې سعی کړې ده، په دې باره کښې به دا وئیلې شی چه سائل که آفاقی (یعنی غیرمکی) وو نوددې مطلب داوو چه ما دحج داحرام او دطواف قدوم نه پس اود طواف افاضه نه مخکښې سعی کړې ده، اوکه سائل مکی وو نوبیا به ددې مطلب دا وی چه ما دحج داحرام اونفلی طواف نه پس د طواف افاضه نه مخکښې سعی کړې ده.

دحدیث آخری الفاظو مطلب دادې چه که د منی په افعالو کښې د ناپوهئ په وجه څه تقدیم او تاخیر اوشی نوهیڅ دګناه خبره نه ده بلکه اصل کښې ګناهګار خوهغه سړې دې څوک چه دظلم اوپه ناحقه تکلیف رسولو دچا بې عزتی اوکړی، مثلا دچا سپکاوې اوکړی، یا دچا غیبت اوکړی، ګویا دغه سړې په دې حکم کښې داخل نه دې څوک چه ددین په خاطر دچا بې عزتی اوکړی، نو داسې سړې به ګناهګار نه وی.

# [۱۰] بَابُ خُطْبَةِ يَوْمِ النَّحْرِ وَرَمْيِ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ وَالتَّوْدِيعِ

**دَ لوئی اختر خطبه ، دَ جمراتو رمی او دَ طواف وداع بیان**

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية عشر حديثاً مشتملة على اثنى عشرة مسئلة:**

① ذكر خطبة النبي ﷺ : ١، ١٢، ١٣.

② وقت الرمي: ٢.

③ الوقوف عند رمي الجمرة الأولى والثانية وعدمه عند رمى الثالثة: ٣، ١٧.

④ جواز التبيت بمكة في أيام منى للضرورة : ٤.

⑤ السقاية إلى بني عباس ﷺ : ٤، ٥.

⑥ عفو طواف الوداع للحيض: ١٠، ١١.

⑦ طريق النزول من منى: ٦، ٧، ٨، ٩.

⑧ طواف التوديع: ٦، ١٠.

⑨ وقت طواف الزيارة : ١٤، ١٧.

⑩ علم الرمل فى طواف الزيارة: ١٥.

⑪ حل كل شئ بعد الرمل : ١٦.

⑫ التبديل فى وقت الرمى للضرورة: ١٨.

قال الله تعالى ﴿ فَمَنْ تَعَجَّلَ فِيْ يَوْمَيْنِ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۚ وَمَنْ تَاَخَّرَ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۙ لِمَنِ اتَّقٰى ؕ ﴾ [سورة البقره الايه: ٢٠٣].

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[٢٦٥٩] دَ قربانئ په ورځ خطبه**

٢٦٥٩ – [١] ١: عَنْ أَبِيْ بَكْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ خَطَبَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ يَوْمَ النَّحْرِ ٢ قَالَ إِنَّ الزَّمَانَ قَدِ اسْتَدَارَ كَهَيْئَتِهٖ يَوْمَ خَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ ٣ السَّنَةُ اِثْنَا عَشَرَ شَهْرًا مِنْهَا اَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ثَلٰثٌ مُتَوَالِيَاتٌ ذُوالْقَعْدَةِ وَذُوالْحِجَّةِ وَالْمُحَرَّمُ وَرَجَبُ مُضَرَ الَّذِيْ بَيْنَ جُمَادٰى وَشَعْبَانَ ٤ وَقَالَ أَيُّ شَهْرٍ هٰذَا قُلْنَا اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ أَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا أَنَّهٗ سَيُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ اسْمِهٖ ٥ فَقَالَ أَلَيْسَ ذَا الْحِجَّةِ قُلْنَا بَلٰى قَالَ أَيُّ بَلَدٍ هٰذَا قُلْنَا اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ أَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا أَنَّهٗ سَيُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ اسْمِهٖ ٦ قَالَ أَلَيْسَ الْبَلْدَةَ قُلْنَا بَلٰى قَالَ فَأَيُّ يَوْمٍ هٰذَا قُلْنَا اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا اَنَّهٗ سَيُسَمِّيْهِ بِغَيْرِ اسْمِهٖ ٧ قَالَ اَلَيْسَ يَوْمَ النَّحْرِ قُلْنَا بَلٰى ٨ قَالَ فَاِنَّ دِمَاءَكُمْ وَأَمْوَالَكُمْ وَاَعْرَاضَكُمْ عَلَيْكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هٰذَا فِيْ بَلَدِكُمْ هٰذَا فِيْ شَهْرِكُمْ هٰذَا ٩ وَسَتَلْقَوْنَ رَبَّكُمْ

فَيَسْأَلُكُمْ عَنْ أَعْمَالِكُمْ ⑩ أَلَا فَلَا تَرْجِعُوا بَعْدِي ضُلَّالًا يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ أَلَا هَلْ بَلَّغْتُ قَالُوا نَعَمْ ⑪ قَالَ اللَّهُمَّ اشْهَدْ فَلْيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ فَرُبَّ مُبَلَّغٍ أَوْعَى مِنْ سَامِعٍ، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابوبكره ﷺ وايي چې نبی كريم ﷺ د قربانۍ په ورځ زمونږ په مخكې خطبه ② وفرمايله چې (اى خلقو!) د زماني (يعنى د كال) گرځلاو پوره شوي دي، د خپل هغه وضع مطابق، چې په كوم هغه هغه ورځ وو، په كومه ورځ چې الله ﷻ آسمان او زمكه پيدا كړې وو ③ (يعني كا ل د خپل هغه وضعي مطابق د دولس مياشتو پوره شوي دي) كال د دولس مياشتو وي، چې په هغه كې څلور مياشتي باحرمت (د عزت) دي، دري خو مسلسل دي يعنى ① ذي القعده ② ذي الحجه ③ محرم او ④ څلورمه د رجب (مضر) چې د جمادي الثاني او شعبان په منځ كې ده ④ بيا نبى كريم ﷺ وفرمايل چې دا كومه مياشت ده؟ مونږ عرض وكړي چې الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ زيات پوهيږي، نبى كريم ﷺ سكوت وكړو تر دي چې مونږ گمان وكړي چې نبی كريم ﷺ به د دې څه بل نوم ايږدي، ⑤ خو حضور ﷺ وفرمايل چې آيا دا ذي الحجه نه ده؟ مونږ اوويل چې بيشكه ذي الحجه ده، بيا نبى كريم ﷺ وفرمايل چې دا كوم ښار دى؟ مونږ عرض وكړو چې الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ زيات پوهيږي، بيا نبى كريم ﷺ خاموشه وو، تر دي چې مونږ گمان وكه چې نبى كريم ﷺ د دې ښار څه بل نوم ايږدي، ⑥ خو نبى كريم ﷺ وفرمايل چې آيا دا بلده (د مكي يو نوم دى) نه ده؟ مونږ عرض وكړو چې بيشكه بلده ده، بيا نبى كريم ﷺ وفرمايل چې دا كومه ورځ ده؟ مونږ اوويل چې الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ زيات پوهيږي، حضور ﷺ سكوت وكړي، تر دي چې مونږ گمان وكه چې نبى كريم ﷺ به د دې ورځ څه بل نوم ايږدي، ⑦ خو نبى كريم ﷺ وفرمايل چې آيا دا يوم نحر (د قربانۍ ورځ) نه ده، مونږ عرض وكړو چې بيشكه دا يوم نحر ده، ⑧ د دې څخه روسته نبى كريم ﷺ وفرمايل چې (ياد لرئ) ستاسو وينه، ستاسو مال او ستاسو ابرو (عزت) په تاسو (د هميشه د پاره) داسې حرام دى، څرنگه چې ستاسو دا ورځ حرامه، ستاسو پدې ښار كې، او ستاسو په دې مياشت كې ⑨ او (اى خلقو!) تاسو ډير نزدې د خپل پروردگار سره يو ځاى كيږي، هغه به ستاسو څخه ستاسو د اعمالو په باره كې پوښتنه كوي، ⑩ خبردار! چې زما د وفات څخه روسته تاسو د ضلالت (گمراهى) طرف ته واپس ونه گرځى، چې تاسو د يو بل څټ وهل شروع كړي، آگاه شى! آيا ما په احكام خداوندي رسولو كې خپل فرض اداء نه كړل؟ مونږ عرض وكړو چې بيشكه تا خپل فرض ادا كړل، ⑪ نبى كريم ﷺ وفرمايل چې اې پروردگاره! ته د دې خلقو په اقرار شاهد اوسى (چې دوى د قيامت په ورځ د خپل اقرار څخه انكار ونه كړي) بيا نبى كريم ﷺ مونږ ته وفرمايل كوم خلق چې دلته موجود دي، هغه دي هغه خلقو ته دا خبري ورسوي كوم چې دلته موجود نه وي، ځكه چې بعضې هغه

خلق چې هغوئ ته څه خبره ورسول شي، د هغه خبري د اوریدونکي څخه زیات یاد لرونکی وي، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① اسْتَدَارَ: راګرځیدلي ده، راتاو شوي ده، ② مُتَوَالِيَاتٌ: أي: مُتَتَابِعَاتٌ: پرله پسې، متواتر، ③ ضُلَّالًا: د ضَالٌ جمع ده، ګمراه کیدوته وائی (په بل روایت کښې کفارا لفظ راغلي دي يعنی په اعمالو کښې د کافرو مشابهت مه اختیاروئ). ④ الشَّاهِدُ: أي: الْحَاضِرُ: چه موجود وی، ⑤ الْغَائِبَ: چه موجود نه وی. ⑥ أَوْعَى: د اسم تفضیل صیغه ده، أي: أَحْفَظُ: ښه یاد ساتونکې، ډیر خیال ساتونکې.

**تسهيلات: قوله:** خَطَبَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ النَّحْرِ:

**په یوم النحر د خطبې په حکم کښې مذاهب:**

①: خطبې متعلق په عمدة القاری کښې اجمالا داسې نقل کړې شوې دی چه د حدیث ابی بکره رضی الله عنه په وجه باندې د امام شافعی او احمد رحمهما الله په نزد د یوم نحر خطبه سنت ده، پس امام نووی رحمه الله فرمائی چه د شوافع په نزد په حج کښې څلور خطبې مشروع دی، اول په اوومه ورځ په مکه کښې د کعبې په خوا کښې، دویمه د عرفې په ورځ په بطن عرنه کښې، دریمه د یوم النحر خطبه، څلورمه د یوم النفر خطبه.

شوافع د حدیث الباب څخه استدلال کوی.

**دحدیث الباب څخه جواب:** زیر بحث حدیث کښې چه کوم دَ لسم ذوالحجه دَ خطبې ذکر موجود دې احناف دا دَ حج خطبې په ځائی دَ وعظ اونصیحت خطبه ګرځوی.

② ابن قدامه رحمه الله فرمائی چه د امام مالک رحمه الله په نزد د یوم النحر خطبه نشته

③ د احنافو په نزد درې خطبې مشروع دی، رومبئ د اوومې ذی الحجة، دویم د عرفې خطبه، دریمه د یولسمې ذی الحجې په منی کښې. (العینی ٧٥٨/٤) احناف دَ هغه روایاتونه استدلال کوی په کوم کښې چه دَ یولسم ذوالحجه دَ خطبې ذکر دې.

**قوله:** إِنَّ الزَّمَانَ قَدِ اسْتَدَارَ كَهَيْئَتِهِ الخ:

**د مشرکانو په میاشتو کښې بدلون کول:** (ای عاد ورجع الی الموضع الذی ابتدا منه) یعنی زمانه کومه چه د کلونو طرف ته او کال کوم چه په میاشتو کښې تقسیم دې دا انقسام هغه اصلی حساب طرف ته واپس شو کوم چه الله پاك د تخلیق کائنات په ورځ معین کړې وو. د هر کال دولس میاشتې او د هرې میاشتې چه کومې یو کم دیرش یا دیرش ورځ الله پاك مقرر کړې دی هغه به هغه خلقو د دولسو میاشتو او بعض د دیارلسو میاشتو منلو، او حج به نې د یوې میاشتې نه بلې میاشتې ته مؤخر کولو هم او کومه میاشت چه به هغوی مؤخر کړه هغه به نې ملغی ګنړلو سره د کال دیارلس میاشتې شمارلې او اشهر حرم کومې چه څلور

مياشتې دی که په هغې کښې به هغوی په جنګ کښې مصروف وو نو دا اشهر حرام به ئې حلال ګنړلې او د هغې په ځائې به ئې بله يوه مياشت حرامه کړه دې کار ته الله پاك په قران کريم کښې باطل اووې ﴿ انما النسئ زيادة في الكفر﴾

**د استدار الزمان مفهوم:** په کوم کال حجة الوداع کښې چه رسول الله ﷺ حج اوکړو دا هغه کال دې په کوم کښې چه د ذو الحج مياشت خپل اصل مقام ته رسيدلې وه، هم په دې وجه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: ﴿ ان الزمان قد استدار كهيئته﴾ يعنی د الله پاك حکم هم دا دې چه ذی الحجة دې په دې وخت کښې وی لهذا تاسو د دې حفاظت کوئ، او حج هميشه هم په دې وخت کښې کوئ او د اهل جاهليت په شان يوه مياشت په بلې مياشت سره مه بدلوئ، که اشهر حرم کوم چه ذوالقعده، ذوالحجة، محرم او رجب دی،

**په اشهر الحرم کښې د قتال په حکم کښې مذاهب:**

①په بيضاوی کښې دی چه د عطاء بن ابی رباح په نزد اوس هم په اشهر حرم کښې قتال حرام دې ②خو د جمهور امت په نزد په اشهر حرم کښې د قتال حرمت منسوخ دې.

**د نسخې دليل:** كما يؤيده انه عليه السلام حاصر الطائف وغزا هوازن بحنين في شوال وذي القعدة.

او امام محمد رحمه الله فرمائی چه دا صحيح ده چه رسول الله ﷺ د محرم د ابتداء نه تر ځلويښتو ورځو پورې د طائف محاصره اوکړه دا هم په نسخ باندې دلالت کوی. (التعليق ۲۴۳/۳، تفسير البيضاوی ۲۰۶/۲)

**اشکال:** که دا اشکال راشی چه د دې حديث نه خو معلومه شوه چه د حجة الوداع په کال ذی الحجة په خپل اصلی محل باندې راغلو نو د دې نه مخکښې په ۸ هجری کښې چه عتاب بن اسيد حرمله او په ۹ هجری کښې په ابوبکر صديق رضی الله عنه باندې رسول الله ﷺ حج اوکړو دا کيدې شی چه په ذی الحجة کښې نه وو، حال دا چه د ذی الحجة نه بغير حج بالاتفاق صحيح نه دې؟

**جواب:** دا دې چه د رسول الله ﷺ ارشاد ﴿ ان الزمان قد استدار كهيئته﴾ د دې منافی نه دې چه په دې دواړو کلونو کښې هم ذی الحجة په اصلی محل باندې راغلې وی بلکه ﴿ قد استدار حجة الوداع﴾ او د دې نه مخکښې د دواړو کلونو متعلق صادق دې.

**قوله: وَقَالَ أَيُّ شَهْرٍ هٰذَا:**

**د نبی کريم ﷺ په تپوس کولو کښې د صحابه کرامو آداب:** نبی مکرم دَ صحابه کرامو نه بار بار دَداسې ځيزونو سوال اوکړو دکوم دَتپوس کولوچه ضرورت نه وو. ليکن دا دَ تعليم دَ ترلو نه ښکلې طريقه وه دې دَپاره چه هرسړې په غور سره واؤری اومعلومه کړی چه حقيقت څه دې. بيا دَ صحابه کرامو ادب ته اوګورئی چه دَ يو ځيز جواب نه ورکوی دې

دپاره چه رسول الله ﷺ پخپله تعين او تشريح اوکړی. په حضورپاك باندې دَ تبليغ احکام واجب وو په دې وجه چه کله حضورپاك دَدې حق اداکړو نو "اللهم اشهد" اعلان ئې اوکړو چه غاړه ئې خلاصه شي.

**[٢٦٦٠] په يولسم اودولسم تاريخ دَ رمي وخت**

٢٦٦٠-[٢] ()[١] وَعَنْ وَبَرَةَ، قَالَ: سَأَلْتُ ابْنَ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا: مَتَى أَرْمِي الْجِمَارَ؟[٢] قَالَ: إِذَا رَمَى إِمَامُكَ فَارْمِهِ، فَأَعَدْتُ عَلَيْهِ الْمَسْأَلَةَ[٣] فَقَالَ: كُنَّا نَتَحَيَّنُ، فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ رَمَيْنَا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** [١] وبره (تابعي رحمه الله) وايي چې ما د ابن عمر رضي الله عنهما څخه پوښتنه وکړه، چې زه (په يولسم دولسم ذي الحجه) رمي جمار کوم وخت وکړم؟[٢] نو هغه وفرمايل کوم وخت چې ستا امام رمي کوي، هغه وخت ته هم رمي کوه (يعني په رمي کې د هغه سرې پيروي کوه، چې د رمي د وخت په باره کې ستا څخه زيات پوهېږي) ما د هغه مخکې بيا دا مسئله کيښووه (يعني ما د هغه څخه د رمي د وخت مزيد وضاحت وغوښتې)[٣] هغه وفرمايل چې مونږ به د رمي په وخت انتظار کولی، تر دې چې نمر به زوال شو، نو مونږ به کاڼړي ويشتلې، بخاري.

**حل اللغات:** ① نَتَحَيَّنُ: أَيْ: نَطْلُبُ الْحِينَ: وخت به مو غوښتلو يعني انتظار به مو کولو.

**تسهيلات: قوله: إِمَامُكَ:**

**د امام څخه مراد:** دې نه اميرالموسم يعني دَ حج امير مراد دې اوبيا دَهرسړی رهبر هم دغه سړې دې چه دَرمی صحيح وختونه ښه پيژنی.

**قوله: نَتَحَيَّنُ:**

**په رمی جمرات کښې ترتيب:** يعني مونږ به دَ رمی دَ وخت انتظارکولو. بهرحال په رمی جمرات کښې دا ترتيب دې چه په لسم ذوالحجه صرف دَ يو جمره عقبه رمی ده. مسجدخيف سره نيزدې چه کومه جمره واقع ده دا جمره عقبه ده . دَ مزدلفه نه دَ راتلو په وخت دا جمره دَ ټولو نه په آخره کښې راځی. په لسم ذوالحجه باندې صرف هم دَدې رمی کول واجب دی اودَ سحر نه ترمابنام پورې دَدې رمی جائز ده. بيا په يولسم اودولسم ذوالحجه دَ دريواړو جمرات رمی واجب ده ليکن مخکښې دَ زوال نه جائز نه ده. بلکه دَ زوال نه پس دَدې وخت شروع کيږی اودَ شپې په وخت هم په وجه دَ مجبورئی جائز ده. که دَ ديارلسم ذوالحجه رمی يوسړې نه کول غواړی نوهغه له پکاردی چه دَ دولسم ذوالحجه دَ غروب آفتاب او طلوع فجر نه مخکښې مخکښې دَمنی نه اوځی که هغه شپه هلته تيره کړه نو اوس به دَ ديارلسم ذوالحجه رمی په دې باندې لازم شی البته رمی دَ زوال نه مخکښې هم جائز ده

[١]) اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب رمي الجمار (١٧٤٦)

## [٢٦٦١]دَرمي جمرات مكمل ترتيب

[٣] ()١ وَعَنْ سَالِمٍ، «عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، ٢ أَنَّهُ كَانَ يَرْمِي جَمْرَةَ الدُّنْيَا بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ، يُكَبِّرُ إِثْرَ كُلِّ حَصَاةٍ، ٣ ثُمَّ يَتَقَدَّمُ حَتَّى يُسْهِلَ، فَيَقُومُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ طَوِيلًا، ٤ وَيَدْعُو، وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ، ثُمَّ يَرْمِي الْوُسْطَى بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ، يُكَبِّرُ كُلَّمَا رَمَى بِحَصَاةٍ، ثُمَّ يَأْخُذُ بِذَاتِ الشِّمَالِ، فَيُسْهِلُ، وَيَقُومُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ،

**ترجمه:** ١ سالم رحمه الله د ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت كوي ٢ چې ابن عمر رضي الله عنهما به په جمره دنيا (يعني جمره اولى) اووه كانړي ويشتلى، او هرى كانړي څخه روسته به يې الله اكبر ويلى، ٣ بيا به مخكې تللى، تر دې چې نرمې زمكې ته به ورسيدى، نو تر ډېره وخته مخ په قبله كيدو سره به ودريدلى،

**حل اللغات:** ① جَمْرَةَ الدُّنْيَا: أَيِ: الْبُقْعَةُ الْقُرْبَى: نژدې جمره (د مزدلفې نه واپسۍ كښې چه كومه جمره راځي هغه مراد ده او هغې ته جمره اولى هم وائي). ② يُسْهِلَ: وَهُوَ اللَّيِّنُ: نرمې زمكې ته وائي، أَيْ: يَدْخُلَ الْمَكَانَ السَّهْلَ: نرمې زمكې ته به اورسيدو (د سهل ضد حَزن او صَعب راځي)،

١ ثُمَّ يَدْعُو، وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ، وَيَقُومُ طَوِيلًا، ٢ ثُمَّ يَرْمِي جَمْرَةَ ذَاتِ الْعَقَبَةِ مِنْ بَطْنِ الْوَادِي بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ، يُكَبِّرُ عِنْدَ كُلِّ حَصَاةٍ، وَلَا يَقِفُ عِنْدَهَا، ٣ ثُمَّ يَنْصَرِفُ، فَيَقُولُ: هَكَذَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَفْعَلُهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ او دعا به يې غوښتله او خپل دواړه لاسونه به يې پورته كول او تر ډېره وخته به ولاړ وو، ٢ تر دې چې په جمره عقبه به يې د بطن وادي څخه اووه كانړي ويشتلى، او د هرى كانړي سره به يې الله اكبر ويلى، او د دې جمرې سره به نژدې نه پاتې كيدلى، ٣ بيا به د هغه ځاى څخه واپس تللى، او ويل به يې چې ما نبى كريم صلى الله عليه وسلم په دغه شان كولو ليدلى دى، بخاري.

**حل اللغات:** ③ يَنْصَرِفُ: واپس به تللو.

**تسهيلات:**

**قوله:** جَمْرَةَ الدُّنْيَا:

**د جمره دنيا مصداق:** دَ مزدلفه نه راتلوسره چه كوم جمره اول مخامخ راځي هم دغه جمرهٔ دنيا او جمرهٔ اولى ده. دې نه پس جمرهٔ وسطى ده اوآخركښې جمرهٔ عقبى ده. دَ اول او دويم جمره دَ ويشتلونه پس دعاغوښتل هم مستحب دى اوپيدل ويشتل هم مستحب دى. دَ جمرهٔ عقبى نه پس اودريدوسره دَدعا ضرورت نشته دې اوچونكه حاجى له دَجمرات نه فارغ كيدوسره تلل وى په دې وجه په سورلئى سوريدوسره دَدې ويشتل بهتردى. نن صباخودَ سوريدو تصور هم ممكن نه دې.

١) اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب رفع اليدين عند جمرة الدنيا والوسطى (رقم-١٧٥٢)

**قوله**: مِنْ بَطْنِ الْوَادِي:

**د بطن الوادی مصداق**: نن صبا دَ وادئی اندازه خو نه کیږی البته دامعلومولې شی چه نبی پاك په کوم مقام باندې اودریدو سره رمی کړې وه. دَدې طریقه داده چه دَرمی کونکی سړی گسه اوږه کوم وخت دَ قبلې طرف ته وی اوښې اوږه دَ مزدلفه طرف ته وی اومخ نی دَ جمره طرف ته وی نودلته دا گنړل پکاردی چه هم دَدې طرف نه حضورپاك رمی کړې وه.

**[٢٦٦٢] په مِنٰی کښې دَشپې حصاریدل واجب دی که سنت؟**

٢٦٦٣-[٤] ()[١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-قَالَ: «اسْتَأْذَنَ الْعَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ رَسُولَ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-أَنْ يَبِيتَ بِمَكَّةَ لَيَالِيَ مِنًى، مِنْ أَجْلِ سِقَايَتِهِ[٢] فَأَذِنَ لَهُ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [١] ابن عمر ﷠ وایي چې حضرت عباس ﷛ ابن عبدالمطلب نبی کریم ﷺ ته د دې خبرې خواست وکه چې په کومو شپو کې د منٰی قیام کیږی، په هغه کې ده ته د زمزم د خدمت د پاره په مکه کې د اوسیدو اجازت ورکول شي، [٢] نو نبی کریم ﷺ هغه ته اجازت ورکړي، بخاري، مسلم.

**تسهیلات**:

**قوله**: اسْتَأْذَنَ الْعَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ رَسُولَ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:

**د عباس د زمزم ویشلو مطالبه کولو وجه**: دَ حضورپاك تره حضرت عباس ﷛ بیت الله سره دَ زمزم دَ کوهی نگران وو. چنانچه دَهغوی په نگرانئی کښې حاجیانو باندې دَ زمزم اوبه څکولې. هم دَدې خدمت دَپاره حضرت عباس ﷛ دَ حضورپاك نه اجازت اوغوښتو چه زه به دَ منٰی شپه په مکه مکرمه کښې تیره کړم دې دَپاره چه دَ حاجیانو خدمت اوکړې شم. حضورپاك هغوی ته اجازت ورکړو.

**په منٰی کښې درې ورځې تیرولو شرعی حیثیت**: دَ رمی جمار په ورځو کښې منٰی کښې درې شپې تیرولو ته لیالی منٰی اومبیت منٰی وائی. اوس شرعی مسئله داده په دې باندې دَ ټولو فقهاؤ اتفاق دې چه دَمنٰی درې شپې هم په منٰی کښې تیرول پکاردی. بل ځائی کښې مبیت نه دی اختیارول پکار. لیکن په دې کښې بحث دې چه دَ مبیت منٰی حیثیت واجب دې یا دا مبیت سنت دې. چنانچه دَ امام شافعی ﷫ اوامام احمدبن حنبل ﷫ په نیزدا درې شپې منٰی کښې تیرول واجب دی دَدې په ترك کولوباندې دم لازم راځی. دَ امام ابوحنیفه ﷫ مذهب او په یوقول کښې دَ امام شافعی ﷫ او امام احمدبن حنبل ﷫ په نیز مبیت منٰی سنت دې دَدې په ترك باندې دم نه راځی. البته بغیردَ عذر نه دَدې ترك کول ډیر خراب

---

[١]) اخرجه البخاری فی کتاب الحج /باب هل يبيت أصحاب السقاية أو غيرهم بمكة ليالي منى؟ (رقم-١٧٤٥) ومسلم فی کتاب الحج /باب وجوب المبيت بمنى ليالي أيام التشريق، والترخيص في تركه لأهل السقاية(رقم-٣٤٦ - (١٣١٥)

کار دي. د زير بحث حديث نه امام ابوحنيفه رحمه الله استدلال کړي دي چه مبيت منى سنت دي ځکه چه که مبيت واجب وې نو حضور پاك به حضرت عباس رضي الله عنه ته اجازت نه ورکولو.

**[٢٦٦٢] رسول الله ﷺ د زمزم په کوهي باندې**

[٥] () ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا -، «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - جَاءَ إِلَى السِّقَايَةِ، فَاسْتَسْقَى، ② فَقَالَ الْعَبَّاسُ: يَا فَضْلُ، إِلَى أُمِّكَ فَأْتِ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِشَرَابٍ مِنْ عِنْدِهَا، ③ فَقَالَ: "اسْقِنِي ④" فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، إِنَّهُمْ يَجْعَلُونَ أَيْدِيَهُمْ فِيهِ. ⑤ قَالَ: "اسْقِنِي"

**ترجمه:** ① ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې نبی کريم ﷺ سبيل ته تشريف راوړي، او د زمزم اوبه يې وغوښتلې، ② حضرت عباس رضي الله عنه خپل خوی فضل رضي الله عنه ته وويل، اې فضل! خپلې مور ته ورسه، او د نبی کريم ﷺ د پاره د هغې څخه (د زمزم هغه) اوبه وغواړه (چې د هغې سره پرتې دي، اوس لا استعمال شوی نه دي) ③ نبی کريم ﷺ (د دې اوريدو سره) وفرمايل چې ته په ما د دې سبيل څخه اوبه وڅښه، ④ حضرت عباس رضي الله عنه عرض وکړو چې يا رسول الله! ﷺ خلق په دې کې خپل لاس اچوي، ⑤ نبی کريم ﷺ وفرمايل چې هيڅ حرج نشته، په ما باندې يې د دې څخه وڅښه،

**حل اللغات:** ① السِّقَايَةِ: أَيْ: سِقَايَةِ الْحَاجِّ: دحاجيانو د اوبو څکلو ځائې يعنی د زمزم کوهی سره چرته چه به حاجيانو ته اوبه ورکولې شوې.

① فَشَرِبَ فِيهِ، ثُمَّ أَتَى زَمْزَمَ، وَهُمْ يَسْقُونَ، وَيَعْمَلُونَ فِيهَا، ② فَقَالَ: "اعْمَلُوا، فَإِنَّكُمْ عَلَى عَمَلٍ صَالِحٍ ③" ثُمَّ قَالَ: "لَوْلَا أَنْ تُغْلَبُوا، لَنَزَلْتُ حَتَّى أَضَعَ الْحَبْلَ عَلَى هَذِهِ" ④. وَأَشَارَ إِلَى عَاتِقِهِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① نو نبی کريم ﷺ د هغه څخه وڅکلې، بيا د زمزم کوهی لره يې تشريف راوړو، چې هلته (د عبد المطلب د خاندان والا) په خلقو اوبه څکلې، او په دې خدمت کې په پوره طور سره مصروف وو، ② نبی کريم ﷺ هغوئ ته وفرمايل چې خپل کار جاري ساتی، ځکه چې تاسو په يو نيك کار کې اخته يي، ③ بيا يي وفرمايل چې که ماته دا خوف نه واي، چې خلق به تاسو باندې غلبه پيدا کړي، نو زه به (د خپلې اوښې څخه) راخکته شوی وې (په کومې نبی کريم ﷺ سور وو، چې نبی کريم ﷺ د تولو په مخکې وي، او خلق د ده ﷺ څخه د حج عملي احکام زده کړي) ④ او نبی کريم ﷺ د خپلې وږې طرف ته اشاره کولو سره وفرمايل چې رسی به مې په دې اينبې وې، يعنی که ما سره د دې خبرې بيره نه وې، چې خلقو به زه اوبه راکښونکی ليدو سره زما د سنت په اتباع کې به اوبه راخکل شروع کړې او د دې سعادت د حصول د پاره به دومره رش شي، چې هغه به په تاسو غالب شي، او تاسو به د اوبو راخکلو ته پرې نه ږدي، چې د هغه په وجه به دا مقدس خدمت

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب سقاية الحاج (رقم-١٦٣٥)

ستاسو د لاس څخه ولاړ شي، نو زه به هم د خپلي اوبني څخه راخکته کیدو سره د دې کوهی څخه به مي اوبه راخکلي وی، بخاري.

**حل اللغات:** ② الحَبْلَ: رسئ.

**تسهيلات: قوله:** السِّقَايَةِ:

**د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د تواضع مظاهره:** دَزمزم کوهی سره دَ زمزم سبیل لګیدلې وو عامو خلقو به دَهغې نه اوبه څکلې. رسول الله ﷺ هم هلته کوزشو او دَ څکلودپاره ئې اوبه اوغوښتلې. حضرت عباس ؓ خپل خوئی حضرت فضل ؓ ته اوفرمائیل چه لاړ شه دَ کور نه دَ زمزم اوبه راوړلو سره حضورپاك ﷺ باندې اوڅکوه. څکه چه دَ سبیل په دې اوبو کښې عام خلق لاس وهی. رسول الله ﷺ دَ اوچتې تواضع مظاهره کولوسره حکم ورکړو چه هم دَ دغه عامو اوبونه په ماباندې اوڅکوه.

دې نه پس حضورپاك ﷺ دَزمزم کوهی له راغلو دکوم ځائی چه اوبه دَ ډولچې په ذریعه سره راویستلې. حضورپاك ﷺ خواهش ښکاره کړو چه زما زړه غواړې چه زه دَخپلې اوبنې نه کوزشم پخپله دَزمزم دَ کوهی نه دَ ډولچې په ذریعه اوبه راکاږم لیکن که زه داسې اوکړم نوبیا به ټول خلق په تاسو باندې راپریوځی اوداخدمت به تانه واخستلې شی. لهذا دابهتر کاردې ته هم دا پوره کوه. په دې روایت کښې هم دغه شان قصه ده په یوبل روایت کښې بل شان قصه ده چه حضورپاك دَ اوبنې نه راکوز شو اودَ ډولچې په ذریعه سره ئې اوبه حاصلې کړې اوباقی اوبه ئې دوباره کوهی ته واچولې. معلومیږی چه دا دوه جدا جدا واقعات دی.

**[٢٦٦٤] دَرسول الله ﷺ دَطواف وداع دَپاره راتلل**

٢٦٦٤-[٦] (¹) ١ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَلَّى الظُّهْرَ، وَالْعَصْرَ، وَالْمَغْرِبَ، وَالْعِشَاءَ، ٢ ثُمَّ رَقَدَ رَقْدَةً بِالْمُحَصَّبِ، ثُمَّ رَكِبَ إِلَى الْبَيْتِ، فَطَافَ بِهِ» رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** ١ حضرت انس ؓ وايي چې نبی کريم ﷺ د ذي الحجه په ديارلسم تاريخ د منی څخه روانيدو سره په محصّب کې د ماسپخين، مازيګر، ماښام او ماسخوتن مونځ وکړي، ٢ هلته تر څه وخته اوده شو، بيا د خانه کعبې د پاره سور شو، هلته رسيدو سره طواف وداع يې وکړي، بخاري.

**حل اللغات:** ① رَقَدَ رَقْدَةً: أَيْ: نَامَ نَوْمَةً خَفِيفَةً: لږ وخت اوده شو ② بِالْمُحَصَّبِ: وَهُوَ كُلُّ مَوْضِعٍ كَثُرَ حَصَاؤُهُ: کوم ځائې چه کانړی وی هغې ته محصب وائی ،دلته ترې دَ منی او بیت الله په مینځ کښې دَ یوځائی نوم دې هغه مراد دې، هغې ته ابطح هم وائی او بطحاء هم ورته وائی اودې ته خیف بنی کنانه هم وائی.

¹) اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب طواف الوداع (رقم-١٧٥٦) والدارمي في السنن ٧٧ الحديث رقم ١٨٧٣

**تسهیلات: قوله:** ثُمَّ رَكِبَ إِلَى الْبَيْتِ، فَطَافَ بِهِ:

**په آفاقی باندې د طواف وداع وجوب:** طواف وداع آفاقی دپاره واجب دی چه کله دحج افعال ختم شی اوحاجی خپل وطن ته واپس کیدل غواړی نوهغه د بیت الله طواف کولوسره رخصت کیږی. هم دغه درخصتنی طواف ته طواف وداع وائی حضورپاك چونکه آفاقی وو په دې وجه په دیارلسم ذوالحجه باندې د رمی نه فارغیدو سره بیت الله شریف ته راغلو اوطواف وداع کولوسره مدینې منورې طرف ته روان شو.

**په محصب کښې د قیام او ایساریدلو شرعی حیثیت:** دمنی نه دبیت الله طرف ته راتلو سره حضورپاك په محصب کښې لږ شان قیام اوکړو. هم په دې ځائی کافرانو د قریشو بنوهاشم سره سوشل بائیکاټ حلف نامه لیکلې وه.

**په مقام محصب کښې د حاجی دپاره په قیام کولوکښې مذاهب:**

① بعض علماء وائی چه تحصیب کول یعنی محصب کښې حصاریدل مسنون او د حج افعالو تتمه ده. د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه هم دغه رائې وه.

② نور علماء فرمائی په محصب کښې د حضورپاك حصاریدل یواتفاقی معامله وه څه شرعی مسئله نه وه د احناف په کتابونوکښې هم لیکلی دی چه محصب کښې حصاریدل یو اتفاقی معامله وه. نن صباخو څوك محصب پیژنی هم نه.

**داول فریق دلیل:** زیربحث حدیث د اول فریق دلیل دې.

**داول فریق د دلیل دوه جوابونه:** ① حضورپاك په دې وجه هلته حصار شوې وو چه د دې ځائی نه د مدینې طرف ته وتل آسان وو

② په دې وجه حصار شوې وو چه د الله تعالی شکر اداکول وو چه هم په دې ځائی کښې کافرانو څنګه ظالمانه فیصله کړې وه اونن دکفر دلته نوم اونښه نشته بلکه د اسلام غلبه ده

**د دویم فریق دلیل:** راتلونکی حدیث نمبر ۲۶۶۶ د دوی مستدل دې په کوم کښې چې حضرت عائشې رضی الله عنها په صراحت سره دا ذکر کړې دې چې په مقام محصب کښې قیام کول څه حیثیت نه لری.

**[٢٦٦٥] حضور ﷺ د ترویه او د نفر په ورځ د ماسپخین او ماځیګر مونځ کوم ځای اوکړو؟**

٢٦٦٥ــ[٧] (١)[١] وَعَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ، قَالَ: «سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قُلْتُ: أَخْبِرْنِي بِشَيْءٍ عَقَلْتَهُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] أَيْنَ صَلَّى الظُّهْرَ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ؟ [٣] قَالَ: بِمِنًى؟ [٤] [قَالَ]: فَأَيْنَ صَلَّى الْعَصْرَ يَوْمَ النَّفْرِ؟ قَالَ: بِالْأَبْطَحِ. [٥] ثُمَّ قَالَ: افْعَلْ كَمَا يَفْعَلُ أُمَرَاؤُكَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

(١) اخرجه البخاری فی كتاب الحج /باب من صلی العصر یوم النفر بالأبطح (رقم-١٧٦٣) ومسلم فی كتاب الحج /باب استحباب طواف الإفاضة یوم النحر (رقم-٣٣٥ - ٣٣٦ - (١٣٠٩)

**ترجمه** ① عبد العزيز بن رفيع (تابعي) رحمه الله وايي چې ما انس بن مالك ﷺ ته عرض وکړو چې ته د نبی کريم ﷺ متعلق په دې باره کې څه چې درته معلوم دي ماته يې وښايه، ② چې نبی کريم ﷺ د ترويه په ورځ (يعني د ذي الحجه په اتم تاريخ) د ماسپخين مونځ کوم ځاى وکړى؟ ③ انس ﷺ وفرمايل چې په منى کې ④ عبد العزيز وايي چې ما بيا د انس ﷺ څخه دا پوښتنه وکړه، چې نبی کريم ﷺ د نفر په ورځ (يعني د ذي الحجه په دیارلسم تاريخ) د مازيګر مونځ کوم ځاى وکړى؟ انس ﷺ وفرمايل چې په ابطح کې، ⑤ بيا انس ﷺ وفرمايل چې ته داسې کوه څرنګه چې ستا اميران يې کوي، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① عَقَلْتَهُ: أَيْ: عَلِمْتَهُ: چه تاته معلوم دی، تاته ياد دی. ② يَوْمَ التَّرْوِيَةِ: أَيْ: الْيَوْمَ الثَّامِنَ: د ذی الحجه اتمې ورځ ته يوم الترويه وائی. ③ يَوْمَ النَّفْرِ: وَهُوَ الْيَوْمُ الثَّالِثُ مِنْ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ: د ايام تشريق دريمه ورځ يعنی د ذی الحجه دیارلسمه ورځ.

**تسهيلات:**

**قوله:** اِفْعَلْ كَمَا يَفْعَلُ أُمَرَاؤُكَ:

**د مذکوره جملې مطلب:** دحديث دآخرى جملې مطلب دادې چه نبی کريم ﷺ خو دغه شان کړى وو، خوته په دې باره کښې دخپل سردار اودخپل امير تابعدارى اوکړه، چه څنګه هغه کوى هغه شان ئې ته کوه، چه دهغه دمخالفت په وجه څه فتنه جوړه نه شى، اوهسې دا څه ضرورى خبره هم نه ده چه د ترويه په ورځ نبی عليه السلام چرته د ماسپخين مونځ او د نفر په ورځ ئې چرته د مازيګر مونځ کړې دې هلته ئې ته هم اوکړه.

**په روايانو کښې تعارض:** د رومبى روايت نه خودا معلومه شوې وه چه نبی کريم ﷺ د نفر په ورځ يعنی د ذی الحجې په دیارلسمه ورځ د ماسپخين مونځ په محصب کښې کړې وو، حالانکه په دې حديث کښې ددې خبرې ذکرنشته. په ظاهريو قسم تعارض ښکارى؟

**دتعارض حل:** نبی کريم ﷺ د ماسپخين مونځ په محصب کښې کړې وو لکه چه دحضرت انس ﷺ د رومبى روايت نه معلومه شوه، خوپه دې موقع چونکه حضرت عبد العزيز رحمه الله ددغه ورځې د ماسپخين مونځ په باره کښې تپوس اونکړو، په دې وجه په دې دويم روايت کښې حضرت انس ﷺ هم ددې ذکر اونکړو.

**[٢٦٦٦] په ابطح کښې قيام سنت نه دې**

٢٦٦٦-[٨] ()① وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ: نُزُولُ الْأَبْطَحِ لَيْسَ بِسُنَّةٍ، ② إِنَّمَا «نَزَلَهُ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لِأَنَّهُ كَانَ أَسْمَحَ لِخُرُوجِهِ إِذَا خَرَجَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

() اخرجه البخاری فی كتاب الحج /باب المحصب (رقم-١٧٦٥) ومسلم فی كتاب الحج /باب استحباب النزول بالمحصب يوم النفر والصلاة به (رقم-٣٣٩ - (١٣١١)

**ترجمه:** [١] أم المؤمنين بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي چې په ابطح کې خکته کيدل (يعني پاتې کيدل) سنت نه دی، [٢] او نبی کريم ﷺ خو هلته يواځې د دې د پاره خکته شوی وو، چې (د مکې څخه) په تلو کې اساني وی، هر کله چې نبی کريم ﷺ د هغه ځای څخه روان شوی وو، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① نُزُولُ الْأَبْطَحِ: ابطح مقام کښې ښکته کيدل يعنی پاتې کيدل. ② أَسْمَحَ: أَيْ: أَسْهَلَ: ډير آسان.

**تسهیلات:**

**قوله: نُزُولُ الْأَبْطَحِ لَيْسَ بِسُنَّةٍ:**

**د مذکوره قول مطلب:** دحضرت عائشې رضی الله عنها د وينا مقصد دادې چه نبی کريم ﷺ کله په دیارلسم د ذی الحجې د منٰی نه راواپس شو، نوپه ابطح يعنی محصب کښې صرف په دې غرض سره ایسار شوې ووچه هلته خپل سامان وغيره پريږدی مکې ته لاړشی او هلته طواف وداع اوکړی اوکله چه دمکې نه مدينې ته واپس شی نوهغه وخت به ورسره سامان وغيره نه وی نو آسانی به ورته وی.

**نوټ:** ددې حديث تشريح په حديث نمبر ۲۶۶۴ په تسهيل کښې ذکرشوې ده.

**دحضرت ابن عمر رضي الله عنه قول:** په دې باره کښې چه څومره پورې دمسئلې تعلق دې نوپه دې کښې اختلاف دې، بعضې حضرات خو دا وائی چه تحصب يعنی په محصب کښې ایساریدل سنت دی اودحج د افعالو يوه تتمه ده، دا دحضرت ابن عمر رضي الله عنه قول دې.

**دحضرت ابن عمر رضي الله عنه د قول دليل:** ددوی په نزد په محصب کښې د قيام مسنون کيدو دليل دادې چه نبی کريم ﷺ (په منٰی کښې) فرمائيلی ووچه صبا به مونږ ان شاء الله په خيف بنی کنانه يعنی محصب کښې ایساريږو، اوددې وجه داوه چه خيف بنی کنانه هغه ځائې دې چرته چه د مکې مشرکانو د نبی کريم ﷺ د مکې په ژوند کښې خپل مينځ کښې دا وعده اولوظ کړې وو، اودا قسم ئې کړې وو چه مونږ بنوهاشم او بنو عبدالمطلب (يعنی ددې دوارو خاندانونو خلقوسره ملاويدل، نکاح، واده، اخستل خرڅول، او دهغوی سره کيناستل پاځيدل تر هغه وخته پورې پريږدو، ترڅو چه هغوی محمد ﷺ مونږ ته اونه سپاری، ګويا په دغه مقام باندې هغوی ددې خاندانونو سره دمکمل مقاطعه او بائيکاټ (پريکړې) اعلان کولو سره د کفر د شعائرو اظهار کړې وو، نوکله چه الله تعالی داسلام قوت ته غلبه ورکړه او کفر اوشرک ختم شو نو نبی کريم ﷺ دحجة الوداع په موقع باندې د منٰی نه مکې ته واپس کيدو سره دا اوغوښتل چه دغه ځائې يعنی په خيف بنی کنانه (محصب) کښې ایسارشی اود اسلام شعائر ښکاره کړی، چرته چه څوکاله مخکښې کافرانو دکفر شعائر ښکاره کړی وو، دغسې ئې هلته د الله تعالی دهغې نعمتونو شکر

اداکړه کوم چه الله تعالی اسلام ته په غلبه او عظمت ورکولو سره نصیب کړی وو

**دحضرت عمر فاروق رضی الله عنه قول:** طبراني په اوسط کښې دحضرت عمر فاروق رضی الله عنه دا قول نقل کړې دې چه د يوم النفر په شپه کښې په ابطح کښې ايساريدل يو سنت عمل دې، او حضرت عمر فاروق رضی الله عنه به خلقو ته په دغه شپه په ابطح کښې دايساريدلو حکم کولو

**د احنافو قول:** د حنفی فقهې مشهور کتاب هدايه کښې ليکلی دی چه زياته صحيح خبره داده چه نبی کريم ﷺ به په ابطح کښې په دې مقصد سره قيام کولوچه مشرکانو ته دالله تعالی قدرت ور اوښائی، چه صباله کوم ځائې کښې هغوی دمکمل مقاطعې ،تعلقات پريښودو، عهد اولوظ کولو سره دخپلې کاميابۍ اظهار کړې وو. نن هم هغه ځائې دالله تعالی په فضل سره دمسلمانانوپه قبضه کښې دې،نودغه ځائې کښې قيام کول سنت دی.

**دحضرت ابن عباس رضی الله عنه اوحضرت عائشه رضی الله عنها قول:** ددې په خلاف بعضې حضرات وائی چه په محصب کښې قيام سنت نه دې، ځکه چه هلته دنبی کريم ﷺ قيام هسې اتفاقی طور باندې شوې وو،

**دحضرت ابن عباس رضی الله عنه دقول دليل:** چه دهغې صورت دا ووچه دنبی کريم ﷺ آزاد کړې شوې غلام حضرت ابو رافع چه دهغوی دسفر دسامان نګران وو. هغه په خپله رائې سره اتفاقی طورباندې هلته ايسار شوې وو.او دنبی عليه السلام خيمه ئې لګولې وه، په دې باره کښې د نبی کريم ﷺ هيڅ حکم نه وو، په محصب کښې قيام ته سنت نه ويونکو کښې دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه علاوه حضرت عائشه رضی الله عنها هم ده. لکه څنګه چه د پورتنی حديث نه معلومه شوه

**حاصل او غوره قول:** بهرحال! په دې باره کښې غوره خبره داده چه هرکله د نبی کريم ﷺ نه په محصب کښې ايساريدل رانقل دی،اګرچه دغه ايساريدل اتفاقی طور باندې ولې نه وی. نوبنه خبره داده چه هلته قيام اوکړې شی لکه څرنګه چه نورو صحابه کرامو او خلفاء راشدينو به هم په دې باندې عمل کولو. اوکه څوک هلته ايسار نه شی نوپه دې کښې څه نقصان هم نشته

## [٢٦٦٧] دحضرت عائشې رضی الله عنها د تنعيم څخه عمره کول

٢٦٦٧-[٩] (١)[١] وَعَنْهَا قَالَتْ: «أَحْرَمْتُ مِنَ التَّنْعِيمِ بِعُمْرَةٍ، فَدَخَلْتُ، فَقَضَيْتُ عُمْرَتِي، [٢] وَانْتَظَرَنِي رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَتَّى فَرَغْتُ، [٣] فَأَمَرَ النَّاسَ بِالرَّحِيلِ، فَخَرَجَ، فَمَرَّ بِالْبَيْتِ، فَطَافَ بِهِ قَبْلَ صَلَاةِ الصُّبْحِ، ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الْمَدِينَةِ» [٤]". هٰذَا الْحَدِيثُ مَا وَجَدْتُهُ بِرِوَايَةِ الشَّيْخَيْنِ، بَلْ بِرِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ مَعَ اخْتِلَافٍ يَسِيرٍ فِي آخِرِهِ.

(١) اخرجه ابوداود في كتاب المناسك . باب طواف الوداع (رقم-٢٠٠٥)

ترجمه ① بي بي عائشه ﷺ فرمايي چې ما د عمري د پاره د تنعيم څخه احرام وتړلی، او په مکه کې داخله شوم بيا ما خپله (هغه) عمره ادا کړه چې ايام (د حيض ورځي شروع کيدو په وجه پاتې شوي وه، او د هغه قضاء ما ته کول وو، د دې تفصيل باب قصه حجة الوداع کې تېر شوی دی) ② او نبی کريم ﷺ په ابطح کې زما په انتظار کې وو، تر دې چې زه د عمري د افعالو څخه فارغه شوم، ③ نو نبی کريم ﷺ خلقو ته د تلو حکم وکړي، نبی کريم ﷺ دا بطح څخه روانيدو سره خانه کعبې ته تشريف راوړو، او د سحر د مانځه څخه مخکې يې طواف وداع وکړي، بيا د سحر د مانځه څخه مخکې يا وروسته د مديني طرف ته روان شو. ④ مؤلف د مشکوٰة فرمايي چې ماته دا حديث په بخاري او مسلم کې حاصل نشو، بلکه دا حديث ابوداؤد رحمه الله نقل کړی دی، هغه هم په آخر کې څه قدر مختلف دی.
[اخرجه ابوداؤد: ٢/٢١٥].

**حل اللغات:** ① فَرَغْتُ: چه زه فارغه شوم (د عمرې د افعالو نه).

**تسهيلات:**

**قوله:** هٰذَا الْحَدِيثُ مَا وَجَدْتُهُ بِرِوَايَةِ الشَّيْخَيْنِ:

**د مذکوره قول مطلب:** دمشکوٰة دمؤلف دقول مطلب دادې چه زما دعلم مطابق دا روايت نه خو بخاری نقل کړې دې اونه مسلم، بلکه دا روايت ابوداؤد نقل کړې دې.

**قوله:** بَلْ بِرِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ:

**په صاحب مصابيح باندې اول اعتراض:** په دې جملې سره دمشکوٰة مؤلف په صاحب دمصابيح باندې يو اعتراض دا کړې دې چه هغوی دا روايت په ړومبی فصل کښې نقل کړې دې حالانکه په ړومبی فصل کښې صرف د بخاری اومسلم روايت نقل کولې شی.

**قوله:** مَعَ اخْتِلَافٍ يَسِيرٍ فِي آخِرِهِ:

**په صاحب مصابيح باندې دويم اعتراض:** صاحب د مصابيح دحديث په نقل کښې د راوی يعنی د ابوداؤد مخالفت کړې دې. په دې طريقه چه دحديث آخری جزء ئې بعينه هغه نه دې نقل کړې کوم چه ابوداؤد نقل کړې دې

**[٢٦٦٨] طواف وداع واجب دې**

٢٦٦٨-[١٠] (¹) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، قَالَ: «كَانَ النَّاسُ يَنْصَرِفُونَ فِي كُلِّ وَجْهٍ. ② فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَنْفِرَنَّ أَحَدُكُمْ، حَتَّى يَكُونَ آخِرُ عَهْدِهِ بِالْبَيْتِ، ③ إِلَّا أَنَّهُ خُفِّفَ عَنِ الْحَائِضِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

¹) اخرجه البخاری فی کتاب الحج /باب طواف الوداع (رقم-١٧٥٥) ومسلم فی باب وجوب طواف الوداع وسقوطه عن الحائض (رقم-٣٧٩ - (١٣٢٧)

**ترجمه** [١] ابن عباس ﷺ وايي چې خلق (د افعال حج د ادائيګۍ څخه پس) د طواف وداع کولو بغير هر طرف (يعنی خپل وطن ته) روانيدل (يعني خلقو د دې خبرې پابندي نه کوله، چې د افعال حج څخه روسته مکې ته راتلو سره طواف وداع يې کړی واي)[٢] نو نبی کريم ﷺ وفرمايل چې په تاسو کې دې هيڅوك هم (يعني افاقي) نه روانيږي، تر څو چې (د سفر) آخري مرحله بيت الله شريفې ونه ګرځوي (يعني هيڅوك هم افاقي د طواف وداع کولو بغير خپل وطن ته دې نه ځي)[٣] البته د حيض او نفاس والا ښځي د پاره موقوف دی، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① يَنْصَرِفُونَ: واپس به تلل، روانيدل به. ② لَايَنْفِرَنَّ :لَايَخْرُجَنَّ: نه دې روانيږی، نه دې اوځی (دمکې نه، ددې نه مراد آفاقی دې يعنی چه دحرم اوسيدونکې نه وی). ③ خُفِّفَ: دمجهول صيغه ده، آسانتيا کړې شوې ده.

**تسهيلات: قوله:** فِي كُلِّ وَجْهٍ:

**د طواف وداع تعريف:** دَ افعال حج فارغيدو نه پس اودَمکې مکرمې نه خپل وطن ته واپس کيدو وخت کښې چه کوم آخرى طواف کولې شی هغې ته طواف وداع وائی بل دې ته طواف صدرهم وائی.دَ وداع معنی رخصت کيدو ده.دا سړې هم دَبيت الله نه رخصت کيږی.

**د طواف وداع د حکم کولو وجه:** خلق چه به دَ افعال حج نه فارغ شو دکوم ځائی نه چه به ئی غوښتل او څنګه به ئی غوښتل خپل خپل وطن ته به واپس تلل اودَ طواف وداع او طواف رخصت پرواد به ئی نه کوله. په دې باندې حضورپاك اوفرمائيل چه هيڅ يو سړې هم دَ طواف وداع نه بغير لاړنه شی.

**د طواف وداع په حکم کښې مذاهب:**

① طواف وداع په آفاقی باندې واجب دې. دَا د امام مالك ﷫ په نيز سنت دې

② اودَ جمهورو په نيز واجب دې دَدې په پريخودو باندې دم راځی

**دجمهورو دليل:** داحديث دَجمهورو دليل دې

**په چا چې طواف وداع نشته:**

① دَطواف وداع نه پس که حاجی په مکه کښې لږ شان حصارشو نودوباره طواف وداع ضروری نه دې البته بهتر دادې چه طواف وداع بيت الله سره دَحاجی آخری عمل وی.

② کوم خلق چه په مکه کښې اوسيږی يا ميقات کښې دننه اوسيږی په هغوی باندې طواف وداع نشته دې.

③ عمره کونکو خلقو باندې هم طواف وداع واجب نه دې سره دَدې چه خلق ئی کوی.

④ که چرې ښځې ته دَحيض عذر وی يا نوردَ عذر خلق وی نودَهغوی نه دا طواف ساقط کيږی.

## [٢٦٦٩]دعذر په وخت طواف وداع واجب نه پاتې کيږي

[١١] ()١ وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: «حَاضَتْ صَفِيَّةُ لَيْلَةَ النَّفْرِ٢ فَقَالَتْ: مَا أُرَانِي إِلَّا حَابِسَتَكُمْ. ٣قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: عَقْرَى حَلْقَى، أَطَافَتْ يَوْمَ النَّحْرِ؟٤" قِيلَ: نَعَمْ. قَالَ: " فَانْفِرِي». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**١ بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي چې د يوم نفر په شپه کې د بي بي صفيه رضي الله عنها ايام (د حيض ورځې) شروع شوې،٢ نو هغه اوويل چې زما خيال دی چې زه به تاسو خلق د مدينې د روانګې څخه منع کړم (ځکه چې زما ورځې شروع شوې دي، او ما طواف وداع نه دی کړی)٣ نبی کريم ﷺ چې دا واوريدل نو وې فرمايل چې هغه غم لړلی او مصيبت زده، آيا هغې د نحر په ورځ طواف زيارت کړی دی؟٤ عرض وشو چې هو، نو نبی کريم ﷺ وفرمايل چې د پاتې کيدو ضرورت نشته، ځی، بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① لَيْلَةَ النَّفْرِ: أَيْ: لَيْلَةَ يَوْمِ النَّفْرِ: د نفر په شپه، وَهُوَ الْيَوْمُ الثَّالِثُ مِنْ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ: د ايام تشريق دريمه ورځ يعنی د ذی الحجه د ديارلسمه ورځ ته يوم النفر وائی. ② حَابِسَتَكُمْ: أَيْ: مَانِعَتَكُمْ: چه منع به کړم تاسو (مدينې ته د تللونه). ③ عَقْرَى: أَيِ الْجُرْحُ: زخم، ④ حَلْقَى: أَيْ إِصَابَةُ وَجَعٍ فِي الْحَلْقِ: په مرئ کښې درد ته وائی ⑤ فَانْفِرِي: أَيِ اخْرُجِي: ځئ اوځئ (يعنی مدينې ته ځائې د طواف وداع ضرورت نشته).

**تسهيلات: قوله:** لَيْلَةَ النَّفْرِ:

**د ليلة النفر څخه مراد:** محصب کښې چه کومه شپه حضورپاک تيره کړې وه اوبيا دَهغه ځائی نه دَمدينې دَپاره روان شوې وو هم دغې ته ليلة النفر يعنی دَ تلو شپه فرمائيلې ده. دې نه دَ روانيدو هغه ورځ مراد ده په کوم کښې چه ديارلسم ذوالحجه کښې دَ منی نه روانګی شوې وه مګر داخبره ياد ساتئی چه ايام حج کښې راتلونکې شپه به دَ تيرې شوې ورځ دَپاره شميرلې کيږی.

بهرحال حضرت صفيه رضي الله عنها ته دَمحصب په شپه کښې ماهواری بيماری شروع شوه هغوی خيال اوکړو چه اوس به دَ طواف وداع دَپاره حصاريدل وی اوهم په دې وجه به دَحج پوره قافله حصاريږی. هم دَدې خدشه اظهار حضورپاک "انی حابستکم" سره اوکړو. حضورپاک تپوس اوکړو چه طواف زيارت دې کړې دې که نه جواب ملاؤ شو چه کړې دې. په دې باندې حضورپاک هغې ته اوفرمائيل چه طواف وداع پريږده او مونږ سره لاړه شه.

**د سختې مجبورۍ په وجه د طواف وداع سقوط:** په دې سره دا ضابطه حاصله شوه چه حيض

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب الادلاج من المحصب (رقم-١٧٧١) ومسلم فی باب وجوب طواف الوداع وسقوطه عن الحائض (رقم-٣٨٧ - (١٢١١)) وابن ماجة فی کتاب المناسک/باب الحائض، تنفر قبل أن تودع (رقم-٣٠٧٢) واحمد فی المسند:٨٥/٦

وغيره سخته مجبوري اوشرعي عذر د وجې نه طواف وداع ترك كولې شي. د حديث د الفاظو نه معلوميږي چه حضرت صفيه رضي الله عنها او د حضورپاك دا خبرې اترې بالواسطه شوې دي مخامخ نه دي شوي صرف د فانفري لفظ نه پته معلوميږي چه مخامخ خبرې اترې شوي دي ملاعلي قاري رحمه الله چه اول حضور پاك حضرت صفيه رضي الله عنها سره خبرې اترې نه دي كړې په آخري جمله كښې هغه مخاطب كولو سره اوفرمائيل چه اوس لاړه شم.

**قوله:** عَقْرَى حَلْقَى:

**ددې دواړو الفاظو لغوي تحقيق:** امام طيبي رحمه الله فرمائي چه دا دواړه الفاظ په وزن د فعلى بغير د تنوين نه نقل دي او ظاهرا (عقراوحلقا) دواړه په تنوين سره دي. دا په اصل كښې بد دعا ده خو مراد ترې بد دعا نه ده بلكه د عربو په عرف كښې داسې كلمه په طريقه د تلطف ونيلې شي. امام اصمعي رحمه الله فرمائي چه دا كلمه د تعجب په وخت ونيلې شي او بعض وائي چه دا دواړه د لفظ (امراة) صفت دي اى انها تحلق قومها وتعقرهم.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [٢٦٧٠] حج اكبر د كوم يوحج نوم دې؟

٢٦٧٠-[١٢] ()[١] عَنْ عَمْرِو بْنِ الْأَحْوَصِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: «سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ: [٢] "أَيُّ يَوْمٍ هَذَا؟" قَالُوا: يَوْمُ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ. [٣] قَالَ: "فَإِنَّ دِمَاءَكُمْ، وَأَمْوَالَكُمْ، وَأَعْرَاضَكُمْ بَيْنَكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هَذَا، فِي بَلَدِكُمْ هَذَا،

**ترجمه** [١] عمرو بن احوص رضي الله عنه وايي چې ما واوريدل چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم په حجة الوداع كې د قرباني په ورځ (يعني په ديارلسم ذي الحجه صحابه رضي الله عنهم مخاطب كولو سره) وفرمايل[٢] چې (پوهيږئ) دا كومه ورځ ده؟ صحابه وو رضي الله عنهم عرض وكړو چې هو د حج اكبر ورځ ده. [٣] بيا نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې (ياد لرئ) ستاسو وينه، ستاسو مال، او ستاسو ابرو (عزت) ستاسو په منځ كې داسې حرام دي، څرنګه چې ستاسو ددې ورځې حرمت دې او په دې ښار كې

[١] أَلَا لَا يَجْنِي جَانٍ إِلَّا عَلَى نَفْسِهِ، وَلَا يَجْنِي جَانٍ عَلَى وَلَدِهِ، وَلَا مَوْلُودٌ عَلَى وَالِدِهِ، [٢] أَلَا وَإِنَّ الشَّيْطَانَ قَدْ يَئِسَ أَنْ يُعْبَدَ فِي بَلَدِكُمْ هَذَا أَبَدًا، [٣] وَلَكِنْ سَتَكُونُ لَهُ طَاعَةٌ فِيمَا تَحْتَقِرُونَ مِنْ أَعْمَالِكُمْ فَسَيَرْضَى بِهِ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَصَحَّحَهُ.

**ترجمه** [١] خبردار، هيڅ جنايت كاردې نه په خپل ځان ظلم كوي[٢] (يعني كوم سړی چې په چا ظلم كوي، د هغه وبال به په هغه وي، چې هغه به ماخوذ كيږي، دا نه چې ظلم دې يو

() اخرجه الترمذي في كتاب الفتن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء دماؤكم وأموالكم عليكم حرام (رقم-٢١٥٩) وابن ماجة في كتاب المناسك/باب الخطبة. يوم النحر(رقم-٣٠٥٥)

وکړي، او ونيول دي بل شي، ياد لرى هيڅ ظالم په خپل خوى ظلم نه کوي او نه يو خوى په خپل پلار ظلم کوي. پوهه شى شيطان هميشه هميشه د پاره د دې خبري څخه نا اميده شوي دي، چې ستاسو په دې ښار (مکه) کې دى د هغه عبادت اوشي. [۳] هو ستاسو هغه اعمال کې به د شيطان فرمانبرداري وي، کوم چې تاسو حقير ګڼى، نو هغه ګناهونو سره به هغه خوشحاله وي، کوم چې تاسو حقير ګڼى، ابن ماجه، ترمذى.

**حل اللغات:** ① لَا يَجْنِي: جنايت يعنى ظلم دې نه کوى ② جَانٍ: داسم فاعل صيغه ده، جنايت او ظلم کونکې، ③ يَئِسَ: أَيْ قَنَطَ: نا اُميده شوي دي، ④ تُحَقِّرُونَ: تاسو سپک ګڼئ (ګناهونه لکه لوټ مار، قتل، زنا وغيره).

**دراوي مختصر تعارف:**

**حضرت عمرو بن الاحوص رضي الله عنه:** نوم عمرو دَ پلار نوم احوص دې دَ قبيله کلاب سره تعلق ساتى په دې وجه دوى ته کلابى هم وائى. دلته قبيله جثمى طرف ته منسوب دې. علامه ابن الاثير فرمائى چه مونږ ته نه ده معلومه چه قبيله کلاب ئى دَ جثمى طرف ته څنګه منسوب کړې ده ځکه چه په دې دواړو قبيلو کښې هيڅ نسبت نشته.

**مرويات:** دَ دوى نه صرف دوه احاديث نقل دى.

**تسهيلات:**

**قوله:** فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ:

**دمذکوره خطبې مصداق:** عام شارحين دا ورځ لسم ذوالحجه يعنى دَ لوئى اختر ورځ ګرځوى سره دَدې چه په دې کښې څه تصريح نشته دې ليکن دَدې باب په رومبى حديث کښې دَيوم النحرلفظ راغلې دې کيدې شى چه هغه خطبه اوداخطبه يوه وى.

**قوله:** يَوْمُ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ:

**د حج اکبر په مراد کښې اقوال:** ① علامه بيضاوى رحمه الله فرمائى دَ حج اکبر نه مراد لسم ذوالحجه دَ لوئى اختر ورځ مراد ده ځکه چه په دې ورځ دَ حج ټول لوئى اعمال پوره کيږى دې نه علاوه "واذان من الله ورسوله الى الناس يوم الحج الاكبر" اعلان په لسم دَ ذوالحجه شوې وو اوهم دې ورځ ته حج اکبر ونيلې شوې دې او په يوروايت کښې راغلى دى چه جمرات سره دَ اختر په ورځ حضورپاک اوفرمائيل "هذا يوم الحج الاكبر" دادَ حج اکبر ورځ ده.

② حج اکبر يوم عرفه ته ونيلې شوې دې ځکه چه حضورپاک يوم عرفه حج اکبر ګرځولې دې "الحج العرفه" لهذا دَدې په مقابله کښې عمره حج اصغر دې.

③ دريم قول دادې چه حجة الوداع ته حج اکبر ونيلې شوې دې ځکه چه په دې ورځ دَمسلمانانو په شان دَټولو اديانو دَ منونکو اخترونه وو

④ حجة الوداع ته حُکه حج اکبر ونیلې شوې چه په دې ورځ اسلام ته په مکمل توګه شان شوکت حاصل شوې وو او کافران ذلیل اوخوارشوی وو.

⑤ یا په دې وجه دې ته حج اکبر اوونیلې شو چه داپخپله دَنبی کریم ﷺ حج وو.

⑥ یا په دې وجه دې ته حج اکبر اوونیلې شو چه دا حج دَ جمعې په ورځ واقع وو اوپه عواموکښې هم دغه مشهوره ده چه کله دَ عرفې ورځ اودَ جمعې ورځ یوځائی شی نوهم دغه حج اکبر وی.

**قوله:** لَا يَجْنِي جَانٍ إِلَّا عَلَى نَفْسِهِ:

**په څپل ځان د جنایت کولو دوه مطلبه:** ① مراد دا دې چه څوك دې هم په چا ظلم نه کوی (کقوله ولا تقتلوا انفسکم ای لایقتل بعضکم بعضاً) امام طیبی رحمه الله فرمائی چه دا خبر په معنی د نهی دې چه مبالغه راشی او جنایت علی الغیر مراد دې خو چونکه جنایت علی الغیر د جنایت علی نفسه سبب دې ځکه چه د دې ګناه هم د هغه طرف ته راجع ده په دې وجه د (لا یجنی جان علی نفسه) سره تعبیر اوکړې شو،

② یا د (لایجنی جان علی نفسه) تاکید دې. ځکه چه اهل عرب به د چا په جنایت باندې د هغه په خپلوانو مواخذه کوله د دې نه منع اوکړې شوه (کقوله تعالی ولا تزر وازرة وزر اخری) ولد او والد چونکه اقرب الاقارب دی په دې وجه خاص کولو سره ذکر کړې شو.

(التعلیق ٣/٢٤٩، الاشعة ٢/٣٩٠)

**قوله:** أَيِسَ:

**په جزیرة العرب کښې دشیطان د شرک څخه ناامیدی:** یعنی ابلیس ناامیده شو چه په ښکاره توګه په مکه مکرمه کښې به بیا دَهغه عبادت کیږی اګرچه په پټه به خلق عبادت کوی لیکن په علانیه توګه باندې دَبت پرستئی خاتمه شوې ده.

**قوله:** مِنْ أَعْمَالِكُمْ:

**د کافرانو په نسبت د مسلمانانو څخه د ګناهونو د کثرت وجه:** یعنی دَ قتل زنا لوټ مار اعمال به وی کوم چه تاسو دَ کفر په وجه باندې واړه ګناهونه ګنړئی ابلیس به تاسو نه هم په دې باندې راضی وی اوهم په دې کښې به مو راګیروی په کفر کښې دَ اچولو کوشش به نه کوی. ملاعلی قاری رحمه الله لیکلی دی چه هم په دې وجه دروغ اوخیانت وغیره ګناهونه دکافرانو په مقابله کښې په مسلمانانو کښې زیاتې دی. ځکه چه شیطان دکافرانو نه په کفر باندې راضی شوې دې لهذا هغه دکافرانو په زړونو کښې دَ ګناه وسوسې نه اچوی اودَمسلمانانو په زړونو کښې دَ ګناهونو وسوسې اچوی. دَ حضرت علی رضی الله عنه نه داسې روایت نقل دې: ((وعن علی قال الصلوة التی لیس لها وسوسة انما هی صلوة الیهود والنصاری)). علامه طیبی رحمه الله فرمائی دَ

حقير اعمال نه مراد دَ زړه وسوسې دي او واړه گناهونه دي کوم چه تاسو حقير او سپك گڼئ حالانکه هم دغه صغائر دَ لويو فتنو سبب جوړيږي. (خلاصه مرقات)

**مثال:** د مسلمان مثال دهغه کور په شان دې په کور کښې چې قيمتي څيزونه وي. نوغل هم ددغه کور څخه دغلا کولو کوشش کوي. اوغلا ترې کوي. دغه شان د مسلمان زړه د قيمتي ايمان په نور باندې روښانه ده. اودې چې کوم نيک اعمال کوي. نودغه قيمتي څيزونه دي. نو شيطان هم په مسلمان پسې ليږدلې دي. چې دده څخه د گناهونو ارتکاب اوکړي. او دې دجهنم تلو والاجوړ شي. اوکافران که ښه اعمال کوي. نوهغه د آخرت په اعتبار سره بيکاره دي. څکه شيطان په هغوي پسې نه لږي. هم دغه وجه ده چې هغوي په خپله باطله عقيده باندې کلک ولاړ وي. هغه نه پريږدي.

## [٢٦٧١]دَ لاؤډسپيکر په جوازيا ندې دليل

٢٦٧١-[١٣] (١)١ وَعَنْ رَافِعِ بْنِ عَمْرٍو الْمُزَنِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: «رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَخْطُبُ النَّاسَ بِمِنًى حِينَ ارْتَفَعَ الضُّحَى٢ عَلَى بَغْلَةٍ شَهْبَاءَ، وَعَلِيٌّ يُعَبِّرُ عَنْهُ٣ وَالنَّاسُ بَيْنَ قَاعِدٍ وَقَائِمٍ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:**١ رافع ابن عمرو مزني ﷺ وايي چې ما وليدل چې نبی کريم ﷺ د قرباني په ورځ د څاښت په وخت کې خلقو ته خطبه ورکوله،٢ نبی کريم ﷺ په سرې قچرې سور وو، او حضرت علي ﷺ د نبی کريم ﷺ د طرف څخه بيان کولی (يعني نبی کريم ﷺ چې څه فرمايل حضرت علي به هغه دوباره ويل، چې لرې خلق هم د نبی کريم ﷺ خبره واوري)٣ او په خلقو کې څه ولاړ وو، او څه ناست وو، ابوداؤد.

**حل اللغات:** ① بَغْلَةٍ: قچره، ② شَهْبَاءَ: أَيْ: بَيْضَاءَ يُخَالِطُهَا قَلِيلُ سَوَادٍ: سپينه توربخنه، ③ يُعَبِّرُ: أَيْ: يُبَلِّغُ حَدِيثَهُ: تعبيربه ئې کولو يعنی د نبی عليه السلام خبره به ئې په اوچت آواز سره لرې خلقو ته رسوله. ④ بَيْنَ قَائِمٍ وَقَاعِدٍ: أَيْ بَعْضُهُمْ قَاعِدُونَ وَبَعْضُهُمْ قَائِمُونَ: يعنی څه خلق ولاړ وو او څه خلق ناست وو.

**تسهيلات: قوله:** يَخْطُبُ النَّاسَ:

**دمذکوره خطبې زمان:** يعنی په لسم دَ ذوالجحه په منٰی کښې حضوراکرم دَ صحابه کرامو په وړاندې خطبه ارشاد اوفرمائيله.

**قوله:** وَعَلِيٌّ يُعَبِّرُ:

**د تعبير څخه مراد:** دادَتعبيرنه دې مراددادې چه ترکومې پورې دَحضوراکرم آواز مبارك رسيدلو دَهغه ځائی پورې هلته دَخلقو دَپاره هم دغه کافی وو ليکن چونکه مجمعه لويه وه

---

(١) اخرجه ابوداود في كتاب المناسك، باب أي وقت يخطب يوم النحر(رقم-١٩٥٦)

دَ ټولو خلقو دپاره چه دَ آواز دَ رسولو کوم ساده انتظام اوکړې شو هغه دَ حضرت علي رضی الله عنه تعبير ووچه دَ حضوريپاك آواز به کوم خائې کښې ختميدو دهغې نه وړاندې به حضرت علي هم دغه کلام په خپل آواز کښې وړاندې رسولو. دا يوساده انتظام وو دَ دې مقصد دا ووچه آواز دې وړاندې ته اورسي هم دغه دَمکبرالصوت صورت دې اوهم دَدې نه دَ لاؤډسپيکر جواز ملاوېږي ځکه چه داهم آواز وړاندې رسوي

**په مذکوره خطبه کښې د صحابه کرامو شمار:** ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي چه دغه وخت مجمع يولاکه اوديرش زره صحابه کرام باندې مشتمل وه

**[٢٦٧٢] دَ طواف زيارت وخت**

| ٢٦٧٢-[١٤] ()١ وَعَنْ عَائِشَةَ وَابْنِ عَبَّاسٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ-«أَنَّ رَسُولَ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-أَخَّرَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ يَوْمَ النَّحْرِ إِلَى اللَّيْلِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ. |
|---|

**ترجمه** ١ بي بي عائشه رضی الله عنها او ابن عباس رضی الله عنهما (دواړه) راويان دي چې نبی کريم صلی الله علیه وسلم په طواف زيارت کې د قرباني په ورځ د شپې پورې تاخير وکړې، ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه

**حل اللغات:** ① طَوَافَ الزِّيَارَةِ: په لسم د ذی الحجې چه کله حاجيان قرباني اوکړی او حلق د سر اوکړی نو بيا طواف کوی هغې ته طواف زيارت وائی.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَخَّرَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ:

**د احاديثو په مينځ کښې تعارض:** اشکال دا دې چه د دې حديث نه خو دا معلومه شوه چه طواف زيارت کوم چه فرض دې هغه ئې مؤخر کولو سره په شپه کښې کړو حال دا چه د جابر او ابن عمر رضی الله عنهم په روايت کښې دی چه ﴿ انه عليه السلام طاف للزيارة وفرغ منه في يوم النحر حتى انه صلى الظهر بمكة ثم رجع اوصلى الظهر بعد الرجوع من مكة في منى ﴾

**د تعارض جواب:** د دې اضطراب جواب دا دې چه ابن القيم رحمه الله د حديث عائشه او ابن عباس رضی الله عنهم متعلق فرمائی چه دا غلط او د واقعې خلاف دې، ځکه چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د حج متعلق چه چا ته خبر دې هغوی ته معلومه ده چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په يوم النحر کښې طواف زيارت کړې وو

**د طواف زيارت په وخت کښې مذاهب:**

① ائمه ثلاثه فرمائی چه دَ طواف زيارت آخری وخت متعين نه دې کله هم چه اوکړې شو جائز به وی.

---

١) اخرجه ابوداود فی كتاب المناسک . باب الإفاضة فی الحج (رقم-٢٠٠٠) والترمذی فی كتاب الحج عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی طواف الزيارة بالليل (رقم-٩٢٠) واحمد فی المسند: ٣٠٩/١

② امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي چه طواف زيارت دَ دولسم ذوالحجه يعني ايام نحر پورې مؤخركولې شي كه دَ ايام نحر نه پس پورې مؤخر كړې شو نو دم به لازم راځي

**[٢٦٧٣] طواف زيارت كښې دَ رمل مسئله**

٢٦٧٣-[١٥] (١) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَمْ يَرْمُلْ فِي السَّبْعِ الَّذِي أَفَاضَ فِيهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** ① ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې نبي كريم ﷺ په طواف زيارت كې اووه سره شوطه كې رمل ونه كړي، ابوداؤد، ابن ماجه

**حل اللغات:** ① لَمْ يَرْمُلْ: رمل يعني پهلواني ئې اونه كړه (په طواف زيارت كښې) اوګې خوزولو سره اوچت اوچت تګ ته رمل او پهلواني وائي.

**تسهيلات: قوله:** لَمْ يَرْمُلْ:

**په طواف زيارت كښې رمل شته كه نه؟:** دې نه وړاندې دا مسئله ليكلې شوې ده دلته دَ طواف زيارت دَخاص صورت بيان دې په عام توګه طواف زيارت په ګنډلې شوو كپړو كښې كيږي آيا په دې كښې رمل شته كه نه؟ نودَ دې دَپاره دا ضابطه ده چه كه چرې دَ حاجي په ذمه دَحج سعي تردغه وخته پورې باقي پاتې ده نوهغه به په طواف زيارت كښې په ګنډلو شوو كپړو كښې هم رمل كوي. اوكه حاجي دَ احرام ترلو په وخت طواف قدوم سره سعي هم كړې ده او اوس دَ ده په ذمه صرف طواف زيارت پاتې دې نو په دې صورت كښې رمل نشته دې ځكه چه دَ رمل دَپاره دا ضابطه ده چه هرهغه طواف دَ كوم نه پس چه سعي وي په هغه طواف كښې به رمل وي ګنې نه به وي.

**قوله:** أَفَاضَ فِيهِ:

**د طواف افاضه مصداق:** طواف زيارت ته طواف افاضه هم وائي ځكه چه دَ حج نه پس دَ واپسۍ په ټول عمل باندې د ﴿ ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ ﴾ اطلاق كيږي

**[٢٦٧٤] دَ تحليل اقسام**

٢٦٧٤-[١٦] (٢) ① وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ② - «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ③ "إِذَا رَمَى أَحَدُكُمْ جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ فَقَدْ حَلَّ لَهُ كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا النِّسَاءَ» " رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ" وَقَالَ: إِسْنَادُهُ ضَعِيفٌ.

**ترجمه** ① بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي ② چې رسول الله ﷺ وفرمايل ③ هر كله چې په تاسو كې څوك د رمي جمره عقبه څخه فارغه شي (او سر وخريي يا ويښتان قينچي كړي)، نو د

[١] اخرجه ابوداود في كتاب المناسك . باب الإفاضة في الحج (رقم-٢٠٠١) وابن ماجة في كتاب المناسك/باب زيارة البيت (رقم-٣٠٦٠)

[٢] اخرجه ابوداود في كتاب المناسك باب في رمي الجمار (رقم-١٩٧٨) واحمد في المسند:١٤٣/٦

هغه د پاره د ښځي څخه علاوه هر شی حلال شي (یعني د ښځي سره جماع د دې څیزونو څخه روسته هم نه حلالیږي، بلکه دا د طواف زیارت څخه د فارغیدو وروسته حاصلیږي) دا روایت (صاحب مصابیح) په شرح السنه کې نقل کړی دی او ویلي یې دي چې د دې اسناد ضعیف دي.

**حل اللغات:** ① إِلَّا النِّسَاءَ: أَيْ: جِمَاعَهُنَّ: دې نه مراد ښځو سره جماع کول دی، (یعني حاجی د سرخرئیلو نه پس نور حلال کارونه کولې شی خو خپلو ښځو سره جماع نه شی کولې).

**تسهیلات: قوله:** فَقَدْ حَلَّ لَهُ:

**د تحلیل دوه قسمونه:** ①یعني دَ عرفات نه واپس مزدلفه او دَ مزدلفه نه واپس منٰی راتلو سره کله چه حاجی دَ جمره عقبه رمی کوی نودَهغه دَپاره دَممنوعات دَ احرام نه ټول څیزونه حلال کیږي. صرف دَ خپلې بی بی سره جماع تردغه وخته پورې حرام ده دې ته تحلیل اول وائي ②کله چه حاجی طواف زیارت کوی نودغه وخت دَده دَپاره بی بی سره جماع کول هم حلال شي دې ته تحلیل ثاني وائي په دې حدیث کښې دَتحلیل اول بیان دي.

٢٦٧٥-(¹)[١] وَفِي رِوَايَةِ أَحْمَدَ وَالنَّسَائِيِّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: "«إِذَا رَمَى الْجَمْرَةَ فَقَدْ حَلَّ لَهُ كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا النِّسَاءَ».

**ترجمه:**[١] اوداحمد نسائی په روایت کې د عبدالله بن عباس څخه روایت دې فرمائی کله چې (حاجی) جمره اوویشتله،نوده دپاره هرڅیز جائز شوصرف زنانه (چې د هغوي سره تعلق یعنی جماع اوس هم نشی کولې)

**[٢٦٧٦] دجمراتو ويشتلو مسنون طريقه**

٢٦٧٦-[١٧] (²)[١] وَعَنْهَا قَالَتْ: «أَفَاضَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ آخِرِ يَوْمِهِ حِينَ صَلَّى الظُّهْرَ،[٢] ثُمَّ رَجَعَ إِلَى مِنًى، فَمَكَثَ بِهَا لَيَالِيَ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ،[٣] يَرْمِي الْجَمْرَةَ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ، كُلَّ جَمْرَةٍ بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ، يُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ،[٤] وَيَقِفُ عِنْدَ الْأُولَى وَالثَّانِيَةِ فَيُطِيلُ الْقِيَامَ وَيَتَضَرَّعُ، وَيَرْمِي الثَّالِثَةَ فَلَا يَقِفُ عِنْدَهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:**[١] بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي چې نبی کریم ﷺ د قربانۍ د ورځي په آخري حصه کې هغه وخت فرض طواف وکړي کله چې نبی کریم ﷺ د ماسپخین مونځ وکړي،[٢] د دې څخه روسته منٰی ته واپس راغلو ، او په منٰی کې د ایام تشریق (یعني د یولسم دولسم او دیارلسم تاریخونو) شپې تیري کړي،[٣] په دي ورځو کې به نبی کریم ﷺ په جمرو کانړي ویشتلی، د هر کانړي د ویشتولو په وخت به یي الله اکبر ویلی،[٤] او په مخکني او دویمه جمره (یعني جمره اولی او جمره وسطی) باندې (د دعا او اذکار د پاره به) تر ډېر

¹) اخرجه النسائي في كتاب الجنائز /باب البعث(رقم-٢٠٨٤)
²) اخرجه ابوداود في كتاب المناسك باب في رمي الجمار (رقم-١٩٧٣) واحمد في المسند:٩/٦

وخنه ودریدلی، او هغه وخت به یي مختلفو دعاوو او عرضِ حاجات د پاره تضرع، زاري او عاجزي اختیاروله، او بیا چې په دریمي جمري (یعني جمره عقبه) باندې به یي کانړي ویشتلي نو هغه سره به نه پاتې کیدلی، ابوداؤد.

**حل اللغات:** ① أَيَّامِ التَّشْرِيقِ: دَ يولسم دولسم اودیارلسم ذوالحجه ورځې، دې ته ایام تشریق څکه واني چه تشریق دَ شروق اللحم نه ماخوذ دې کوم چه دَ غوښې پرې کولو او په نمرکښې اچولوسره اوچولوته وائی، دَ عربو خلقو به دغه ورځوکښې دَ قرباني غوښې اوچولې، هم په دې ورځوکښې تکبیرات تشریق کیږی او په دې کښې روژه ساتل جائزنه دی. ② يَتَضَرَّعُ: عاجزی به نې کوله الله ته په دعاګانو اوحاجاتو سره.

**تسهیلات:**

**قوله: أَيَّامِ التَّشْرِيقِ:**

**دَ رمي آخري وخت:** هم په دې ورځوکښې دَ جمرات رمی کیږی. دولسم پورې رمی واجب ده دَدیارلسم رمی اختیاری ده. حضورپاك دَ دیارلسم ذوالحجه رمی کړې وه په قرآن کریم کښې (فَمَنْ تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ) کښې اختیارورکړې شوې دې چه په دولسم دې حاجی ځی یا دَ دیارلسم نه پس لاړشی هیڅ ګناه نه ده. دَ جمره عقبه وخت دَ سحرنه ترمابنام پورې دې دې نه پس دَ تیولو جمراتو وخت دَ زوال نه پس دې اوکه حاجی دیارلسم ذوالحجه پورې پاتې شو نودَ دیارلسم رمی مخکښې دَ زوال نه جائز ده تفصیل باربارتیرشوې دې [البناية: ١٤٧/٤].

**[٢٦٧٧] په رمی جمرات کښې دَ تقدیم اوتاخیر مسئله**

٢٦٧٧-[١٨] (١) [١] وَعَنْ أَبِي الْبَدَّاحِ بْنِ عَاصِمِ بْنِ عَدِيٍّ، عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ - قَالَ: [٢] «رَخَّصَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِرِعَاءِ الْإِبِلِ فِي الْبَيْتُوتَةِ: [٣] أَنْ يَرْمُوا يَوْمَ النَّحْرِ، ثُمَّ يَجْمَعُوا رَمْيَ يَوْمَيْنِ بَعْدَ يَوْمِ النَّحْرِ، فَيَرْمُوهُ فِي أَحَدِهِمَا». رَوَاهُ مَالِكٌ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. وَهَذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّالِثِ.

**ترجمه:** [١] ابو البداح بن عاصم بن عدي (تابعي) رحمه الله د خپل پلار بزرګوار څخه روایت کوي چې هغه اوویل [٢] نبی کریم ﷺ اوښانو څرونکو ته اجازت ورکړی وو، چې هغه په منی کې شپه نه تیروي، [٣] او دا چې د نحر په ورځ (یعني په لسم ذي الحجه په جمره عقبه) کانړي ولي، او بیا د دوارو ورځو رمي جمرات د یوم نحر څخه روسته یو ځای کړي، داسې چې د دوارو ورځو رمي جمرات په هغه کې په یوه ورځ وکړي، مالك، ترمذي، نسائي، او امام ترمذي رحمه الله ویلي دي چې دا حدیث صحیح دی.

(١) اخرجه ابوداود فی السنن رقم الحديث ١٩٧٥، والترمذی فی السنن رقم الحديث ٩٥٥، والنسائی فی السنن رقم الحديث ٣٠٦٩

**حل اللغات** ① رعاء الإبل: رعاء جمع د راع ده، يعنى د اوښانو څرونکې، شپونکې، ② البَيْتُوتة في تَرْكِهَا: يعنى دشپې نه تيرولو،چه په منى کښې دې شپه نه کوى،

**تسهيلات:**

**قوله:** رَخَّصَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**ګډبنو ته په رمى کښې دوه رخصتونه ورکول:** ①علامه طيبى رحمه الله فرمائى چه ګډبنو څاربنو ته رسول الله ﷺ دا اجازت ورکړې وو چه هغوى دې په ايام تشريق کښې په منى کښې نه پاتې کيږى بلکه دَخپلو څاروودَخيال ساتلودَپاره دې بهراوسيږى.

②دغه شان هغه ګډبنو څاربنوته دا اجازت هم ورکړې شوې وو چه هغوى دې صرف دَ لوئى اختر په ورځ رمى جمرات کوى اوځى به. دَ يولسم تاريخ رمى دې پريږدى او په دولسم دې راشى په يوځائى دې دَ دوو ورځو رمى اوکړى يودې قضا شوې رمى اوکړى اويودې هم دَ دغه ورځې رمى اوکړى.

**په رمى کښې د تقديم عدم جواز:** فقهاء کرام فرمائى چه په رمى جمرات کښې تقديم جائز نه دې چه يوسړې دې دَ ټولو ورځو رمى مثلاً په لسم دَ ذوالحجه اوکړى. البته تاخير په وجه دَعذر جائز دې په مذکوره حديث کښې هم دَدې بيان دې.[الکاشف: ٥/٣٧٣-٣٧٢.

## [۱۱] بَابُ مَا يَجْتَنِبُهُ الْمُحْرِمُ

### دَ ممنوعات احرام بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية عشر حديثاً مشتملة على ثلاث مسائل:**

① محرمات الإحرام: ١، ٣، ۴، ١٢، ١٣، ١٥.

② الأمور الجائزة في الإحرام: ١، ٢، ٥، ۶، ١٨. هذه من توابع الخامس: ٧، ٨، ٩، ١٠، ١٢، ١٣، ١۴، ١۶، ١٧.

③ جواز بعض الأمور مع الفدية: ٩.

قال الله تعالى ﴿ فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوقَ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ ﴾ [سورة البقرة الايه: ١٩٧.

دَاحرام تړلونه پس څه څيزونه منع کيږى. بيا په دې کښې بعض داسې ممنوعات دى دَ کوم په کولوسره چه دم لازميږى دَ بعض په ارتکاب سره صدقه لازميږى، په دې باب کښې هم دَدغه ممنوعاتو بيان دې اودَبعض مباحاتو بيان هم دې.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [۲٦۷۸] هغه څیزونه چه محرم له اغوستل منع دي

۲٦۷۸-[۱] ()① عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - «أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ②: مَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ مِنَ الثِّيَابِ؟③فَقَالَ: "لَا تَلْبَسُوا الْقُمُصَ، وَلَا الْعَمَائِمَ، وَلَا السَّرَاوِيلَاتِ وَلَا الْبَرَانِسَ، وَلَا الْخِفَافَ إِلَّا أَحَدٌ لَا يَجِدُ نَعْلَيْنِ فَيَلْبَسْ خُفَّيْنِ وَلْيَقْطَعْهُمَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ، وَلَا تَلْبَسُوا مِنَ الثِّيَابِ شَيْئًا مَسَّهُ زَعْفَرَانٌ وَلَا وَرْسٌ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، وَزَادَ الْبُخَارِيُّ فِي رِوَايَةٍ: "«وَلَا تَنْتَقِبُ الْمَرْأَةُ الْمُحْرِمَةُ، وَلَا تَلْبَسُ الْقُفَّازَيْنِ» ".

**ترجمه**: ① عبد الله ابن عمر ﷺ وايي چې يو سړي د نبی کریم ﷺ څخه پوښتنه وکړه، ② چې محرم په جامو کې کوم څیزونه اچولی شي، او کوم څیزونه نشي اغوستی؟③ نبی کریم ﷺ ورته وفرمایل چې نه دي قمیص او کُرته اغوندي، نه دی لنګوټه تړی نه دی پرتوګ اغوندی، نه دی خولۍ په سر کوی او نه دي موزي په پښو کوي، هو د کوم سړي سره چې چپلان نه وي هغه موزي په پښو کولی شي، ④ خو داسې چې موزي د دواړو پړکو (ګیټو) څخه لاندي پری کړي ⑤ او داسې کپړه دي نه اغوندي، چې په هغه زعفران یا ورس (یو قسم خوشبو داره واښه) لګیدلي وي، بخاري، مسلم ⑥

د بخاري په یو حدیث کې دا الفاظ هم نقل شوي دي چې محرمه ښځه دي نقاب نه اچوي او نه دي دستاني اچوي.

**حل اللغات**: ① الْبَرَانِسَ: د بُرْنُس جمع ده، هُوَ قَلَنْسُوَةٌ طَوِيلَةٌ: اوږدې ټوپۍ ته وائی ② الْخِفَافَ: د خُف جمع ده، موزي ته وائی. ③ زَعْفَرَانٌ: أَيِ النَّاعِمُ الْأَصْفَرُ الطَّيِّبُ الرِّيحِ: زیړ رنګ مزیداره خوشبو ده، ④ وَرْسٌ: وَهُوَ نَبْتٌ أَصْفَرُ: یو قسم زیړ رنګ واښه دی د زعفرانو پشان د رنګ دپاره استعمالیږی.

**تسهیلات**:

**قوله**: وَلَا الْبَرَانِسَ:

**د برانس دوه معانی**: ① داد برنس جمع ده دا د داسې اوږدې ټوپئی نوم دې چه د عربو عبادت کونکو خلقو به اچوله

② برنس هغه لباس ته هم وائی چه د برساتئی په توګه باندې پرتوګ قمیص اوټوپئی یوځائی جوړولې شی او اغوستلې شی

دې نه مراد صرف هم دغه ټوپئی نه ده بلکه مراد دادې چه محرم دې خپل سر نه پټوی که هغه په ټوپئی سره وی او که په بل څه څیز سره وی لیکن شرط دادې چه په عرف کښې هغه

---

① اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب ما لا یلبس المحرم من الثیاب (رقم-۱۵٤۳) ومسلم فی کتاب الحج /باب ما یباح للمحرم بحج أو عمرة. وما لا یباح وبیان تحریم الطیب علیه (رقم-۱۱۷۷)

اغوستلې شی مثلاً یوپنډ یا منګې په سر باندې اوچت کړی نودې ته په عرف کښې اغوستل نه وائی.

**قوله: وَلَا الْخِفَافَ:**

**د محرم دپاره د موزو اچولو ممانعت:** دَ موزې اچول منع دی لیکن که څپلئی نه وی نو بیا هغه دَ ګیټو نه ښکته پرې کولوسره به اچولې شی. زیر بحث حدیث کښې هم دغه حکم دې دا خبره دَ یاد ساتلو ده چه دَ حج ګیټې دَ خپې دَپاسه راوتلې هډوکی نوم دې دَدې پټول منع دی. ورس دا دَ زیړ رنګ یو بوټې دې په دې کښې هم دَ زعفران په شان رنګ وی په زعفران او ورس کښې یو قسم خوشبوئی وی په دې وجه منع دې.

**قوله: وَلَا تَنْتَقِبُ:**

**محرمې ښځې دپاره د حجاب اچولو ممانعت:** یعنی محرمه ښځه دې نقاب نه اچوی دَدې مطلب دادې چه محرمه ښځه دې خپل خله اومخ نه پټوی. دَ سرو دَپاره هم دغه حکم دې. اوکه ښځې داسې پرده اوکړی چه دَمخ نه ئې پرده اخوا وی نو هغه جائز ده.

**[۲٦٧۹] که ازاربند نه وی نو محرم دې پرتوګ شلولوسره واچوی**

> ۲٦٧۹–[۲] ()① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: «سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَخْطُبُ② وَهُوَ يَقُولُ: "إِذَا لَمْ يَجِدِ الْمُحْرِمُ نَعْلَيْنِ لَبِسَ خُفَّيْنِ، وَإِذَا لَمْ يَجِدْ إِزَارًا لَبِسَ سَرَاوِيلَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابن عباس ﷺ وايي چې ما د نبی کریم ﷺ څخه په خطبه کې اوريدلي دي، ② نبی کریم ﷺ فرمايل چې که د محرم چپلي نه وي، نو هغه موزې په پښو کولی شي، ③ او چې د کوم محرم سره تهبند (لنګ) نه وي نو هغه پرتوګ اغوستی شي، بخاري، مسلم.

**تسهیلات:**

**قوله: لَبِسَ سَرَاوِيلَ:**

**محرم دپاره د پرتوګ د استعمالولو حکم:** یعنی که محرم سره ازار بند نه وی او پرتوګ وی نوهغه دې هم دغه پرتوګ دَ مجبورئی دَ وجې نه استعمال کړی. دَ حدیث هم دا ظاهری مطلب امام شافعی رحمه الله اختیارکړې دې لیکن امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی که پرتوګ وی نوهغه دې اوشلوی اودَ ازاربند په توګه دې استعمال کړی لیکن که هم پرتوګ ئې استعمال کړو اودَ ډیر وخت دَپاره ئې استعمال کړو نو په دغه محرم باندې به دم راځی او که دَ لږ وخت دَپاره ئې استعمال کړو نودَ دم په ځائې به فدیه لازمیږی.

① اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب لبس الخفین للمحرم إذا لم یجد النعلین (رقم-۱۸٤۱) ومسلم فی کتاب الحج /باب ما یباح للمحرم بحج أو عمرة، وما لا یباح وبیان تحریم الطیب علیه (رقم-٤ - (۱۱۷۸)

[٢٦٨٠] خلوق لګول منع دی

٢٦٨٠-[٣] ()١ وَعَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: «كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِالْجِعْرَانَةِ٢ إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ أَعْرَابِيٌّ عَلَيْهِ جُبَّةٌ، وَهُوَ مُتَضَمِّخٌ بِالْخَلُوقِ٣ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أَحْرَمْتُ بِالْعُمْرَةِ، وَهَذِهِ عَلَيَّ.٣ فَقَالَ: "أَمَّا الطِّيبُ الَّذِي بِكَ فَاغْسِلْهُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ،٥ وَأَمَّا الْجُبَّةُ فَانْزِعْهَا، ثُمَّ اصْنَعْ فِي عُمْرَتِكَ كَمَا تَصْنَعُ فِي حَجِّكَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**١ يعلى ابن اميه ﷺ وايي مونږ خلق په جعرانه کې (چې د مکې څخه په څو ميله فاصله يو مقام دی او د هغه ځايه څخه نبی کريم ﷺ د عمرې احرام تړلی وو) د نبی کريم ﷺ سره وو٢ اچانك يو صحرايي سړی راغلو ، هغه کرته اچولې وه، او هغه سړې په خلوق کې رنګ شوی وو (خلوق د يو خوشبو نوم دی چې د زعفران وغيره څخه به تياريدلی)٣ هغه سړي عرض وکړ چې يا رسول الله! ﷺ ما د عمرې احرام داسې حالت کې تړلی وو، چې دا کرته زما په بدن وه،٣ نبی کريم ﷺ ورته وفرمايل تا چې کومه خوشبو لګولې ده، دا درې خله ووينځه٥ او کرته اوباسه، بيا د خپلې عمرې په احرام کې هغه شان وکړه، څرنګه چې ته د خپل حج په احرام کې کوې، بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① جُبَّةٌ: چوغه، ② مُتَضَمِّخٌ: دَ باب تفعل نه دې په خوشبوئی کښې لړلی لت پت سړی دپاره وئيلی شی. ③ بِالْخَلُوقِ: نَوْعٌ مِنَ الطِّيبِ يُتَّخَذُ مِنَ الزَّعْفَرَانِ: دَ زعفران نه جوړشوې خاص عطر دې خلوق ورته وائی.

**تسهيلات: نوټ:** په دې حديث کښې د محرم دپاره د خوشبوئي او ګنډلو شوو جامو اغستلو ممانعت بيان شوې دې اوبه دې دوارو مسئلوتفصيلي بحث شوې دې.

[٢٦٨١] دَ احرام په حالت کښې دَ نکاح کولو او کولو بيان

٢٦٨١-[٤] ()١ وَعَنْ عُثْمَانَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "«لَا يَنْكِحُ الْمُحْرِمُ وَلَا يُنْكِحُ، وَلَا يَخْطُبُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**١ حضرت عثمان ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل دا مناسب نه دی، چې محرم نکاح وکړي، دغه شان (ولايةً يا وکالةً) نکاح کول او کوزده کول هم مناسب نه دي، مسلم

**حل اللغات:** ① لَا يَنْكِحُ: أَيْ: لَا يَتَزَوَّجُ لِنَفْسِهِ: دَ ضرب يضرب نه، يعنی ځان دپاره نکاح نه شی کولې، ② لَا يُنْكِحُ: أَيْ: لَا يُزَوِّجُ الرَّجُلُ امْرَأَةً: انکح ينکح دَ باب افعال نه دَبل چا دَ نکاح کولو په معنی کښې دې، يعنی وکيل جوړيدو سره دبل چا نکاح هم نه شی کولې. ③ لَا يَخْطُبُ: أَيْ: لَا يَطْلُبُ امْرَأَةً لِلنِّكَاحِ: يعنی دَ نکاح پيغام هم نه شی ورکولې.

()١ اخرجه البخاری فی كتاب الحج /باب غسل الخلوق ثلاث مرات من الثياب (رقم-١٥٣٦) ومسلم فی كتاب الحج /باب ما يباح للمحرم بحج أو عمرة، وما لا يباح وبيان تحريم الطيب عليه (رقم-٦ - (١١٨٠))
()١ اخرجه مسلم فی باب تحريم نكاح المحرم، وكراهة خطبته (رقم-٤١ - (١٤٠٩))

**تسهيلات:**

**قوله:** لَايَنْكِحُ الْمُحْرِمُ:

**دمذکوره جملې مطلب:** مطلب دا چه دَ احرام په حالت کښې محرم نه خپله نکاح کولې شي اونه دَ چادَپاره وکيل يا ولي جوړيدوسره نکاح کولې شي.

**قوله:** وَلَايَخْطُبُ:

**داحرام په حالت کښې دجماع حرمت:** دا دريواړه صيغې دَ نهي په معنی کښې دی په دې باندې دَټولو فقهاؤ اتفاق دې. چه دَنکاح نه پس دَ احرام په حالت کښې جماع کول حرام دی په دې باندې هم دَټولو فقهاؤ اتفاق دې چه دَ احرام په حالت کښې دَ نکاح پيغام ورکول مکروه تنزيهي يعنی خلاف اولی دی. دَ نکاح کولو راکولو يعنی نکاح او انکاح باره کښې دَ فقهاؤ په خپل مينځ کښې اختلاف شوې دې.

**دَ محرم د نکاح په کولو کښې مذاهب:**

① دَ ائمه ثلاثه په نيزدَ محرم دَ پاره پخپله نکاح کول يادَ بل نکاح کول دواړه ناجائزدی که چااوکړه نو نکاح منعقدنه ده.

② دَ احنافو په نيز پخپله نکاح کول يادَ بل نکاح کول مناسب نه دی مکروه تنزيهي دی ليکن که چانکاح اوکړه نودَايجاب اوقبول نه پس نکاح منعقد کيږی البته په احرام کښې جماع کول حرام دی.

خلاصه دا چه دَ جمهورو په نيزحالت احرام کښې نکاح ناجائزده دَ احنافو په نيزجائزده مګر خلاف اولی ده.

**دَ اختلاف وجه:** دَفقهاؤ دَ اختلاف سبب دَ رواياتو تعارض دې. ټول څلور روايات دی په دې کښې دَحضرت عثمان رضي الله عنه په روايت کښې پخپله نکاح کول يادَبل نکاح کولو ممانعت دې اودَحضرت يزيدبن اصم رضي الله عنه او په خپله دَ حضرت ميمونه رضي الله عنها دَ رواياتونه معلوميږی چه دَحضورپاك نکاح دَ حضرت ميمونه رضي الله عنها سره په دې حالت کښې شوې وه چه حضورپاك په احرام کښې نه وو.

بل طرف ته دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه په واضحه توګه معلوميږی چه دَحضرت ميمونه رضي الله عنها سره دَ حضورپاك نکاح دَ احرام په حالت کښې شوې وه.

**د ائمه ثلاثو دلائل** – زير بحث د حضرت عثمان رضي الله عنه دَا روايت دې

وَعَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ لَايَنْكِحُ الْمُحْرِمُ وَلَا يُنْكَحُ وَلَا يَخْطُبُ، رَوَاهُ مُسْلِمٌ. په دې کښې چه محرم دَ نکاح کولونه منع کړې شوې دې.

**جواب:** دَدې جواب دادې چه هم دغه نهي کراهت تنزيهي باندې محمول دې لکه څنګه چه

دَ جمهورو په نیزدَ لايخطب نهی کراهیت تنزیهی باندې محمول دې دغه شان لاينكح ولاينكح هم کراهت تنزیهی باندې حمل دې دَ فرق کولو هیڅ وجه نشته چه پیغام ورکول جائز دی نو عقد هم جائز کیدل پکار دی.

② جمهورو دَحضرت ابورافع رضي الله عنه په روایت هم استدلال کړې دې.

وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ قَالَ تَزَوَّجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ مَيْمُوْنَةَ وَهُوَ حَلَالٌ وَبَنٰى بِهَا وَهُوَ حَلَالٌ وَكُنْتُ أَنَا الرَّسُوْلَ بَيْنَهُمَا، رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ

په دې کښې حضورپاك دَ حضرت میمونه رضي الله عنها سره په داسې حالت کښې نکاح کړې وه چه حضورپاك په احرام کښې نه وو.

**جواب:** دَدې جواب دادې چه دې حدیث نه تزوج وهو حلال نه شب زفاف دعوت ولیمه رخصتی او دَدې مشهورتیا ښکاره کول مراد دی یعنی عقدخو هم دَ احرام په حالت کښې وولیکن دَ عقد دَ لوازماتو ظهورهغه وخت اوشو کوم وخت چه حضورپاك په احرام کښې نه وو.

③ جمهورو دَحضرت یزیدبن اصم رضي الله عنه په حدیث استدلال کړې دې عَنْ يَزِيْدَ ابْنِ الْأَصَمِّ ابْنِ أُخْتِ مَيْمُوْنَةَ عَنْ مَيْمُوْنَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ تَزَوَّجَهَا وَهُوَ حَلَالٌ، رَوَاهُ مُسْلِمٌ

چه حضورپاك کومه نکاح دَ حضرت میمونه رضي الله عنها سره کړې وه هغه وخت حضورپاك دَ احرام په حالت کښې نه وو بلکه حلال وو.

**د جواز د قائلینو دلائل:** ① دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَ حدیث نمبر: ۲۶۸۳ (دی راتلونکی) نه استدلال کړې دې په کوم چه په واضحه توګه باندې ذکر دی چه وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ تَزَوَّجَ مَيْمُوْنَةَ وَهُوَ مُحْرِمٌ، رَوَاهُ مُسْلِمٌ. په دې ښکاره دا ذکر دې چې حضورپاك دَ احرام په حالت کښې دَحضرت میمونه رضي الله عنها سره نکاح کړې وه.

② قیاس اوعقلی دلیل نه هم استدلال کړې شوې دې چه دَمحرم دَپاره نور ټول عقود اوفسوخ جائز دی نوعقدنکاح هم جائزده. دَمحرم دَپاره عطرلګول منع دی مګراخستل جائز دی. ګنډلې شوې کپړې اچول منع دی مګر اخستل ئې جائزدی دغه شان وطی منع ده مګر نکاح جائز ده. اوچونکه محرم دَعبادت دَپاره راغلې دې لهذا ده له دَ واده په شغل کښې پریوتل مناسب نه دی خلاف اولی دی.

**دَاختلاف منشاء:** ①په اصل کښې دَفقهاء کرامو په مینځ کښې دَ اختلاف منشاء یوخودَ روایاتو اختلاف اوتعارض دې ②بل دَدې پوره واقعه پس منظر اوتفصیل دې.

**د میمونې رضي الله عنها د نکاح واقعه:** دَحضرت میمونه سره دَ نکاح واقعه داسې اوشوه چه کله حضورپاك په ۷هجری کښې دَ عمرة القضاء دَپاره مکې مکرمې طرف ته روان شو نو حضورپاك دَخپل آزاد کړې شوی غلام ابورافع رضي الله عنه په ذریعه حضرت میمونه رضي الله عنها ته دَ

نکاح پیغام ورکړو چه په مکه مکرمه کښې اوسیدله. دَهغې خور ام الفضل دَحضرت عباس رضي الله عنه بی بی وه. حضرت میمونه رضي الله عنها دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما ترور وه. ابورافع رضي الله عنه چه کله دَ نکاح پیغام ورکړو نوحضرت میمونه رضي الله عنها نیك بختی ګڼړلوسره قبول کړو اودَ خپلې نکاح معامله ئی دَ خورخاوند حضرت عباس رضي الله عنه ته حواله کړه. حضرت عباس رضي الله عنه په مقام سرف کښې دَحضورپاك استقبال اوکړو اوهم دلته ئی دَحضور پاك نکاح حضرت میمونه رضي الله عنها سره اوکړه. حضورپاك عمره اداکړه اودَمعاهده په رڼا کښې درې ورځې په مکه مکرمه کښې پاتې شو. اهل مکه دَ حضورپاك نه مطالبه اوکړه چه دَ مکې نه لاړشه. حضورپاك اوفرمائیل چه که تاسو ماته نورلږ شان دَ پاتې کیدو اجازت راکړئی نوزه به دعوت ولیمه اوکړم اوپه تاسو باندې به هم اوخورم. قریشو اووئیل داسې نه کیږی دَ معاهدې دَ وجې نه تاسودَ دې ځائی نه لاړشئی. حضورپاك دَ مکې نه مدینې ته روان شو اودَ مکې نه دَ لسو میلو په فاصله باندې مقام سرف کښې حصار شو حضرت میمونه هم هلته راغله او هم دغه ځائی کښې واده اوشو. حضورپاك مقام سرف کښې دَزفاف شپه تیره کړه او ولیمه ئی اوکړه. دَ زمانې عجائبو ته اوګورئی چه دَ حضرت میمونه رضي الله عنها هم په دغه مقام سرف کښې نکاح اوشوه زفاف اوشو ولیمه اوشوه. اوروسته چې ئې کله د وفات وخت راغلو نو هم په دغه مقام کښې وفات شوه اوهم دغه ځائی کښې دَ سړك په غاړه باندې دَهغې قبرجوړشو. دَهغې قبر تنعیم نه په تیریدوسره وړاندې وادی فاطمه سره کتلې شوې دې. فرضي الله عنها وعن جميع الصحابه.

**دَ عدم جواز د قائلینو د ابن عباس په روایت کښې تاویل:** ائمه ثلاثه فرمائی چه دانکاح کوم وخت شوې وه هغه وخت حضورپاك حلال وو په احرام کښې نه وو لیکن چه کله دَ دې نکاح تشهیراوشو نوهغه وخت حضورپاك په احرام کښې وو. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما هم داحالت بیان کړې دې. صاحب مشکوة د یزید بن اصم په راروان روایت کښې دَ امام محی السنة په حواله سره هم دغه تاویل کړې دې

**د تاویل ضعف:** دا تاویل بې ځایه تکلف دې ځکه چه دَ نکاح اودَ نکاح ټوله معامله دَ حضرت عباس رضي الله عنه په لاس کښې وه. دا څنګه ممکن وه چه دَدې واقعه نه دَ عباس رضي الله عنه خوئی اودَ میمونه رضي الله عنها خورئی حضرت ابن عباس رضي الله عنه ترآخر وخت پورې ناخبره وی.

**د جواز د قائلینو وجوه ترجیح:**

① حضرت عباس رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه په نکاح دَ میمونه رضي الله عنها کښې دَ یوکور کسان دی او "صاحب البيت ادرى بما فيه" مسلم قول دې.

② داخبره فیصله شوې ده چه مقام سرف په میقات کښې داخل دې. داهم منلې شوې ده چه دَاهل مدینه میقات ذوالحلیفه دې چه دَ مدینې نه لس کلومیټر فاصله باندې دې. اوس

حضرت میمونه رضي الله عنها سره نکاح مکې ته دَتللو وخت کښې شوې ده یا دَ عمره نه فارغ کیدو نه واپس راتللو سره شوې ده. که چرې دَتللو وخت کښې شوی وی نو یقینًا حضورپاك په احرام کښې وو او که چرې په واپسئ کښې شوی وی نو یقینًا حضورپاك بغیردَ احرام نه وو. اوس دا خبره منلې شوې ده چه حضورپاك دَ اهل مکه نه دَ نور حصاریدو اجازت غوښتې وو او دَ ولیمه دعوت ئې ورکړې وو دَ کوم نه چه معلومیږی دا نکاح دَتللو وخت کښې شوې وه گنې دَ ولیمې دعوت به ئې څنګه ورکولو؟ او دَ تلو په وخت حضورپاك په احرام کښې وو ځکه چه دَ میقات نه بغیردَ احرام نه تیریدل جائزنه دی.

③ نکاح محرم کښې روایات متعارض دی او دَ تعارض په صورت کښې دَ قیاس طرف ته تلل وی او قیاس دا فیصله کوی چه دَ حاجی محرم دَ پاره چه کله ټول عقود او فسوخ جائز دی نو عقد نکاح هم جائز ده. چه محرم دَ وطی دَپاره وینځه اخستې شی سره دَدې چه وطی کولې نه شی نو هم دغه شان دَنکاح معامله هم ده.

[٢٦٨٢] د میمونې بی بی سره په حالت احرام کښې نکاح کول

٢٧٣-[٥] (١)① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَزَوَّجَ مَيْمُونَةَ وَهُوَ مُحْرِمٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابن عباس رضي الله عنهما وايي نبی کریم ﷺ د بي بي میمونی رضي الله عنها سره په داسې حالت کې نکاح وکړه، چې نبی کریم ﷺ (د عمرة القضاء) احرام تړلی وو، بخاري، مسلم

**تسهیلات:**

**نوټ:** دا یوه معرکة الآراء مسئله ده د کومې تفصیل چې د مذاهبو په بیان کښې ذکر شوې دې. د حدیث مطلب آسان دې باقی د ګرانو لغاتو معانی د حل اللغات په عنوان سره واضح شوی دی.

[٢٦٨٣] میمونې رضی الله عنها سره په حالت غیراحرام کښې نکاح کول

٢٧٣-[٦] (٢)① وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ الْأَصَمِّ، ابْنِ أُخْتِ مَيْمُونَةَ «عَنْ مَيْمُونَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَزَوَّجَهَا وَهُوَ حَلَالٌ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

② قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ - رَحِمَهُ اللَّهُ: وَالْأَكْثَرُونَ عَلَى أَنَّهُ تَزَوَّجَهَا حَلَالًا، وَظَهَرَ أَمْرُ تَزْوِيجِهَا وَهُوَ مُحْرِمٌ، ثُمَّ بَنَى بِهَا وَهُوَ حَلَالٌ بِسَرِفَ فِي طَرِيقِ مَكَّةَ.

**ترجمه:** ① یزید ابن اصم (تابعي رحمه الله) چې د ام المؤمنین بي بي میموني رضي الله عنها خوریی دی (د خپلې خاله، د مور خور) بي بي میموني رضي الله عنها څخه نقل کوي چې نبی کریم ﷺ د دی

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب تزویج المحرم (رقم-١٨٣٧) ومسلم فی باب تحریم نکاح المحرم، وکراهة خطبته (رقم-٤٦ - (١٤١٠)

[2] اخرجه مسلم فی باب تحریم نکاح المحرم، وکراهة خطبته (رقم-٤٨ - (١٤١١)

(بي بي ميموني ﷺ) سره چې کله نکاح وکړه نو نبی کريم ﷺ د احرام په حالت کې نه وو، مسلم [٢] امام محی السنة رحمه الله فرمايي چې اکثره علماء (يعنی د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله څخه علاوه) د دې خبري قائل دي، چې نبی کريم ﷺ چې کله د ميموني ﷺ سره نکاح وکړه نو هغه وخت نبی کريم ﷺ د احرام په حالت کې نه وو، هو د بي بي ميموني ﷺ سره د نبی کريم ﷺ د نکاح اظهار عام هغه وخت وشو، هر کله چې نبی کريم ﷺ د احرام په حالت کې وو، بيا نبی کريم ﷺ بي بي ميموني سره شب زفاف (د واده شپه) په مقامِ سرف کې (چې د مکی په لار کې واقع دی) تيره کړه کله چې يې احرام خلاص کړی وو

**تسهيلات:**

**نوټ:** دا يوه معرکة الآراء مسئله ده د کومې تفصيل چې د مذاهبو په بيان کښې ذکرشوې دي. د حديث مطلب آسان دې باقی د ګرانو لغاتو معانی د حل اللغات په عنوان سره واضح شوی دی.

**[٢٦٨٣] دَ محرم دَپاره دَ سر وينځلو اجازت**

٢٦٨٣-[٧] ()[١] وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ يَغْسِلُ رَأْسَهُ وَهُوَ مُحْرِمٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابو ايوب ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ به د احرام په حالت کې خپل سر مبارک منځلی، بخاري، مسلم

**تسهيلات: قوله:** كَانَ يَغْسِلُ رَأْسَهُ وَهُوَ مُحْرِمٌ

**په حالت احرام کښې د سر وينځلو حکم:** چه ويښته مات نه شی اوخوشبوئی اونه لګی نوصرف دَ سر وينځلو اجازت دې. خوشبوئی دار صابن سره وينځل هم جائزنه دی.

**حديث الباب سره متعلقه درې مسائل:**

① دځه اختلاف نه بغير دمحرم دپاره دا جائز دی چه هغه خپل سر اووينځی خوپه دې طريقه چه دسر يو ويښته هم مات نه شی،

② که څوک په خطمی سره سر وينځی نودحضرت امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله اود حضرت امام مالک رحمه الله په نزد په هغه باندې دم دې يعنی څاروې ذبح کول پرې واجبيږی، ځکه چه صرف دا نه چه خطمی د خوشبو يوقسم دې بلکه ددې په لګولو سره سپږې مړې کيږی،

③ (دخوشبو نه بغير) صابون يا د بيرې په پاڼړو او دغسې نورو څيزونو سره د سر وينځلو په صورت کښې متفقه طورباندې دټولو علماؤ په نزد په ده باندې هيڅ نه واجبيږی.

---

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الحج /باب الاغتسال للمحرم (رقم-١٨٤٠) ومسلم فی کتاب الحج /باب جواز غسل المحرم بدنه ورأسه (رقم-٩١ - (١٢٠٥)

**[٢٦٨٥] ښکر لګول جائز دي**

٢٦٨٥-[٨] ( ) [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: «احْتَجَمَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَهُوَ مُحْرِمٌ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [١] ابن عباس ﷺ وايي چې نبي کريم ﷺ د احرام په حالت کې ډك ښکر وينه راوخکله يعنی ښکر يې ولګولی، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① اِحْتَجَمَ: حجامه ښکر لګولو ته وائی. يعنی وينه ئې اوويستله.

**تسهيلات: قوله:** اِحْتَجَمَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَهُوَ مُحْرِمٌ:

**د ويښتو خرولو دوه صورتونه اودهريو حکم:** ① د محرم د پاره ښکر لګول (حجامه کول) جائز دی په دي شرط چه ويختـه کټ نه شی که په سر کښې ئ لګوی او د سر څلورمه حصې نه کم ويخته کټ کول پکار وی نو په دې صورت کښې به صدقه لازميږی

② که د څلورمې حصې يا ددې نه زيات ويخته کټ کيږی يا کټ کول پکار شی نو بيا دم واجب دې.

**[٢٦٨٦] دَ محرم دَپاره دَ پټئی لګولو مسئله**

٢٦٨٦-[٩] ( ) [١] وَعَنْ عُثْمَانَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، حَدَّثَ «عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي الرَّجُلِ إِذَا اشْتَكَى عَيْنَيْهِ وَهُوَ مُحْرِمٌ ضَمَّدَهَا بِالصَّبِرِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت عثمان ﷺ د يو سړي په باره کې د نبی کريم ﷺ دا حديث بيان کړي چې که د احرام په حالت کې د هغه سترګي خوږ شي، يا هغه په ضعف بصارت کې مبتلا شی (د نظر په کمزوري کې اخته شي) نو هغه دي په خپلو سترګو ايلوا (مصبر، صبر) پوري کړي، مسلم.

**حل اللغات:** ① ضَمَّدَهَا: دَ باب تفعيل نه د ماضی صيغه ده، پټئی لګول او مَلهم کولو ته وائی بعضو په سترګه کښې دوائی اچولوته ونيلی دی. ② بِالصَّبِرِ: هِيَ عُصَارَةُ شَجَرَةٍ: د يو بوټی سفوف يعنی ميده سور رنګ اوړه دی هغې ته صبروائی، تريخ څيز دې، د رانجو په طور سترګو کښې اچولي شی.

**تسهيلات: قوله:** وَهُوَ مُحْرِمٌ ضَمَّدَهَا بِالصَّبِرِ:

**په سر د پټئ لګولو حکم:** دَ بدن په نورو حصوباندې پټئی کولوکښې هيڅ حرج نشته دي البته سر او مخ په پټئی يا دوائی سره پټول جائزنه دی. که دَ سرڅلورمه حصه پټه کړې شوه نودم به راځی ګنی صدقه لازم ده. زيربحث حديث په حالت دَ مجبورئی باندې محمول دې.

---

[1] اخرجه البخاري فی كتاب الحج /باب الحجامة للمحرم (رقم-١٨٣٥) ومسلم كتاب الحج /باب جواز الحجامة للمحرم (رقم-٨٧ - (١٢٠٢)

[2] اخرجه مسلم فی كتاب الحج /باب جواز مداواة المحرم عينيه (رقم-٨٩ - (١٢٠٤)

## [٢٦٨٧] دَ محرم دپاره چتهرلی وغیره استعمالول جائز دی

٢٦٨٧-[١٠] (١)[١] «وَعَنْ أُمِّ الْحُصَيْنِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - قَالَتْ: رَأَيْتُ أُسَامَةَ وَبِلَالًا،[٢] وَأَحَدُهُمَا آخِذٌ بِخِطَامِ نَاقَةِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[٣] وَالْآخَرُ رَافِعٌ ثَوْبَهُ، يَسْتُرُهُ فِي الْحَرِّ، حَتَّى رَمَى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[١] بي بي ام حصين رضي الله عنها وايي چې ما حضرت اسامه او حضرت بلال رضي الله عنهما وليدل [٢] چې په هغوئ کې يو د نبي كريم ﷺ د اوښې مهار نيولی وو[٣] او بل (يعني حضرت اسامه رضي الله عنه) خپله جامه پورته کړي وه (په نبي كريم ﷺ بالا) چې د نمر د ګرمۍ د تاو ځنې يې ورباندې سايه (سوري) کړې وه، تر دې چې نبي كريم ﷺ په جمره عقبه كانړي وويشتلی، مسلم.

**حل اللغات:** ① بِخِطَامِ: دَ اوښې جلب ته خطام وائی یعنی لګام يا واګې.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَالْآخَرُ رَافِعٌ ثَوْبَهُ، يَسْتُرُهُ فِي الْحَرِّ:

**د سر دپاسه په کپړه د سوری کولو حکم:** رافع ثوبه: دَدې نه معلومه شوه چه دَ محرم دَ سردَ پاسه سورې کول جائز دی که چهترئی وی او که چت وی يا ګاډې وغیره وی په دې شرط چه هغه پرده په سر پورې لګيدلې نه وی.

### د محرم دپاره د سوری کولو په حکم کښې مذاهب:

① دَاکثر فقهاؤ دغه مسلك دې.

② امام مالك رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله سورې کول مکروه ليکلی دی کيدې شی چه خلاف اولی وی

③ شيعه ګان شنيع دا حرام ګڼړی. دَحج په موسم کښې چه هغوی په کوم بس کښې سفر کوی دَهغه بسونو چتونه نه وی.

## [٢٦٨٨] دَ سر خرولو جزا

٢٦٨٨-[١١] (٢)[١] «وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَرَّ بِهِ وَهُوَ بِالْحُدَيْبِيَةِ قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ مَكَّةَ، وَهُوَ مُحْرِمٌ،[٢] وَهُوَ يُوقِدُ تَحْتَ قِدْرٍ، وَالْقَمْلُ تَتَهَافَتُ عَلَى وَجْهِهِ،[٣] فَقَالَ: "أَتُؤْذِيكَ هَوَامُّكَ؟" قَالَ: نَعَمْ قَالَ: "فَاحْلِقْ رَأْسَكَ وَأَطْعِمْ فَرَقًا بَيْنَ سِتَّةِ مَسَاكِينَ[٤] - وَالْفَرَقُ: ثَلَاثَةُ آصُعٍ - "أَوْ

---

[١] اخرجه مسلم فی کتاب الحج /باب استحباب رمي جمرة العقبة يوم النحر راكبا، وبيان قوله صلى الله عليه وسلم «ولتأخذوا مناسككم» (رقم-٣١٢ - (١٢٩٨))

[٢] اخرجه البخاري فی کتاب الحج /باب قول الله تعالى: «فمن كان منكم مريضا أو به أذى من رأسه ففدية من صيام أو صدقة أو نسك» [البقرة: ١٩٦] (رقم-١٨١٤) ومسلم فی کتاب الحج /باب جواز حلق الرأس للمحرم إذا كان به أذى، ووجوب الفدية لحلقه، وبيان قدرها (رقم-٨٣ - (١٢٠١))

مِنْ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ أَوِ انْسُكْ نَسِيكَةً»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] د كعب ابن عجره ﷺ څخه روايت دى چې نبى كريم ﷺ د هغه سره تير شو، هر كله چې هغه په مكه كې د داخليدو څخه مخكې په حديبيه كې وو، او كعب ﷺ د احرام په حالت كې وو (يعني دا د هغه موقع ذكر دى، هر كله چې نبى كريم ﷺ د خپلو ملګرو سره د عمري د پاره مكې ته روان شوى وو، ليكن مشركينو په حديبيه كې ټول منع كړى وو، نو ټولو سره كعب ﷺ هم په مكه كې د داخليدو اميدوار وو، خو بيا وروسته د يوي معاهدي تحت، چې هغه ته صلح حديبيه وايي، ټول خلق د عمرى كولو بغير د هغه ځاى څخه تللي وو، بهرحال نبى كريم ﷺ چې د كعب سره تير شو نو)[٢] هغه تر كټوي لاندي اور بلولى، او سپږي د سر څخه غورځيدلو سره د هغه په مخ راپريوتلي، [٣] نبى كريم ﷺ (د دي ليدو سره ورته) وفرمايل چې آيا دا سپږي تاته تكليف رسوي؟ هغه عرض وكړو چې هو، نو نبى كريم ﷺ ورته وفرمايل چې ته خپل سر وخريه، او په طور د جزاء يو فرق طعام په شپږو مسكينانو وخوره، [٤] او فَرَق د دريو صاعو وي، يا دري ورځي روژي ونيسه يا يو څاروى ذبح كړه، چې د ذبح قابل وي، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① يُوقِدُ: دا د إيقَاد نه دي، اور بلولو ته وائى. ② قِدْر: كټوئ، ③ القَمْلُ: أَيْ: جِنَّةٌ: سپږه، ④ تَتَهَافَتُ: أَيْ: تَتَسَاقَطُ: دَباب تفاعل نه دَمضارع صيغه ده دَ پريوتلو په معنى كښې دې (يعنى سپږي ئې د سرنه غورزيدلي). ⑤ هَوَامُّكَ: د هَامَّة جمع ده، د سپږي اوكتمل په شان وړوكي ګرځيدونكي ځيز دي. ⑥ فَرَقًا: دا يو پيمانه ده چه د دريو صاع برابر ده. ⑦ آصُع: يا أَصْوُع جمع د أَصَاع ده، صاع يوه پيمانه ده چه د اته رطلو يعنى د اته پونډونو برابر دې، او يو صاع د څلور مُده هم برابر وى.

**دراوي مختصر تعارف:**

**حضرت كعب بن عجره:** نوم كعب ابومحمد كنيت، ،بلى، ، خاندان سره ئى تعلق ووحليه مباركه ئى داسې وه چه په يوه غزوه كښې دَ هغه لاس پرې شوې وو(طبقات ابن سعد) په سرباندې وينښته ګڼړوو(مسند احمد :۴/۲۴۲)

دَ هجرت نه پس مسلمان شوې ووبيائى حضورپاك ﷺ سره په ټولو غزواتوكښې شركت كړې. غزوه حديبيه كښې حضورﷺ سره وو. دَ سرووينښته دَ ګڼړوالى په وجه ئى په سر كښې دومره سپږې شوې وې چه هغه به ئى په مخ باندې راتلې او راپريوتې به. حضورﷺ هغه ته دَ وينښتو كټ كولو مشوره وركړه هغه كټ كړل. دَ هغه په سيرت كښې دَ حق حمايت اودَ رسول الله ﷺ سره مينه ډېر دواړه ځيزونه دَ حضرت كعب ﷺ په اخلاقو كښې ډير روښانه وو. يوځل دې دَ حضورﷺ په خدمت كښې حاضر شودَ ډيرې لوږې په وجه د حضورﷺ مخ مبارك متغير شوې وو.دې پوهه شو او دَ يويهودى په اوښ باندې اوبه

اوځکولې هغه یوه ډولچه د یوې چوارۍ په حساب سره مزدوري ورکړه چه څه چوارۍ راجمع شوې نو هغه ئې واخستلې اود حضور ﷺ په خدمت کښې ئې پیش کړې (اصابة: ٣٠٤/٥)

**مرويات:** د هغه د روايتونوشمير ٤٧ دي.

**وفات:** په کال ١٥٥هـ کښې چه کله د هغوی عمر ٧٥ کاله وو مدينه کښې وفات شو.

**تسهيلات:**

**قوله:** فَاحْلِقْ رَأْسَكَ وَأَطْعِمْ..الخ:

**د مجبورئ په وجه د سر خرولو حکم:** بهر حال په وجه د مجبورئی که یو محرم سر اوخروی نو هغه له اختيار دي چه د جزا په توګه په دريو تاوانونو کښې يو تاوان ډك کړی يا خودې شپږو مسکينانو ته نصف نصف صاع غنم ورکړي يا دې درې ورځې روژه اوساتی يا د ذبح قابل يو خاروې دې ذبح کړي. په قرآن کريم کښې د دې ترتيب ذکر الله تعالى جل جلاله داسې کړې دې ﴿فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِنْ رَأْسِهِ فَفِدْيَةٌ مِنْ صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ﴾ [سورت بقره: ١٩٦].

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [٢٦٨٩] په احرام کښې د ښځو د پاره ممنوع څيزونه

٢٦٨٩ - [١٢] (١) [١] «عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٢] - يَنْهَى النِّسَاءَ فِي إِحْرَامِهِنَّ عَنِ الْقُفَّازَيْنِ وَالنِّقَابِ [٣] وَمَا مَسَّ الْوَرْسُ وَالزَّعْفَرَانُ مِنَ الثِّيَابِ، [٤] وَلْتَلْبَسْ بَعْدَ ذٰلِكَ مَا أَحَبَّتْ مِنْ أَلْوَانِ الثِّيَابِ، مُعَصْفَرٍ، أَوْ خَزٍّ، أَوْ حُلِيٍّ، أَوْ سَرَاوِيلَ، أَوْ قَمِيصٍ، أَوْ خُفٍّ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** [١] د ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چې هغه واوريدل [٢] چې نبی کريم ﷺ د دې څخه منع فرمايله چې ښځه دې د خپل احرام په حالت کې دستاني وانه چوي، او (دغه شان) نقاب وانه چوي. چې هغه نقاب د هغوئ په مخ لګيږي، [٣] او داسې جامې وانه غوندي، چې په هغه کې زعفران او ورس لګيدلی وي، [٤] هو د دې څخه روسته (يعني د احرام د وتلو څخه پس) هغه د جامو د انواعو څخه څه چې غواړي وادې غوندي که څه هم چې په کوم رنګ رنګ شوی وي، وريښم وي يا زيور وي، او که پاجامه (پرتوګ) وي، قميص وي يا موزه وي. ابوداؤد

**حل اللغات:** ① الْقُفَّازَيْنِ: دستاني، ② النِّقَابِ: أي الخمار، هغه لوپټه چه زنانه پرې مخ پټوی ③ مُعَصْفَرٍ: رنګ شوې جامې، ④ خَزٍّ: خز د ريښمو چينجی ته وائی خو مراد ترې دهغې ريښم دی. ⑤ حُلِيٍّ: مَا يَلْبَسُهُ النِّسَاءُ مِنْ آلَاتِ الزِّيْنَةِ: کالی يعنی هغه څيزونه چه زنانه ئې د ښائست دپاره اغوندی لکه والئ، تتکئ وغيره.

(١) اخرجه ابوداود في كتاب المناسک . باب ما يلبس المحرم (رقم-١٨٢٦)

**تسهيلات:**

**قوله: بَعْدَ ذٰلِكَ:**

**د احرام څخه حلاليدو نه پس د هر قسم پابندۍ ختميدل:** يعني دَ احرام نه دَ وتلونه پس دَ ښځودپاره هرقسم کپړې اچول جائز دی هرقسم کالی اچول هم جائز دی ريښم هم جائز دی او موزې هم جائز دی. مګر دَ احرام په حالت کښې دَ ښځودپاره نقاب اچول منع دی دستانې منع دی دَ ورس اوزعفران رنګ کړې شوې کپړه اچول هم منع ده.

**[٢٦٩٠] دَاحرام په حالت کښې دَ پردې طريقه**

٢٦٩٠-[١٣] ()١ «وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: كَانَ الرُّكْبَانُ يَمُرُّونَ بِنَا وَنَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مُحْرِمَاتٌ، ٢ فَإِذَا جَاوَزُوا بِنَا سَدَلَتْ إِحْدَانَا جِلْبَابَهَا مِنْ رَأْسِهَا عَلَى وَجْهِهَا، ٣ فَإِذَا جَاوَزُونَا كَشَفْنَاهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَلِابْنِ مَاجَهْ مَعْنَاهُ.

**ترجمه:** ١ أم المؤمنين بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي چې مونږ د سفر په دوران کې د احرام په حالت کې د نبی کريم ﷺ سره ملګري وو، او د احرام په وجه زمونږ مخونه خلاص وو، او زمونږ نزدې قافلې تيريدلې، ٢ هر کله چې به يوه قافله زمونږ مخې ته تيريدله. نو په مونږ کې به هرې ښځې (د پردې په غرض) خپل څادر په خپل سر راښکلو سره په خپل مخ به يې (داسې) اچولی (چې هغه څادر به د هغې د مخ سره نه لګيدلی) ٣ او کله چې به قافله زمونږ د مخ څخه تيره شوه، نومونږ به خپل مخونو خلاص کړل، ابوداؤد، ابن ماجه هم د دې مضمون يو روايت نقل کړی دی. [اخرجه ١٧٣/٢.

**حل اللغات:** ① جَاوَزُوا: أَيْ: مَرُّوا: چه تيريدله به (قافله). ② سَدَلَتْ: أَيْ أَرْسَلَتْ: دا د سدل نه دې رازوريندولو ته وائی. ③ جِلْبَابَهَا: أَيْ بُرْقُعَهَا أَوْطَرْفَ ثَوْبِهَا: برقعه، يا دڅادر يو ګوټ يعنی پړونې.

**تسهيلات:**

**قوله: سَدَلَتْ إِحْدَانَا جِلْبَابَهَا مِنْ رَأْسِهَا عَلَى وَجْهِهَا:**

**د محرمې زنانه دپاره د پردو سرو څخه د پردې کولو اهتمام کول:** دَدې حديث نه معلومه شوه چه څومره ممکن وی دَ احرام په حالت کښې ښځوله خپل مخ دَ پردو سړونه پټول پکاردی. داسې نه وی چه دَ احرام اوعبادت په شا دَخپل مخ نمائش شروع کړی. مخ او خله پټول داسې هم کيدې شی چه دَ پردې کپړه مخ سره نه لګی اوپرده اوشی. دَ همت ضرورت دې.

١) اخرجه ابوداود في كتاب المناسك ، باب في المحرمة تغطي وجهها (رقم-١٨٣٣) وابن ماجة في كتاب المناسك/باب المحرمة تسدل الثوب على وجهها(رقم – ٢٩٣٥) واحمد في المسند:٣٠/٦

[۲٦۹۱] په احرام کښې صرف تيل استعمالول جائز دي

۲٦۹۱-[۱٤] ( )[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ يَدَّهِنُ بِالزَّيْتِ وَهُوَ مُحْرِمٌ غَيْرَ الْمُقَتَّتِ" يَعْنِي غَيْرَ الْمُطَيَّبِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابن عمر ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ به د احرام په حالت کې بغير د خوشبو د زيتون تيل استعمالول، ترمذي.

**حل اللغات:** ① يَدَّهِنُ: تيل به ئې لګول. ② الْمُقَتَّتِ: هُوَ مَا يُطْبَخُ فِيهِ الرَّيَاحِينُ: هغه تيل کوم کښې چه د خوشبودار ګلونو څخه جوړ کړې شي.

**تسهيلات: قوله:** يَدَّهِنُ:

**د خوشبودارو تيلو لګولو حکم:** تيل که چرته دَهرقسم خوشبوئی نه پاك وی نودَ هغې استعمال په دې حديث سره ثابت دې

**په زيات مقدار کښې د تيلو په استعمال کښې اختلاف:** که تيل پخپله خوشبودار وی يا په هغې کښې خوشبوئی يوځائی کړې شوې وی نو په اتفاق سره به دم لازميږی. خو که چرې خوشبودار تيل دَ دوائی دَپاره استعمال کړې شی نودم به نه راځی اوکه چرې دَ خوشبوئی په غرض ئی استعمال کړی نوبيا به دم راځي. او چې خالص تيل وی نو هغه هم په زيات اندازه سره استعمال نه وی. که چرې دا خالص تيل هم په زيات مقدار کښې استعمال کړې شی دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به دم لازمی وی دَ صاحبينو په نيز به صرف فديه ورکول وی.

# الْفَصْلُ الثَّالِثُ

[۲٦۹۲] کندلې شوې کپړې په بدن باندې اچول څنګه دی؟

۲٦۹۲-[۱٥] ( )[۲] «عَنْ نَافِعٍ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ وَجَدَ الْقُرَّ، فَقَالَ: أَلْقِ عَلَيَّ ثَوْبًا يَا نَافِعُ; فَأَلْقَيْتُ عَلَيْهِ بُرْنُسًا. [۲] فَقَالَ: تُلْقِي عَلَيَّ هٰذَا وَقَدْ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنْ يَلْبَسَهُ الْمُحْرِمُ»؟. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] نافع (تابعي) رحمه الله وايي چې ابن عمر ﷺ ته د احرام په حالت کې په يوه موقع يخنی شروع شوه، نو هغه وفرمايل چې اې نافع! په ما جامه واچوه ما د هغه په بدن برساتی (باراني) واچوله، [۲] نو هغه اوويل چې ته زما په بدن دا (برساتی) اچوې؟ حالانکه نبی کريم ﷺ محرم د دې د اچولو څخه منع کړی دی، ابوداؤد.

**حل اللغات:** ① الْقُرَّ: أَيِ الْبَرْدَ: يخنی، ② بُرْنُسًا: أَيْ: ثَوْبًا مُلْتَزَقَ الرَّأْسِ: برساتی يعنی هغه جرسی يا جامه کومه چې خلق ئې په باران کښې اچوی.

---

[۱] اخرجه الترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-۹٦۲) وابن ماجة فی کتاب المناسک/باب ما يدهن به المحرم (رقم-۳۰۸۳) واحمد فی المسند: ۱٤٥/۲

[۲] اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک، باب ما يلبس المحرم (رقم-۱۸۲۸)

**تسهیلات: قوله:** بُرْنُسًا:

**د عبدالله بن عمرد برساتئ د استعمال څخه انکار:** برساتئ ته وائي. دَ يخنئ دَ وجې نه حضرت ابنَ عمر رضی الله عنه نافع رحمه الله ته اوفرمائيل زما په بدن باندې څه کپړه واچوه هغه پرې برساتئ واچوله. په دې باندې حضرت ابن عمر رضی الله عنهما خفه شو ونې فرمائيل چه زه په احرام کښې يم اوته په ما باندې ګنډلې شوې کپړه اچوې؟

**په غیرمعتاد طريقه دګنډلې شوې جامه کښې داحنافو مسلک:** دَ احنافو فقهي مسلک دې نومسئله داسې ده که چرې ګنډلې شوې کپړه په غيرمعتادطريقه باندې صرف په بدن باندې واچولې شي نو په دې سره هيڅ نقصان نه کيږي.

**دحديث الباب څخه جواب:** حضرت ابن عمر رضی الله عنهما خکه انکاراوکړو چه کيدې شي دَ هغوی مسلك داسې وو چه ګنډلې شوې کپړې په هرقسم طريقه سره دَ محرم دَپاره جائزنه دی يا ابن عمر رضی الله عنه خکه نکيراوفرمائيلو چه نافع رحمه الله دَ هغوی په سرباندې برساتئ اچولې وه په کوم سره چه دَهغوی سرپټ شوې وو.

**[۲٦۹۳] د حضور ﷺ ښکر لګول (وينه اوخکل)**

—[۱٦] ()[۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَالِكٍ ابْنِ بُحَيْنَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: «احْتَجَمَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَهُوَ مُحْرِمٌ بِلَحْيِ جَمَلٍ مِنْ طَرِيقِ مَكَّةَ فِي وَسَطِ رَأْسِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] عبد الله ابن مالك رضی الله عنه چې د بحينه خوی دی، هغه وايي چې نبی کريم ﷺ د مکې په لار کې د لحي جمل په مقام د احرام په حالت کې د خپل سر په منځ کې ښکر ولګوی (يعني وينه يې وخکله، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① بِلَحْيِ جَمَلٍ: دَ مکې اومدينې په مينځ کښې دَ يوځائی نوم دې.

**حل اللغات:** ① لحی جمل:

**تسهیلات:**

**قوله:** وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَالِكٍ ابْنِ بُحَيْنَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ:

**د مالک تعارف:** په دې حديث کښې عبدالله بن مالك بن بحينة نوم دې په ظاهره داسې ښکاری چه مالك دَ بحينه خوئی دې حالانکه مالك دَ بحينه خاوند دې اوعبدالله دَهغوی خوئی دې نودَ عبدالله اول صفت ابن مالك دې اودَ هغه دويم صفت بحينه ده اودادَ هغه مور ده.

**قوله:** وَسَطِ رَأْسِهِ:

**د ښکر لګولو دپاره د ويښتو د کټ کولو حکم:** که دَ ښکر لګولودَپاره څلورمه حصه يا دَدې

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب الحجامة للمحرم (رقم-۱۸۳٦) ومسلم فی کتاب الحج /باب جواز الحجامة للمحرم (رقم-۸۸ - (۱۲۰۳))

نه زيات ويښته پرې کړې شي نو په محرم باندې به دم لازم راځي که چرې کم وي نو صدقه به لازميږي اوچرته چه ويښته نه وي نوهلته په ښکر لګولو باندې هيڅ هم نه راځي خپل پخپله ويښته ماتيدوي سره هم څه نه لازميږي

## [٣٦٩٤]ښکر لګول

[١٧]()[١]وَعَنْ أَنَسٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ:[٢]«احْتَجَمَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-وَهُوَ مُحْرِمٌ عَلَى ظَهْرِ الْقَدَمِ مِنْ وَجَعٍ كَانَ بِهِ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ،وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه** [١]انس ﷺ وايي[٢] چې نبی کريم ﷺ د احرام په حالت کې د خپلې پښې په شا ښکر ولګولی ،يعني وينه يې وخکله، خکه چې نبی کريم ﷺ ته درد وو، ابوداؤد، نسائي

**حل اللغات** ① ظَهْرِ الْقَدَمِ: دخپې شا، خپې پورته طرف، ② وَجَعٍ: درد، تکليف.

**تسهيلات: قوله**:عَلَى ظَهْرِ الْقَدَمِ مِنْ وَجَعٍ كَانَ بِهِ:

**دعذر دوجې د محرم دپاره ښکر لګول**:چونکه د خپې په شاه باندې ويخته نه وي په دې وجه د ويختو ماتيدو څه سوال نه پيدا کيږي لهذا په خپو باندې ښکر لګول جائز دی او نبی عليه السلام د عذر په بنا ښکر لګولي وو يا ممکنه ده چه ښکر لګولو دوه واقعات وی هم يو احرام کښې يا دواړه واقعات جدا جدا احرامونو کښې پيښې شوی وی

## [٣٦٩٥]دبي بي ميموني ﷺ سره د حضور ﷺ نکاح

[١٨]()[١]«وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ:[٢]تَزَوَّجَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-مَيْمُونَةَ وَهُوَ حَلَالٌ،[٣]وَبَنَى بِهَا وَهُوَ حَلَالٌ،وَكُنْتُ أَنَا الرَّسُولَ بَيْنَهُمَا». رَوَاهُ أَحْمَدُ،وَالتِّرْمِذِيُّ،وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ.

**ترجمه** [١]ابو رافع ﷺ وايي نبی کريم ﷺ چې د بي بي ميموني ﷺ سره نکاح وکړه نو حضور ﷺ د احرام په حالت کې نه وو، [٣]او هر کله چې د هغې سره يې شب زفاف د واده شپه تيره کړه، نو بيا هم د احرام په حالت کې نه وو، او د دې دواړو په منځ کې د نکاح پيغام وړونکی زه وم. احمد، ترمذي، امام ترمذي ﷫ فرمايلي دي چې دا حديث حسن دی

**حل اللغات** ① الرَّسُولَ :أَيْ:الْوَاسِطَةُ: پيغام وړونکې راوړونکې، واسطه.

**تسهيلات**:

**نوټ**:دا حديث د امام شافعی رحمه الله وغيره دليل دې چه محرم د احرام په حالت کښې نکاح نشی کولې د دې جواب تير شوې دې

() اخرجه ابوداود فى كتاب المناسك ، باب ما يقتل المحرم من الدواب (رقم-١٨٤٧) والنسائى فى كتاب مناسك الحج/باب حجامة المحرم على ظهر القدم (رقم-٢٨٤٩)

() اخرجه الترمذى فى كتاب الحج عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية تزويج المحرم (رقم ٨٤١) واحمد فى المسند:٦/٣٣٣

# [١٢] بَابُ الْمُحْرِمِ يَجْتَنِبُ الصَّيْدَ]

## دَ محرم دپاره دَ ښکار دَ مما نعت بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه أحد عشر حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① حرمة قبول الصيد حياً وحله مذبوحاً: ١، ١١.

② ما يجوز قتله للمحرم: ٣، ۴، ٧.

③ شرط حل الصيد للمحرم: ٢، ٥.

④ جواز صيد البحر: ۶.

⑤ ذكر بعض الصيود البرية: ١، ٨، ٩، ١٠.

قال الله تعالى ﴿أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهُ مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِلسَّيَّارَةِ ۖ وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا﴾ [سورة المائده الايه: ٩۶].

**د صيد تعريف:** په دې باب کښې دَ صيد نه مراد هر هغه ځناور دې چه دَ خپل تخليق په اعتبار سره متوحش وی اودَ هغه تولد وتناسل په اوچه باندې وی په اوبو کښې نه وی که يوه مرغئی يادَ اوچې ځناور په اوبو کښې اوسيږی لکه مرغابئی وغيره نودَ دغه عارض دَ وجې نه به هغه دَ ښکار نه خارج کيږی نه هغه به په ممنوعه ښکار کښې شمير وی که په عارضی توګه يو ځناور اموخته شو لکه هوسئی وغيره نودَ دې اعتبار به نه کيږی دا هم هغه شان ممنوعه ښکار دې.

**د ښکار د جواز او عدم جواز صورتونه:** ① دَ محرم دَ پاره سمندری ښکار مطلقًا جائز دې
② که دَ اوچې ښکار ماکول اللحم دې نو مطلقًا حرام دې
③ که غير ماکول اللحم وی نو که هغه موذی وی نو دَ هغې ښکار کول هم مطلقًا حرام دی
④ که موذی وی او په شروع کښې حمله کونکې وی نو دَ داسې ځناور قتل کول دَ محرم دپاره جائز دی لکه ازمرې ليوه وغيره
⑤ که چرې غير موذی ځناور هم په محرم باندې دَ حملې کولو دَ پاره راځی نو دَ حفاظت په توګه په وژلو کښې هيڅ حرج نشته

**د ښکار د حرمت دوه حيثيتونه:** ① دَ ښکار باره کښې يو خو دَ حاجی دَ احرام حالت دې په دې کښې حاجی چرته هم چه وی دَ اوچې ښکار نه شی کولې دا قسم دَ احرام ممنوعات دی
② دَ حرم دَ زمکې حيثيت دې په دې حيثيت کښې که حاجی په احرام کښې وی او که حلال وی هغه ښکار نه شی کولې دا قسم د حرم ممنوعات دی.

**د بعضې ځيزونو د قتلولو اجازت:** بعض ځيزونه داسې دی د کوم د تکليف د وجې نه د هغې وژل په حرم کښې هم جائزدی او د احرام په حالت کښې هم جائزدی. لکه کارغه تپوس مار، لړم مږه او ليونی سپی ددې تولو وژل په هرحالت کښې جائزدی.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [٢٦٩٦] محرم د ښکارغوښه خوړلی شی که نه؟

[١] (١) ① «عَنِ الصَّعْبِ بْنِ جَثَّامَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - ② أَنَّهُ أَهْدَى لِرَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حِمَارًا وَحْشِيًّا. وَهُوَ بِالْأَبْوَاءِ أَوْ بِوَدَّانَ، ③ فَرَدَّ عَلَيْهِ، فَلَمَّا رَأَى مَا فِيهِ وَجْهِهِ ④ قَالَ: "إِنَّا لَمْ نَرُدَّهُ عَلَيْكَ إِلَّا أَنَّا حُرُمٌ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ① د حضرت صعب ﷺ ابن جثامه په باره کې روايت دی ② چې هغه د نبی کريم ﷺ په خدمت کې وحشي حمار (ګورخر) په طور د هديې وليږلی، کله چې نبی کريم ﷺ مقام آبواء يا ودان (چې د مکې او مدينې په منځ کې واقع دی) کې تشريف فرما وو، ③ نبی کريم ﷺ هغه واپس کړي، او هر کله چې نبی کريم ﷺ د دې په وجه د هغه په مخ د غم او افسوس آثار محسوس کړل، ④ نو وې فرمايل چې مونږ ستا هديه ځکه واپس کړه، چې مونږ په حالت داحرام کې يو، بخاري، مسلم.

**حل اللغات:** ① حِمَارًا وَحْشِيًّا: ځنګلی خر، ② بِالْأَبْوَاءِ أَوْبِوَدَّانَ: أي مَوْضِعَانِ بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ: د مدينې او مکې په مينځ کښې ځايونه دی. ابواء د مدينې نه لس فرسخه لرې دې، او بودان د أبواء نه اته ميله فاصله کښې د ابواء او جحفه په مينځ کښې واقع دې.

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت صعب بن جثامه ﷺ:** نوم صعب د پلارنوم جثامه بن يزيدبن قيس بن عبدالله دې د قبيله ليثی سره ئی تعلق وود ابوا مقام چه د حجاز په زمکه واقع دې په دې کښې هغه اوسيدلو په دې وجه په اهل حجاز کښې د هغوی روايتونه موندلې شی.

**وفات:** دحضرت ابوبکرصديق ﷺ په خلافت کښې وفات شو.

**مرويات:** دهغوی نه ١٧ احاديث نقل دی په دې کښې دوه بخاری اومسلم کښې موجوددی.

**تسهيلات: قوله:** فَرَدَّ عَلَيْهِ:

**د ښکار غوښې د نه قبلولو وجه:** يعنی حضورپاك د احرام په حالت کښې د ښکار غوښه قبوله نه کړه بلکه هديه کونکی ته ئی واپس کړه اوونی فرمائيل خفه نه شې مونږ په احرام کښې يو په دې وجه د ښکار غوښه نه شو قبلولې.

(١) اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب إذا أهدى للمحرم حمارا وحشيا حيا لم يقبل (رقم-١٨٢٥) ومسلم في كتاب الحج /باب تحريم الصيد للمحرم (رقم-٥٠ - (١١٩٣)

وس دَ فقهي نقطه نظر او رواياتو اختلاف سره دَمسئلي تفصيل داسې دې
**د محرم دپاره د ښکار د حرمت صورتونه:** ① دَتولو فقهاؤ په دې باندې اتفاق دې چه دَ محرم دپاره دَ اوچې ښکار کول هم حرام دی
② په هغې کښې امداد کول هم حرام دی چنانچه که چرته محرم پخپله دَ اوچې ښکار اوکړو یا هغه دَ ښکار کونکی سره تعاون اوکړو یا دَښکار طرف ته ئې اشاره کولو سره ازخودنه اوکړه نو په دې ټولو صورتونو کښې دَ ښکار غوښه خوړل دَ محرم دپاره ناجائزده که چرې وئې خوړله نو تاوان به اداکوی
**د محرم دپاره د غیر محرم ښکار خوړلو حکم:** که یو غیرمحرم دَ محرم په نیت سره ښکار کړې وی او دَمحرم هیڅ امداد په هغې کښې شامل نه وی نو په دې صورت محرم دپاره دغه غوښه خوړلو کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې
① حضرت ابن عمر ﷺ حضرت جابربن زید ﷺ اوحضرت طاؤس ﷺ طرف ته داخبره منسوب ده او هم دا دَ اسحاق بن راهویه ﷺ او سفیان ثوری ﷺ مسلك دې
چې محرم دپاره په هیڅ صورت دَ ښکار غوښه خوړل یا قبلول جائز نه دی. که غیرمحرم دَدې نیت کوی او که نه کوی
② ائمه ثلاثه فرمائی چه که چرې غیرمحرم دَ ښکار په وخت په محرم باندې دَ غوښې خوړلو نیت اوکړو نو دَمحرم دپاره دَدې خوړل جائز نه دی.
③ احناف فرمائی چه دَغیر محرم په ښکار کښې که چرې دَ محرم دَ طرف نه څه تعاون اوامدادنه وی نوصرف په نیت کولو سره دَمحرم دپاره دا غوښه خوړل حرام نه دی.
**د اسحاق بن راهویه دلیل:** اسحاق بن راهویه ﷺ وغیره اوبعض سلف دَزیر بحث حدیث نه استدلال کړې دې په دې کښې حضورپاك دَ ښکار غوښه واپس کړې اوعلت ئې دا بیان کړې چه مونږ په احرام کښې یو. معلومه شوه چه محرم دَ ښکار غوښه نه شي خوړلې که څوك په کښې نیت کوی او که نه کوی.
**جوابونه:** ① د دې څخه جواب دادې چه حضرت صعب بن جثامه ﷺ دَ حضورپاك په خدمت کښې ژوندې ځنګلی حمار هدیه کړې وو. زیر بحث حدیث کښې "حماراًوحشیاً" الفاظ دی چه دَ غوښې دپاره نه شی وئیلې کیدې او ژوندې ښکار محرم خپل ځان سره نه شی کیخودې. په دې وجه ئې واپس کړو. دَ احناف دا جواب خو په دې حدیث کښې بالکل واضح اوبه موقع دې لیکن دَ مسلم شریف بعض روایاتو کښې "لحم حماروحش" الفاظ راغلی دی هلته دا جواب نه شی چلیدې لیکن امام ترمذی ﷺ فرمائیلی دی چه "وهوغیرمحفوظ" یعنې دَ حماروحش الفاظ ثابت دی اودَ لحم حماروحش الفاظ غیرمحفوظ دی. امام بخاری ﷺ هم دَ صعب بن جثامه ﷺ دَ روایت دپاره چه کوم عنوان تړلې دې دَ هغې نه هم معلومیږی

چه معامله دَ ژوندی حمار دَ پیش کولو وه عنوان دادي "باب اذا اهدي للمحرم حمارا وحشيا حيا". اوجزالمسالک ج ۶ ص ۲۷۴.

② دویم جواب دادي چه حضورپاك دَ ذرائعو دَ بندولو دَ وجې نه دا رد کړو دې دپاره چه خلق دَ احرام په حالت کښې په ښکار کښې اخته نه شي دا جواب ډیر ښه دي

**د ائمه ثلاثه دليل:** ائمه ثلاثه راتلونکي دَحضرت جابر رضی الله عنه حديث نه استدلال کړي دي

عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَحْمُ الصَّيْدِ لَكُمْ فِي الْإِحْرَامِ حَلَالٌ مَا لَمْ تَصِيْدُوْهُ أَوْيُصَادَ لَكُمْ، رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

په دې کښې "اويصادلکم" الفاظ دي دکوم نه چه اندازه کیږی که دَمحرم په نیت سره ښکار اوکړې شو نوهغه هم ناجائز دي

**جواب:** د دې ځخه جواب دادې چه په دې کښې مضاف محذوف دي "اي يصادلامركم اوبدلالتكم" اوحكم كول يا لارخودنه كول خوجائز نه دی. هسې هم دَدې روايت نه دَ جمهورو استدلال مکمل نه دي ځکه چه په روایت کښې څو احتمالات دی. ژوندې ښکار هم مراد کیدې شی دَ امداد اشارې او دلالت احتمال هم دې لهذا دَ حضرت ابوقتاده رضی الله عنه صريح او صحيح روايت خپلول زيات بهتر دی دکوم تخريج چه بخاری او مسلم کړې دې او په هغې کښې تفصيلی قصه ده

**د احنافو دلائل:** ① احنافو دَ حضرت ابوقتاده رضی الله عنه دَراروان حديث نه استدلال کړې دې په کوم کښې چه حضورپاك دَ خوراك کونکو محرم صحابه کرام رضی الله عنهم نه تپوس اوکړو چه آیا تاسو دَ ابوقتاده امداد کړې یا هغه ته مو حکم ورکړې یا اشاره کړې هغوی په نفی کښې جواب ورکړو حضورپاك اوفرمائيل چه پاتې شوې غوښه اوخورئ اوپخپله هم حضورپاك دهغې نه خوراك اوکړو دلته حضورپاك دَ قتاده رضی الله عنه دَ نيت خبره دَچانه هم تپوس اونه کړو اوښکاره خبره ده چه حمار وحشی لوئی ښناور وی حضرت ابوقتاده رضی الله عنه به خامخا په خپل محرم ملگرو باندې دَ غوښې خورلو نيت کړې وی لهذا په نيت باندې پابندی نه شی لګولې

② عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ عُثْمَانَ التَّيْمِيِّ قَالَ كُنَّا مَعَ طَلْحَةَ ابْنِ عُبَيْدِ اللهِ وَنَحْنُ حُرُمٌ فَأُهْدِيَ لَهُ طَيْرٌ وَطَلْحَةُ رَاقِدٌ فَمِنَّا مَنْ أَكَلَ وَمِنَّا مَنْ تَوَرَّعَ فَلَمَّا اسْتَيْقَظَ طَلْحَةُ وَافَقَ مَنْ أَكَلَهُ قَالَ أَكَلْنَاهُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

احناف دَ دې حديث نه هم استدلال کوی اودا ډیر واضح دليل دي

......

## [٣٦٩٧] دغیر محرم د ښکار غوښه محرم خوړلی شي

[٢] (١) «وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّهُ خَرَجَ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٢ فَتَخَلَّفَ مَعَ بَعْضِ أَصْحَابِهِ وَهُمْ مُحْرِمُونَ، وَهُوَ غَيْرُ مُحْرِمٍ ٣ فَرَأَوْا حِمَارًا وَحْشِيًّا قَبْلَ أَنْ يَرَاهُ، فَلَمَّا رَأَوْهُ تَرَكُوهُ ٤ حَتَّى رَآهُ أَبُو قَتَادَةَ فَرَكِبَ فَرَسًا لَهُ ٥ فَسَأَلَهُمْ أَنْ يُنَاوِلُوهُ سَوْطَهُ، فَأَبَوْا ٦ فَتَنَاوَلَهُ فَحَمَلَ عَلَيْهِ، فَعَقَرَهُ، ثُمَّ أَكَلَ فَأَكَلُوا، فَنَدِمُوا،

**ترجمه** ١ د حضرت قتاده ﷺ په باره کې روایت دی چې هغه (د واقعه حدیبیه په موقع د مکې د پاره) د نبی کریم ﷺ سره روان شو. ٢ نو هغه د خپلو څو ملګرو سره وروسته پاتې شو، چې د عمرې د پاره يې احرام تړلی وو، لیکن خپله ابو قتاده ﷺ په حالت احرام کې نه وو. ٣ نو په لار کې یو ځای د هغه ملګرو ګورخر ولیدلی، خو د ابوقتاده ﷺ نظر په هغه پرې نه وتلو، د هغه ملګرو هغه ګور خرلیدو سره صرف نظر وکړي. ٤ آخر ابو قتاده ﷺ هم هغه ګورخر ولیدلی او (د هغه د ښکار کولو په غرض) په آس سور شو. ٥ او د خپلو ملګرو څخه يې خپل چابك وغوښتلی، خو هغوئ (په دې وجه چې په دې ښکار کې زمونږ عنت په هیڅ درجه کې هم شامل نشي) د چابك ورکولو څخه يې انکار وکړي. ٦ ابو قتاده ﷺ (د آس څخه خکته کیدو سره) خپله چابك پورته کړي، او په ګورخر حمله کونکی شو. تر دې چې هغه يې قتل کړي، بیا د هغه (غوښه تیارولو سره) خپله هغه هم وخوړله. او د هغه ملګرو هم وخوړله خو د هغه ملګرو د هغه غوښه خوړلو سره پښیمانه شو (ځکه چې هغوئ ګمان وکړي، چې د محرم د پاره مطلقًا د ښکار غوښه خوړل درست نه دي)

**حل اللغات**: ① فَتَخَلَّفَ: أَيْ: تَأَخَّرَ: روسته پاتې شو (ابوقتاده ﷺ) ② سَوْطَهُ: کوړه. چابک (کوم چه د آس د تيزولو دپاره استعمالولې شي) ③ فَعَقَرَهُ: أَيْ: قَتَلَهُ: عقر زخمی کولو ته وائی دلته ترې مراد دهغې (ځنګلی خر) قتلول دی ④ فَنَدِمُوا: خپیمانه شو.

فَلَمَّا أَدْرَكُوا رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَأَلُوهُ قَالَ "هَلْ مَعَكُمْ مِنْهُ شَيْءٌ؟" ٢ قَالُوا: مَعَنَا رِجْلُهُ. فَأَخَذَهَا النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٣ فَأَكَلَهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

٣ وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا: «فَلَمَّا أَتَوْا رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "أَمِنْكُمْ أَحَدٌ أَمَرَهُ أَنْ يَحْمِلَ عَلَيْهَا؟ أَوْ أَشَارَ إِلَيْهَا؟" قَالُوا: لَا ٥ قَالَ: "فَكُلُوا مَا بَقِيَ مِنْ لَحْمِهَا»".

**ترجمه** ١ کوم وخت چې هغه خلق نبی کریم ﷺ سره یو ځای شو، د دې حکم يې وپوښتلی (چې آیا د دې ګور خر غوښه خوړل زمونږ د پاره درست وو که نه؟) نبی کریم ﷺ د هغوئ څخه پوښتنه وکړه چې ستاسو سره د هغه څخه څه پاتې ده که نه؟ ٢ هغوئ اوویل چې هو زمونږ سره د هغه پښه پاتې شویده، نبی کریم ﷺ هغه پښه واخیسته او (هغه تیارولو

---

(١) اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب لا يشير المحرم إلى الصيد لكي يصطاده الحلال (رقم-١٨٢٤) ومسلم في كتاب الحج/باب تحريم الصيد للمحرم (رقم-٥٦ - (١١٩٦)

سره، وخوړله، دغه شان نبي كريم ﷺ ښكاره كړه، چې د هغه غوښه خوړل ستاسو د پاره درست وو. بخاري، مسلم

[٣] په بخاري او مسلم كې د يو بل روايت الفاظ دا دي، چې كوم وخت هغه خلق نبي كريم ﷺ ته را ورسيدل، او د نبي كريم ﷺ څخه يې په دې باره كې مسئله وپوښتله. [٤] نو نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل چې آيا په تاسو كې چا قتاده ﷺ ته دا حكم وركړى وو. چې هغه په گورخر حمله وكړي، يا په تاسو كې چا د گورخر طرف ته اشاره كولو سره د هغه ښكار ته متوجه كړى وو؟ هغوئ عرض وكړي چې يا. [٥] نو نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل چې بيا خو د هغه د غوښې څخه چې څه باقي پاتې شوى دى، هغه وخوري

**تسهيلات:**

**قوله: وَهُمْ مُحْرِمُونَ، وَهُوَ غَيْرُ مُحْرِمٍ:**

**حديث نه د احنافو د مذهب تائيد:** حضرت ابوقتاده ﷺ پخپله په احرام كښې نه وو باقي صحابه په احرام كښې وو اودا واقعه دَحديبيه دَعمرې په موقع باندې پيښه شوې په دې خبره باندې هم خان پوهه كړئي چه په حالت دَ احرام كښې هرڅائي ښكار دَ محرم دپاره حرام دې ليكن كه چرته حالت دَ احرام نه وى نوبيا په حدود حرم كښې ښكار كول حرام دى د حدود حرم نه بهرجائز دى. حضرت ابوقتاده ﷺ دَ حدود حرم نه بهرښكار كړې وو داحديث په دې خبره باندې واضح دلالت كوى چه دَمحرم دپاره دَ ښكار غوښه خوړل جائز دى په دې شرط چه هغه ښكار نه هغه پخپله كړې وى اونه ئې دَ چا څه امداد كړې وى چنانچه دا حديث دَ احناف دليل دې اوكوم خلق چه مطلقًا دَ ښكار غوښه خوړل دَ محرم دَپاره ناجائز گنړى په هغوى باندې داحديث حجت دې. بل حضرت ابوقتاده ﷺ گورخر كوم ته چه زيبرا وائى دومره لونى ښكار صرف دَ خپل ذات دپاره نه وو كړې يقيناً دَهغه نيت به په خپلو ملگرو باندې دَ غوښې خوړلو وو لهذا دا حديث په جمهورو باندې هم حجت دې

**[٢٦٩٨] هغه ځناور دَكوم چه په حالت دَ احرام كښې اوپه حرم كښې وژل جائز دى**

٢٦٩٨-[٣] ()[١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] «خَمْسٌ لَا جُنَاحَ عَلَى مَنْ قَتَلَهُنَّ فِي الْحَرَمِ وَالْإِحْرَامِ: الْفَأْرَةُ، وَالْغُرَابُ، وَالْحِدَأَةُ، وَالْعَقْرَبُ، وَالْكَلْبُ الْعَقُورُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [١] ابن عمر ﷺ راوي دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] پنځه ځاروى داسې دي، چې د هغوئ په حرم كې او د احرام په حالت كې وژل گناه نه ده ① مږه، مږك ② كارغه ③ تپس ④ لړم ⑤ چيچونكى يعنى ليونى سپى، بخاري، مسلم

() اخرجه البخاری فی كتاب بدء الخلق/باب: خمس من الدواب فواسق، يقتلن فی الحرم (رقم-٣٣١٥) ومسلم فی كتاب الحج /باب ما يندب للمحرم وغيره قتله من الدواب فی الحل والحرم (رقم-٧٢-(١١٩٩)

**حل اللغات**: ① الْفَأْرَةُ: مږه (كه ځنګلي وي اوكه كورنۍ) ② الْغُرَابُ: كارغه. ③ الأَبْقَعُ: أي: الَّذِي فِيهِ سَوَادٌ وَبَيَاضٌ: هغه كارغه چه په هغې كښې سپينوالي اوتوروالي وي. يعنى برګ ④ الْحِدَأَةُ: تپوس ⑤ الْعَقْرَبُ: لړم (ددې په معنى اوحكم كښې مارهم داخل دې) ⑥ الْكَلْبُ الْعَقُورُ: ليوني سپې يا حمله كونكې سپې

**تسهيلات**: **قوله**: خَمْسٌ لَا جُنَاحَ عَلَى مَنْ قَتَلَهُنَّ:

**د حكم عموم**: مطلب دادې چه ددې ځناورو خباثت اوشرارت اوتكليف رسولو د وجې نه د دې وژل جائز دى علماؤ ليكلي دى چه په دې پنځو ځناوروكښې حصر نشته دې بلكه د تكليف رسولو صفت چه په كومو ځناورو كښې وى دهغې وژل هم جائز دى مثلاً ميږى، ماشى، ورګې كتمل او كونى وغيره

**[٢٦٩٩]د پنځو ځارووژلو حكم**

--[٤] ()① وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ② قَالَ: " «خَمْسٌ فَوَاسِقُ يُقْتَلْنَ فِي الْحِلِّ وَالْحَرَمِ: الْحَيَّةُ، ③ وَالْغُرَابُ الأَبْقَعُ، وَالْفَأْرَةُ، وَالْكَلْبُ الْعَقُورُ، وَالْحُدَيَّا» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ① بي بي عائشه رضي الله عنها د نبى كريم ﷺ څخه نقل كوى ② چې نبى كريم ﷺ وفرمايل ايذاء (تكليف) رسونكي پنځه ځاروى دي چې هغه د حرم د حدودو څخه وتلى هم او د حرم په حدودو كې هم وژل كيدى شى (قتلونكي كه څه هم د احرام په حالت كې وي. كه څه هم د احرام څخه وتلى وي③ ① مار ② كارغه ③ مږك ④ ليونى سپى ⑤ تپوس، بخاري، مسلم

**حل اللغات**: ① فَوَاسِقُ: أي: مُؤْذِيَاتٌ: تكليف اوضرر رسونكي، ② الْحَيَّةُ: مار (ددې په حكم كښې لړم هم شامل دې) ③ الْغُرَابُ: كارغه. ④ الأَبْقَعُ: أي: الَّذِي فِيهِ سَوَادٌ وَبَيَاضٌ: هغه كارغه چه په هغې كښې سپينوالي اوتوروالي وي، يعنى برګ ⑤ الْفَأْرَةُ: مږه (كه ځنګلي وي اوكه كورنۍ) ⑥ الْكَلْبُ الْعَقُورُ: ليوني سپې يا حمله كونكې سپې. ⑦ الْحُدَيَّا: دا جمع ده او د حِدًا تصغيردې، ددې واحد حِدَأَةٌ دې، او ددې تصغير حُدَيَّاةٌ راځى.

**تسهيلات**:

**قوله**: خَمْسٌ فَوَاسِقُ يُقْتَلْنَ فِي الْحِلِّ وَالْحَرَمِ:

**د محرم دپاره د بعضې ځناورو د قتلولو جواز**: هغه سپې مړ كول حرام دى دكوم نه چه فائده حاصليږى، دغسې هغه سپې وژل هم حرام دى دكوم نه چه څه فائده نه حاصليږى خودهغې نه څه ضرر اونقصان هم نه رسيږى

---

[1]) اخرجه البخاري في كتاب بدء الخلق/باب: خمس من الدواب فواسق، يقتلن في الحرم (رقم-٣٣١٤) ومسلم في كتاب الحج /باب ما يندب للمحرم وغيره قتله من الدواب في الحل والحرم (رقم-٦٦ - (١١٩٨)

**مذکوره حکم عموم**: په پورته ذکر شوو دواړو حدیثونو کښې چه د کومو ځناورو ذکر شوې دې د وژنو اجازت صرف هم په دې ځناورو کښې منحصر نه دې بلکه هم دغه حکم د هغې ټولو ځناورو هم دې د کوم نه ضرر رسیږی، لکه میږی، سپږې، کټمل وغیره. البته که سپږې مړې کړی نو بیا به د وس او توفیق مطابق صدقه ورکول واجب وی

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[٢٧٠٠] که چرې امداد نه وی نو د ښکار غوښه د محرم د پاره حلال ده**

٢٧٠٠-[٥] ( )[١] عَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] "«لَحْمُ الصَّيْدِ لَكُمْ فِي الْإِحْرَامِ حَلَالٌ، [٣] مَا لَمْ تَصِيدُوهُ أَوْ يُصَادُ لَكُمْ» ". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه** [١] حضرت جابر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] ستاسو د پاره د احرام په حالت کې د ښکار غوښه حلاله ده، [٣] په شرط د دې چې هغه ښکار خو نه تاسو خپله کړې وي. او نه ستاسو د پاره شوی وي، ابوداؤد، ترمذي، نسائي

**تسهيلات**:

**نوټ**: د دې حدیث شرح د حدیث نمبر ٢٦٩۶ په تسهیل کښې د مذاهبو په بیان کښې تیره شوې ده

**[٢٧٠١] د ملخ د ښکار مسئله**

٢٧٠١-[٦] ( )[٢] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "«الْجَرَادُ مِنْ صَيْدِ الْبَحْرِ» ". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** [١] حضرت ابوهريره ﷺ د نبی کريم ﷺ څخه نقل کوي چې نبی کريم ﷺ وفرمايل ملخ د درياب د ښکار په مثل دی، ابوداؤد، ترمذي

**حل اللغات**: ① الْجَرَادُ: ملخ

**تسهيلات**: **قوله**: صَيْدِ الْبَحْرِ:

**د حديث دوه مطلبه**: ① د دې جملې يو مطلب دادې چه ملخ د سمندری کبانو په شان دی د دې ذبح کول ضروری نه دی د ذبح نه بغير به خوړلې شی لهذا احناف فرمائی چه د دې تشبيه مطلب دانه دې چه د ملخ ښکار د محرم د پاره جائز دې که څوك محرم ملخ وژنی نو مناسب صدقه به کوی

---

[١] اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک . باب لحم الصيد للمحرم (رقم-١٨٥١)والترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی اکل الصيد للمحرم (رقم-٨٤٦)اخرجه الترمذی فی ٣٦٢/٣

[٢] اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک . باب ما يقتل المحرم من الدواب (رقم-١٨٥٣) والترمذی فی السنن رقم الحديث ٨٥٠ واحمدفی المسند: ٣٠٦/٢

④ نورو علماؤ داخبره بیان کړې ده چه ملخ د سمندری کب په شان دې اود سمندری حیوانو ښکار د محرم دپاره جائز دې لهذا د ملخ هم جائز دې دا مطلب د حدیث زیات موافق دې

**[٢٧٠٢] دَ حمله کونکي ځناورد وژلو حکم**

حديث-[٧] ( )١ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "«يَقْتُلُ الْمُحْرِمُ السَّبُعَ الْعَادِيَ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** ١ ابوسعید خدري رضی الله عنه روایت کوی چې نبی کریم ﷺ وفرمایل محرم دې حمله کونکی دَرنده ووژني. ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه [اخرجه ابوداؤد: ٢/١٧٦ والترمذي: ٣/١٩٨.

**حل اللغات:** ① السَّبُعَ: درنده او ماتونکي ځناور ② الْعَادِيَ: وَهُوَ الَّذِي يَقْصَدُ: حمله کونکي

**تسهیلات:**

**قوله: يَقْتُلُ الْمُحْرِمُ السَّبُعَ الْعَادِيَ:**

**دخپل بچاؤ دپاره محرم د ضروری تمیز لره د قتلولو حکم:** که یو ځناور په محرم باندې حمله وکړی او محرم جوابی کارروائی کولو کښې هغه قتل کړی نو په دې صورت کښې په ده څه هم نه واجبیږی

**[٢٧٠٣] دَ کورکښ ښکاراود غوښې خوړلو مسئله**

حديث-[٨] ( )١ «وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي عَمَّارٍ قَالَ: سَأَلْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - عَنِ الضَّبُعِ أَصَيْدٌ هِيَ؟ ٢ فَقَالَ: نَعَمْ. فَقُلْتُ: أَيُؤْكَلُ؟ فَقَالَ: نَعَمْ ٣ فَقُلْتُ: سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: نَعَمْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالشَّافِعِيُّ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه** ١ عبدالرحمن ابن ابوعمار (تابعي) رحمه الله وایي چې ما د جابر ابن عبد الله رضی الله عنهما څخه د کوړ یو ښکاري مرغه (٢)، په باره کې پوښتنه وکړه، چې آیا دا ښکار دی؟ نو هغه وفرمایل چې هو. ما څني بیا پوښتنه وکړه چې آیا د دې غوښه خوړل کیدی شی؟ هغه وفرمایل چې هو. ما ورته اوویل چې آیا دا تا د نبی کریم ﷺ څخه اوریدلي دي؟ هغه وویل چې هو. ترمذي، نسائي، شافعي، او امام ترمذي رحمه الله فرمایلي دي چې دا حدیث حسن صحیح دی

**حل اللغات:** ① الضَّبُعِ: کور کښ، بجو (د پیشو برابر یو ځناور دی چه قبرونه کنی).

---

( ) اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک، باب ما یقتل المحرم من الدواب (رقم-١٨٤٨) والترمذی فی کتاب الصلاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی التثویب فی الفجر (رقم-١٩٨) واحمد فی المسند: ٣/٣٠٣

( ) اخرجه الترمذی فی کتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی أکل الضبع ( رقم-١٧٩١)

النسائی فی کتاب الصید والذبائح/باب الضبع (رقم-٤٣٢٣)

(٢) مرغه بعضو په چرغ سره نومولی

**تسهیلات: قوله: الضَّبُع:**

**د ضبع وضاحت:** ضبع یوځنګلی ځناوردې چه په جثه کښې دَ سپي برابر وی دې ته په اردو کښې هنډار او بجو وائی چرغ هم ورته وائی په فارسۍ کښې کفتار وائی اوپه پښتوکښې ورته ګورکخ وائی دا قبرونه کنستلوسره مړی خوری

**د محرم دپاره د ضبع د ښکار حکم:** دَ ګورکخ باره کښې دوه جدا جدا مسئلې دی. اول مسئله دا چه دَ محرم دَ پاره دَ ګورکخ ښکار څنګه دې نو په دې باندې دَ ټولو اتفاق دې که چرته محرم دَ احرام په حالت کښې دَ ګورکخ ښکار اوکړو نو په هغه باندې به تاوان راځی او په بدله کښې به یو ګډ ورکول وی لکه په راروان د حضرت جابر رضی الله عنه په کښې ددې تصریح موجود ده

**[۲۷۰۴] په ګورکخ باندې د صید اطلاق**

٢٧٠٤–[٩] (¹) [١] «وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنِ الضَّبُعِ [٢] قَالَ: "هُوَ صَيْدٌ، [٣] وَيُجْعَلُ فِيهِ كَبْشًا إِذَا أَصَابَهُ الْمُحْرِمُ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** [١] حضرت جابر ﷺ وایي چې ما نبی کریم ﷺ ځخه د ګورکخ په باره کې پوښتنه وکړه. نو نبی کریم ﷺ وفرمایل چې هغه ښکار دی، [٣] که یو محرم د دې مرتکب شي، نو د هغه په بدله کې دی پسه قرباني کوي، ابوداؤد، ابن ماجه، دارمي

**حل اللغات:** ① كَبْشًا: ګډ

**تسهیلات:**

**قوله: وَيُجْعَلُ فِيهِ كَبْشًا إِذَا أَصَابَهُ الْمُحْرِمُ:**

**د ګورکخ د قتلولو جزاء:** مطلب دا دې چه که یوسړی داحرام په حالت کښې د ضبع ګورکخ ښکار اوکړو. هغه نې واخستلو نو ددې د جزاء په طور به یوګډ واجب وی

**[۲۷۰۵] ګورکخ حلال نه دې**

٢٧٠٥–[١٠] (²) [١] وَعَنْ خُزَيْمَةَ بْنِ جَزِيٍّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: «سَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنْ أَكْلِ الضَّبُعِ. قَالَ [٢]: أَوَيَأْكُلُ الضَّبُعَ أَحَدٌ؟ [٣]". وَسَأَلْتُهُ عَنْ أَكْلِ الذِّئْبِ. قَالَ: "أَوَيَأْكُلُ الذِّئْبَ أَحَدٌ فِيهِ خَيْرٌ؟» [٤]. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ.

**ترجمه** [١] خزیمه ابن جزي ﷺ وایي چې ما د نبی کریم ﷺ ځخه د کوړ د غوښې خوړلو په

---

¹) اخرجه ابوداود فی کتاب الأطعمة/باب فی أكل الضبع (رقم-۳۸۰۱) والنسائی فی کتاب الصيد والذبائح/باب الضبع (رقم-۴۳۲۳)

²) اخرجه الترمذی فی کتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی أكل الضبع . ( رقم-۱۷۹۲) وابن ماجة فی کتاب الصيد/باب الذئب والثعلب (رقم-۳۲۳۵)

باره کې پوښتنه وکړه[٢] نو نبي کريم ﷺ وفرمايل چې چيرته هم د دې غوښه څوك خوري؟ يعني د دې غوښه خوړل نه دي پکار) [٣]بيا ما د شرمښ په باره کې پوښتنه وکړه، نو نبي کريم ﷺ وفرمايل چې آيا داسې يو سړی چې په هغه کې خير وي (يعني ايمان يا تقوی وي) د شرمښ غوښه هم خوري؟[٤] دا روايت امام ترمذي رحمه الله نقل کړی دی او ويلي يې دي چې د دې اسناد قوي نه دی

**حل اللغات:** ① الذِّئْب: شرمخ، زمري.

**تسهيلات:**

**قوله: أَوَيَأْكُلُ الضَّبُعَ أَحَدٌ؟**

**د ګورګخ د غوښې کراهت تحريمي کيدل:** او ددې تائيد هغه حديث سره هم کيږی چه نبي کريم ﷺ هر يو غابنونو شوکونکي درنده ځناور خوړل منع کړی دی (ذی ناب يعنی غابنونو سره شلونکې درنده ځناورهغې ته وائی کوم چه په غابنونو سره ښکار کوی) او ګورګخ بهرحال چونکه دګورګخ په مباح او حرام کيدو کښې په دليلونو کښې تعارض دې په دې وجه دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد مکروه تحريمی دی، ددې غوښه خوړل نه دی پکار

**قوله: وَقَالَ: لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ:**

**د روايت ضعف:** لکه څرنګه چه امام ترمذی رحمه الله فرمائيلی دی چه دا روايت اګرچه دسند په اعتبار سره ضعيف دې خو فی نفسه دا حديث بالکل صحيح دې، ددې دليل دابن ماجه روايت دې چه دهغې الفاظ دادی چه «وَمَن يأكل الضبع»

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [٢٧٠٦] دَغير محرم ښکار محرم خوړلې شي

٢٧٠٦-[١١] ()[١]عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عُثْمَانَ التَّيْمِيِّ قَالَ: «كُنَّا مَعَ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- وَنَحْنُ حُرُمٌ،[٢]فَأُهْدِيَ لَهُ طَيْرٌ[٣] وَطَلْحَةُ رَاقِدٌ، فَمِنَّا مَنْ أَكَلَ، وَمِنَّا مَنْ تَوَرَّعَ،[٤] فَلَمَّا اسْتَيْقَظَ طَلْحَةُ وَافَقَ مَنْ أَكَلَهُ[٥] قَالَ: فَأَكَلْنَاهُ مَعَ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [١] عبد الرحمن ابن عثمان تيمي رضي الله عنه وايي چې (يو ځل) مونږ د طلحه ابن عبيد الله رضي الله عنه سره وو، او مونږ ټول د احرام په حالت کې وو،[٢] چې هغه ته د هديه په طور د يو مرغه (پخ کړي غوښه) راغله،[٣] طلحه رضي الله عنه هغه وخت اوده وه، په مونږ کې بعضو هغه غوښه وخوړله (ځکه چې هغه پوهيدل چې محرم ته د ښکار غوښه خوړل جائز دي، په شرط د دې

() اخرجه مسلم فی كتاب الحج /باب تحريم الصيد للمحرم (رقم-٦٥ - (١١٩٧) والنسائی فی كتاب مناسك الحج /باب ما يجوز للمحرم أكله من الصيد(رقم-٢٨١٧)واحمد فی المسند:١/١٦١

چې په هغه ښکار کې د هغه حکم وغیره ته څه دخل نه وي، او بعضو د هغه څخه پرهیز وکړي (ځکه چې د هغوئ ګمان وو چې محرم ته دا غوښه خوړل درست نه دي)[٢] بیا چې حضرت طلحه ﷺ بیداره شو، نو د هغه خلقو موافقت یې وکړي. کومو چې غوښه خوړلې وه.[٥] او وي ویل چې مونږ د نبی کریم ﷺ سره دغه شان د احرام په حالت کې د ښکار غوښه خوړلې وه

**حل اللغات:** ① رَاقِدٌ: اوده، ② تَوَرَّعَ: پرهیز ئې اوکړو (یعنی اوئې نه خوړلو) ③ وَافَقَ: موافقت او طرفداری ئې اوکړه

**تسهیلات:**

**قوله: فَلَمَّا اسْتَيْقَظَ طَلْحَةُ وَافَقَ مَنْ أَكَلَهُ:**

**دخوړونکو څخه د حضرت طلحه رضی الله عنه د موافقت دوه صورتونه:**

① دا احتمال شته چې حضرت طلحه رضی الله عنه هغوی ته په ژبه داسې وئیلې وی چه تاسو غوښه اوخوړه نو ښه مو اوکړل. په دې کښې هیڅ حرج نشته. نودا قولی موافقت دې

② دا هم احتمال شته چې دوی په خپله هم باقی پاتې غوښه خوړلې وی دا فعلی موافقت دې

**دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دمسلک تائید:** دا حدیث دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله ددې مسلک تائید کوی چه که محرم په خپله ښکاراونه کری اونه په دې ښکارکښې دهغه دحکم وغیره څه دخل وی. نوهغه ددې غوښه خوړلې شی

قوله: فَأُهْدِيَ لَهُ طَيْرٌ:

**د طیرپه مصداق کښې دوه اقوال:**

①یو مارغه نه مراد یا خوجنس دې چه د مختلفو مارغانو غوښه راغلې وه.

② هم دا یو مارغه وو چه هغه دومره غټ وو چه دهغې غوښه دټولو خلقو دپاره کافی شوه

# [١٣] بَابُ الْإِحْصَارِ وَفَوْتِ الْحَجِّ

## د احصار بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه ثمانية أحاديث مشتملة على أربع مسائل:**

① حكم تحلل المحصر : ١، ٢، ٣، ۴.

② الإحصار لأجل عدو أومرض: ٢، ۵، ٧.

③ ذبح الهدايا مكان هدايا التي ذبحت خارج الحرم لأجل الإحصار: ۶.

④ عدم اعتبار الإحصار بعد إدراك عرفة : ٨.

قال الله تعالى ﴿ وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ ۚ فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ۖ وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ ۚ ﴾ [سورت بقره الايه: ١٩۶].

**د احصار معنى** د احصار معنى د لغت په اعتبار سره د "منع كول" ده او د فقه په اصطلاح كښ د احرام تړلو نه پس د حج يا عمرې نه منع كولو ته احصار وئيلې شي.

چا سره چه داسې واقعه راپيښه شي يعنى چا احرام اوتړلو او بيا چه د كوم كار دپاره (يعنى د حج يا عمرې دپاره) ئې احرام تړلې وو دهغې د ادا كولو نه منع كړې شو نوهغه ته محصر وائى

**د احصار صورتونه :** د حنفى مسلك مطابق د احصار څو صورتونه دى كوم چه د هغه څيز د ادا كولو نه چه د كوم ئې احرام تړلې وو (يعنى حج يا عمره) حقيقة يا شرعا مانع شى د هغه صورتونو تفصيل لاندې ليكلې شي.

① د چا دشمن ويره وى، د دشمن نه مراد عام دې كه څوك سړې وى يا درنده حيوان، مثلا دا معلوم شي چه په لاره كښ څوك دشمن ناست دې كوم چه حجاج ته تكليف وركوى يا ئې لوټ كوى يا ئې وژنى وړاندې تلو ته ئې نه پريږدى يا هم دغه ځائې كښ يو ځائې د شير وغيره د موجودګئ علم وى.

② بيمارى. د احرام تړلو نه پس داسې بيمار شى چه د هغې د وجې نه وړاندې نه شى تلې، يا وړاندې خو تلې شى خو د مرض د زياتيدو ويره ئې وى

③ د زنانه محرم پاتې نه شى. د احرام تړلو نه پس د زنانه محرم يا د هغې خاوند مړ شى يا چرته لاړ شى يا د وړاندې تلو نه انكار اوكړى

④ خرچ كم شى، مثلا د احرام تړلو نه پس مال او اسباب غلا شى يا ئې د مخكښ نه خان سره خرچ كم اخستلې وى او اوس د ضروورياتو دپاره وړاندې پيسې پاتې نه شى.

⑤ د زنانه دپاره عدت، د احرام تړلو نه پس د زنانه خاوند مړ شى يا ورته طلاق وركړى چه

د هغې د وجې نه د عدت پابند شی نو دا به احصار شی خو که هغه زنانه هغه وخت مقیم ده او د هغه د قیام د ځائې مکه د سفر د مسافت په اندازه نه ده نو دا به احصار نه شی ګڼړلې

⑥ لاره ترې هیره شی او څوك لاره ښودونكې نه وی

⑦ زنانه لره د هغې خاوند منع کړی، په دې شرط چه هغې د حج احرام د خاوند د اجازت نه بغیر تړلې وی د فرض حج نو د منع کولو او په نفل حج کښې د اجازت ورکولو نه پس د منع کولو اختیار د خاوند نشته

⑧ وینځې یا غلام لره د هغې مالك منع کړی

**په احصار کښې مذاهب:**

① د احصار دا ټول صورتونه د احنافو د مسلك مطابق دی.

② د درې واړو ائمه کرامو په نزد د احصار صرف یو صورت یعنی د دشمن ویره ده پس د هغه حضراتو په نزد په دې نورو صورتونو کښې احصار نه صحیح کیږی بلکه د احرام حالت برقرار پاتې وی

**د جمهورو دلائل:**

① جمهور د قرآن پاك د آیت ﴿ فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ۖ وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ ۚ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِنْ رَأْسِهِ فَفِدْيَةٌ مِنْ صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ ۚ فَإِذَا أَمِنْتُمْ فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ۚ فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعْتُمْ ۗ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ ۗ ذَٰلِكَ لِمَنْ لَمْ يَكُنْ أَهْلُهُ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴾ نه استدلال کوی

**د استدلال طریقه:** طرز د استدلال داسې دې چه د حدیبیه په موقع باندې حضور پاك ﷺ او صحابه کرامو ﷡ قریشو منع کړلې وو هغه وخت د احصار حکم راغلو او هغه د دښمن د وجې نه وو لهذا د مرض وغیره څه بل څیز د وجې نه به احصار نه کیږی

**جواب:** د دې یو جواب خو دا شو چه په آیت کښې د احصار مصداق دښمن نه بلکه د دې رومبې مصداق مرض دې دویم جواب دا دې سره د دې چه د آیت نزول د خاص دښمن په واقعه کښې دې لیکن دا مسلمه قاعده ده چه "العبرة لعموم الالفاظ لا لخصوص الواقعة" لهذا آیت ټولو عذرونو ته عام دې

② جمهورو د حضرت ابن عمر او حضرت ابن عباس ﷠ د یو اثر نه هم استدلال کړې دې هغوی او فرمائیل "لاحصر الامن عدو"

**جواب:** د دې جواب دا دې چه د مرفوع حدیث په موجودګئ کښې په اثر کښې تاویل کوی ممکن ده چه دې حضراتو کامل او مشهور حصر هم دا ګرځولې وی کوم چه د دښمن د وجې نه وی

**د احنافو دلائل:**

① وَعَنِ الْحَجَّاجِ ابْنِ عَمْرِو بْنِ الْأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ مَنْ كُسِرَ أَوْعَرِجَ فَقَدْ حَلَّ وَعَلَيْهِ الْحَجُّ مِنْ قَابِلٍ، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَةَ

په کوم کښې چه "من کسر اوعرج فقد حل" واضح الفاظ مذکور دی

② ﴿ فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ۖ وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتّٰى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ ۚ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ بِهٖ أَذًى مِنْ رَأْسِهٖ فَفِدْيَةٌ مِنْ صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ ۚ فَإِذَا أَمِنْتُمْ ۚ فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ۚ فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعْتُمْ ۗ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ ۗ ذٰلِكَ لِمَنْ لَمْ يَكُنْ أَهْلُهُ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللّٰهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴾ دا آیت دي

**طریقه د استدلال:** په دې کښې احصرتم د باب افعال نه د احصار په معنی کښې دي او احصار عام دې که د دښمن د وجې نه وی او که د مرض د وجې نه وی بلکه د اهل لغت نه فراء، ابن سکیت، اخفش او کسائی تصریح کړې ده چه احصار هغه منع کیدو ته وائی چه صرف د بیمارئی د وجې نه وی، حصر هغه منع کیدو ته وائی چه د دښمن د وجې نه وی دغه شان دا آیت صرف د احنافو د پاره قطعی دلیل دی

③ د قیاس هم دغه تقاضا ده چه احصار صرف دښمن سره خاص نه کړې شی ځکه چه بعضې وخت د دښمن د ویرې عذر خو ختمیږی لیکن د مرض عذر وی او خاص کر د بوډاګانو مرض خو په مرګ ختمیدې شی

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [٢٧٠٧] د احصار هدی به چرته ذبح کولې شی؟

٢٧٠٧ ـ [١] (١) ① عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ـ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ: «قَدْ أُحْصِرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ـ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ فَحَلَقَ رَأْسَهُ وَجَامَعَ نِسَاءَهُ ② وَنَحَرَ هَدْيَهُ، حَتّٰى اعْتَمَرَ عَامًا قَابِلًا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** ① ابن عباس ﷠ وایي چې د واقعه حدیبیه په کال نبی کریم ﷺ د عمرې څخه منع کړل شو نو نبی کریم ﷺ خپل سر مبارك وخریلی، او د احرام خلاصولو څخه روسته د خپلو بیبیانو مبارکو سره هم بستر شو. ② او د خپل هدیې څاروی یې ذبح کړي، بیا راتلونکی کال ته نبی کریم ﷺ خپله عمره اداء کړه، چې ورته عمرة القضاء ویل کیږی، بخاري، مسلم [اخرجه البخاری، ٣/١١].

**حل اللغات** ① أُحْصِرَ: أَيْ مُنِعَ: ایسار کړې شو (یعنی منع کړې شو د عمرې نه) ② فَحَلَقَ: سر ئې اوخرئیلو (چه حلال شی اود احرام نه اوځی)

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب إذا أحصر المعتمر (رقم-١٨٠٩)

**تسهيلات: قوله:** أُحْصِرَ:

**د حديث پس منظر:** يعنى كله چه ۶هجرى كښې حضورپاك دَ عمرې په غرض پنخلس سوا صحابه كرامو سره مكې طرف ته روان شونودحديبيه په مقام باندې قريشو حضورپاك ورانډې تلو او عمره كولونه منع كړل دغه شان احصار بالعدو يوصورت پيدا شو. كافى مذاكراتو نه پس په دې خبره باندې صلح اوشوه چه دې كال كښې دې مسلمانان بغيرد عمره كولونه واپس لاړشى او راتلونكى كال دې دعمرې دَ قضادپاره راشى. صلح حديبيه چه كله داسې دَ ټولو شرائطوسره مكمل شوه نوحضورپاك احرام كولاؤ كړو او سرئى اوخرولو او بيبيانو سره ئى مجامعت اوكړو اودَ هدى څاروى ئى ذبح كړل.

**د اروان بحث مقدمه:** اوس دَ فقهاؤ په دې مسئله كښې اختلاف پيدا شو چه آيا دَ قربانئى دپاره دَ حرم دَ زمكې كيدل ضرورى دى يا په ځائى دَ احصاركښې دَ حرم نه بهر هم دَهدى څاروى ذبح كولې شى. نو په دې باندې دَ ټولو اتفاق دې كه دَ احصار صورت نه وى نودَ هدى دَ قربانئى دپاره دَ حرم زمكه ضرورى ده ليكن كه دَ احصار صورت وى نو دا هدى قربانى كوم ځائى اوكړى دې كښې اختلاف دې.

**دَ محصر د هدي د ذبح په محل كښې مذاهب:**

① ائمه ثلاثه فرمائى چه حاجى ته كوم ځائى هم احصارپيښ شوې دې هم هلته دې څاروې ذبح كړى اوحلال دې شى دَ هدى حرم ته ليګل ضرورى نه دى.

② احناف فرمائى چه دَ دم حصار په ارض حرم كښې ذبح كول ضرورى دى. دَدې طريقه به داسې شى چه څاروې يا دَهغې قيمت به دَچاپه ذريعه حرم ته اوليګلې شى او دَ وخت تاريخ تعين دې اوكړى كله چه هدى ذبح شى نوبيادې حاجى احرام كولاؤ كړى اوسردې اوخروى.

**د ائمه ثلاثه دلائل:** ① نبى كريم صلى الله عليه وسلم او ټولو صحابه كرامو رضي الله عنهم دَ حديبيه په مقام باندې هدايا ذبح كړې وې او حديبيه دَ حرم نه بهر ده لهذا په حرم كښې ذبح كول ضرورى نه دى.

**جوابونه:** ① د دې جواب دا دې چې دَحديبيه څه حصه په حدود حرم كښې ده په دې وجه دا قربانى هم دَ حرم په زمكه باندې شوې وه. امام طحاوى رحمه الله يو حديث نقل كړې دې ((وَعَنْ المسور رضي الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان بالحديبية كان خبائه فى الحل ومصلاه فى الحرم)) (الطحاوى، البناية: ۴/۴۰۰).

② دادې چه دحضورپاك دَ پاره ممكن نه وه چه هدى حرم كښې ذبح كړې وې نوداد مجبورئى يوخاص صورت وو. نن صبا دَ حديبيه مقام ته شميسى وائى اوهم په دغه ځائى باندې دَ تفتيش مركز او چيك پوسټ دې په غټ بورډ باندې ليكلې دى "ممنوع دخول غيرالمسلمين" يعنى ورانډې زمكه دَحرم ده دَ هريوكافر داخله منع ده.

④ بعض شارحین وائي چه نوی څاروی اخستلوسره دَ راوړلو دامسئله صرف دَ استحباب احتیاط اوتقوی په بنیاد وه دې سره به پوره اختلاف ختم شي

**د احنافو دلائل:** ① احنافو دَ قرآن عظیم دَ واضح آیت نه استدلال کړې دې ارشاد دې ﴿وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتَّى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ﴾

② د شام څخه یو سړې په حضرت عبدالله بن زبیر په مخالفت کښې د شامي فوج سره راغلې وو هغه په لاره کښې هدی قرباني کړې وه خو چې کله مکې ته راورسیدو نو د حضرت ابن عباس ﷺ څخه یې تپوس اوکړو هغوی ورته داسې اوفرمائیل دَ هدی په بدله کښې هدی واخله راوله اودَ بیت الله په زمکه حرم کښې ذبح کړه. دَدې روایت نه دَ احنافو تائید کیږي چه دَهدی څاروې حرم پورې رسول ضروري دی.

**[٢٧٠٨] محصر به حلق کوی که قصر؟**

٢٧٠٨-[٢] ( ) ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ «خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ② - فَحَالَ كُفَّارُ قُرَيْشٍ دُونَ الْبَيْتِ ③ فَنَحَرَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- هَدَايَاهُ وَحَلَقَ وَقَصَّرَ أَصْحَابُهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** ① عبد الله ابن عمر ﷺ وايي چې مونږ خلق د نبی کریم ﷺ سره د عمري د پاره ولاړو، ② نو کفار قریش مونږ خانه کعبي ته د رسیدو څخه مخکي (په حدیبیه کي) وګرځولو. ③ نبی کریم ﷺ د خپلي هديي څاروی هلته ذبح کړي، او سر مبارك يي وخريلى. او د نبی کریم ﷺ په ملګرو کې چا خپل ويښتان قينچي کړل، او چا وخريل. بخاري

**حل اللغات:** ① فَحَالَ: أَيْ مَنَعُونَا: حائل شو (یعنی مونږئي منع کړو د طواف د بیت الله نه)

**تسهیلات:**

**قوله: وَقَصَّرَ أَصْحَابُهُ:**

**په محصر باندې د حلق یا قصر وجوب:** یعنی بعض صحابه کرامو قصر اوکړو باقي اکثر حلق اوکړو اوحضوراکرم ﷺ هم حلق اوکړو دَدې حدیث نه معلومه شوه چه په محصر باندې هم حلق یا قصر لازم دې.

دَاحنافو بعض کتابونو کښې لیکلی دی چه حلق اوقصرلازم نه دې لیکن ملاعلی قاری ﷫ په مرقات کښې لیکلی دی چه امام طحاوی ﷫ دَ حلق اوقصر دَ وجوب طرف ته مائل دې

**د وجوب تائید:** ملاعلی قاری ﷫ فرمائي والا ظهر وجوبه لقوله تعالى ﴿وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتَّى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ﴾ ولفعله عليه السلام واصحابه الكرام.

**[۲۷۰۹] د سر خرولو څخه مخکې هدی ذبح کول**

۲۷۰۹ - [۳] (صحيح) ۱ وَعَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ «إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَحَرَ قَبْلَ أَنْ يَحْلِقَ ۲ وَأَمَرَ أَصْحَابَهُ بِذَلِكَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** ۱ مسور ابن مخرمه رضی الله عنه وايي چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم خپل د سر مبارك د خرېلو څخه مخکې د هدی څاروی ذبح کړي او خپلو صحابه رضی الله عنهم ته يې هم د دې حکم ورکړی چې هغه د سر خرېلو څخه مخکې د خپلې هدی څاروی ذبح کړي، بخاري

**[۲۷۱۰] دَ احصار او حج د فوت کېدو حکم**

۲۷۱۰ - [٤] (صحيح) ۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - أَنَّهُ قَالَ: ۲ "«أَلَيْسَ حَسْبُكُمْ سُنَّةَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۳ إِنْ حُبِسَ أَحَدُكُمْ عَنِ الْحَجِّ طَافَ بِالْبَيْتِ وَبِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، ثُمَّ حَلَّ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ ٤ حَتَّى يَحُجَّ عَامًا قَابِلًا، فَيُهْدِيَ، أَوْ يَصُومَ إِنْ لَمْ يَجِدْ هَدْيًا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** ۱ د ابن عمر رضی الله عنهما په باره کې روايت دی چې هغه به فرمايل، ۲ آيا ستاسو د پاره د نبی کريم صلی الله عليه وسلم دا سنت يعنی د نبی کريم صلی الله عليه وسلم دا ارشاد ګرامي کافي نه دی، ۳ که په تاسو کې څوك د حج څخه منع شی (يعني هغه ته څه داسې عذر پيښ شي چې د حج د رکن اعظم يعني وقوف عرفات څخه مانع وي او د طواف او سعي څخه مانع نه وي) نو هغه دي د بيت الله شريفې طواف او د صفا او مروه په منځ کې سعي کولو سره د هر څيز څخه دی حلال شي (يعني د دې څخه روسته د هغه د پاره هر شي حلال کېږي. کوم چې د احرام په حالت کې ممنوع وو) ٤ تر دې چې هغه راتلونکې کال حج وکړي، او هدي ذبح کړي. او که هغه هدي نشي ذبح کولی نو روژه دي ونيسي، بخاري

**تسهيلات:**

**قوله: أَلَيْسَ حَسْبُكُمْ:**

**د حضرت عمر رضی الله عنه د قول مطلب:** حضرت عمر رضی الله عنه په حقيقت کښې په هغه خلقو باندې نکير فرمائی دَ چا چه خيال دې دَ حج او عمره دَ نيت په وخت داسې شرط لګول پکار دی اې الله زه دَحج نيت کوم ليکن زما دَحلال کيدو ځائی هغه دې چرته چه زه دَ بيمارئی وغيره عذر دَ وجې نه رامنع شم دا شرائط راتلونکی دَ حضرت ضباعه رضی الله عنها په روايت کښې راځی دَ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما دَ رد کولو مقصد دادې چه کله الله تعالی په خپل کتاب قرآن مجيد کښې دَ احصار حکم صفا صفا بيان کړې دې نو بيا دَمخکښې نه په نيت کښې دَ شرط لګولو څه ضرورت دې بس چه کوم ځائی دَ بيمارئی دَ وجې نه راحصار

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الحج /باب النحر قبل الحلق فی الحصر(رقم-۱۸۱۱) واحمد فی المسند ٤/۳۲۷

۲) اخرجه النسائی فی کتاب مناسک الحج /باب ما يفعل من حبس عن الحج ولم يکن اشترط (رقم-۲۷٦۹)

نو هم په هغه ځائي به د احصار حکم نافذ شي ددې نه معلومه شوه چه حضرت ابن عمر ﷺ د بيمارئى د وجې د احصار قائل وو لکه چه احناف ليکى بهرحال کوم سړي چه د حج يا عمره د وجې نه محصور شو په هغه باندې لازم دى چه هغه دې راتلونکى کال کښې قضا اوکړى که هغه مفرد وى يا قارن وى اوکه متمتع وى يا عمرې والا وى

**[٢٧١١] دَ حج او عمرې په نيت کښې دَ شرط لګولو حکم**

[٥] ()[١] وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا- قَالَتْ: «دَخَلَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَلَى ضُبَاعَةَ بِنْتِ الزُّبَيْرِ[٢] فَقَالَ لَهَا: " لَعَلَّكِ أَرَدْتِ الْحَجَّ؟ [٣]" قَالَتْ: وَاللّٰهِ مَا أَجِدُنِي إِلَّا وَجِعَةً[٤]. فَقَالَ لَهَا: " حُجِّي وَاشْتَرِطِي، وَقُولِي: اللّٰهُمَّ مَحِلِّي حَيْثُ حَبَسْتَنِي». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [١] بي بي عائشه ﷺ فرمايي نبى کريم ﷺ چې حج ته روانيدونکى وو. نو ضباعه بنت زبير ته يې تشريف يوووړلو، [٢] او هغه ته يې وفرمايل چې شايد ته (زمونږ سره) د حج اراده لرې؟ (او زمونږ هم دا خواهش دى چې ته زمونږ سره حج ته لاړه شې) [٣] ضباعه ﷺ عرض وکړې، چې هو (زما اراده خوده) ليکن قسم په خداى زه خپل خان ناجوړه وينم (يعنې د مرض په وجه زه ضعف محسوسوم، که زه روانه شم، نو نه پوهيږم، چې حج به پوره هم کړم که نه؟) [٤] نبى کريم ﷺ (د دې اوريدو سره) وفرمايل چې ته د حج اراده وکړه. او (کله چې احرام وتړې، نو دا) شرط وکړه يعنى دا اووئيلو چې اللّٰهُمَّ مَحِلِّي حَيْثُ حَبَسْتَنِي (اې الله ﷻ زما د احرام خخه د وتلو خاى هغه دى چيرته چې زه (د ناجوړى په سبب) منع کړل شم. بخاري، مسلم [اخرجه البخاري: ٩/٧ ومسلم: ١/٥٠٠.

**حل اللغات:** ① مَحِلِّي : أَيْ مَوْضِعُ حَلَالِي مِنَ الْإِحْرَامِ: زما د حلاليدلو خاني (يعنى د احرام نه د وتلو خاني ② حَبَسْتَنِي : أَيْ: مَنَعْتَنِي يَا اللّٰهُ: چه تا زه منع کړم اې الله (يعنى چرته چه دې ناجوړه کړم اود حج د پوره کولو نه دې عاجزه کړم)

**تسهيلات: قوله:** حَيْثُ حَبَسْتَنِي:

**د احرام په وخت کښې د شرط په فائده کښې مذاهب:**

په حج کښې دَ حلال کيدو شرط لګولو طريقه داسې ده چه دَ احرام تړلو وخت کښې حاجى داسې اووائى چه که په لارکښې دَ بيمارئى وغيره رکاوټ پيدا شو نوزه به هم په هغه ځائى کښې حلال شم دَدې شرط لګولو څه فائده شته که نه؟

① دَامام ابوحنيفه ﷫ او امام مالك ﷫ په نيز دَدې هيڅ فائده نشته دې

② دَ امام شافعى ﷫ او امام احمدبن حنبل ﷫ په نيزدَدې فائده شته دې. هغه دا چه کله[1]

[1] اخرجه البخاري في كتاب النكاح/باب الأكفاء في الدين (رقم-٥٠٨٩) والنسائي في كتاب مناسك الحج/باب دخول مكة بغير إحرام (رقم-٢٨٦٨) واحمد في المسند: ٦/١٦٤

نې شرط اولګولو نوډ بیمارئی وغیره عذر په صورت کښې حاجی به فوری ډ احرام نه اوځی اومرور علی الحج وعمره به لازم نه شی که شرط نې اونه لګولو نوډ بیمارئی په صورت کښې ډ احرام نه ترهغه وخته پورې نه شی وتلې ترکومې پورې چه افعال حج باندې مرور نه وی کړې

**د امام شافعی دلیل:** امام شافعی رحمه الله د حدیث الباب څخه استدلال کوی په دې کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم حضرت ضباعه ته د شرط تعلیم ورکړې دې نو که د شرط څه فائده نه وه ولې به نبی ﷺ هغه ته د دې تعلیم ورکولو

**جواب:** د دې څخه جواب دا دې چې چه ضباعه ته ډ یوقسم وهم شوې وو چه زه به حج اوکړې شم که نه اوکه رکاوټ پیدا شو نوزه به بیا څه کوم؟ په دې باندې حضورپاك ډ هغه وهم لرې کولوډپاره هغه ته تسلی ورکړه او ورته ئې اوفرمائیل چه ته داسې شرط اولګوه دې ډپاره چه ستا تسلی اوشی.

**د احنافو دلائل:** ① قرآن کریم آیت ډدې شرط منافی دې ځکه چه آیت ډ احصار حکم بیانوی ډ شرط هیڅ ذکرنشته دې.

② ابن عمر ﷺ هم اشارةً د دې شرط رد کړې دې اوحضورپاك نه پخپله داسې شرط لګولې اونه ئې صحابه کرامو کښې چاته دا تعلیم ورکړې دې

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## [۲۷۱۲] ډهدی څاروې په حرم کښې ذبح کول پکاردی

۲۷۱۲—[٦] ()[١] عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَمَرَ أَصْحَابَهُ [٢] أَنْ يُبَدِّلُوا الْهَدْيَ الَّذِي نَحَرُوا عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فِي عُمْرَةِ الْقَضَاءِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَفِيهِ قِصَّةٌ، وَفِي سَنَدِهِ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ.

**ترجمه** [١] ابن عباس ﷺ وایي چې نبی کریم ﷺ خپلو صحابه وو ﷺ ته حکم ورکړې [٢] چې د عمرة القضاء په موقع د خپلې هدی د هغه څاروو په عوض کې څاروی ذبح کړي کوم چې هغوئ د صلحه حدیبیه په کال ذبح کړی وو. ابواؤد (اخرجه ابوداؤد: ۱۷۹/۲).

**تسهیلات:**

**قوله:** أَمَرَ أَصْحَابَهُ أَنْ يُبَدِّلُوا الْهَدْيَ:

**د حدیث الباب شان ورود:** په ابوداؤد کښې داحدیث یوواقعې سره ذکردې په کوم سره چه په دې حدیث باندې په آسانئی سره پوهیدلې شی یوزمانه داسې وه چه ډ شام په زمکه ډ بنوامیه حکومت وو او په مکه کښې ډحضرت عبدالله بن زبیر ﷺ حکومت وو شامی خلق

---

[١] اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک. باب الإحصار (رقم- ۱۸٦٤)

دَ حضرت عبد الله بن زبیر رضي الله عنه دَ حکومت سخت مخالف وو هغوی دَ مکې دَ فتح کولو دَپاره دَ فوج په ذریعه حمله اوکړه اودَ بیت الله محاصره نې اوکړه په دې موقع یوسړی دَ هدی څاروې دَ ذبح کولودَپاره مکې ته راوړلو چه شامي فوجونوهغه رامنع کړو دغه سړی هم هلته هدی ذبح کړه اوبیا مکې ته راغلودَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نې دَ مسئلې تپوس اوکړو حضرت ابن عباس رضي الله عنهما هغه ته اوفرمائیل چه دَ هدی په بدله کښې هدی واخله راوله اودَ بیت الله په زمکه حرم کښې ذبح کړه دَدې روایت نه دَ احنافو تائید کیږی چه دَهدی څاروې حرم پورې رسول ضروری دی

**اشکال:** دلته په زړه کښې داخیال تیریږی چه حضورپاك ﷺ اوصحابه کرامو رضي الله عنهم مقام حدیبیه کښې کوم څاروی ذبح کړی وو که چرې هغه د حرم په زمکه کښې ذبح شوې وو نو په دویم کال ددوباره څاروو راوستلوڅه مطلب دې؟

**داشکال جواب:** دَ مقام حدیبیه څه حصه په حرم کښې ده څه په حل کښې ده حضورپاك په مقام حرم کښې ذبح کړې وو مگر بعض صحابه کرامو په ارض حل کښې ذبح کړې ووهم هغوی ته داحکم ورکړې شوې وو چه تاسو بیا څاروی راولئی او په صحیح توګه نې ذبح کړئی دغه شان داحدیث دَ احنافو دلیل جوړشو سره دَدې چه خبره جوړیږی نه

بعض شارحین وائی چه نوی څاروی اخستلوسره دَ راوړلودا مسئله صرف دَ استحباب احتیاط اوتقوی په بنیاد وه دې سره به پوره اختلاف ختم شی

**[۲۷۱۳]دَبیمارئی دَوجې نه احصار کیږی**

[۷]()١وَعَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ عَمْرٍو الْأَنْصَارِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ٢«مَنْ كُسِرَ، أَوْ عَرِجَ فَقَدْ حَلَّ، وَعَلَيْهِ الْحَجُّ مِنْ قَابِلٍ»٣". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ٣وَزَادَ أَبُو دَاوُدَ فِي رِوَايَةٍ أُخْرَى: "أَوْ مَرِضَ". وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَفِي "الْمَصَابِيحِ": ضَعِيفٌ.

**ترجمه** ١ حجاج ابن عمرو انصاري رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل٢ د کوم سړي پښه چې ماته شي یا هغه ګډ (شل) شو هغه حلال شو (یعني د هغه د پاره جائز دی، چې هغه احرام خلاص کړي. او خپل کور ته ولاړ شي) لیکن راتلونکی کال په هغه حج واجب کېږي، ترمذي. ابوداؤد . نسائي، ابن ماجه، دارمي.٣ د ابوداؤد په یو بل روایت کې دا الفاظ هم دي چې یا هغه ناجوړه شي، او امام ترمذي رحمه الله فرمايي چې دا حدیث حسن دی، او امام بغوي رحمه الله په مصابیح کې دي حدیث ته ضعیف ویلي دي

---

( ) اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک . باب الإحصار (رقم-۱۸۶۲) والترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الذی یهل بالحج فیکسر أو یعرج (رقم-۹۴۰)والنسائی فی کتاب مناسک الحج/باب فیمن أحصر بعدو (رقم-۲۸۶۱) واحمد فی المسند:۳/۴۵۰

**حل اللغات** ① كُسِرَ: چه ماته شی (خپه) ② عَرِجَ: أی أَصَابَهُ شَیْءٌ فِی رِجْلِهِ: په خپه کښې ئې څه لاړ شی او ګوډ شی

**تسهیلات: قوله** :مَنْ كُسِرَ أَوْ عَرِجَ فَقَدْ حَلَّ:

**د احنافو د مسلک تائید**: داحدیث دَ احناف مضبوط دلیل دې چه احصار دَ بیمارئی وغیره عذرونو نه هم متحقق کیږی

**قوله** :مَنْ كُسِرَ أَوْ عَرِجَ فَقَدْ حَلَّ، وَعَلَيْهِ الْحَجُّ مِنْ قَابِلٍ:

**د احصار متعدد صورتونه**: دحدیث مطلب دادې چه کوم سړی ته د احرام تړلو نه پس ددشمن د ویرې څخه علاوه هم بل څه مانع پیښ شی نودهغه دپاره جائز دی چه هغه احرام پرانزی. نودا ددې خبرې دلیل دې چه د دشمن د ویرې نه علاوه داحصار (ګیریدلو) نور صورتونه هم شته، مثلا بیماری وغیره لکه څرنګه چه دامام اعظم ابوحنیفه رحمه الله مسلک دې

**قوله**: وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ:

**دترمذی د قول راجحیت**: که په دې باره کښې تعارض اومنلې شی نوبیا هم د ترمذی قول هذا حدیث حسنٌ، (داحدیث حسن دې) ته د بغوی په قول (یعنی داحدیث ضعیف دې) باندې ترجیح حاصل وی. بیا داچه په یوه نسخه کښې د ترمذی په قول کښې د لفظ حسنٌ نه پس لفظ صحیح هم دې. او توربشتی رحمه الله وئیلی دی چه دې حدیث ته ضعیف وئیل بالکل غلط دی

**قوله** :وَفِي "الْمَصَابِيحِ": ضَعِيفٌ:

**دضعف مطلب** : وَفِي "الْمَصَابِيحِ": ضَعِيفٌ: ددې مطلب دادې چه داحدیث بغوی په کوم سند سره ذکرکړې دې هغه سند ضعیف دې. لهذا د بغوی د سند ضعیف کیدو نه دانه لازمیږی چه د ترمذی وغیره سند هم ضعیف وی.

## [٢٧١٤] دَ حج رکن اعظم وقوف عرفه ده

٢٧١٤-[٨] (١) ① وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَعْمَرَ الدِّيلِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: ② "«الْحَجُّ عَرَفَةُ، مَنْ أَدْرَكَ عَرَفَةَ لَيْلَةَ جَمْعٍ قَبْلَ طُلُوعِ الْفَجْرِ فَقَدْ أَدْرَكَ الْحَجَّ. ③ أَيَّامُ مِنًى ثَلَاثَةٌ فَمَنْ تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ، وَمَنْ تَأَخَّرَ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ» ④". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَهَذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّالِثِ

**ترجمه** ① عبد الرحمن ابن یعمر دیلی رضی الله عنه وایې چې ما د نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلې

[١] اخرجه ابوداود فی السنن رقم الحدیث ١٩٤٩، والترمذی فی السنن رقم الحدیث ٨٨٩، وابن ماجة رقم الحدیث ٣٠١٥، والدارمی رقم الحدیث ١٨٨٧، والنسائی فی السنن رقم الحدیث ٣٠٤٤

دي، ٢ چې حج عرفه ده (يعني د حج د ټولو څخه لوی رکن د ذي الحجه په نهم تاريخ کې قيام عرفات دی) چا چې د مزدلفه شپه (يعني د ذي الحجه په لسمه شپه) کې طلوع فجر (د سحر ختو) څخه مخکې وقوف عرفات و موندلی، ٣ هغه حج و موندلی، په منی کې د پاتې کيدو درې ورځې دي (يعني د ذي الحجه يولسم، دولسم، ديارلسم تاريخونه) چې هغه ته ايام تشريق وايي، په دې ورځو کې په منی کې قيام کولی شي، او رمي جمار کولی شي، نو کوم سړی چې جلتي وکړي او د دوو ورځو څخه مخکې لاړشي نو په هغه څه ګناه نشته، ٤ او څوک چې د دوو ورځو څخه روسته ولاړ شي، په هغه هم څه ګناه نشته، ترمذي، ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه الدارمي، او امام ترمذي رحمه الله ويلي دي چې دا حديث حسن صحيح دی

**حل اللغات:** ① تَعَجَّلَ: جلتی اوتلوار اوکړی (دوه ورځې مخکښې لاړشی) ② تَأَخَّرَ: تاخير او روسته والې اوکړی (دوه ورځې روسته لاړشی) ③ فَلَا إِثْمَ: نوهيڅ ګناه پرې نشته

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ أَدْرَكَ عَرَفَةَ لَيْلَةَ جَمْعٍ...الخ:

**د حج فرائض:** په حج کښې درې ارکان فرض دی ① احرام تړل ② نيت کول فرض دی ③ وقوف عرفه فرض ده. او وقوف عرفه دَحج رکن اعظم دې که هغه په خوب کښې وی که په ويښه وی که لږ وخت وی اوکه زيات دَ ورځې وی اوکه دَ شپې وی يا دَ راتلونکی شپې ترسحره پورې وی په دې سره دا فرض اداکيږی.

**په مزدلفه کښې شپه تيرول او د حج نور مناسک:** دَ نمردَ ډوبيدونه پس دَعرفه نه بښکته مزدلفه ته راکوزيدل او په مزدلفه کښې شپه تيرول واجب دی بيا سحر دَ نمرراختونه مخکښې دَمنی طرف ته روانيدل دی اوهلته په جمره عقبه باندې کانړی ويشتل دی. بيا په منی کښې دَ لونی اختر نه پس درې ورځې قيام کولوحکم دې ليکن دَ يولسم اودولسم تاريخ رمی لازمی ده. البته که داسړې دَ ديارلسم تاريخ پورې په منی کښې پاتې شو نواوس به دې دَ هغه ورځې رمی هم کوی ليکن دَ نمر راختونه پس دَهغه ورځې کانړی ويشتل جائز دی. په مذکوره حديث کښې هم دَدې مسائلو بيان دې. علماؤ ليکلی دی چه دَمنی دَ قيام باره کښې هم اهل جاهليت دَ خپل جاهلانه رسم مطابق به وخت تيرولو څه خلقو به دَ دوو ورځونه زيات وخت حصاريدل دګناه کار ګڼرلو اوڅه خلقو به دَ دريو ورځونه مخکښې وتل ګناه ګڼرله. په قرآن کريم کښې الله تعالی دَ اعتدال لاراوخودله کومه چه په دې حديث کښې ده. دغه شان به قريش دَ مزدلفه نه پورته عرفات ته نه تلل اسلام دا منع کړل اودَعرفات وقوف ئې په هغوی باندې لازم کړو

## وَهٰذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّالِثِ

# [۱۴]بَابُ حَرَمِ مَكَّةَ حَرَسَهَا اللهُ تَعَالٰی]

## دَ حرم مکه دَ حرمت بیان

**خلاصة الباب:**

**فیه اثنی عشر حدیثاً مشتملة علی ست مسائل:**

① ممنوعات حرم مكة: ۱، ۲، ۸، ۱۱.

② الأمور الجائزة في حرم مكة: ۳.

③ حكم دخول مكة بلا إحرام: ۳، ۴.

④ أحاديث النبي ﷺ في عظمة مكة: ۵، ۶، ۷.

⑤ حب النبي ﷺ لمكة: ۹، ۱۰.

⑥ فضيلة تعظيم مكة : ۱۲.

**دمکې تعارف:** ① مکه دَ بیت الله نه چاپیره دَ پوره ښار نوم دې دَ دې علاقې ځان له ګوزنروی

**د حرم تعارف:** حرم دَ زمکې هغه مقدس ټکړې ته وائی چه دَمکې دَ ښار نه چاپیره دې دې ته حرم ځکه وائی چه الله تعالی دَ بیت الله دَوجې نه دا مقدس ټکړه هم دَ احترام واجب ګرځولې ده اودائی دَ عظمتونو بزرګونه ډکه کړې ده. دې ټکړې ته په دې وجه هم حرم وائی چه په دې کښې الله تعالی ډیرداسې کارونه حرام ګرځولی دی کوم چه دَدې ټکړې نه بهر جائزدی مثلاً دَ حرم شریف په حدود کښې ښکار کول یا دَ څه قسم پخپله راختلې وابنه پرې کول یا یو انسان یاحیوان ته تکلیف رسول، جګړه اوفساد جوړول داټول حرام دی

**د مسجد حرام تعارف:** مسجد الحرام دَ بیت الله نه ګیرچاپیره چه کوم ډیر لونی جمات جوړشوې دې دې ته مسجد الحرام وائی دَ موجوده سعودی حکومت نه وړاندې دَ مسجد الحرام رقبه یوولس زره پنځه سوه مربع میټر وه مګر دَ موجوده حکومت دَ توسیع نه پس دَ مسجد الحرام رقبه ۶۴ هزاز مربع میټر ده موجوده حکومت صفا مروه یعنی مسعی په حرم کښې شامل کړې ده دَمسعی رقبه ۱۴ زره میټر ده دغه شان په یووخت په مسجدحرام کښې دَ نهه لاکه مونځ ګذارو دَ مونځ کولوګنجائش دې دَ مسجدحرام صرف په پاس چت باندې یولاکهه اته شپیته زره مونځ ګذارو ګنجائش شته دې

**د حرم د حرمت په تاریخ کښې اقوال:** ① بعض علماء وائی چه حضرت آدم علیه‌السلام کوم وخت په زمکه باندې راکوزکړې شو نو په مکه کښې چه هغوی دَ پیریانو نه دَ ځان خطره محسوس کړه په دې باندې الله تعالی دَهغه دَحفاظت دَپاره دَهغه نه چاپیره فرښتې مقررکړې دې فرښتو مکه دَ څلورو واړو طرفونه په خپله ګیره کښې واخسته فرښتو چه د

څلورو واړو طرفونه په کوم کوم ځائي کښې حدبندي اوکړه هغه ځايونه د حرم حدود مقررشو

④ بعض حضرات دافرمائي چه حضرت آدم علیه السلام کوم وخت کعبه جوړه کړه اوهغوی په خپل لاس باندې حجر اسود کیخودو نوددې نه د نور یوه شغله راوچته شوه په کوم سره چه څلور واړه طرف ته زمکه روښانه شوه ترکوم ځائي پورې چه دا رڼا اورسیده هم ددغه ځایونونه د حرم حدودمقررشو چنانچه د حرم د زمکې حدودداسې دی د مدینې نه د تنعیم حد دې چه د مکې نه د درې میله په فاصله باندې دې اود مکې نه د یمن طرف ته اووه میله فاصله حد دې، جده طائف اوجعرانه هم دغه شان اووه میله دی بعض کتابونوکښې لیکلی دی چه د مکې جدې طرف ته لس میله حد دې اود جعرانه طرف ته نهه میله د حرم حد دې

د مسجدحرام ټول اوه لوئی مینارې دی د مسجدحرام ټول ۹۵ دروازې دی په کوم کښې چه څلور لوئی دروازې دی یعنی باب الفتح باب العمره باب ملك فهد او باب ملك عبدالعزیز په مسجد حرام کښې دننه یو ګول میدان دې کوم ته چه مطاف وائی ددې رقبه ۱۵ زره مربع میټر ده د مطاف او آل سعود د عمارت په مینځ کښې د ترکود زمانې مسجد حرام دې چه د ښائست مضبوطیازړه راښکونکې اود قبولیت یوشاهکاردې د کوم په تعمیرکښې چه تعبیرهم دې اوتاریخ هم دې او په ځائي ونیلی شوی دی چه دا یوښکلې تعمیرهم دې او په دې کښې د اسلاف او اسلام تاریخی تعبیرهم دې د ګول دائرې په ارت میدان کښې بالکل په مینځ کښې د عزت عظمت نه ډك یومربع شکل کښې عمارت دې چه ډیراوچت دې په کوم کښې چه یوه دروازه ده اوڅلورواړه طرف ته په دیوالونو باندې چت هم دې په دیوالونوباندې ډېورته نه واخله ترښکته پورې د ډیر ښکلې ریښم تك تور غلاف خور دې په کوم باندې چه د قرآن پاك آیاتونه اواحادیث د سرو زرو او ریښمو په تار لیکلې شوی رازوړند دی د ناوې په شان دا عظیم الشان عمارت د الله تعالی کور دې کوم ته چه کعبه هم وائی اودې ته بیت الله هم وائی چه په تخلیق د کائنات کښې د عبادت په توګه د ټولونه ړومبې دالله تعالی کوردې اقبال ونیلی دی اکلیات اقبال.

دنیا کے بت کدوں میں پہلا وہ گھر خدا کا　　ہم اس کے پاسباں ہیں وہ پاسباں ہمارا　　[ ترانه ملی: ۱۵۹.

صاحب تاریخ القدیم محمد طاهرالکردی چه کله د کعبې شریفې د ټولو دیوالونوکاڼړی اوشمیرل نودهغې مجموعه ۱۶۱۴شو په کوم کښې چه ۴۱۹ کاڼړی د باب کعبه په مشرقی دیوال باندې لګیدلې دی په دې دیوال کښې د بیت الله دروازه ده د کعبه مغربی عقبی دیوال کښې ۴۲۹ کاڼړی لګیدلی دی دا دواړه دیوالونه یو بل ته مخامخ دی اود نورو دیوالونونه اوږده دی د کعبه د شمالی میزابی دیوال کښې ۳۱۸ کاڼړی لګیدلی دی دا د حطیم والادیوال دې د کوم د پاسه چه میزاب رحمت دې د کعبې په جنوبی دیوال کښې

٢٢٨ کانړي لګيدلي دي دا ديوال دَ رکن يماني اوحجر اسود په مينځ کښې دې دَدې مقابل دَحطيم والاديوال دې دَ کعبې دَ اکثرو کانړو پيروالې ٩٠ سنتي ميټر دې څه په کښې دَدې نه واړه هم دي او اکثر کانړي په کښې هم هغه دي کوم چه حضرت ابراهيم عليه السلام په ديوال کښې لګولې وو دَ دومره مودې پورې دَ دغه کانړوباقي پاتې کيدل لوئي کرامت دې

**دکعبې حدود:** حضرت ابراهيم عليه السلام چه دَ بيت الله کوم تعمير کړې وو دَهغې اوچتوالې نهه ګزه وو صرف ديوالونه وو پاس چت نه وو زمکې سره لګيدلې دوه دروازې وې يوه دَرکن يماني طرف ته مغربي ديوال کښې وه اودويمه هم هلته وه چرته چه دا نن ده روستو قريشو صرف يوه دروازه پريخوده مګردَزمکې نه ئې کافي اوچته جوړه کړه اودويمه دروازه ئې بنده کړه

دَ حضرت ابراهيم عليه السلام په وخت دَ بيت الله پلنوالې دَ څلورو واړو طرفونه داسې ووچه دَ حجراسودنه واخله دَ رکن عراقي پورې ٣٢ګز فاصله وه هم په دې حصه کښې نن صب دروازه ده په دې پيمائش کښې دَ ګزنه شرعي ګز مراد دې چه يولاس يعني دَ ګوتونه ترڅنګلې پورې دې دَ رکن عراقي نه دَ مغربي ګوټ رکن شامي پورې ٢٢ ګزفاصله وه هم په دې حصه کښې نن صباحطيم او ميزاب رحمت دې دا پوره مغربي حصه ده دې ته مخ مخ بب عمره واقع ده دَ رکن يماني نه دَ حجراسودپورې ٢٠ګزه فاصله وه دَدې حصې مخې ته نوې اذان خانه ده چرته چه امام اودريږي اودَ ماسپښين دَمونځ امامت کوي دا دَ جنوب طرف دې دَدې فاصلونه معلومه شوه چه دَ بيت الله دَ مشرقي اومغربي ديوالونوفصله دَ ټولونه زياته وه اودَدې په خپل مينځ کښې دَ يوګز فرق وو يعني مشرقي ديوال ٣٢ اومغربي ٣١ ګز وو دغه شان دَ جنوبي اوشمالي ديوالونو فاصلې دَ يوبل مقابل دي اوددې فاصلې کمې وې دَ شمال طرف ٢٢ اودَ جنوب طرف ٢٠ ګزباندې مشتمل وو دَ نن صبا په بيت الله کښې چونکه حطيم بهر دې په دې وجه به دَ ديوالونو په پيمائش کښې فرق وي حطيم ته حجر اسماعيل هم وائي

**دَ خانه کعبې دَتعمير مختلف مراحل:** ① دَټولونه اول فرښتودَ بيت الله بنياد کښتلوسره دَ لويو لويو کانړونه ډك کړو کله چه بنيادونه هوار شو نودَ پاس آسمانونونه بيت المعمور راکوز کړې شو په دغه بنيادونو باندې کيخودې شو قرين قياس هم دغه دې چه په دې تعمير کښې حضرت آدم عليه السلام موجود وو

② دې نه پس حضرت شيث عليه السلام دَ بيت الله خيال ساتلو خوچه کله طوفان نوح راغلو نودَالله تعالى په حکم باندې فرښتو بيت معمور واپس آسمانونوته اوچت کړو اودَ بيت الله بنيادونه دَ خاورې لاندې غيب شو

③ بيا الله تعالى حضرت ابراهيم عليه السلام دَ بيت الله په آبادولوباندې مقررکړو هغوي خاوره

او كښتله او بنيادونه ئې راښكاره كړل او بيا په دغې باندې كعبه جوړه كړه دَ كوم دَ حدود
ربعه تفصيل چه تير شو

④ دې نه پس عمالقه بيا بنوجرهم بيا بنوخزاعه او بيا قصى بن كلاب دَ بيت الله دَ انهدام نه پس په خپل خپل وخت كښې آباده كړه

⑤ دَحضرت ابراهيم عليه السلام دَ بيت الله ۲۶۴۵ كاله پس دَ بعثت نبوى نه پنځه كاله وړاندې قريشو دَ بيت الله تعمير اوكړو. په دې تعمير كښې حضورپاك حصه واخستله هغه وخت دَ حضورپاك عمر ۳۵ كاله وو. قريشو په دې تعمير كښې څه بدلون هم اوكړو چه دَ حطيم حصه ئې بهر كړه دروازه ئې يوه كړه اودَ زمكې نه ئې اوچته كړه دَ ديوالونو اوچتوالې ئې ۱۹ گزه كړو دَ پاسه ئې دَ لرگى چت واچولو اودَ لرگى شپږ ستنې ئې اودرولې دَ حطيم طرف ته ئې يوه ناوه اولگوله دې دَ پاره چه دَ چت اوبه په محفوظ مقام حطيم كښې پريوتلو سره ډيرې نه خورېږى. دَ حطيم نه چاپيره ئې يو وړوكې غوندې ديوال جوړكړو. دكعبه دروازه ئې څلور گزه او يوليشت اوچتوالى باندې اولگوله اودَ دننه زمكه ئې دَ دروازې پورې دَ خاورو نه ډكه كړه دې دَ پاره چه دَ دروازې چوكاټ سره برابره كړې شى.

⑥ دې نه پس چه كله مكه فتح شوه نو حضورپاك دَ حضرت ابراهيم عليه السلام په طرز تعمير باندې دَ بيت الله دَ آبادولو خواهش ښكاره كړو مگر دا خواهش دَهغوى په ژوند مبارك كښې پوره نه شو.

⑦ بيا په ۶۴ هجرى كښې عبد الله بن زبير رضي الله عنه بيت الله شهيد كړو دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ خواهش مطابق ئې دَ حضرت ابراهيم عليه السلام په طرز باندې جوړه كړه.

⑧ كله چه حجاج بن يوسف حضرت عبد الله بن زبير رضي الله عنه شهيد كړو نو دَهغې نه پس هغه بيت الله شهيد كړو او بيائې په هغه طرز باندې جوړكړو كوم وخت چه دَ جاهليت په زمانه كښې قريشو تعمير كړې وو اووئې وئيل چه زه دَ خپل دښمن يادگار باقى پاتې كيدو ته نه پرېږدم.

**په خانه كعبه كښې د تبديلۍ راوستلو توقف:** بيا چه كله دَ هارون الرشيد دورخلافت راغلو نو هغه دَ امام مالك رحمه الله نه اجازت اوغوښتلو چه بيت الله په هغه طرز باندې تعمير كوم كوم چه دَ حضورپاك خواهش وو. امام مالك رحمه الله يو عالم ته فتوىٰ وركړه چه اوس بيت الله دَدې طرز نه بدلول رابدلول حرام دى ځكه چه دغه شان به بيت الله دَ بادشاهانو په لاسونو كښې يو دَ لوبو څيز پاتې شى.

دې نه پس په بيت الله كښې دَ تركى خليفه سلطان مراد خان څه مرمت اوكړو اوترنن پورې څه نه څه مرمت دَ ضرورت مطابق كيږى. ليكن دَبيت الله په بنيادونو كښې هيڅ ادلون بدلون نه دې شوې حديث شريف كښې دى چه دَ قيامت نه وړاندې به يو تور حبشى غلام

به بيت الله راغورزه وي اوددذي خزانه به اوري شاه عبدالعزيز رحمه الله په تفسيرعزيزي کښې ليکلي دي چه دَ قيامت نه لږ وړاندې چه کله دَ بيت الله حقيقت دَ آسمانونو طرف ته اوچت کړې نو دَ بيت الله تيريدل به په روضهٔ رسول باندې کيږي بيت الله به په روضهٔ رسول باندې داسې سلام کوي السلام عليك يارسول الله حضور پاك به جواب ورکوي وعليك السلام يابيت الله ته ماته اووايه زما امت تا سره څه څه اوکړه اوتا زما دَ امت سره څه معامله اوکړه بيت الله به جواب ورکړي کوم امتي چه ماته رسيدلي دي زه دَ هغه دَ شفاعت ذمه واري اخلم اوکوم چه ماته اونه رسيدلي شو دَ هغه شفاعت تاسو ته پريږدم دي نه پس به قيامت قائم شي

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [٢٧١٥] دمکې د حرم کيدو ثبوت

٢٧١٥-[١] (١) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ ٢ «لَا هِجْرَةَ بَعْدَ الْفَتْحِ وَلَكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ ٣ وَإِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوا» ٤ وَقَالَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ: إِنَّ هَذَا الْبَلَدَ حَرَّمَهُ اللهُ يَوْمَ خَلَقَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضَ، فَهُوَ حَرَامٌ بِحُرْمَةِ اللهِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، ٥ وَإِنَّهُ لَمْ يَحِلَّ الْقِتَالُ فِيهِ لِأَحَدٍ قَبْلِي،

**ترجمه** ١ ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د مکې د فتح په ورځ وفرمايل ٢ چې اوس د مکې څخه مديني ته، هجرت فرض نه دی، البته په جهاد او عمل کې د نيت اخلاص ضروري دی. ٣ هر کله چې تاسو د جهاد د پاره وبلل شي (يعنې ستاسو امير تاسو ته د جهاد حکم درکړي) نو د جهاد د پاره راوځي، ٤ او نبي کريم صلى الله عليه وسلم د فتح مکې په ورځ دا هم وفرمايل چې الله جل جلاله دا ښار (يعنې د حرم ټوله زمکه حرامه کړيده) په دې طور چې په ټولو خلقو د دې مقدسې زمکې حصې بې حرمتی يې حرامه کړيده، او د ده تعظيم واجب دی. د هغه ورځې څخه کله چې هغه آسمانونه او زمکې پيدا کړي وو (يعنې د زمکې ددې حصې حرمت د شروع څخه دی، نو دا خطه د زمکې د الله جل جلاله د عطا شوي حرمت په سبب تر قيامته حرام شويده. ٥ بيشکه د زمکې په دې حصه کې نه خو زما څخه مخکې د چا د پاره قتال حلال شوی وو.

**حل اللغات** ① لَا هِجْرَةَ: هجرت نشته (يعنی د مکې نه مدينې ته دهجرت کولو فرضيت پاتې نه شو ② جِهَادٌ يعنی دجهاد فرضيت (باقي دي) ③ نِيَّةٌ: يعني خالص نيت کوم چه به هجرت او جهاد کښې ضروري دې هغسې خالص نيت په اعمالو کښې اوس هم باقي دي ④ اسْتُنْفِرْتُمْ: د مجهول صيغه ده. أَيْ إِذَا طُلِبْتُمْ لِلنَّفْرِ وَهُوَ الْخُرُوجُ إِلَى الْجِهَادِ: کله چه د جهاد دپاره تاسونه دَوتلو مطالبه اوکړې شي نوفوري توگه باندې اوځئ

---

١) اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب إذا لم يجد الإزار. فليلبس السراويل (رقم-١٨٤٣) ومسلم في كتاب الحج/باب تحريم مكة وصيدها وخلاها وشجرها ولقطتها. إلا لمنشد على الدوام (رقم-٤٤٥ - (١٣٥٣) وابن ماجة في كتاب الجهاد باب بيعة النساء (رقم-٢٨٧٤) واحمد في المسند ١/٢٥٩

وَلَمْ يَحِلَّ لِي إِلَّا سَاعَةً مِنْ نَهَارٍ، فَهُوَ حَرَامٌ بِحُرْمَةِ اللهِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، لَا يُعْضَدُ شَوْكُهُ، وَلَا يُنَفَّرُ صَيْدُهُ، وَلَا يَلْتَقِطُ لُقَطَتَهُ إِلَّا مَنْ عَرَّفَهَا، وَلَا يُخْتَلَى خَلَاهَا، فَقَالَ الْعَبَّاسُ: يَا رَسُولَ اللهِ إِلَّا الْإِذْخِرَ فَإِنَّهُ لِقَيْنِهِمْ وَلِبُيُوتِهِمْ، فَقَالَ إِلَّا الْإِذْخِرَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** او نه زما د پاره حلال شوی دی، علاوه د فتح مکه په ورځ د یو ساعت د پاره، نو دې ورځې څخه روسته دا د زمکې دا حصه د الله ﷻ د ورکړې شوي حرمت په سبب د قیامت تر ورځې (چې په اولني خل شپیلی پو شي) د هر سړي د پاره حرام کړل شوی دی، نه دې د دې زمکې خارداره (ازغی لرونکی) ونه دې پریکول شي (اګر چې هغه تکلیف ورکړي) نه دې ښکار زغلولی شي (یعني یو سړی دې د ښکار په غرض یا محض د تنګولو د پاره د دې خای یو څاروی نه تنګوي) او نه دې د دې خای لویدلی شی پورته کول شي، هر هغه سړی (بې اوچتولی شي) چې د هغه اعلان وکړي، او نه دې د دې زمکې وابنه ریبل کیږی (د دې اوریدو سره) حضرت عباس ﷺ عرض وکړي چې یا رسول الله ﷺ مګر اذخر (یو قسم وابنه) خو داسې شی دی چې دآهینګرانو او زرګرانو د پاره (د اوسپنې و زرو ویلي کولو د پاره) په کار راځي، او د کورونو د بامونو (چتونو) په جوړولو کې د دې ضرورت راځي (د دې د ریبلو اجازت وکړي) نبی کریم ﷺ وفرمایل چې هو اذخر ریبلی شي. بخاری مسلم

**حل اللغات:** ⑤ لَا يُعْضَدُ: د باب ضرب نه د مجهول صیغه ده، أَيْ لَا يُقْطَعُ: یعني پرې کول به نه شي. ⑥ شَوْكُهُ: یعني پخپله راټوکیدلي ازغي پرې کول هم منع دی ⑦ لَا يُنَفَّرُ: أَيْ لَا يُتَعَرَّضُ لَهُ بِالْإِصْطِيَادِ وَالْإِيحَاشِ وَالْإِيهَاجِ: یعنی دحرم ښکار به پریشانه کولې او زغلولې نشی که په هرڅه طریقه وی ⑧ لَا يَلْتَقِطُ: أَيْ لَا تُؤْخَذُ سَاقِطَتُهُ: یعنی دچا نه پریوتې او لویدلې څیز به هم نه شی راخستلې ⑨ عَرَّفَهَا: دا استثنا منقطع ده. یعنی پریوتلې څیزهغه کس پورته کولې چه دهغې تشهیر او اعلان اوکړی چه خپل مالک ته نې واپس کړی خان دپاره به نې نه راپورته کوی ⑩ لَا يُخْتَلَى: أَيْ: لَا يُقْتَطَعُ نَبَاتُهَا وَحَشِيشُهَا: پخپله راټوکیدلی وابنه اوبوټی مراد دی په حرم کښې دَدې پرې کول جائزنه دی ⑪ الْإِذْخِرَ وَهُوَ نَبْتٌ عَرِيضُ الْأَوْرَاقِ: د پلنو پاڼړو والاوابنه دی لکه د کجورې د پاڼړو په شان. پښتو کښې ورته لونه ورته وائی ⑫ قَيْنٍ: الْحَدَّادُ: لوهار آهینګر چه ددې اذخر په بلولوسره اوسپنه ګرموی او نرموی.

**تسهیلات:**

**قوله:** الْإِذْخِرَ اذخر یوقسم وابنه دی داد لوهارانو په بهټوکښې دکوئلې او ر تیزولو په کارهم راځی او په کورونوکښې هم په دې کارکښې استعمالیږی په قبرونوکښې که نمی وی نو د مرو لاندې هم خورولو په کارراځی

**قوله: لاهجرة بعد الفتح:**

**د هجرت څخه مراد:** يعنى دَ مکې نه چه دَ مدينې طرف ته کوم خاص هجرت په هرمسلمان باندې فرض وو اوس هغه هجرت فرض پاتې نه شو ځکه چه پخپله مکه معظمه دارالاسلام جوړشو ليکن دې سره دې ځولک دا نه ګڼړی چه جهاد ختم شو اوفرمائيلې شو چه جهاد اونيك اعمال اوڈ جهاد نيت اوس هم باقی دې چه کله هم ضرورت پيښيږی هجرت کولوسره به جهاد کولې شی دَ باقی دنيا هجرتونه تردې وخته پورې باقی دی ترکومې پورې چه به جهاد جاری وی

| ۲۷۱۶ - ( ) [۱] وَفِي رِوَايَةٍ لِأَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - : [۲] «لَا يُعْضَدُ شَجَرُهَا، وَلَا يُلْتَقَطُ سَاقِطَتُهَا إِلَّا مُنْشِدٌ» . |
|---|

**ترجمه** [۱] او د ابوهريره ﷺ په روايت کې دا الفاظ دي، [۲] او نه دی د دې خاې ونه پرې کړل شي اونه دی د دې لويدلی شی پورته شي، البته د دې مالك، لټونکی يې پورته کولی شي

**[۲۷۱۷] بغيرد ضرورت نه په مکه کښې وسله اوچتول منع دی**

| ۲۷۱۷ - [۲] ( ) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] «لَا يَحِلُّ لِأَحَدِكُمْ أَنْ يَحْمِلَ بِمَكَّةَ السِّلَاحَ» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
|---|

**ترجمه** [۱] حضرت جابر ﷺ وايي چې ما د نبی کريم ﷺ څخه اوريدلي دي [۲] چې په تاسو کې د هيچا د پاره دا حلال نه دي ، چې په مکه کې وسله پورته کړي. مسلم

**حل اللغات** ① أَنْ يَحْمِلَ: چه پورته کړی، اوچته کړی ② السِّلَاحَ: وسله، توره، ټوپک وغيره

**تسهيلات:**

**قوله لَا يَحِلُّ لِأَحَدِكُمْ أَنْ يَحْمِلَ بِمَكَّةَ السِّلَاحَ:**

**په مکه کښې د اسلحې په راويستلو کښې مذاهب:**

① د حسن بصري رحمه الله په نزد په مکه کښې مطلقا اسلحه اوچتول جائز نه دی

② د جمهورو په نزد په مکه کښې بلا ضرورته اسلحه اوچتول جائز نه دی

**داول فريق دليل:** حديث الباب د دوی مستدل دې په دې کښې مطلقاً په مکه کښې د اسلحې اوچتولوممانعت راغلې دې

**ددويم فريق دليل:** د عمرة القضاة په موقع نبی عليه السلام د اسلحې سره داخل شوې وو

**داول فريق د دليل جواب:** دې څخه هغه اسلحه مراد ده چه ښکاره وی يا بل ته د تکليف رسولو خطره وی لکه ابن عمر رضي الله عنه په روايت کښې دی چه په ايام الحج کښې به نې دده نه منع کول د فتح مکه په کال د قتال د تياری سره راغلې وو

[۱] اخرجه مسلم فی صحيحه كتاب الحج /باب النهي عن حمل السلاح بمكة بلا حاجة (رقم-٤٤٩ - (١٣٥٥)

[۲] اخرجه مسلم فی صحيحه كتاب الحج /باب النهي عن حمل السلاح بمكة بلا حاجة (رقم-٤٤٩ - (١٣٥٦)

### [۲۷۱۸] ابن خطل دکعبې دېوال سره قتل کړی شو

[۳] ()[۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «دَخَلَ مَكَّةَ يَوْمَ الْفَتْحِ[۲] وَعَلَى رَأْسِهِ الْمِغْفَرُ، فَلَمَّا نَزَعَهُ[۳] جَاءَ رَجُلٌ وَقَالَ: إِنَّ ابْنَ خَطَلٍ مُتَعَلِّقٌ بِأَسْتَارِ الْكَعْبَةِ.[۴] فَقَالَ: "اقْتُلْهُ»" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [۱] انس ﷺ فرمايي چې نبی کريم ﷺ د فتح مکه په ورځ په مکه معظمه کې داخل شو، [۲] نو په سر مبارك يي خود (جنګي خولی) وه، هركله چې نبی كريم ﷺ هغه خود خكته كړي، [۳] نو يو سړی (يعني فضل ابن عبيد ﷺ) حاضر يدو سره عرض وكړي چې ابن خطل د كعبې پرده نيولي ده؟ [۴] نبی كريم ﷺ وفرمايل چې هغه قتل كړی، بخاري، مسلم [اخرجه البخاری، ۳/۸۶ ومسلم].

**حل اللغات:** ① الْمِغْفَرُ: شِبْهُ قَلَنْسُوَةٍ مِنَ الدِّرْعِ: جنګی توپی چه د اوسپنې نه جوړه وی. خود يا خول ورته وائی ② مُتَعَلِّقٌ: اينختې دې يعنی نيولې نې ده ③ أَسْتَارٌ: د ستر جمع ده. پردې ته وائی

**تسهيلات:**

**قوله:** ابْنَ خَطَلٍ:

**د ابن خطل د قتلولو وجه:** علامه طيبی رحمه الله ليكلی دی چه ابن خطل اول مسلمان وو بيا مرتد شو اويومسلمان نی شهيد كړو بيا به اسلام پسې په بدوونيلوكښې لګياوو حضورپاك چه كله په مكه كښې فاتحانه اندازسره داخل شو نوحضورپاك يوڅوكسان سړی او څو ښځې واجب القتل اوګرځول هم په دوی كښې يو ابن خطل وو دې دكعبې غلاف پورې اونختلو اوپټ شو چا اوليدلو اوحضورپاك ته نی خبر وركړو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه لاړشئی اوهغه قتل كړئی چنانچه ابن خطل دكعبې ديوال پورې لګيدلې روچه هغه قتل كړې شو معلومه شوه چه دكافر قتل كول په جنګ كښې دَ ثواب كار دې ګناه نه ده لكه څنګه چه ئی تبليغی حضرات ګناه ګنړی دَ ابن خطل قتل دَ څه قصاص دَ ضابطه لاندې نه وو بلكه دَهغه وينه هدرګرځولې شوې وه لهذا په دې بحث كښې دَ پريوتلو ضرورت نشته دې چه په حرم كښې دننه قصاص شته كه نه؟ [الكاشف: ۱۵/۵۷۰]

### [۲۷۱۹] رسول الله ﷺ دَ فتح مكه په ورځ تور پټكی تړلی وو.

[٤] ()[۱] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «دَخَلَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ[۲] وَعَلَيْهِ عِمَامَةٌ سَوْدَاءُ بِغَيْرِ إِحْرَامٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

) اخرجه البخاری فی صحيح رقم الحديث ۱۸٤۶، ومسلم فی صحيح رقم الحديث ٤۵۰/ ۱۳۵۷، والترمذی فی السنن رقم الحديث ۱۶۹۳

) اخرجه مسلم فی صحيح رقم الحديث ٤۵۱/ ۱۳۵۸ والنسائی فی السنن رقم الحديث ۲۸۶۹

**ترجمه** ① جابر ﷺ راوي دی چې نبی کریم ﷺ د فتح مکه په ورځ بغیر د احرام څخه په مکه کې داخل شو. ② او هغه وخت د نبی کریم ﷺ په سر مبارك توره پټکی وو. مسلم

**تسهيلات:**

**قوله:** وَعَلَيْهِ عِمَامَةٌ سَوْدَاءُ بِغَيْرِ إِحْرَامٍ:

**د تور رنګ کپړې د استعمال جواز:** په ظاهره معلومیږی چه نبی کریم ﷺ په سر باندې خود (د اوسپنې جنګی ټوپۍ) په سر کړې وی او دهغې دپاسه به ئې پټکې تړلې وی. داحرام نه بغیر مکې ته د داخلیدو په باره کښې دحدیث نمبر: ۲۷۱۸په تشریح کښې بحث تیرشوې دې. دا حدیث ددې خبرې دلیل دې چه د تور رنګ کپړې استعمالول مستحب دی لکه څرنګه چه د احنافو مسلک دې.

## [۲۷۲۰] دکعبې تخریب سره متعلق پیشنګوئی

۲۷۲۰—[٥] ( ) ① وَعَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «يَغْزُو جَيْشٌ الْكَعْبَةَ، ③ فَإِذَا كَانُوا بِبَيْدَاءَ مِنَ الْأَرْضِ يُخْسَفُ بِأَوَّلِهِمْ وَآخِرِهِمْ. ④ قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ، وَكَيْفَ يُخْسَفُ بِأَوَّلِهِمْ وَآخِرِهِمْ، وَفِيهِمْ أَسْوَاقُهُمْ وَمَنْ لَيْسَ مِنْهُمْ؟ ⑤ قَالَ: يُخْسَفُ بِأَوَّلِهِمْ وَآخِرِهِمْ، ثُمَّ يُبْعَثُونَ عَلَى نِيَّاتِهِمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ① بي بي عائشه ﷞ فرمایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② چې (په آخره زمانه کی) یو لښکر به په خانه کعبې د حملې کولو اراده وکړي چې خانه کعبه ته نقصان ورسوی. ③ هر کله چې هغه لښکر د زمکې یوې میداني حصې ته ورسیږي، نو هغه به د اول څخه تر آخره (یعني پوره لښکر) په زمکه کې غرق کړل شي (د دې اوریدو سره) ④ ما عرض وکړو چې یا رسول الله! ﷺ هغه لښکر به د اول څخه تر آخره (یعني ټول) څرنګه په زمکه کې غرق کړل شي؟ چې په هغوئ کې به کاروباري خلق هم وي، او په هغوئ کې به هغه سړی هم وي، چې د هغوئ څخه نه دی (یعني په لښکر کې به داسې خلق هم شامل وي چې نه به د لښکر والا په شان کافران وي، او نه به کعبې ته په نقصان رسولو کې د هغوئ سره شریك وي. بلکه هغه به یې په زوره په لښکر کې شامل کړی وي، نو آیا داسې خلق به هم په زمکه کې غرقیږي ؟) ⑤ نبی کریم ﷺ وفرمایل چې هو د اول څخه تر آخره ټول به په زمکه کې غرق کړی شي، البته هغوئ به د خپل نیتونو مطابق پورته کړل شي، بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① يَغْزُو: حمله به کوی (د حملې په قصد او اراده به راځی). ② جَيْشٌ: أَيْ: عَسْكَرٌ: لوئې لښکر (دا به په آخره زمانه کښې وی). ③ بَيْدَاءَ: أَيْ بُقْعَةٍ فَضَاءٍ وَمَفَازَةٍ وَسَعَاءٍ مِنْهَا: هواره او فراخه زمکه، کهلاؤ میدان. ④ يُخْسَفُ: په زمکه کښې به غرق شي

( ) اخرجه البخاری فی کتاب الحج /باب هدم الكعبة (رقم-۲۱۱۸) ومسلم فی صحیح رقم الحدیث ۸/ ۲۸۸٤

**تسهيلات:**

**قوله: يَغْزُوْجَيْشٌ الْكَعْبَةَ:**

**د جيش څخه مراد:** د دې حديث تفصيل به ان شاء الله كتاب الفتن كښې راشي دا سړې سفياني دې چه خپلې لښكرې به حضرت مهدى سره د جنګيدلو د پاره ليګى مګر لښكر به نې په زمكه كښې ورخښ شي دوه كسان به بچ شي يو به لاړشي سفياني ته به خبر وركړى او بل به حضرت مهدى ته خبر كوى په دې ورخښيدو كښې به څه بې ګناه مسلمان هم وى هغوى به هم ورخښ شي ليكن په حشر كښې به سفياني سره نه وى بلكه د خپلې عقيدې په بنياد باندې به فيصله وى

**[٢٧٢١] يو تور سړې به كعبه ورانوى**

٢٧٢٠-[٦] (¹) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«يُخَرِّبُ الْكَعْبَةَ ذُو السُّوَيْقَتَيْنِ مِنَ الْحَبَشَةِ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ① ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل خانه كعبې ته نقصان رسونكى به د حبشيزونو څخه هغه سړى وي چې د هغه پنډۍ به وړه او نرى وي. بخاري. مسلم

**حل اللغات:** ① يُخَرِّبُ: خرابوى به، نقصان به رسوى. ② ذُو السُّوَيْقَتَيْنِ: وړې. لنډې او كږې خپو والا

**تسهيلات:**

**قوله: ذو السُّوَيْقَتَيْنِ:**

**د حديث پيشګوئى:** يعنى وړو نرو او كږو پنډو والا تك تور حقير سړې به راپاسى او بيت الله به وران كړى دې نه اندازه كيږى چه مسلمانان به څومره كمزورې وى د نن صباد ټولې دنيا مسلمانان او د هغوى حكمرانانو جهاد پريخودو سره هم د دغه كمزورئى طرف ته روان دى منډې وهى

**[٢٧٢٢] د كعبى ورانونكى**

٢٧٢١-[٧] (²) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ② قَالَ: "«كَأَنِّي بِهِ أَسْوَدَ أَفْحَجَ يَقْلَعُهَا حَجَرًا حَجَرًا» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** ① ابن عباس ﷺ د نبى كريم ﷺ څخه نقل كوي ② چې نبى كريم ﷺ وفرمايل ګويا زه د خانه كعبې تخريب كونكى (خرابونكى) وينم. هغه به د تور رنګ او چپليت چې دپښو تلې يې سره نزدې او دشا پونډې يې سره لرې وي، يو سړى به وي. چې د خانه كعبې يو يو كانى به وكاږي. بخاري

¹ اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب هدم الكعبة (رقم-١٥٩٦)

² اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب لا يعضد شجر الحرم (رقم-١٥٩٥)

**حل اللغات:** ① كَأَنِّي بِهِ: أَيْ: مُلْتَبِسٌ إِلَيْهِ وَانْظُرْ إِلَيْهِ: يعنی گويا چه زه هغه وينم (څوک چه به خانه كعبه ورانوی، ② أَفْحَجَ: وَهُوَ الَّذِي يَتَدَانَى صُدُورُ قَدَمَيْهِ وَيَتَبَاعَدُ عَقِبَاهُ: دَ کوم سړی دَخپو پنجې چه يوبل سره نيزدې وی او گيتهی لرې وی داسې سړی ته افحج وانی يعنی كجې، ③ يَقْلَعُهَا: د بيخ نه راويستلو ته قلع وانی، يويو كانړې به ئې راوباسی يعنی د بيخه به ئې ورانه کړی

**تسهيلات: قوله: أَفْحَجَ:**

**دخانه کعبې د نړولو کيفيت:** په حديث کښې په دې صفت باندې موصوف کس حقارت او ذلت ته اشاره ده نو دا حبشی کس به د خانه كعبې يويوكانړې راؤباسی اوسمندر کښې به ئې غورزوی لکه چه څنگه ملاعلی قاری رحمه الله ليکلی دی.

# الْفَصْلُ الثَّانِي

## [٢٧٢٢] په حرم کښې احتكار الحاد فی الحرم دې

٢٧٢٣ - [٨] ()[١] عَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ:[٢] "«احْتِكَارُ الطَّعَامِ فِي الْحَرَمِ إِلْحَادٌ فِيهِ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] يعلي ابن اميه رضی الله عنه راوي دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل[٢] په حرم کې د غلی احتكار (ذخيره كول يعنی د گران خرڅولو د پاره د غلي ذخيره كول) كجروي ده، ابوداؤد

**حل اللغات:** ① احْتِكَارُ: ذخيره كول، وَهُوَ اشْتِرَاءُ الْقُوتِ فِي حَالَةِ الْغَلَاءِ لِيَبِيعَ إِذَا اشْتَدَّ غَلَاؤُهُ: د ارزانئ په وخت کښې د خوراک څيزونه اخستل او د گرانوالی په وخت کښې ئې خرڅول دې ته احتكار وائی ② إِلْحَادٌ: أَيْ: مَيْلٌ عَنِ الْحَقِّ: دحق نه مخ اړول، ظلم او زياتي

**تسهيلات:**

**قوله: احْتِكَارُ الطَّعَامِ فِي الْحَرَمِ إِلْحَادٌ فِيهِ:**

**د احتكار تعريف او حكم:** د دې مزيد تفصيل به په كتاب البيوع کښې راشی په مکه مكرمه کښې کر کيله نۀ کيږی هغه وادی غيرذی زرع ده هلته د غلې ډيروالي نشته نو چې هر کله په عامو خايونو کښې دا احتكار يعنی غله جمع كول ممنوع او مكروه دی نو په مکه مكرمه کښې به يقيناً سخت مكروه وی چې څنگه په مقدس مقاماتو کښې د نيکو اجر ډير زيات دې نو دغه شان د هغې ځائې د گناه وبال هم زيات دې په دې وجه ورته الحاد (ظلم او بدديني) ونيلي شوېده

[١] اخرجه ابوداود فی السنن رقم الحديث ٢٠٢٠

**[٢٧٢٤] دمکې نه دهجرت په وخت په حضورپاك باندې ذړرا كيفيت**

٩] ( )[١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِمَكَّةَ: [٢] "«مَا أَطْيَبَكِ مِن بَلَدٍ وَأَحَبَّكِ إِلَيَّ، [٣] وَلَوْلَا أَنَّ قَوْمِي أَخْرَجُونِي مِنْكِ مَا سَكَنْتُ غَيْرَكِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا.

**ترجمه** [١] ابن عباس ﷺ راوي دي چې نبی كريم ﷺ د فتح مكه څخه روسته د هغه خاى د تلو په وخت د مكي په نسبت وفرمايل [٢] چې ته څومره ښه ښار يې، او ته ماته ډير خوښ يې [٣] كه زما د قوم (قريش) خلقو د دې خاى څخه نه وم ويستلى، نو زه به د دې ښار څخه علاوه بل هيچيرې نه اوسيدلم، امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل كړى دى، او ويلي يې دي چې دا حديث حسن، صحيح د اسناد د اعتبار څخه غريب دى

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا أَطْيَبَكِ مِن بَلَدٍ وَأَحَبَّكِ إِلَيَّ:

**د حديث فوائد:** ① حضورپاك دَ بيت الله نه دَرخصت كيدو په وخت "حزوره" مقام باندې اودريدو سره ذكرشوې ارشاد اوفرمائيلو دكوم نه چه دَحضورپاك بيت الله سره دَ زړه دَمينې اندازه كيږى اودې سره دَ حضورپاك دَ بې وسئى اندازه هم كيږى

② دكافرانو دَ ظلمونو پته هم لګى اودَ حرم شريف اوبيت الله شريف دَ فضيلت او عظمت هم ښه اندازه كيږى

③ كوم سړې سخت مجبوره نه وى هغه به دَ بيت الله مجاورت او ګاونډى توب نه پريږدى اوكه يوسړې دَ دې مقدس زمكې احترام نه شى كولې او دَدې په حق كښې دَ كوتاهئى خطره وى نوبيا بيت الله سره نيزدې مقام اختيارول مكروه دى

④ مكه دَ مدينې نه افضل ده اوامام مالك رحمه الله مدينه افضل ګڼړى

**[٢٧٢٥] حرمين شريفين كښې كوم يو افضل دې**

١٠ ] ( )[١] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَدِيِّ بْنِ حَمْرَاءَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ [٢]: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَاقِفًا عَلَى الْحَزْوَرَةِ، [٣] فَقَالَ: " «وَاللهِ إِنَّكِ لَخَيْرُ أَرْضِ اللهِ، وَأَحَبُّ أَرْضِ اللهِ إِلَى اللهِ، [٤] وَلَوْلَا أَنِّي أُخْرِجْتُ مِنْكِ مَا خَرَجْتُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** [١] عبد الله ابن عدي ابن حمرا ﷺ وايي [٢] چې ما وليدل چې نبی كريم ﷺ په حزوره ودريدى (په مكه مكرمه كې د يو خايي نوم دى،) [٣] د مكي په نسبت يې) وفرمايل

---

( ) اخرجه الترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فى فضل مكة (رقم-٣٩٢٦)

( ) اخرجه الترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب فى فضل مكة (رقم-٣٩٢٥) واحمد فى المسند: ٣٠٥/٤

چې قسم په خدای ته د الله ﷻ د زمکې د ټولو ښخه محبوبه حصه يې ⓶ که زه در ښخه ويستل شوی نه وي، نو زه به در ښخه هيڅ کله نه وتم، ترمذي، ابن ماجه

**حل اللغات**: ① اَلْحَزْوَرَةُ أي مَوْضِعٌ بِمَكَّةَ: په مکه کښې د يو ځائې نوم دي

**تسهيلات**:

**قوله**: لَخَيْرُ أَرْضِ اللهِ:

**د حرمينو په افضليت د امت اتفاق**: په دې باندې د ټولو فقهاؤ اتفاق دې چه په دې کائنات کښې د ټولو نه افضل دوه ښارونه دی يو مکه مکرمه ده اوبل مدينه منوره ده البته په دې کښې د فقهاؤ په مينځ کښې اختلاف دې چه په دې کښې کوم يو افضل دې

**د حرم مکی او حرم مدنی په افضليت کښې اختلاف**: مسجد حرام او مکه مکرمه افضل دی يا مسجد نبوی او مدينه منوره ① د پورته مذکوره حديث په وجه سره جمهور علماء د مکې مکرمې د فضيلت قائل دی ،، د مکې مکرمې يو مونځ د يو لاکهه مونځونو برابر دې او د مسجد نبوی د زرو مونځونو برابر دې) ځکه چې د مکاناتو شرف د عبادت د شرف تابع دې چې هرکله د مکې مکرمې عبادت د مدينې منورې د عبادت نه غوره او افضل دې نو په خپله به مکه مکرمه هم د مدينې منورې نه غوره وی

② د امام مالک يو روايت او د هغوی د بعضې ملګرو مسلک هم دا دې لکه ابن وهب او ابن حبيب مالکی ليکن د امام مالک مشهور قول او د هغوی د اکثرو ملګرو مسلک : دې برعکس دې يعنی د مدينې منورې د فضيلت قائل دی ځکه چې نبی ﷺ فرمائی **مابين قبري ومنبري روضة من رياض الجنة** چې زما د قبر نه د منبر پورې دا ټوله حصه د جنت يوه حصه او د هغې باغ دې او په دويم حديث کښې دی **موضع سوط في الجنة خير من الدنيا وما فيها**

**د مالکيانو د مستدل جواب**: ابن عبدالبر د دې جواب دا ورکړې دې چې دا صرف يو استنباط دې صريح نص نه دې په خلاف د مکه مکرمه چې د هغې په فضيلت باندې صريح نص موجود دې دکوم تخريج چې اصحاب السنن کړې دې **وصححه الترمذي** [١] **وابن خزيمة وابن حبان** او الفاظ ئې دا دی ،، **عن عبدالله بن عدي بن الحمراء قال رايت رسول الله صلى الله عليه وسلم واقفا على الحزورة فقال والله إنك لخير أرض الله وأحب أرض الله إلى الله ولولا أني أخرجت منك ما خرجت** )) حزوره په مکه مکرمه کښې د يو ځائې نوم دې نبی ﷺ په دې حديث کښې مکې مکرمې ته **خير أرض الله** او **أحب أرض الله** فرمائی

---

[١] أخرجه الترمذي في أواخر كتاب المناقب في باب فضل مكة. ١٢.

دغه شان دا چې کۀ زۀ د تا نه وېستلې شوې نۀ وې نو زۀ به د دې ځائې نه هيڅکله هم نه وومٰ وتلې حافظ ابن حجر فرمائي اکثرو(منصف مزاجو) مالکيانو مصنفينو (١)د دې قول نه رجوع کړې ده او د مکې مکرمې د فضيلت قائل شوې دی

**د مدينې د افضليت بل دليل:** دا حديث هم د مالکيانو دليل دې چې نبی ﷺ يو ځل دا دعا اوفرمائيله چې اې الله! ابراهيم ﷺ ستا نبی وو هغوی د اهل مکه دپاره د برکت دعا کړې وه او زۀ ستا نه د اهل مدينه دپاره دعا غوارم او دوچنده(ډبل) او څلور چنده زياته دعا غوارم اهـ اخرجه الترمذی ايضاً فی باب فضل المدينة

**نوټ: د جسد اطهر سره د لګيدلې بقعې افضليت:** قاضی عياض مالکی فرمائی ليکن د دې نه هغه بقعه مستثنی ده چې په کومه کښې نبی ﷺ دفن کړې شوې دې د هغې په خيرالبقاع کيدو باندې د ټولو اتفاق دې(تردې چې هغه حصه د عرش نه هم أعلی او غوره ده) په دې باندې حافظ ابن حجر فرمائي چې دا خبره د بحث نه خارج ده ځکه چې بحث په دې لحاظ سره کيږی چې کوم ځائې د عبادت دپاره غوره دې(ملخصاً من الفتح)

## الْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [٢٧٢٦] په حرم شريف کښې د قصاص مسئله

٢٧٢٦ ـ[١١]( )١ عَنْ أَبِي شُرَيْحٍ الْعَدَوِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - أَنَّهُ قَالَ لِعَمْرِو بْنِ سَعِيدٍ، وَهُوَ يَبْعَثُ الْبُعُوثَ إِلَى مَكَّةَ: ٢ ائْذَنْ لِي أَيُّهَا الْأَمِيرُ أُحَدِّثْكَ قَوْلًا قَامَ بِهِ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِلْغَدِ مِنْ يَوْمِ الْفَتْحِ، ٣ سَمِعَتْهُ أُذُنَايَ، وَوَعَاهُ قَلْبِي، وَأَبْصَرَتْهُ عَيْنَايَ حِينَ تَكَلَّمَ بِهِ: حَمِدَ اللّٰهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ

**ترجمه** ١ د ابو شريح عدوي ﷺ په باره کې منقول دی، چې هغه عمرو بن سعيد ته (هغه وخت کله چې هغه د عبد الله ابن زبير ﷺ په مقابله کې مکې ته لښکر ليږلی) دا اوويل چې اې زما سرداره! ماته اجازت راکړه، چې زه ستا په مخکې هغه خبره بيان کړم، چې هغه نبی کريم ﷺ د فتح مکه څخه يوه ورځ مخکې د يوي خطبې په دوران کې فرمايلې وه، هغه خبره زما غوږونو واوريده، زما زړه ياده کړه، او زما سترګو نبی کريم ﷺ په هغه خبره فرمايلو ليدلی دی، چې نبی کريم ﷺ د الله ﷻ حمد او ثناء بيان کړه،

**حل اللغات:** ١ الْبُعُوثَ: أَيْ: الْجُيُوشَ: لښکرې، ٢ وَعَاهُ: أَيْ: حَفِظَهُ: محفوظ ئې کړو، ياد ئې اوستلو،

٢ ثُمَّ قَالَ: "«إِنَّ مَكَّةَ حَرَّمَهَا اللّٰهُ وَلَمْ يُحَرِّمْهَا النَّاسُ، ٢ فَلَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يَسْفِكَ بِهَا دَمًا، وَلَا يَعْضِدَ بِهَا شَجَرَةً، ٣ فَإِنْ أَحَدٌ تَرَخَّصَ بِقِتَالِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِيهَا. ٤ فَقُولُوا لَهُ: إِنَّ

---

(١) په فتح الباری کښې لفظ مصنفين دې قسطلانی کښې منصفين دې وهو الصحيح

( ) اخرجه البخاری فی کتاب الحج/باب لا يعضد شجر الحرم (رقم-١٨٣٢) ومسلم فی کتاب الحج /باب تحريم مكة وصيدها وخلاها وشجرها ولقطتها، إلا لمنشد على الدوام (رقم-٤٤٦ - (١٣٥٤) والترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب ما جاء فی حرمة مكة (رقم-٨٠٩) واحمدفی المسند: ٣٨٥/٦

اللّٰهَ قَدْ أَذِنَ لِرَسُولِهِ، وَلَمْ يَأْذَنْ لَكُمْ. ⑤ وَإِنَّمَا أَذِنَ لِي فِيهَا سَاعَةً مِنْ نَهَارٍ،

**ترجمه** ① او بيا يې وفرمايل چې مكې ته الله ﷻ عظمت ورکړی دی، هغه ته خلقو بزرګی نه ده ورکړي. ② نو کوم سړی چې په الله ﷻ او د آخرت په ورځ ايمان لري، د هغه د پاره حلال نه دی، چې هغه په دې ښار کې خونريزي وکړي (يعني يو مسلمان دی په دې ښار کې څوک نه قتلوي اګرچې هغه د قتل قابل ولی نه وي، او کوم سړی چې د قتل قابل نه وي، هغه قتلول په هر خای کې حرام دی، که په حرم مکه کې دننه وي. او که د هغه څخه بهر وي) او نه دا حلال دی، چې د هغه د زمکې ونې کټ کړي. ③ او که يو سړی په دې ښار کې د قتل او قتال د پاره د نبی کريم ﷺ د عمل څخه (څرنګه چې په ٢٧١٨ نمبرحديث کې د ابن خطل د قتل واقعه تيره شوه) جواز پيدا کړي. ④ نو هغه ته اووئيلو، چې الله ﷻ خپل رسول ته د دې اجازت ورکړی وو، او تاته اجازت نشته. ⑤ او ماته هم د يوې ورځې يواځې د يو ساعت د پاره په دې ښار کې د قتل کولو اجازت راکول شوی وو،

**حل اللغات:** ③ لَا يَعْضِدَ: أَيْ: لَا يَقْطَعَ: نه به شی کټ کولی، ④ تَرَخَّصَ: اجازت ئې ورکړې وو. جائز کړی وو

① وَقَدْ عَادَتْ حُرْمَتُهَا الْيَوْمَ كَحُرْمَتِهَا بِالْأَمْسِ، ② وَلْيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ، ③ فَقِيلَ لِأَبِي شُرَيْحٍ: مَا قَالَ لَكَ عَمْرٌو؟ ④ قَالَ: قَالَ: أَنَا أَعْلَمُ بِذٰلِكَ مِنْكَ يَا أَبَا شُرَيْحٍ ⑤ أَنَّ الْحَرَمَ لَا يُعِيذُ عَاصِيًا وَلَا فَارًّا بِدَمٍ، وَلَا فَارًّا بِخَرْبَةٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، ⑥ وَفِي الْبُخَارِيِّ: الْخَرْبَةُ: الْخِيَانَةُ.

**ترجمه** ① او اوس نن ورځ (هرکله چې دا خطبه ورکول کېږي) د دې ښار عظمت او حرمت بحاله دي چې تيره ورځ (د هغه مباح ساعت څخه علاوه) وو ② کوم خلق چې دلته موجود دي، هغوئ ته پکار دی، چې زما دا خبره هغه خلقو ته ورسوی، کوم چې دلته موجود نه دی. ③ د ابو شريح ﷺ څخه پوښتنه وشوه، چې عمرو ابن سعيد (دا حديث اوريدو سره) تاته څه وويل؟ ④ هغه وفرمايل چې عمرو بن سعيد ماته اوويل چې اې ابو شريح ﷺ زه دا (حديث) ستا څخه زيات پيژنم. ⑤ ليکن د حرم زمکه نافرمان ته پناه نه ورکوي، او نه هغه سړي ته پناه ورکوي، چې خون کولو سره تښتيدلی وي، يا څه تقصير کولو سره فرار شوی وي، بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ⑤ الشَّاهِدُ: أَيْ: الْحَاضِرُ: چه موجود وی ⑥ لَا يُعِيذُ: أَيْ: لَا يُجِيرُ: پناه نه ورکوی، نه ئې محفوظ کوی ⑦ عَاصِيًا: نافرمان، ⑧ لَا فَارًّا: أَيْ: هَارِبًا: چه تختيدلي وی، ⑨ بِخَرْبَةٍ: أَيْ قَتْلٍ: قتل کول، خون کول

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت ابوشريح خويلد بن عمرو ﷺ:** د دوی په نوم کښې اختلاف دې بعضې خويلد ﷺ بعضې عمرو ﷺ بنائی اوکنيت ئې ابوشريح دې او هم په دې سره ډېر مشهوردې. د

مکې دَ فتح نه اول مسلمان شو او په فتح مکه کښې شريك وو. (٢)
دَ هغوی سخاوت ډیر مشهور وو هغه اعلان کړې ووچه څوك هم غوړې پښې وغیره غواړی
بغیر دَ اجازت او بې تکلفه ئې اوړې شی. (٣)
**مرويات** دَ هغوی نه شل روايات نقل دی. دوه په بخاری شریف اومسلم دواړوکښې دی په
یوکښې بخاری شریف او یوکښې مسلم شریف منفرد دی. (٤)
**وفات** ٦٨هـ کښې مدینه منوره کښې وفات شو (٥)

**تسهیلات:**

**قوله: لِعَمْرِوبْنِ سَعِيدٍ:**

**دعمروبن سعید د گورنرئ په تقررئ کښې اقوال:**

① ملاعلی قاری رحمه الله شیخ عبدالحق مظاهر حق رحمه الله اونورو شارحینو عمرو بن سعید دَ عبدالملك بن مروان دَ طرف نه دَمدینې گورنر جوړکړې وو

② بعض شارحینو لیکلی دی چه عمرو بن سعید دَ یزید بن معاویه رضي الله عنه دَ طرف نه دَ مدینې گورنروو اوداخبره دَ پوهیدو په لحاظ سره ډیره قابل فهم ده ځکه چه دَ مدینې نه په اول خل په مکه باندې دَ حملې کولودَپاره دَ یزید فوجونه راغلی وو دَ یزیددَ مرگ نه پس دَ مروان بن الحکم حکومت راغلو اودې نه پس دَعبدالملك بن مروان حکومت راغلو هغه وخت حجاج بن یوسف دَ عبدالله بن زبیر خلاف فوجونه روان کړل اوهغه ئې شهیدکړو دَدې تفصیلات به ان شاء الله کتاب الفتن کښې راشی.

**دحدیث الباب پس منظر:** اوس لږ شان دَدې حدیث پس منظرهم اوگورئ.
دَ حضرت علی رضي الله عنه دَ شهادت نه پس حضرت حسین رضي الله عنه دَ خلافت نه لاس اخستلو اعلان اوکړو نوحضرت معاویه رضي الله عنه دَ پوره امت خلیفه جوړشو. هغوی په ډیربنه شان سره دَ اسلام خدمت اوکړو اواسلامی سلطنت ئې خورکړو. هغوی دَ خپل وفات نه لږ شان مخکښې خپل خوئی یزید په دې وجه ولی عهد جوړکړو چه دَ مخکښې په شان په مسلمانانوکښې دَ خلافت په مسئله جگړه جوړه نه شی.

**دامیر معاویه مدبرانه سوچ:** هغوی یزیدراغوښتوسره دَ مستقبل باره کښې عجیبه مدبرانه مشوره ورکړه چه ستادَحکومت خلاف به څلور کسان راؤچتیږی

① محمدبن ابی بکر لیکن کیدې شی چه دَ هغه عمر وفا اونه کړی نوځکه خطره نشته

② عبدالله بن عمردې دا صوفی عابد او زاهد سړې دې دَ ده هم خطره نشته

③ حسین رضي الله عنه دې یاد ساته چه دا دَنبی کریم صلی الله علیه وسلم نمسې دې دَ ده ډیرزیات احترام کوه

④ عبدالله بن زبیر دې دا ډیرزیات چالاك سړې دې ده نه بچ اوسیږه

**دیزید داهل مدینې څخه په زور بیعت اخستل** :دَ حضرت معاویه رضي الله عنه دَ وفات نه پس

یزید د اهل مدینه نه د توري په زور باندې بیعت اخستل شروع کړه د محمد بن ابی بکر ژوند واقعي چه وفا اونه کړه او هغه وفات شو حضرت ابن عمر رضی الله عنهما هم خاموشي اختیار کړه لیکن حضرت حسین رضی الله عنه او حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنهما د مکې طرف ته په غرض د پناه لاړل حضرت حسین رضی الله عنه ته د اهل کوفه د اتلس زرو سړو خطونه اورسیدل شو په کوم کښې چه کوفې ته د راتلو دعوت وو ددې نه باوجود اهل مشوره حضرت حسین رضی الله عنه د تلونه منع کړو لیکن هغه د کوفې طرف ته روان شو اوهلته په کربلاکښې چه کوم څه اوشو هغه اوشو

**د عبدالله بن زبیر ه قتل حکم:** دحضرت حسین رضی الله عنه نه چه فارغ شو نو یزید دحضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنهما د وژلودپاره هغه پسې د فوجونو دلیګلو حکم ورکړو مدینه کښې د یزید د طرف نه عمرو بن سعید ګورنروو هغه چه کله فوجونه روان کړل نوحضرت ابوشریح صحابی رضی الله عنه هغه ته ډیر تیز اودمغزنه ډك تقریر اوکړو اود پوه کولو کوشش ئې اوکړو لیکن دهغه د اقتدار نشه وه هغه غلطې خبرې کولوسره په صحابی پورې توقې مسخرې اوکړې او وئې وئیل زه تانه زیات پوهیږم عبدالله بن زبیر باغی دې او یزید خلیفه دې د دغه باغی وژل په حرم کښې هم جائز دی خکه چه حرم یوقاتل اوډاکوته پناه نه ورکوی عمرو بن سعیدته د اشدق یعنی شلیدلې خلې والالقب ورکړې شو په دې وجه هغه ته لطیم الشیطان هم اووئیلې شو یعنی شیطان هغه له څپیړه ورکړه دا سړې نه صحابی دې اونه ده ته د تابعي مرتبه ملاؤ شوې ده حضرت ابوشریح رضی الله عنه هم ده ته نصیحت فرمانی

**قوله:** فَأمَرَبِهِ رَسُوْلُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

**د حرم حرمت:** داد قول په معنی کښې دې "اي قولاقال به".

"الغد" یعنی د مکې د فتح په ورځ ئې اوفرمائیل "ترخص" یعنی که یوسړې په مکه کښې د جنګ دپاره د حضورپاك جنګ بنیاد جوړوی اودخپل جنګ دپاره اجازت اورخصت حاصلول غواړی نوهغه له داسې کول جائز نه دی

**قوله:** وَلَافَارًّابِدَمٍ:

**د حرم قاتل ته پناه نه ورکول:** یعنی حرم هغه سړی ته پناه نه ورکوی چه د چاقتل کولوسره ددې طرف ته راتختیدلې وی

**قوله:** وَلَافَارًّابِخَرْبَةٍ:

**د عمروبن سعید دهوکه بازي:** یعنی جنایت قصور اوفساد کولوسره په دې کښې پناه اخستونکی ته پناه نه ورکوی عمرو بن سعید دلته ښکاره دروغ وئیلی دی خکه چه عبدالله بن زبیر رضی الله عنهما د یوشان والا صحابی دې نه معصیت کونکې وو اونه قتل اوفساد کونکې وو بلکه داکارونه تول پخپله د دغه فاسق لطیم الشیطان وو

**قوله**: لَا يُعِيذُ عَاصِيًا:

**قاتل ته په حرم کښې د پناه ملاويدلو صورتونه**: په دې جمله سره دَ فقهاؤ کرامو په مينځ کښې يو اختلاف پيدا شوې دې دَ فقهاؤ دَ اختلاف تفصيل داسې دې

① که څوك سړې دَحرم نه بهر جنايت کولوسره دننه حرم کښې پناه واخلی نوکه چرې قتل دَ انسان نه علاوه جنايت وی نواتفاقاً به قصاص اخستې شی

② که يوسړې په حرم کښې دننه دَ قتل يا زخمی کولو جنايت اوکړی نودَ ټولو فقهاؤ اتفاق دې چه هم په حرم کښې به دَ هغه نه بدله اخستې شی اودَ هغه به قصاص اخستې شی

③که چرې بهر قتل کولوسره دننه راشی او په حرم کښې پناه واخلی نو په دې صورت کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې چه په هغه باندې به سزا نافذ کولې شی که نه؟

**په دريم صورت کښې مذاهب**:

① امام مالک رحمه الله او امام شافعی رحمه الله فرمائی په حرم کښې پناه اخستونکې داسې سړې به په قصاص کښې قتل کولې شی.

② امام ابوحنيفه رحمه الله اوامام احمد رحمه الله فرمائی چه داسې سړی نه به په حرم کښې قصاص نه شی اخستې اونه ده ته په حرم کښې سزا ورکولې شی البته هغه سره به سوشل بائيکاټ کولې شی چه هغه دَ وتلو دَپاره پخپله مجبورشی او وتلوسره سزاته مخ شی

**د اول مذهب دلائل**: ①شوافع اومالکيه دَ زير بحث ابوشريح رضی الله عنه روايت کښې عمرو بن سعيد دَ قول نه استدلال اخستې دې چه حرم يو نافرمان ته پناه نه ورکوی

**جواب**: د دې څخه جواب دا دې چه دا دَ يوفاسق فاجر سړی دَ قول نه استدلال دې داصحيح نه دې په دې باندې مونږ دَ افسوس اظهارکوو چه دَ حديث مرفوع په مقابله کښې اشدق لطيم الشيطان دَ قول نه څنګه استدلال کړې شوې دې.

② ابن خطل دَ بيت الله پردو سره اينختې اووژلې شو دې په قصاص کښې وژلې شوې وو څکه چه ده اسلام قبولولونه پس مرتدشوې وو اوهغه يو مسلمان هم قتل کړې وو هم دَ هغه په قصاص کښې وژلې شوې وو.

**جواب**: دَ دې جواب دادې چه ابن خطل دَ ارتداد په بدله کښې قتل کړې شوې وو دَ قتل دَ وجې نه قصاص نه وو اخستې شوې.

**د دويم مذهب دلائل**:

دَ ابوشريح رضی الله عنه د روايت په بعضو طريقو کښې دا الفاظ هم راغلی دی "فلا يحل لامرئ يؤمن بالله واليوم الاخر ليسفك فيها دما" دَدې نه معلومه شوه چه په حرم کښې په هيڅ شان سره قتل کول جائز نه دی دارنګ د آيت ﴿وَمَنْ دَخَلَهُ كَانَ آمِنًا﴾ نه هم دې حضراتو استدلال کړې دې

## [٢٧٢٧] دَحرم په بې حرمتۍ سره به دا امت هلاکيږي

٢٧٢٧ - [١٢] (١)[١] وَعَنْ عَيَّاشِ بْنِ أَبِي رَبِيعَةَ الْمَخْزُومِيِّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - : قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - :[٢] "«لَا تَزَالُ هَذِهِ الْأُمَّةُ بِخَيْرٍ مَا عَظَّمُوا هَذِهِ الْحُرْمَةَ حَقَّ تَعْظِيمِهَا،[٣] فَإِذَا ضَيَّعُوا ذَلِكَ هَلَكُوا»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** [١] عياش ابن ابي ربيعه مخزومي ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] دا امت به تر هغه وقته په خير کې وي، تر څو چې د دې حرمت يعني د مکې او حرم مکې حرمت تعظيم کوي څرنګه چې د دې د تعظيم حق دی[٣] او هر کله چې خلق دا تعظيم پريږدي. نو هلاك به شي، ابن ماجه

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا عَظَّمُوا هَذِهِ الْحُرْمَةَ حَقَّ تَعْظِيمِهَا:

**د بعضې سعوديانو کم فهمي:** دَعربوخلق سره دَدې چه دَ بيت الله ډيرزيات احترام کوی ليکن اوس داسې محسوسيږی چه دنيا راغونډولې کيږی څکه خو عربوپخپله دَ بيت الله توهين او تحقير کول شروع کړی دی بلکه بعض غافل ځوانان وائی زمونږ په ترقئی کښې بيت الله رکاوټ دې. څکه چه ټول کال هم دَدې دَميلمنوپه خدمت کښې اخته يو دَ خپلو کړونودَپاره اوزګارنه شو. دَهغوی داوينا کول غلط دی بلکه حقيقت دادې دَ بيت الله او دَ محمدرسول الله ﷺ دَوجې نه عربوته ترقی ملاؤشوې ده که دَ بيت الله بې عزتی کوی نوتباه به شی دَ ابن ماجه ددې حديث هم دغه مطلب دې

---

(١) اخرجه ابن ماجة في كتاب المناسك باب فضل مكة (٣١١٠)

# [ ١٥ ] بَابُ حَرَمِ الْمَدِينَةِ حَرَسَهَا اللهُ تَعَالٰى

دَ حرم مدینه منوره بیان

**خلاصة الباب:**

**فيه احد وثلاثون حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① محرمات حرم المدينة: ١، ٥، ١٨ ، ٢٢، أورده طردا -

② الفضلية السكنى فى المدينة النبوية: ٢، ٣، ٩، ٢٣، ٢٨-

③ دعاء النبي ﷺ للمدينة المنورة: ٤، ٧ ، ٨ أورده طردا -

④ العقوبة لمن لا يحترم المدينة المنورة: ٦، ٢٠، ٢١-

⑤ فضيلة المدينة المنورة وجبالها: ١٠، ١١، ١٢، ١٣ ، ١٤ ، ١٥، ١٦، ١٧، ١٨، ١٩، ٢٤، ٢٥، ٢٦، ٣٠، ٣١-

⑥ فضيلة زيارة قبر النبي ﷺ وهو فى المدينة: ٢٨، ٢٩-

**دَ مکې دَ حرم او مدینې دَ حرم په حکم کښې فرق:** دَ احناف په نیز مدینه منوره هم حرم دې دَعوی خلاف دا بهتان اوالزام صحیح نه دې چه احناف مدینه حرم نه ګڼرې. احناف مدینې منورې ته حرم وائی هم اومنی هم دَ عظمت احترام او شرافت اومقام په اعتبارسره مدینه منوره هم دغه شان حرم دې لکه چه مکه مکرمه حرم دې. لیکن احناف حرم مکه اوحرم مدینه کښې ښکاراوونې پرې کول یا دَ ښکار کولو په سزا کښې فرق کوی اوفرمائی چه مکه کښې ښکارکول اوونې پرې کول حرام هم دی او جنایت هم دې لهذا دَ جنایت په صورت کښې به جرم کول دَ جزاء په توګه وی لیکن په مدینه کښې دَ ښکار په صورت کښې داقسم جزاء لازم نه راځی لکه چه په حرم مکه کښې ده ائمه ثلاثه هم دَدې قائل دی اود احنافو هم دغه موقف دې. په دې باب کښې مختلف قسم احادیث راغلی دی په دې کښې به دَ ائمه اختلاف بیا بیانولې شی.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

[٢٧٢٨] دَمدینې دَ حرم حدود

٢٧٢٨-[١] ()[١] عَنْ عَلِيٍّ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: «مَاكَتَبْنَاعَنْ رَسُولِ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِلَّا الْقُرْآنَ وَمَا فِي هٰذِهِ الصَّحِيفَةِ.[٢] قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ: الْمَدِينَةُ حَرَامٌ مَا بَيْنَ عَيْرٍ إِلَى ثَوْرٍ،[٣] فَمَنْ أَحْدَثَ حَدَثًا أَوْ آوَى مُحْدِثًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ،[٤] وَلَا يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ،[٥] ذِمَّةُ الْمُسْلِمِينَ يَسْعَى بِهَا أَدْنَاهُمْ،

---

[١] اخرجه البخاری فی کتاب الحج /باب حرم المدينة (رقم-١٨٧٠) ومسلم فى كتاب الحج /باب فضل المدينة. ودعاء النبى صلى الله عليه وسلم فيها بالبركة، وبيان تحريمها، وتحريم صيدها وشجرها، وبيان حدود حرمها (رقم-٤٦٧ - ١٣٧٠) - (١٣٧٣) وابوداود فى كتاب المناسک باب فى تحريم المدينة (رقم-٢٠٣٤)

**ترجمه** [١] حضرت علي وايي چې ما د نبی کريم ﷺ د طرف څخه علاوه د قرآن او هغه خبرو څخه چې په دي صحيفه کې دی نور هيڅ نه دي ليکلي. [٢] حضرت علي وفرمايل چې ما په دي صحيفه کې د نبی کريم ﷺ دا ارشاد گرامي هم ليکلي دي، چې مدينه د عير او ثور په منځ کې حرم دی. [٣] نو کوم سړی چې په مدينه کې بدعت پيدا کړي (يعني داسې خبره وکړي يا رائج کړي چې د قرآن کريم او حديث خلاف وي) يا يو بدعتي ته پناه ورکړي، نو په هغه د الله ﷻ د فرښتو او د ټولو خلقو لعنت دی. [٤] د هغه سړي څخه خو په کمل طور سره نه فرض اعمال قبليږي نه نفل. [٥] د مسلمانانو عهد يو دی، چې د هغه د پ ره د هغوئ ادنی سړی هم کوشش کولی شي.

**حل اللغات**: ① الصَّحِيفَةُ: ليکلي شوې کاغذ، کتاب ② حَرَامٌ: أَيْ مُحْتَرَمٌ: قابل د احترام او قابل دعزت، يا داچه ددي سپکوالي ممنوع او حرام دي ③ عَيْرٍ إِلَى ثَوْرٍ: جَبَلَانِ عَلَى طَرَفَيِ الْمَدِينَةِ: د مدينې يو طرف او بل طرف ته دوه غرونه دي يو ته عير او بل ته ثور وائی ④ حَدَثًا: أَيْ: مُنْكَرًا أَوْ بِدْعَةً: خلاف سنت يا بدعت ⑤ آوَى: خائي ورکړی، ⑥ مُحْدِثًا: أَيْ: مُبْتَدِعًا: بدعتی. ⑦ صَرْفٌ: أَيْ فَرْضٌ: فرض مراد دي ⑧ عَدْلٌ: أَيْ نَافِلَةٌ: نفل مراد دي.

[١] فَمَنْ أَخْفَرَ مُسْلِمًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ، لَا يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ، [٢] وَمَنْ وَالَى قَوْمًا بِغَيْرِ إِذْنِ مَوَالِيهِ فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ، [٣] لَا يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [٤] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا: " «مَنِ ادَّعَى إِلَى غَيْرِ أَبِيهِ، أَوْ تَوَلَّى غَيْرَ مَوَالِيهِ، فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ، [٥] لَا يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ» ".

**ترجمه** [١] نو کوم سړی چې د يو مسلمان عهد مات کړي، په هغه د الله ﷻ د فرښتو او د ټولو خلقو لعنت دی، نه خو د هغه فرض قبليږي، او نه نفل. [٢] او کوم سړی چې د خپلو ملګرو د اجازت څخه بغير د يو قوم سره موالات (دوستی) قائمه کړي، نو په هغه د الله ﷻ د فرښتو او د ټولو خلقو لعنت دی. [٣] نه خو د هغه فرض قبليږي او نه نفل. بخاري، مسلم. [٤] د بخاري او مسلم په يو بل روايت کې دا الفاظ هم دي کوم سړی چې د خپل پلار په ځای يو دويم طرف ته د خپل نسبت دعوی وکړي (يعني داسې اووائي چې زه د زيد خوی يم. او په حقيقت کې هغه د بکر خوی وي) يا د خپل مالك په ځای يو دويم طرف ته خپل ځان منسوب کړي (مثلاً دا اووائي چې زه د زيد غلام يا خدمت ګاريم، او په حقيقت کې هغه د بکر غلام يا خدمتګار وي) نو په هغه د الله ﷻ د فرښتو او د ټولو خلقو لعنت دی. [٥] نه خو د هغه فرض قبليږي او نه نفل.

**حل اللغات**: ⑨ أَخْفَرَ: أَيْ نَقَضَ عَهْدَهُ: معاهده نی ماته کړه او د هغې خلاف ورزی ئې اوکړه ⑩ وَالَى: دوستی قائم کړی، يا يو آزاد غلام د خپلو آزاديدو نسبت غير ولی ته اوکړی.

تسهيلات:

**قوله** وَمَا فِي هٰذِهِ الصَّحِيفَةِ:

**د حديث پس منظر:** خوځل داخبره ليکلې شوې ده چه د شيعه روافض داخيال دې چه حضور پاك د وفات نه لږ شان مخکښې حضرت علی ته د خلافت وغيره وصيت کړې وو د حضرت علی رضي الله عنه په زمانه کښې هم دا نظريه پيداشوې وه په دې وجه به خلقو د حضرت علی رضي الله عنه نه تپوسونه کول چه آيا حضور پاك تاسو ته د څه څيز وصيت فرمائيلې دې حضرت علی رضي الله عنه به هميشه دَدې ترديد کولو ليکن شيعه ګان روافض دهغوی خبره هم نه منی

**قوله:** مَا بَيْنَ عَيْرٍ إِلَى ثَوْرٍ:

**په مدينه کښې د جبل ثور وجود:** علامه علی بن احمد سمهودی خپل کتاب وفاء الوفاء باخبار دار المصطفى کښې څو اقوال د معتبر علماؤ نه نقل کړی دی چاچه په مدينه کښې د ثور غر نه انکار کړې دې او په زير بحث حديث کښې بې خايه تاويلات کړی دی بيا علامه سمهودی رحمه الله د دغه اکابرينو اقوال هم نقل کړی دی چاچه په مدينه کښې ثور غر ثابت کړې دې

① ابو عبيده وائی "بلغنی ان بالمدينة جبلاً يقال له ثور، قال المجد ثور جبل عند احد قال عبد السلام البصري اى حذاء احد عن يساره جانحاً الى ورائه جبل صغير يقال له ثور، قال ابن تيمية رحمه الله عير جبل عند الميقات يشبه العير وهو الحمار وثور، جبل في ناحية احد وهو غير جبل ثور الذي بمكة" [وفاء الوفاء: ١/٩٤].

② حضرت مولانا محمد ادريس کاندهلوی رحمه الله دَصاحب قاموس په حواله سره ليکلی دی اوعلامه ابن حجر رحمه الله دَ محققينو په حواله سره ليکلی دی چه عير اوثور غرونه په مدينه منوره کښې دی احد سره يو وړوکې شان غر دې دکوم نوم چه ثور دې سره دَدې چه مشهور نه دې دَدې تحقيق نه پس دا اعتراض ختميږی چه په مدينه کښې ثور غر نشته دې

**قوله:** ذِمَّةُ الْمُسْلِمِينَ:

**معاهدته امن ورکول:** يعنی دَ ټولو مسلمانانو ذمه واری هم يوه ده چاچه چاته امن ورکړو يانی څه معاهده اوکړه نو په ټولو مسلمانانو باندې دَدې احترام لازم دې

**قوله:** يَسْعَى بِهَا:

**د هر مؤمن معاهده اوامان قابل قدر کيدل:** يعنی مسلمان په منزله دَ يوجزء دې که چا ادنی يا اعلی يا قليل يا کثير معاهده اوکړه نو ادنی او اعلی دَ هر طبقې فرد به هغه کامياب جوړوی اودَهغې احترام به کوی

**قوله:** وَمَنْ وَالَى قَوْمًا بِغَيْرِ إِذْنِ مَوَالِيهِ:

**دولاء څخه په مراد کښې دوه اقوال:** ①دَ ولاء نه ولاء مولات هم مراد کيدې شی.

② او ولاء عتاقه هم مراد کیدې شی

**مولاء دوه قسمونه:** دَ "ولاء" دوه قسمونه دی

① اول قسم مولات دی یعنی که چا دَ بل سړی سره دَ دوستئی معاهده اوکړه په دورجاهلیت کښې داسې معاهده کولوسره سړې دَ کورفرد جوړیدلو اودَ یوبل وارث به جوړیدو

② دویم قسم ولاء عتاقه ده هغه داچه یوسړې خپل غلام آزادکړی کله چه هغه مړشی نودَ هغه میراث دَ هغه دَ آزادونکی کیږی په دې شرط چه دَ غلام څوك وارث نه وی اوس معتِق او معتَق دَ یوبل دوستان شو

**په حدیث کښې مراد ولاء:** ① که په حدیث اوله ولاء مراد وی نو مطلب داشو چه کوم سړی دَخپل معاهدینو نه علاوه دَ بل چا طرف ته معاهده منسوب کړه نوهغه خپلو دوستانوته تکلیف اورسولو په دې وجه داګناه ده اومنع ده

② اوکه چرې ولاء عتاقه مراد وی نودَحدیث مطلب به دا شی چه کوم غلام دَ خپلې آزادئی نسبت دَ خپل آقانه علاوه دَ بل چاطرف ته منسوب کړو نو چونکه روستو به دَ ده دَ میراث مسئله پیداکیږی په دې وجه دا دګناه کار دې اوناجائز دې علامه طیبی رحمه الله هم دغه دویم مطلب بیان کړې دې چه دانسبت داشان حرام دې لکه څنګه چه دَ خپل پلار په ځائی دَ غیرطرف ته نسب ناجائز دې. پاتې شوه دا خبره چه دَ خپل آقا دَ اجازت څه مطلب دې؟ آیاکه دَهغه دَ طرف نه اجازت وی نودا نسبت به جائز شی؟ نوعلماؤ لیکلی دی چه دَهغه په اجازت ورکولوسره هم نه جائز کیږی.

## [٢٧٢٩] دَمدینې حدوداوپه دې کښې دَ ښکار حکم

٢٧٢٩-[٢] (١) ① وَعَنْ سَعْدٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "② «إِنِّي أُحَرِّمُ مَا بَيْنَ لَابَتَيِ الْمَدِينَةِ: أَنْ يُقْطَعَ عِضَاهُهَا، أَوْ يُقْتَلَ صَيْدُهَا ③" وَقَالَ: " الْمَدِينَةُ خَيْرٌ لَهُمْ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ، ④ وَلَا يَدَعُهَا أَحَدٌ رَغْبَةً عَنْهَا إِلَّا أَبْدَلَ اللهُ بِهَا مَنْ هُوَ خَيْرٌ مِنْهُ، ⑤ وَلَا يَثْبُتُ أَحَدٌ عَلَى لَأْوَائِهَا وَجَهْدِهَا إِلَّا كُنْتُ لَهُ شَفِيعًا أَوْ شَهِيدًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** ① سعد ابن ابي وقاص رضی الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② زه د مدیني د دواړو غرونو د غاړو منځ حرام (باعظمت) ګرځوم، نو نه خو دی د دې زمکې (چې د دې په منځ کې ده) خار داري (یعني آزغی لرونکی) وني پرېکول کیږی، او نه دی په دې کې ښکار کیږی (د ابوحنیفه رحمه الله په نزد دا ممانعت د نهي تنزیهي په طور دی) ③ مدینه هغه خلقو د پاره چې په مدینه کې اوسي، بهتره ده (یعني د مدیني قیام د دنیا او عقبی د خیر ضامن دی) په شرط د دې چې هغه د دې خیر او بهترۍ وپیژني، نو د دې ښار

(١) اخرجه مسلم فی کتاب الحج /باب فضل المدينة. ودعاء النبي صلی الله عليه وسلم فيها بالبركة. وبيان تحريمها. وتحريم صيدها وشجرها. وبيان حدود حرمها (رقم-٤٥٩ - (١٣٦٣) واحمد فی المسند: ١٨١/١

اقامت دي نه پريږدي، او د دنيا د آرام او راحت د پاره دا پرينبودلو سره بل چيرته دي نه خي، ④ کوم سړی چې په بې رغبتي سره (يعنی بلا ضرورته) دا ښار پريږدی نو الله تعالیٰ ﷻ به د هغه په ځای بل دويم سړی مقيم کړي چې د هغه څخه بهتر وی (يعنی په بې رغبتي سره مدينه پرينبودل د مديني د پاره نقصان نه دي، بلکه د دې د پاره مفيد دی چې د هغه سړي په ځای د هغه څخه بهتر سړی راتلو سره مقيم شي، چې د ضرورت او مجبوری تحت مدينه پرينبودل په دې حکم کې داخل نه دی)⑤ او کوم سړی چې د مديني په سختيو او لوږو باندې ثابت قدم اوسي (يعني په دې هري سختي او پريشانی صبر کوي) نو زه به د قيامت په ورځ د هغه شفاعت کوم، زه به د هغه د اطاعت گواه يم. مسلم

① لَابَتَي :أَيْ: جَانِبَيْهَا: دواړه غاړي (دواړه غرونه)، ② عِضَاهُهَا: د عِضَة جمع ده، وَهِيَ كُلُّ شَجَرٍ عَظِيمٍ لَهُ شَوْكٌ: هرهغه اونه چه هغې کښې ازغی وی، ازغی داره اونه، ③ لَأْوَائِهَا :أَيْ: شِدَّةِ جُوعِهَا: سختي لوږې دمديني، ④ جَهْدِهَا :أَيْ: مَشَقَّتِهَا: مشقت او تکليف د مديني

**تسهيلات: قوله: إِنِّي أُحَرِّمُ:**

**د مديني دحرمت بيان:** دې نه وړاندې حديث کښې لفظ حرام راغلي دې دلته دَ احرم لفظ دې او په حديث نمبر: ٢٧٣٢ کښې دَ حرمت المدينة الفاظ دی اوس دا کتل دی چه دَدې تحريم نه دَ مديني حرم کيدل مراددی يا په دې کښې دَ ښکار دَ ممانعت طرف ته اشاره ده په دې دويم صورت کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې.

**د مديني د ونو کټ کولو په حرمت کښې مذاهب:**

دَمديني منورې په حرم کيدو کښې دَټولو فقهاؤ اتفاق دې البته دَ مديني ونې پرې کول او ښکار کولو کښې اختلاف دې.

① امام شافعی رحمه الله امام احمد رحمه الله او امام مالك رحمه الله فرمائی چه دَ حرم مدينه حکم دَ مکې په شان دې لکه څنگه چه هلته ښکار وغيره ونې پرې کول منع دی دغه شان په مدينه کښې هم منع دی

② امام ابوحنيفه رحمه الله او سفيان ثوری رحمه الله فرمائی چه حرم مدينه دَ مکې دَ حرم په شان نه دې لهذا په حرم مدينه کښې ښکار کول او ونې پرې کول جائز دی البته دا مکروه تنزيهی يعنی خلاف اولی دی

داول مذهب دلائل: ① وَعَنْ سَعْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ اِنِّيْ أُحَرِّمُ مَا بَيْنَ لَابَتَيِ الْمَدِيْنَةِ أَنْ يُقْطَعَ عِضَاهُهَا أَوْ يُقْتَلَ صَيْدُهَا،

په دې حديث کښې صراحةً راغلی دی چې نبی کريم ﷺ ددې د بوټو کټ کول حرام گرځولی دی.

② عَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ إِبْرَاهِيْمَ حَرَّمَ مَكَّةَ فَجَعَلَهَا

حَرَامًا وَإِنِّيْ حَرَّمْتُ الْمَدِيْنَةَ حَرَامًا مَا بَيْنَ مَأْزِمَيْهَا أَنْ لَا يُهْرَاقَ فِيْهَا دَمٌ وَلَا يُحْمَلَ فِيْهَا سِلَاحٌ لِقِتَالٍ وَلَا تُخْبَطَ فِيْهَا شَجَرَةٌ إِلَّا لِعَلَفٍ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

③ عَنْ عَامِرِ ابْنِ سَعْدٍ أَنَّ سَعْدًا رَكِبَ إِلٰى قَصْرِهٖ بِالْعَقِيْقِ فَوَجَدَ عَبْدًا يَقْطَعُ شَجَرًا أَوْ يَخْبِطُهٗ فَسَلَبَهٗ فَلَمَّا رَجَعَ سَعْدٌ جَاءَهٗ أَهْلُ الْعَبْدِ فَكَلَّمُوْهُ أَنْ يَرُدَّ عَلٰى غُلَامِهِمْ أَوْ عَلَيْهِمْ مَا أَخَذَ مِنْ غُلَامِهِمْ فَقَالَ مَعَاذَ اللّٰهِ أَنْ أَرُدَّ شَيْئًا نَفَّلَنِيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ وَأَبٰى أَنْ يَرُدَّ عَلَيْهِمْ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**استدلال:** په دې درې واړه رواياتو کښې ښکار ممانعت ذکر دې او دَ ونو پرې کولو ممانعت هم دې دَ وسلې اوچتول اوجنګيدلو ممانعت هم موجود دې داټول دَدې دَحرم کيدلو دليل دې

**جوابونه:** چه دَ حضورپاك نه دَ مدينې په حرم کښې ښکار کول او ښکار په پنجره کښې دَ بندولو اجازت ثابت دې دَ احد غر دَ ونونه څه پرې کول اوخوړلو ترغيب ثابت دې دَ څناورو دَ خوراك دَپاره دَ ونو دَ پاڼو پرې کولو اجازت ثابت دې نودَ ائمه ثلاثه په مستدلاتو کښې به تاويل کولې کيږی دې دَپاره چه په ټولو احاديثوکښې تطبيق راشی دغه تاويل به داسې وی

① چه حضورپاك دَ مدينې دَ کومو ونو پرې کولواوښکارکولونه منع کړې ده دا په نهی تنزيهی او خلاف اولی باندې محمول ده او په دې کښې حکمت اومصلحت دادې چه دَ مدينې منورې شينوالې ختم نه شی لهذا دا ممانعت دَانتظامی مصحلت دَ وجې نه دې دَ حرم مدينه دَحرمت دَ وجې نه نه وو

**نظير:** داحکم هم داسې دې لکه چه حضورپاك دَ مدينې ښائسته غونډئی ختمولونه منع فرمائيلې وه لکه چه دَ حضرت ابن عمر ﷺ نه چا دَ حرم مدينه دَ ونو پرې کولوپاره کښې پوښتنه اوکړه نوهغوی اوفرمائيل چه دا دَ مدينې دَ غونډو دَ رانړولوپه شان دی او ونی فرمائيل "انها زينة المدينة" دَ انتظامی مصحلت لاندې حضورپاك دَحرمينونه علاوه دَ طائف سره دَ وج علاقې ښکار اوونې پرې کولونه هم منع فرمائيلې وه داهم دغه شان دی.

② علامه توريشتی رحمه الله فرمائی چه حديث کښې "وانی حرمت المدينة" چه کوم الفاظ دی دادَ حرمت تعظيم دَپاره دی دَ مکې په شان دَ حرمت دَپاره نه دی. بهرحال جمهورو دَ محتمل روايت نه استدلال کړې دې کوم چه يقينی نه دې.

③ الزامی جواب دادې چه دَ مکې په شان کفاره خودَجمهورو په نيزهم نه ده نوبيا وجوب څنګه؟

④ دَدې نه وړاندې حديث نه معلومه شوې وه چه دَ حرم مدينه حد بندی دَعير غر نه ترثورغر پورې ده په زير بحث حديث کښې "لابتى المدينة" الفاظ راغلی دی. دې نه پس بل حديث کښې "مازمیها" الفاظ راغلی دی په دې الفاظو کښې دَ اطراف او جهات اندازه خودلې شوې ده خاص تحديدنه دې څکه چه دَ لابتی نه هغه دواړه طرفونه مراد دی چرته چه غرونه واقع دی.

ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی "لابة" تورو ورو کاڼو ته وائی او "مازمیها" دَ دوو غرونو په مینځ کښې تنګ ځائی ته وائی کوم چه په غرونو کښې راګیر شوې وی دَدې نه هم دَ مدینې منورې دوه طرفونه مراد دی په دې روایاتو کښې دَ حدود حرم اندازه خو شته مګر تحدید او تعین نشته دې

دَدې په مقابله کښې هغه احادیث په کوم کښې چه دَ مدینې منورې څلور واړه اطرافو تعین برید سره کړې شوې دې دا بهترین تحدید او تعین دې ځکه چه برید کښې څلور فرسخ وی او په یو فرسخ کښې درې میله وی لهذا یو برید دولس میله فاصله ده یعنی حرم مدینه دَ هر څلورو واړو طرفونه دَ یو یو برید په اندازه دې دغه شان دَ مسلم شریف یو روایت دې "وجعل اثنی عشر میلا حول المدینة حمی" امام مالك رحمه الله فرمائی چه یو حرم الشجر دې او دویم حرم الصید دې دَ یو برید په مسافت کښې ونې پرې کول ناجائز دی دا حرم الشجر دې او مابین اللابتین مسافت کښې ښکار کول منع دی هغه حرم الصید دې

بهرحال مدینه منوره دَ دې خایونو په مینځ کښې ده دَ دغه مقاماتو نومونه دا دی ذات الجیش، شریب، اشراف المخیض، اشراف المجتهر، الحفیاء، ذوالعشیرة، یثب، ثنیة المحدث، مضرب القبة

**دویم مذهب دلائل:** ① د عدم حرمت قائلین دَ سلمه بن اکوع دَ روایت نه هم استدلال کړې دې کوم چه ابن ابی شیبه او طبرانی نقل کړې دې. دَدې خلاصه دا ده چه حضرت سلمه بن اکوع رضي الله عنه دَ ښکار غوښه حضورپاك ته وراندې کړه نو حضورپاك او فرمائیل که چرې ته وادی عقیق ته ښکار له تللې نو دَ تګ په وخت به ما ته رخصت کولې او په واپسئ به ندې به مې دې استقبال کولو یاد لرئ چه وادی عقیق په حرم مدینه کښې ده

② عَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ إِبْرَاهِيْمَ حَرَّمَ مَكَّةَ فَجَعَلَهَا حَرَامًا وَإِنِّيْ حَرَّمْتُ الْمَدِيْنَةَ حَرَامًا مَّا بَيْنَ مَأْزِمَيْهَا أَنْ لَّا يُهْرَاقَ فِيْهَا دَمٌ وَّلَا يُحْمَلَ فِيْهَا سِلَاحٌ لِّقِتَالٍ وَّلَا تُخْبَطَ فِيْهَا شَجَرَةٌ إِلَّا لِعَلَفٍ، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

په دې کښې په واضحه توګه ذکر دی چه دَ ګیادَ پاره دَ ونونه پاڼې شوکول جائز دی حالانکه په مکه کښې داسې کول جائز نه دی معلومه شوه چه په دواړو حرمین کښې فرق دې

③ دَ طبرانی یو حدیث دې دَ کوم الفاظ چه دا دی "احد جبل یحبنا ونحبه فاذ جئتموه فکلوا من شجره ولو من عضاه" احد غر په حرم مدینه کښې داخل دې بیا دَدې دَ ونونه په لازمی توګه څه پرې کول او خوړل دَدې خبرې دلیل دې چه په حرم مدینه او حرم مکه کښې فرق دې

④ دَ مشکوة شریف باب المزاح کښې دَ حضرت انس رضي الله عنه دَ میرنی رور ابو عمیر دَ روایت نه استدلال کړې دې چه هغه په پنجره کښې یوه مرغئی ساتلې وه حضورپاك منع کړې نه وو بلکه دَ مرغئی په مره کیدو باندې ئې تعزیت کړې او فرمائیل ئې "یا ابا عمیر ما فعل النغیر"؟

**د حرم مدنی د ښکار کولو په جزا کښې اختلاف** ① د جزا او سزا باره کښې د ائمه ثلاثه یوقول داسې دې چه د مکې په شان جزا او سزا په وی

② دویم قول داسې دې چه د جنایت کونکی سازوسامان او کپړې به په زور اخستې شی

**[٢٧٢٠] د مدینې تکلیف برداشت کول د ثواب سبب دې**

|  |
|---|
| ٢٧٢٠—[٣] ( )[١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] "«لَا يَصْبِرُ عَلَى لَأْوَاءِ الْمَدِينَةِ وَشِدَّتِهَا أَحَدٌ مِنْ أُمَّتِي [٣] إِلَّا كُنْتُ لَهُ شَفِيعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |

**ترجمه** [١] ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل زما په امت کې چې [٢] څوك هم په مدينه کې په سختی، لوږه او هلته په هر قسم تکلیف او مشقت صبر کوي، [٣] نو زه به د قیامت په ورځ د هغه شفاعت کوم. مسلم

**حل اللغات:** ① لَأْوَاءِ: أَيْ: شِدَّةِ جُوعِهَا: سخته لوږه (د مدینې).

**تسهیلات:**

**نوټ:** د دې حديث تشريح را روانه ده چه په مدينه کښې د مشقت په بنا استوګنه اختیارولو والا ته به دا مذکوره اجر او ثواب ملاويږی.

**[٢٧٢١] د مدینې د پاره د رسول الله ﷺ د برکت دعا**

|  |
|---|
| ٢٧٢١—[٤] ( )[١] وَعَنْهُ قَالَ: «كَانَ النَّاسُ إِذَا رَأَوْا أَوَّلَ الثَّمَرَةِ جَاءُوا بِهِ إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٢]- فَإِذَا أَخَذَهُ قَالَ: " اللَّهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِي ثَمَرِنَا، وَبَارِكْ لَنَا فِي مَدِينَتِنَا، وَبَارِكْ لَنَا فِي صَاعِنَا، وَبَارِكْ لَنَا فِي مُدِّنَا، [٣] اللَّهُمَّ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ عَبْدُكَ وَخَلِيلُكَ وَنَبِيُّكَ، وَإِنِّي عَبْدُكَ وَنَبِيُّكَ، وَإِنَّهُ دَعَاكَ لِمَكَّةَ وَأَنَا أَدْعُوكَ لِلْمَدِينَةِ بِمِثْلِ مَا دَعَاكَ لِمَكَّةَ وَمِثْلِهِ مَعَهُ [٤] ". ثُمَّ قَالَ: يَدْعُو أَصْغَرَ وَلِيدٍ لَهُ، فَيُعْطِيهِ ذَلِكَ الثَّمَرَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |

**ترجمه** [١] ابوهريره رضی الله عنه وایي چې د خلقو معمول وو، چې څه نوي ميوه به يې ليده نو هغه به يې د نبی کريم ﷺ په خدمت کې راوړه، [٢] او نبی کريم ﷺ چې به هغه ميوه واخسته، نو فرمايل به يې چې اې الله! ﷻ زمونږ په ميوو برکت واچوي، زمونږ په ښار کې برکت واچوی، زمونږ په صاع کې برکت واچوی (صاع د يوي پيماني نوم دی) [٣] زمونږ په مُد کې برکت واچوی (مُد هم د يوي پيمانې نوم دی) او اې الله! ﷻ ابراهيم ﷺ ستا بنده وو ستا خاص دوست وو، او ستا نبي وو، او زه هم ستا بنده يم او ستا نبي يم، ابراهيم ﷺ ستا څخه د مکې د پاره دعا غوښتلي وه (چې دې ايت فَاجْعَلْ أَفْئِدَةً مِنَ النَّاسِ الخ کې مذکوره

[١]) اخرجه مسلم فی باب الترغيب فی سکن المدينة والصبر علی لأوائها (رقم-٤٨٤ - (١٣٧٨) واحمد فی المسند: ٢/٢٨٨

[٢]) اخرجه مسلم فی كتاب الحج /باب فضل المدينة. ودعاء النبی صلی الله عليه وسلم فيها بالبركة. وبيان تحريمها، وتحريم صيدها وشجرها. وبيان حدود حرمها (رقم-٤٧٣ - (١٣٧٣) والترمذی فی كتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب ما يقول إذا رأى الباكورة من الثمر (رقم-٣٤٥٤) وابن ماجة فی كتاب الأطعمة /باب إذا أتی بأول الثمرة (رقم-٣٣٢٩) واحمد فی المسند: ٢/٣٣٠

ده او زه هم ستا څخه د مديني د پاره دعا غواړم. دغه شان دعا چې ابراهيم ﷺ د مکې د پاره غوښتې وه. بلکه د هغه په شان نوره هم دعا (يعني ابراهيم ﷺ چې کومه دعا غوښتلې وه. زه نه يواځې هغه شان دعا بلکه د هغه څخه هم دوچنده دعا غواړم) بيا ابوهريره ﷺ اوويل چې د هغه څخه روسته به نبي کريم ﷺ د خپل خاندان د ټولو څخه کشر ماشوم را وغوښتلو. او هغه ميوه به يې هغه ته ورکوله (چې هغه وړوکي خوشحاله شي) مسلم

**حل اللغات** ① صَاعِنَا: صاع د ناپ کولو يو مقدار او پيمانه ده چه د اته رطلو يعنې د اته پونډونو برابر دي. په دې کښې تقريبا ١١٢، ٥٢ سيره يا ٥۶ سيره کجوري راځي ② مُدِّنَا: مد د ناپ کولو يو مقدار او پيمانه ده چه د دوه رطلو يعنې د دوو پونډونو برابر دي ③ أَصْغَرَ وَلِيدٍ: أَيْ وَلَدٍ صَغِيرٍ: وړوکي ماشوم

**تسهيلات: قوله: وَمِثْلَهُ مَعَهُ:**

**د مديني د فضيلت مستدل:** يعنې څه چه په مکه کښې د حضرت ابراهيم خليل الله ﷺ په دعا سره تا برکتونه نازل کړي دي هغه زما په دعا سره مديني ته هم ورکړه بلکه د هغې په دوچنده باندې ورعطاکړه. د دې لفظ نه امام مالك رحمه الله استدلال کړې دي چه مدينه د مکې نه افضله ده ځکه چه کوم اجر اوثواب په مکه کښې دي د هغې په دوچند د مديني د پاره غوښتلي شوې دي مضبوط دليل دي

**[٢٧٣٢] دَمديني دَحرمت ذکر**

٢٧٣٢-[٥] (١) وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-عَنِ النَّبِيِّ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [١]-قَالَ: «إِنَّ إِبْرَاهِيمَ حَرَّمَ مَكَّةَ فَجَعَلَهَا حَرَامًا [٢] وَإِنِّي حَرَّمْتُ الْمَدِينَةَ [٣] حَرَامًا مَا بَيْنَ مَأْزِمَيْهَا أَنْ لَا يُهْرَاقَ فِيهَا دَمٌ، وَلَا يُحْمَلَ فِيهَا سِلَاحٌ لِقِتَالٍ، [٤] وَلَا يُخْبَطَ فِيهَا شَجَرَةٌ إِلَّا لِعَلَفٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [١] ابوسعيد ﷺ د نبي کريم ﷺ څخه نقل کوي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل حضرت ابراهيم ﷺ مکې ته بزرگي ورکړه او هغه يې حرم وګرځولو (يعني د مکې بزرګي او حرمت يې ظاهر کړي) [٢] او ما مديني لره بزرګي ورکړيده. [٣] او د مديني د دواړو غاړو د منځ د بزرګي (تقاضا) دا ده چې نه خو دي په دې کې خونريزي وشي نه دي هلته د جنګ د پاره وسله پورته کړل شي، [٤] او نه دي د دې ونو پاڼي وشنډل شي. البته د څاروو د خوراك د پاره شنډل کيدی شي. مسلم

**حل اللغات**: ① مَأْزِمَيْهَا: د مازم تثنيه ده. أَي الْمَوْضِعُ الضَّيِّقُ بَيْنَ الْجِبَالِ: د غرونو په مينځ کښې تنګ ځاني ته وائي. د دې نه مراد دواړه اطراف د مديني دي ② لَا يُهْرَاقَ: نه به شي تويولي او بيهولي ③ لَا يُخْبَطَ: أَيْ لَا تُقْطَعُ: نه به شي شنډلي. نه به شي کټ کولي ④ لِعَلَفٍ: اسْمُ الْحَشِيشِ: د څاروو وابه. يعنې د مديني اوني کټ کولي نه شي البته د څاروو د ګياه او ونو په طور ني شنډلي شي،

[1] اخرجه مسلم في باب الترغيب في سكن المدينة والصبر على لأوائها(رقم-٤٧٥ - (١٣٧٤) واحمد في المسند

**تسهيلات:**

**قوله:** وَإِنِّي حَرَّمْتُ الْمَدِينَةَ:

**د تحريم څخه مراد:** جمهور دَدې نه دَ ونو پرې كول اوښكار مراد اخلي چه دواړه ناجائز دي احناف دا لفظ په عظمت او احترام باندې حمل كوي او احترام په هر مسلمان باندې لازم دي

## [۲۷۳۲] دَ حضرت سعدبن ابی وقاص رضي الله عنه عجيبه قصه

وس-[٦] ()[١] وَعَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ أَنَّ سَعْدًا رَكِبَ إِلَى قَصْرِهِ بِالْعَقِيقِ[٢] فَوَجَدَ عَبْدًا يَقْطَعُ شَجَرًا أَوْ يَخْبِطُهُ فَسَلَبَهُ[٣] فَلَمَّا رَجَعَ سَعْدٌ جَاءَهُ أَهْلُ الْعَبْدِ فَكَلَّمُوهُ أَنْ يَرُدَّ عَلَى غُلَامِهِمْ أَوْ عَلَيْهِمْ مَا أَخَذَ مِنْ غُلَامِهِمْ[٤] فَقَالَ: مَعَاذَ اللّٰهِ أَنْ أَرُدَّ شَيْئًا نَفَّلَنِيهِ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-وَأَبَى أَنْ يَرُدَّ عَلَيْهِمْ. (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه** [١] عامر ابن سعد (تابعي) رحمه الله وايي چې (يوه ورځ) حضرت سعد ابن ابي وقاص رضي الله عنه چې په عشره مبشره كې يو جليل القدر صحابي دی، د خپلي حويلي طرف ته (چي مديني ته نزدې) په مقام عقيق كې وه اوسيدو ته لاړو.[٢] په لاړ كې هغه يو غلام و ليدلو. چې يوه ونه يې پريكوله، يا د هغه ونې څخه يې پاڼې څنډلې، حضرت سعد رضي الله عنه (په طور د سزا او تنبيه) د هغه غلام څخه جامې واخستې[٣] بيا چې هغه (مديني ته) واپس راغلو نو د غلام مالك د هغه په خدمت كې حاضر شو، او دا خبري يې وكړې، او چې هغه كوم شی د هغه د غلام څخه اخيستی دی (يعني د هغه جامې) هغه دې غلام ته واپس وركړې يا هغه مالكانو ته دې وركړې.[٤] حضرت سعد رضي الله عنه وفرمايل چې په الله جل جلاله پناه غواړم زه هغه څيز څرنګه واپس وركولی شم، چې ماته نبی كريم صلى الله عليه وسلم راكړی دی، نو سعد رضي الله عنه د جامو د وركولو څخه بالكل انكار وكړې، مسلم

**حل اللغات:** ① اَلْعَقِيقُ: اِسْمُ مَوْضِعٍ قَرِيبٍ مِنَ الْمَدِينَةِ: مديني ته نزدې د يوځاى نوم دي ② يَخْبِطُهُ: أَيْ يَخْبِطُ وَرَقَ شَجَرٍ: ونه نې څنډله چه پاڼې ترې راغورځيږي ③ فَسَلَبَهُ: أَيْ أَخَذَ ثِيَابَهُ: جامې نې ترې واخستلې. ④ نَفَّلَنِيهِ. اي جعلنيه او اعطانيه نفلا: چه دا نې زما دپاره نفل ګرځولي دي

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْ أَرُدَّ شَيْئًا نَفَّلَنِيهِ:

### د مديني ونې كټ كولو په كفاره كښې مذاهب:

يعنی دَ حضوراكرم صلى الله عليه وسلم وصيت ووكه چرې څوك سړې په مدينه منوره كښې ونه پرې كړی يادَهغې پاڼې اوڅندی نودَهغه سړی كپړې په زور واخلئی هم دغه دَ مديني دَ ونو پرې كولوسزا ده نوما دَ حضورپاك دَ وصيت مطابق اخستې دی زه به دا كله هم واپس نه كرم

١) اخرجه مسلم في باب الترغيب في سكن المدينة والصبر على لأوائها(رقم-٤٦١ - (١٣٦٤)واحمد في المسند: ١٦٨/١

كه چري ته ډير شور كوي نوزه به د خپل طرف نه د دي قيمت در كرم

① د امام مالك رحمه الله اوامام شافعي رحمه الله په نيز داسي سري چه په مدينه كښي ونه پري كري د مكي په شان جزائي نه ده البته دا كار په مدينه كښي د كفاره اداكولونه بغيرحرام دي بعض نور علماء د مكي په شان د كفاره قائل دي

② د احنافو په نيز په مدينه كښي داعمل كول مكروه دى دلته د ونې پرې كولوذكر دې په راتلونكى حديث نمبر(٢٧٢٣) كښي دى چه حضرت سعد رضي الله عنه د ښكارمتعلق د ښكارى سامان اخستې دي

**[٢٧٢٤] دَمدينې دَهوادَپاره دَرسول اكرم ﷺ دعا**

٢٧٢٤-[٧] (١) وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: «لَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْمَدِينَةَ ١ وُعِكَ أَبُو بَكْرٍ وَبِلَالٌ، فَجِئْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَخْبَرْتُهُ ٢ فَقَالَ اللَّهُمَّ حَبِّبْ إِلَيْنَا الْمَدِينَةَ كَحُبِّنَا مَكَّةَ أَوْ أَشَدَّ ٣ وَصَحِّحْهَا وَبَارِكْ لَنَا فِي صَاعِهَا وَمُدِّهَا ٤ وَانْقُلْ حُمَّاهَا فَاجْعَلْهَا بِالْجُحْفَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ١ بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې نبى كريم ﷺ او صحابه رضي الله عنهم چې مكي څخه په هجرت مديني ته راغلل، ٢ نو حضرت ابوبكر رضي الله عنه او بلال رضي الله عنه په تبه كي مبتلا شو، نو زه د نبى كريم ﷺ په خدمت كي حاضره شوم، او د هغوئ د ناجوړى څخه مي خبر كړي. ٣ نو نبى كريم ﷺ دا دعا وغوښتله، اې الله! ﷻ ته مدينه زمونږ محبوبه جوړه كړي، څرنګه چې تا مكه زمونږ محبوبه جوړه كړي وه، بلكه د هغه څخه هم زياته ٤ او د مديني اوبه او هوا درست كړي او د مديني په صاع او مد كي زمونږ د پاره بركت عطا كړي. ٥ او د مديني تبه (يعني د تبي كثرت او وباء) د دى ځاى څخه ويستلو سره جحفه ته منتقل كړي، بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① وُعِكَ: الْوَعْكُ الْحُمَّى: وَعْك سختې تبې ته وائي. ② حُمَّاهَا: أَيْ وَبَاءَهَا وَشِدَّتَهَا: تبه د مديني (د مديني د تبي تكليف او سختي). ③ بِالْجُحْفَةِ: جحفه د مكي او مديني په مينځ كښې د يومقام نوم دي كوم ته چه نن صبا رابغ وائى هغه وخت به دلته يهود اوسيدل په دي وجه حضورپاك دا دعا اوكړه

**تسهيلات: قوله: وُعِكَ:**

**د مديني منورې دآب وهوا ناساپه راتلل:** سختې تبې ته وائى دَمكې مكرمې آب وهوا زياته صحت منده وه دَدې ځائى نه چه صحابه كرام كله مدينې ته لاړل نو بيماران شو ځكه چه مدينه دَ سمندر په غاړه ده دَدې آب وهوا دومره صحت منده نه وه. نو بيا حضورپاك دَمدينې وبائى مرضونه دَجحفې طرف ته منتقل كولو دعا اوغوښتله. الله تعالى دعا قبوله كره دعا دا وه "اللهم حبب الينا المدينة الخ"

---

[١] اخرجه البخاري في كتاب الحج باب كراهية النبي صلى الله عليه وسلم أن تعرى المدينة (رقم-١٨٨٩) ومسلم في باب الترغيب في سكن المدينة والصبر على لأوائها (رقم-٤٨٠ - (١٣٧٦) (١٠٠١/٢) واحمد في المسند: ٥٦/٦

**قوله**: وُعِكَ أَبُو بَكْرٍ وَبِلَالٌ:

**په ابوبکر او بلال رضى الله عنهما تبه راتلل**: دَ حضرت ابوبکرصديق رضی الله عنه اوحضرت بلال رضی الله عنه نوم نی په خاص توګه څکه واخستلو چه هغوی د تبې د مصيبت په وخت مکه يادولوسره يوڅو شعرونه ونيلي وو حضرت ابوبکر رضی الله عنه اوفرمانيل

كل امرء مصبح في اهله والموت ادنى من شراك نعله

حضرت بلال رضی الله عنه دَ مکې دَ اوبو دَ چينو او وښو نوم اخستو سره داسې اوفرمانيل

الاليت شعري هل ابيتن ليلة بوادوحولي اذخروجليل

وهل اردن يوما مياه مجنة وهل تبدون لي شامة وطفيل

**[٢٧٣٥] دَ مدينې دَپاره دَ رسول الله ﷺ دعاقبوله شوه**

٢٧٣٥-[٨] (١) ١ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ فِي رُؤْيَا النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي الْمَدِينَةِ ٢ «رَأَيْتُ امْرَأَةً سَوْدَاءَ ثَائِرَةَ الرَّأْسِ خَرَجَتْ مِنَ الْمَدِينَةِ حَتَّى نَزَلَتْ مَهْيَعَةَ، ٣ فَتَأَوَّلْتُهَا أَنَّ وَبَاءَ الْمَدِينَةِ نُقِلَ إِلَى مَهْيَعَةَ وَهِيَ الْجُحْفَةُ»، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** ١ عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما مدينې سره متعلق د نبی کريم ﷺ د خوب په سلسله کې دا حديث نقل کوي ٢ چې نبی کريم ﷺ وفرمايل چې ما يوه توره ښځه وليده. چې د هغه ويښتان خواره واره (بير) وو هغه د مدينې څخه ووتله مهيعه ته لاړه. ٣ بيا نبی کريم ﷺ وفرمايل چې ما د دې خوب تعبير دا وڅکلی، چې د مدينې وباء مهيعه يعنی د جُحفه طرف ته منتقل کړل شويده، بخاري

**حل اللغات**: ① ثَائِرَةَ الرَّأْسِ: بير سر والا، چې ويښتنه ئې ګډ وډ وی ② مَهْيَعَةَ: هم دې ته جحفه وائی ③ فَتَأَوَّلْتُهَا: ددې نه مراد تعبير کول دی.

**[٢٧٣٦] مدينه پريښودل او بل ځائی سکونت اختيارول مناسب نه دی**

٢٧٣٦-[٩] (٢) ١ وَعَنْ سُفْيَانَ بْنِ أَبِي زُهَيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ٢ «يُفْتَحُ الْيَمَنُ فَيَأْتِي قَوْمٌ يَبُسُّونَ فَيَتَحَمَّلُونَ بِأَهْلِيهِمْ وَمَنْ أَطَاعَهُمْ، وَالْمَدِينَةُ خَيْرٌ لَهُمْ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ، ٣ وَيُفْتَحُ الشَّامُ فَيَأْتِي قَوْمٌ يَبُسُّونَ فَيَتَحَمَّلُونَ بِأَهْلِيهِمْ وَمَنْ أَطَاعَهُمْ، وَالْمَدِينَةُ خَيْرٌ لَهُمْ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ، ٤ وَيُفْتَحُ الْعِرَاقُ فَيَأْتِي قَوْمٌ يَبُسُّونَ فَيَتَحَمَّلُونَ بِأَهْلِيهِمْ وَمَنْ أَطَاعَهُمْ، وَالْمَدِينَةُ خَيْرٌ لَهُمْ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ». (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** ١ سفيان ابن ابن زهير رضی الله عنه وايي چې ما واوريدل. نبی کريم ﷺ فرمايل ٢ هر کله چې يمن فتح شي. نو په مدينه کې به داسې خلق پيدا شي چې د محنت او مشقت څخه

---

[١] اخرجه البخارى فى كتاب التعبير /باب المرأة السوداء (رقم-٧٠٣٩) والترمذى فى كتاب الرؤيا عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى رؤيا النبى صلى الله عليه وسلم الميزان والدلو (رقم-٢٢٩٠) وابن ما جة فى كتاب تعبير الرؤيا /باب تعبير الرؤيا (رقم-٣٩٢٤) واحمد فى المسند:١٠٧/٢

[٢] اخرجه البخارى فى كتاب الحج /باب من رغب عن المدينة (رقم-١٨٧٥) واحمد فى المسند:٢٢٠/٥

نرې او سيدو سره د دنيا د راحت او آرام طلب ګار به شي، نو هغه خلق به خپل اهل وعيال سره د مديني څخه ولاړ شي، حالانکه مدينه به د هغوئ د پاره بهتر خاى وي. که هغوئ د مديني بهتري وپيژني، نو مدينه به نه پريږدي. ﴿٣﴾ هر کله چې شام فتح شي، نو يوه ډله به راشي، هغه خلق به د خپل اهل وعيال سره د مديني څخه ولاړ شي، حالانکه مدينه به د هغوئ د پاره بهتر خاى وي، که هغه وربانديې پوهه شي. ﴿٤﴾ د غه شان چې عراق فتح شي، نو يوه ډله به راشي، هغه خلق به د خپل اهل وعيال اخستو سره د مديني څخه ولاړ شي. حالانکه مدينه به د هغوئ د پاره بهتر خاى وي، که هغه وربانديې پوهيږي ،نو مدينه به نه پريږدي، بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① يَبُسُّونَ: أَيْ يَسِيرُونَ سَيْرًا شَدِيدًا: تيز او په منډه منډه به خى ،دمديني نه به اوخى، ② فَيَتَحَمَّلُونَ: أَيْ يَرْتَحِلُونَ: نو کوچ به اوکړى يعنى لاړ به شى ،د مديني نه،

**تسهيلات:**

**قوله:** فَيَتَحَمَّلُونَ بِأَهْلِيهِمْ:

**د حديث په مطلب کښې دوه اقوال:** ① دَدې جملې يومطلب دا کيدې شى چه کله يمن فتح شى نو په مدينه کښې به هغه وخت څه داسې خلق پيدا شوى وى چه دَ مديني سکونت به پريږدى اودَيمن طرف ته په منډه خى حالانکه دَهغوى دَپاره به مدينه بهتره وى په دې صورت کښې دا دَ حضورپاک دَ طرف نه دَ مستقبل باره کښې پيشنګوئى ده

② دويم مطلب ئې دا کيدې شى چه کله يمن فتح شى نوڅه خلق به دَ مديني نه يمن ته راشى اودَ دې معاشه به اوکړى دَهغوى به يمن خوښ شى نوواپس به لاړشى دَ مديني نه به خپل بال بچ راؤچت کړى او يمن ته به ئې راولى حالانکه دَهغوى دَپاره مدينه بهتر ده که په هغوى کښې لږ شان هم شعور وى

**مدينه د پريښودو ځاې نه دې:** ځکه چه مدينه په دينى او دنياوى هرلحاظ سره دَبرکتونو نه ډك ښاردې دا يومهبط وحى ده اودلته عظيم پيغمبر آرام فرمادې

| | |
|---|---|
| يا خير من دفنت بالقاع اعظمه | فطاب من طيبهن القاع والاكم |
| نفسى الفداء لقبر انت ساكنه | فيه العفاف وفيه الجود والكرم |
| فلك پہ ڈھونڈتا تھا جس کو اختر | زمیں پہ وہ خزانہ مل گیا ہے |

**په حديث کښې دشام او عراق ذکر:** کومه تشريح چه دَ يمن پورته کړې شوې ده هم دغه تشريح دَ شام اوعراق متعلق هم ده حضورپاك پيشنګوئى فرمائيلې چه يمن شام اوعراق به فتح کيږى داعلاقې به ښې او آبادې وى نودَمديني څه خلق به هلته دَ تلو خواهش ښکاره کوى نبى کريم ﷺ داسې خلق په ترغيبى انداز کښې پوهه کړل مدينه بهتر ده دَدې خالى کولوسره نورو علاقو ته مه ځئ په دې سره به دَدې ښار رونقونه کم شى

**[۲۷۳۷] کله چه مدينه دارالخلافه وى مسلمان به فاتح وى**

۲۷۳۷-[۱۰] ( )[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «وَأُمِرْتُ بِقَرْيَةٍ تَأْكُلُ الْقُرَى». يَقُولُونَ يَثْرِبَ وَهِيَ الْمَدِينَةُ تَنْفِي النَّاسَ كَمَا يَنْفِي الْكِيرُ خَبَثَ الْحَدِيدِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** [۱] ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] ماته د يوې داسې ابادۍ طرف ته د هجرت كولو حكم راكول شوى دى، چې په ټولو اباديو به غالبه وي، او هغه ابادۍ ته خلق يثرب وايي، [۳] او اوس هغه مدينه ده، چې خراب خلق د ځان څخه داسې اوباسي. ځرنګه چې بټۍ د وسپني څخه خيري اوباسي. بخاري، مسلم

**حل اللغات**: ① تَأْكُلُ الْقُرَى: أَيْ تَغْلِبُهَا: غالب به راځي په نورو آبادو او ښارونو باندې (لكه انصار د مديني چه په اسلام راوړلو سره په نورو ښارونو غالب شو، ② يَثْرِبَ: فَهُوَ اللَّوْمُ وَالتَّوْبِيخُ: د يثرب معنى ده ملامتيا او زورونه، دا د مديني زوړ نوم وو، د اسلام په بركت سره ددې نوم مدينه طيبه كيخودې شو يعني پاک او عزت مند ښار ③ تَنْفِي النَّاسَ: أَيِ الْخَبِيثِينَ: تَنْفِيْ په معنى د نفى ده دلته ترې مراد ويستل دى اود الناس نه پليت او شرير خلق مراد دى، يعنى دا مدينه اوباسى هغه خلق چه پليت او شرير وى ④ الْكِيرُ: دلوهار بټۍ، ⑤ خَبَثَ: پليتئ ته وائى دلته ترې مراد د اوسپنې زنګ دې

**تسهيلات**:

**قوله**: تَأْكُلُ الْقُرَى:

**د تاكل مفهوم**: يعنى ماته الله تعالى دَداسې ښارطرف ته دَ هجرت كولوحكم راكړې دې چه دَ دنيا ټول ښارونه به اوخورى دَدې جملې مطلب دادې چه كوم خلق مدينه خپل دَ اوسيدو ځائى جوړوى نوهغه په نورو خلقو باندې غالب راځى اودَ مدينې ښاردَ دنيا ټول ښارونه فتح كوى اوخپل ماتحت ئى جوړوى

**د مدينې خصوصيت**: دَدې ښارخصوصيت دادې چه دا دكومو خلقو مركز جوړشو باقى علاقې به دَ دغه خلقو په لاس كنبې وى چنانچه په تاريخى اعتبارسره علماؤ ليكلى دى

① كله چې عمالقه مدينه خپل مركز جوړكړو نوهغوى دَ نورو علاقودَپاره فاتح پاتې شو

② كله چه يهوديانودا مركز جوړكړو نوهغوى په عمالقه باندې غالب راغله

③ بيا چه كله اوس اوخزرج داخپل مسكن جوړكړو نوهغوى په يهودو باندې غالب راغله بيا چه كله حضورپاك خپلو مهاجرينو ملګرو سره مدينې ته تشريف راوړو نومهاجرين او انصار په يهودو باندې غالب راغله

---

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب الحج/باب فضل المدينة وأنها تنفى الناس (رقم-۱۸۷۱)ومسلم فى كتاب الحج /باب المدينة تنفى شرارها (رقم-۴۸۷ - (۱۳۸۲) والترمذى فى كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى فضل المدينة(رقم-۳۹۲۰)واحمدفى المسند: ۲/ ۳۸۴

④ بـ چه کله دا ښار دَ اسلامی خلافت مرکزجوړشو نوهغوی دَ دنیا ټول ښارونه فتح کړل. یعنی دوړ نبوی دوړ صدیقی دوړ عمری او دورعثمانی کښې چه ترکومې پورې مدینه دَخلافت مرکز پاتې شو نواسلام په فاتحانه انداز سره وړاندې تللو

⑤ بې دحضرت علی رضي الله عنه په دورکښې مرکز دَ مدینې په ځائې کوفه جوړشو نواسلامی فتوحات رامنع شو

**قوله**: يَقُولُونَ يَثْرِبَ:

**د یثرب نوم وئیلو د ممانعت وجه**: دَمدینې پخوانې زوړ نوم یثرب وو دکوم معنی چه هلاك او فساد اودَ زجر اوتوبیخ راځی یا دَ یوظالم سړی په نوم باندې دا نوم وو حضورپاك دَدې نوم مدینه کیخودو ځکه چه یثرب دَ معنې په اعتبار سره ښه نوم نه وو یا دَ یوکافر په تارځی یادګار باندې دا نوم وو اوحضورپاك به خراب نومونه په خو نومونوسره بدلون. اوس ورته یثرب وئیل جائز نه دی.

**قوله**: الْكِيرُ:

**د تشبیه وجه**: لوهار چه کله اوسپنه په کوټله کښې ایږدی نوهغه کوټله دَ خاوړې نه جوړه یوه ګول چوتره کښې وی لکه چه دا یوه بهټئی وی په دې چوتره کښې دَ شاطرف نه یو سوری وړاندې کیخودې شوې کوټلې طرف ته راوځی په دې سوری کښې لوهار مشکیزه ایږدی اوبوسرې دې مشکیزې له په دواړو لاسونو باندې حرکت ورکولوسره هوا ورکوی او بیائی وړاندې دَ بهټئی طرف ته ورپریږدی په کوم سره چه اوسپنه ګرمیږی او نرمه شی هم دغه مشکیزې ته په دې حدیث کښې الکیر وئیلې شوې دې

**قوله**: خَبَثَ الْحَدِيدِ:

**د باطل پرستو دپاره په مدینه کښې د سکونت مشکل کیدل**: دې نه مراد دَ اوسپنې خیرې وغیره دې اوسپنه چه کله ګرمه شی سره شی نودَ هغې نه خیرې لاړشی اودَ خیزونودَ جوړولودَپاره اوسپنه خالص پاتې کیږی دغه شان مدینه منوره خبیث اوخرابې عقیدې والا خلق دَ ځیل ځان نه بهر اوباسی

**[٢٧٣٨] دَالله تعالی دَطرف نه دَمدینې نوم**

٢٧٣٨- [١١] (¹) ① وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ ② «إِنَّ اللَّهَ سَمَّى الْمَدِينَةَ طَابَةَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** ① جابر ابن سمره رضي الله عنه وایې چې ما واوریدل چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا فرمایل ② الله جل جلاله د مدینې نوم طابه ایښې دی او په یو بل روایت کې طیبه دی،، مسلم

**حل اللغات**: ① طَابَةَ: د طابه معنی د شرک ځخه پاکه.اودانسانی طبعیتونو سره موافقه.

(¹) اخرجه مسلم في كتاب الحج /باب المدينة تنفي شرارها (رقم-٤٩١ - (١٣٨٥) واحمد في المسند:١٠٨/٥

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ اللّٰهَ:

**د مديني منورې بل نوم:** يعنى الله تعالى دَ محمد عربى ﷺ په ژبه مبارکه باندې دَ مدينې نوم طابه کيخودو او په يوروايت کښې دَ طيبه لفظ دې دَ کوم معنى چه پاك خوشحاله اوتازه راخى دَ مدينې ښارهم دَ شرك نه پاك دې اودَې اوسيدونکى هم خوشحاله اوتازه دى دَ مدينې دَ ٩۴ نومونوذکر دې نه وړاندې تيرشوې دې

**[٢٧٢٩] غلط خلق دَ مديني منورې نه تختي**

٢٧٢٩-[١٢] ( )١ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ «أَنَّ أَعْرَابِيًّا بَايَعَ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ٢ - فَأَصَابَ الْأَعْرَابِيَّ وَعَكٌ بِالْمَدِينَةِ، ٣ فَأَتَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ أَقِلْنِي بَيْعَتِي، ۴ فَأَبَى رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ثُمَّ جَاءَهُ فَقَالَ أَقِلْنِي بَيْعَتِي فَأَبَى. ۵ ثُمَّ جَاءَهُ فَقَالَ أَقِلْنِي بَيْعَتِي فَأَبَى فَخَرَجَ الْأَعْرَابِيُّ فَقَالَ: رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِنَّمَا الْمَدِينَةُ كَالْكِيرِ تَنْفِي خَبَثَهَا وَيَنْصَعُ طِيبُهَا». (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** ١ جابر ابن عبد الله ﷺ وايي چې يوه صحرايي د نبى کريم ﷺ په خدمت کې د ږاتې کيدو د نبى کريم ﷺ سره) بيعت وکړي ٢ يو څه ورځي وروسته) هغه د مدينې په سخت تبه کې مبتلا شو (او په دې صورت کې د هغه په مدينه کې اوسيدل خوښ نشو او د هغه ځاى څخه د تلو اراده يې وکړه) ٣ نو د نبى کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو. هغه اوويل چې اې محمده ﷺ ته زما بيعت فسخ کړه، ۴ خو نبى کريم ﷺ انکار وکړي، هغه بيا د نبى کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو، هغه اوويل چې زما بيعت منسوخ کړه. نبى کريم ﷺ دا خل هم انکار وکړي، د دې څخه روسته هغه بيا راغلو او هغه اوويل چې زما بيعت فسخ کړه، نبى کريم ﷺ بيا انکار وکړي، ۵ نو هغه د نبى کريم ﷺ د اجازت څخه بغير د مدينې څخه وتښتيدلى (نبي کريم ﷺ ته چې د دې علم وشو) نو وي فرمايل چې مدينه د بټى په شان ده چې خپلى خيرې لرې کوي او خپل ښه سرى ښائسته کوي (يعني خراب سرى بهر اوباسي، او پاك باطن او مخلص سرى د پليت ذهن او بد طينت سرې څخه جدا کوي) بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① وَعَكٌ: أي الحُمّى: وَعَك سختې تبې ته وائى ② أَقِلْنِي: دا استعاره ده د إِقَالَةِ الْبَيْعِ نه، وَهُوَ إِبْطَالُهُ يعنى بيع فسخ کول، نوده هم د بيعت فسخ کولو مطالبه اوکړه ③ خَبَثَهَا: پليتى ته وائى دلته ترې مراد خيرې او زنګ دې ④ وَيَنْصَعُ: د يمنع په وزن دې خالص کوى، پاکوى

١) اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب: لا يدخل الدجال المدينة (رقم -١٨٨٣) ومسلم في باب في خروج الدجال ومكثه في الأرض، ونزول عيسى وقتله إياه، وذهاب أهل الخير والإيمان، وبقاء شرار الناس وعبادتهم الأوثان، والنفخ في الصور، وبعث من في القبور(رقم-١٢٣ - (٢٩٤٣) وأحمد في المسند ٣٠٦/٣

## [٢٧٤٠] د مديني څخه د خرابو خلقو وتل

[١٣] ( ) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَنْفِيَ الْمَدِينَةُ شِرَارَهَا كَمَا يَنْفِي الْكِيرُ خَبَثَ الْحَدِيدِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [١] ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] قيامت به تر هغه وقته نه راځي تر څو چې مدينه خپل شرير (يعني خراب) خلق داسې ونه اوباسي څرنګه چې بټۍ د وسپنې څخه خيري اوباسي، مسلم

**حل اللغات:** ① تَنْفِيَ: أي تُخرِجَ: تَنْفِيْ په معنى د نفى ده دلته ترې مراد ويستل دي او د الناس نه پليت او شرير خلق مراد دي، يعنى دا مدينه اوباسى هغه خلق چه پليت او شرير وى

**تسهيلات:**

**قوله:** أَقِلْنِي بَيْعَتِي:

**د ايمان د بيعت د ماتولو عدم جواز:** دې کلي وال دَ ايمان دا سودا لکه دَ تجارتي سودا ګنړلې وه که دَ اخستلو نه پس ئې خوښ نه شي نو واپس به ئې کړي حضورپاك دَهغه مطالبه ختمه کړه ځکه چه دَاسلام دَ بيعت فسخ کول جائزنه وو دغه شان که دا بيعت په مدينه کښې د اوسيدو وو نوبيا هم دَهغې فسخ کول مناسب نه ووځکه چه په دې سره به دَ مديني هجران لازم راتللو په دې وجه حضورپاك صفا انکاراوکړو هغه سړې بغيردَ اجازت نه لاړو نو حضورپاك اوفرمائيل چه دَمديني مثال دَ اوسپنې دَ بهټئي دې که اوسپنه خيرنه وي نودَهغې خيرې وغيره هم لرې کوي اوکه چرې اوسپنه صفا وى نوهغه نوره هم پړقه وى دغه شان که په مدينه کښې خراب خلق اوسيږي نومدينه هغه بهر اوباسى اوکه چرې ښه خلق اوسيږي نومدينه هغوى نور صفا اوښائسته کوي

**په مدينه کښې د خرابو خلقو په اوسيدلواشکال:** اوس سوال دادې چه دغه وخت په مدينه کښې ډيرزيات خبيث خلق پټ شوى دى دَاهل بدعت بريليانو ځايونه دى او ډيرزيات خلق چه دَ هغوى باطن خراب دې هلته اوسيږي دَ خراب باطن خلق هلته اوسيږي نودَ مديني دغه ذکر شوې خاصيت ولې نه ښکاره کيږي؟

**جوابونه:** ① رومبې جواب دادې چه دَ مديني داخاصيت دَ رسول الله ﷺ مبارکي زمانې سره وو

② دَ مديني دَ خاصيت دَ ظهوردا حکم به قرب قيامت کښې وى کله چه دجال مديني ته رانيزدې شي نو په مدينه کښې به درې ځل زلزله راځي دَ کوم په وجه چه دننه اوسيدونکي ټول منافقان مدينه پريخودوسره دجال سره دَ ملاقات دَ پاره ځي

---

( ) اخرجه مسلم في صحيح رقم الحديث ٤٨٧/ ١٣٨١

③ دا هم كيدې شي چې دَدې خاصيت تعلق هرې زماني سره نه وي او مفسد خلق مدينه منوره وخت په وخت بره كوي او دَ زماني حالات په دې گواه دی كه چرې داسې جملې بې راشي نو هغه هم د دې توضيح په رنړا كښې كنړل پكار دی

**[٢٧٤١] مدينه به دَ دجال دَ داخليدو او طاعون دَمرض نه محفوظ وي**

٢٧٤١-[١٤] (١) وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②«عَلَى أَنْقَابِ الْمَدِينَةِ مَلَائِكَةٌ لَا يَدْخُلُهَا الطَّاعُونُ وَلَا الدَّجَّالُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ① ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د مديني په لارو يا د هغه په دروازو په طور د نگهبان فرښتې متعين (مقرري) دي. نه خو به په مدينه كې د طاعون ناروغي داخليږي، او نه به هلته دجال داخليږي. بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ① أَنْقَاب: جمع د نَقْب ده په سكون د قاف سره. وَهُوَ الطَّرِيقُ بَيْنَ جَبَلَيْنِ: د دوه غرونو په مينځ كښې لارې ته وائي، خو دلته ترې مطلق لار مراد ده. يا ددې نه مراد دروازې دی ② الطَّاعُونُ: طاعون يو وبائي مرض دې چه په دې كښې د بدن په نرم ځائې مثلاً ترخ، پندې يا خيته وغيره بندې زخم پيدا كيږي

**تسهيلات:**

**قوله:** عَلَى أَنْقَابِ الْمَدِينَةِ مَلَائِكَةٌ:

**د انقاب په مصداق كښې دوه اقوال:**

① امام طيبي فرمائي چه ددې نه مراد مطلق لاره ده چه كومه هم مدينه طرف ته ورځي

② د أنقاب نه مراد د مديني دروازې دي.

**قوله:** لَا يَدْخُلُهَا الطَّاعُونُ.

**د طاعون په مصداق كښې دوه اقوال:** ① طاعون څخه مراد د طاعون بيماري ده

② د طاعون څخه هر يو وبائي مرض چه مدينه ته به يو مرض هم نشي داخليدې

**[٢٧٤٢] د مدينې حفاظت**

٢٧٤٢-[١٥] (١) ① وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②«لَيْسَ مِنْ بَلَدٍ إِلَّا سَيَطَؤُهُ الدَّجَّالُ إِلَّا مَكَّةَ وَالْمَدِينَةَ③ لَيْسَ نَقْبٌ مِنْ أَنْقَابِهَا إِلَّا عَلَيْهِ الْمَلَائِكَةُ صَافِّينَ يَحْرُسُونَهَا④ فَيَنْزِلُ السَّبِخَةَ فَتَرْجُفُ الْمَدِينَةُ بِأَهْلِهَا ثَلَاثَ رَجَفَاتٍ⑤ فَيَخْرُجُ إِلَيْهِ كُلُّ كَافِرٍ وَمُنَافِقٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[١] اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب: لا يدخل الدجال المدينة (رقم-١٨٨٠) ومسلم في صحيح رقم الحديث ١٣٧٩/٤٨٥ واحمد في المسند ٢٩٣/٣

[٢] اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب: لا يدخل الدجال المدينة (رقم-١٨٨١) ومسلم في باب في خروج الدجال ومكثه في الأرض. ونزول عيسى وقتله إياه. وذهاب أهل الخير والإيمان. وبقاء شرار الناس وعبادتهم الأوثان. والنفخ في الصور. وبعث من في القبور (رقم-١٢٣-(٢٩٤٣) واحمد في المسند ١٩١/٣

**ترجمه** ١ حضرت انس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ د مكې او مدينې څخه علاوه داسې هيڅ ښار نشته ، چې دجال يې پايمال (تر پښو لاندې) نه كړي مګر مكه او مدينه. ٣ او د مكې او مدينې دلارو څخه داسې يوه لار نشته ، چې په هغه صف تړلي فرښتې ولاړې نه وي، چې د دې ښار نګهباني كوي ٤ (هر كله چه) دجال (د مدينې څخه بهر په شورناكه زمكه كې معلوم شي، نو مدينه به درې ځله وښوريږي (د زلزلې په صورت كې) درې ځله وخوزي. ٥ چې د هغه په نتيجه كې به هر كافر او منافق د مدينې څخه راووځي او دجال ته به ورشي، بخاري، مسلم

**حل اللغات**: ① سَيَطَؤُهُ: أَيْ يَدْخُلُهُ وَيُفْسِدُهُ: پائمال به نې كړى يعنى ورته به داخل شى او فساد به پكښې پيدا كړى ② صَافِّينَ: صف تړلى به ولاړې وى ③ يَحْرُسُونَهَا: أَيْ يَحْفَظُونَ أَهْلَهَا: د مدينې دخلقو حفاظت به كوى ④ السَّبِخَةَ: شاړه اوبنجرزمكه، دا د مدينې نه بهر مدينې سره نژدې ځائې دي ⑤ فَتَرْجُفُ: د مضارع نه، أَيْ تُحَرِّكُهُمْ وَتُزَلْزِلُهُمْ: اوبه خوزيږى، اوبه جړقيږى.

**قوله**: فَيَنْزِلُ:

**د دجال په سورلۍ كښې اقوال**: ① دَدې نزول نه ورداخليدل هم مراد اخستې شى

② ممكن ده چرته داسې سورلى وى چه دَ جهاز په شان په هوا كښې چليږى اوبيا په هغه مقام باندې راكوز شى.

③ بعض علماء فرمائى چه دَ دجال دَ خر نه يوقسم جهاز مراد دي

**قوله**: السَّبِخَةَ:

**د سبخة مصداق**: سبخه دَهغه ځائى دَ زمكې دا صفت دي. كيدې شى چه دَ مدينې ائيرپورټ سره خواؤشا علاقه مراد وى.

**[٢٧٤٣] اهل مدينه سره دَفريب كونكى سزا**

٢٧٤٣-[١٦] (¹) ١ وَعَنْ سَعْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «لَا يَكِيدُ أَهْلَ الْمَدِينَةِ أَحَدٌ ٢ إِلَّا انْمَاعَ كَمَا يَنْمَاعُ الْمِلْحُ فِي الْمَاءِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ١ حضرت سعد ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل كوم سړى چې د مدينې د اوسيدونكو سره مكر او فريب كوي، ٢ هغه به داسې ويلى شي، څرنګه چې مالګه په اوبو كې ويلي كيږي. بخاري، مسلم

**حل اللغات**: ① لَا يَكِيدُ: أَيْ بِالْمَكْرِ وَالْخِدَاعِ: دهوكه او فريب دې نه كوى ② انْمَاعَ: أَيْ ذَابَ وَهَلَكَ: په اوبوكښې د مالګې ويلى كيدل او ختميدلو ته انماع وائى. ددې نه مراد هلاكيدل او ختميدل دى

¹) اخرجه البخاري في كتاب الحج / رقم الحديث ١٨٧٧، ومسلم في صحيح رقم الحديث ٤٩٤ / ١٣٨٧ وابن ماجة رقم الحديث ٣١١٤

**تسهيلات:**

**قوله اِنْمَاعَ:** يزيد دَ مدينې خلق اوويرول اودَ هغوى خلاف ئې مکر اوفريب اوکړو نودَحق تنکو اوسل بيمارئ کښې داسې راګيرشو چه په ويلى کيدوسره خوانى مرګ مرشو

**ويزيدانجام:** په تاريخ اسلام کښې چې کوم بدنام سرې تيرشوي دي يعنى يزيد هغه چې: اهل بيتو سره کوم ظلم اوکړو نو هم دا انجام ئې شو، چې د حره د واقعه څخه پس په يوه داسې بيمارئ باندې اخته شو چې د بدن غوښې به ئې رژيدلې اوپه داسې خراب مرګ باندې مړ شو امضٰ هرحق!

**[٢٧٤٤] مدينې سره دَ حضورپاک محبت**

--[١٧] (١) وَعَنْ أَنَسٍ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ إِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ فَنَظَرَ إِلَى جُدُرَاتِ الْمَدِينَةِ أَوْضَعَ رَاحِلَتَهُ، وَإِنْ كَانَ عَلَى دَابَّةٍ حَرَّكَهَا مِنْ حُبِّهَا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** حضرت انس رضي الله عنه وايي نبى کريم ﷺ چې به د يو سفر څخه واپس راتلو نو: مدينې منورې ديوارونه (يعني د هغې آبادي) ليدو سره خپل اوښ به يې زغلولى. او که په اس يا قچر به سور وو. نو هغه به يې تيزه وله او دا په دي وجه وو. چې نبى کريم ﷺ: مدينې سره محبت وو. بخاري

**حل اللغات** ① جُدُرَاتِ: جمع د جُدُر ده او دا جمع د جِدَار ده، ديوال ته وائي ② أَوْضَعَ: أَيْ أَنْزَعَ سورلى ئې تيزه اوزغلوله

**تسهيلات:**

**قوله أَوْضَعَ:**

**د نبى عليه السلام مدينې سره محبت:** سورلى تيز زغلولوپه معنى کښې دي دَ حضورپاک مدينې منورې سره دومره محبت وو چه دَدې آثار اونښانات دَ لرې نه په کتو سره په تادئى سره د رسيدو جذبه اوشوق به ئې رابيداريدو نواوښ يا اس به ئې تيز زغلولو دې دَ پاره چه زر اورسيږي

يوشاعر وئيلي دي

واعظم مايكون الشوق يوما اذا دنت الخيام من الخيام

**ترجمه** ① په هغه ورځ د محبوب د ليدو شوق ډير زيات وي کله چې د عاشق خيمه د معشوقې د خيمې سره نزدې وي

---

١) اخرجه البخاري في كتاب الحج /باب: المدينة تنفي الخبث(رقم-١٨٨٦) والترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-٣٤٤١) وأحمدفي المسند: ١٥٩/٣

**[۲۷٤۵] دَ احد غر فضیلت**

۲۷٤۵-[۱۸] (¹) ⓵ وَعَنْهُ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - طَلَعَ لَهُ أُحُدٌ ⓶ فَقَالَ هَذَا جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَنُحِبُّهُ، ⓷ اللَّهُمَّ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ حَرَّمَ مَكَّةَ وَإِنِّي أُحَرِّمُ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ⓵ حضرت انس ﷺ وایي د نبی کریم ﷺ نظر چې په احد غره ولګیدي، ⓶ نو وي فرمایل چې دا غر زمونږ سره محبت کوي، او مونږ د ده سره محبت کوو. ⓷ بیا نبی کریم ﷺ وفرمایل چې اې الله ﷻ حضرت ابراهیم ﷺ مکه حرام کړله (یعني د هغه حرم کیدل یې ښکاره کړل) او زه د زمکې دا ټکړه حرام کوم (یعني قابل تعظیم یې ګرځوم چې د سنګستان دواړه طرفونه حرم جوړوم. بخاري، مسلم

**حل اللغات:** ⓵ لَابَتَيْهَا: لَابَتَيْ د لابت تثنیه ده، أَيْ: جَانِبَيْهَا: دواړه غاړې (دواړه غرونه مراد دی)

**تسهیلات:**

**قوله:** جَبَلٌ يُحِبُّنَا:

**دَ احد دَ غر محبت حقیقی وو:** داجمله په خپله حقیقی معنی کښې ده چه واقعی غرمحبت کوی ځکه چه الله تعالی په جمادات او نباتات کښې هم دَهغوی دَحال مطابق شعور ساتلې دې بیا دَ انبیاء کرام علیهم السلام معامله خو څه بل شان ده اودَ محمد مصطفی دَ حال به څه وائی بعض عارفین وائی په احد غرباندې زیړ رنګ ختلې دې دا دَ هغه محبت اودَ حضور پاك سره دَعشق نښه ده ځکه چه دَ عاشق علامات دادی

| | |
|---|---|
| عاشقاں راسہ علامت اے پسر | رنگ زرد وآہ سرد وچشم تر |
| عاشق سرې نه خطا کیږی | رنګې زیړیږی سترګې بیا بیا توږوینه |

دَ احد غرمحبت خو وو چه هغه اویانفوسِ قدسیه په خپله غیږه کښې واخستل اودَ ټولو قبرونه هم هلته جوړشو

**[۲۷٤٦] داحد سره محبت**

۲۷٤٦-[۱۹] (²) ⓵ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ⓶ «أُحُدٌ جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَنُحِبُّهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** ⓵ سهل بن سعد ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل اُحد غر زمونږ سره محبت لري او مونږ د ده سره محبت لرو. بخاري

---

(¹) اخرجه البخاری فی کتاب التمنی /باب ما ذکر النبی صلی الله علیه وسلم وحض علی اتفاق أهل العلم. وما أجمع علیه الحرمان مکة. والمدینة. وما کان بها من مشاهد النبی صلی الله علیه وسلم والمهاجرین. والأنصار. ومصلی النبی صلی الله علیه وسلم والمنبر والقبر (رقم-۷۳۳۳) وابن ماجة فی کتاب المناسک /باب فضل المدینة(رقم -۳۱۱۵)واحمد فی المسند:۳/۱٤۹

(²) اخرجه البخاری فی کتاب الزکاة /باب خرص الثمر(رقم-۱٤۸۲) ومسلم فی کتاب الحج /باب أحد جبل یحبنا ونحبه (رقم-۵۰٤ - (۱۳۹۳)

**تسهيلات:**

**قوله: أُحُدٌ جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَنُحِبُّهُ:**

**د احد د تخصيص وجه:** د حد ذکر کولو تخصيص ددې وجې دې چه يو خل نبی عليه السلام د خلفاؤ ثلاثو سره د احد په غر اوختلو نو د احد غر د ډيرې خوشحالئ د وجې اوخوځيدو نونبی عليه السلام اوفرمائيل چه اې د احد غره خپل حرکت اودروه فإنما عليك نبي وصديق وشهيدان.

# الْفَصْلُ الثَّانِي

**[٢٧٤٧] په مدينه کښې د ښکار کولو سزا**

٢٧٤٧-[٢٠] ()[١] «عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ أَبِي عَبْدِ اللهِ قَالَ: [٢] رَأَيْتُ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ أَخَذَ رَجُلًا يَصِيدُ فِي حَرَمِ الْمَدِينَةِ الَّذِي حَرَّمَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٣] - فَسَلَبَهُ ثِيَابَهُ فَجَاءَ مَوَالِيهِ فَكَلَّمُوهُ فِيهِ، [٤] فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَرَّمَ هَذَا الْحَرَمَ: [٥] وَقَالَ مَنْ أَخَذَ أَحَدًا يَصِيدُ فِيهِ فَلْيَسْلُبْهُ، [٦] فَلَا أَرُدُّ عَلَيْكُمْ طُعْمَةً أَطْعَمَنِيهَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٧] - وَلَكِنْ إِنْ شِئْتُمْ دَفَعْتُ إِلَيْكُمْ ثَمَنَهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** [١] سليمان بن ابي عبد الله (تابعي) رحمه الله وايي [٢] چې ما وليدل چې حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه يو سړی ونيولی، چې دی په حرم مدينه (يعني د مدينې اطرافو) کې ښکار کوي. چې نبی کريم ﷺ حرام (يعني قابل تعظيم) ګرځولی دی. [٣] حضرت سعد رضي الله عنه: هغه سړي جامې (د زجر او تنبيه په طور) څنې واخستلې، بيا د هغه سړي مالک راغلو، او د حضرت سعد رضي الله عنه سره يې په دې باره کې خبرې وکړې [٤] سعد رضي الله عنه هغه ته اوويل چې نبی کريم ﷺ دا حرم حرام ګرځولی دی، [٥] او فرمايلي دي چې څوک داسې سړی ونيسي، چې په دې کې ښکار کوي، نو د هغه سامان دې څنې واخلي. [٦] نو کوم شی چې نبی کريم ﷺ ماته راکړي دي (يعني کوم شی چې د نبی کريم ﷺ د حکم په پيروۍ کې ما حاصل کړي دي) هغه خو زه په هيڅ حال کې هم نه واپس کوم. [٧] خو که ته غواړې نو زه به د دې قيمت (د مروت او احسان له مخه) تاته درکړم. ابوداؤد

**حل اللغات:** ① حَرَمِ الْمَدِينَةِ: أَيْ حَدِّهِ: د مدينې د حرم نه د مدينې حدود مراد دی کوم چه د دواړو غرونو په مينځ کښې ده ② فَسَلَبَهُ: أَيْ أَخَذَ ثِيَابَهُ: جامې ئې ترې واخستلې. ③ طُعْمَةً: أَيْ رِزْقًا: رزق، نعمت.

**تسهيلات: قوله: فَسَلَبَهُ ثِيَابَهُ:**

**د مدينې ونې له کټ کولو وجه:** په زيربحث حديث کښې د ښکارۍ قصه ده د هغه نه حضرت سعد رضي الله عنه سامان په زور واخستو دې نه وړاندې فصل اول حديث نمبر: ٢٧٣٣ کښې

---

() اخرجه ابوداود فى كتاب المناسک باب فی تحريم المدينة (رقم-٢٠٣٧) واحمد فى المسند: ١٧٠/١

د ونو پرې کونکي سړي د قصې ذکر دې چه دهغه نه حضرت سعد ﷺ دهغه سامان واخستلو داسې معلومیږي چه د مدينې په حرم کښې د ښکار وغیره باقاعده جزا او سزا نشته دې لکه څنګه چه د مکې په حرم کښې دی دلته خلق صرف منع کول دی چه هغوی د مدینې حرم ښائست ته نقصان اونه رسوی هم په دې وجه احنافو ونیلی دی چه مدینه منوره حرم دې لیکن د احترام اوعظمت د وجې نه دې د کفارې اوبدلې د وجې نه نه دې که چرې باقاعده کفاره وې نود ښکار قیمت لګولوسره صدقه کول پکار وو لکه چه د حرم مکه حکم دې د حرم مدینه د مجموعی احادیثونه معلومیږي چه دلته د جنایت کولو جزا د سزا په توګه داده چه جنایت کونکی سامان دې واخستې شي

**[٢٧٤٨] د حديث په سند کښې د يو سهو اصلاح**

٢٧٥٠-[٢١] (١) وَعَنْ صَالِحٍ مَوْلَى لِسَعْدٍ «أَنَّ سَعْدًا وَجَدَ عَبِيدًا مِنْ عَبِيدِ الْمَدِينَةِ يَقْطَعُونَ مِنْ شَجَرِ الْمَدِينَةِ[٢] فَأَخَذَ مَتَاعَهُمْ[٣] وَقَالَ: - يَعْنِي لِمَوَالِيهِمْ - سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[٤] - يَنْهَى أَنْ يُقْطَعَ مِنْ شَجَرِ الْمَدِينَةِ شَيْءٌ[٥] وَقَالَ: مَنْ قَطَعَ مِنْهُ شَيْئًا فَلِمَنْ أَخَذَهُ سَلَبُهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** [١] د حضرت سعد ﷺ آزاد کړی غلام صالح وايي چې حضرت سعد ﷺ د مدينې د غلامانو څخه څه غلامان د مدينې د ونو په کټ کولو و موندل.[٢] نو هغه د هغوی سب ضبط کړل.[٣] بیا د هغوی مالکانو ته یې وفرمایل چې ما خپله اوریدلي دي.[٤] چې نبی کریم ﷺ د مدينې د ونو څه حصه کټ کولو څخه منع فرمايلي ده.[٥] او نبی کریم ﷺ فرمايلي دي چې کوم سړی چې د مدينې د ونو څه حصه هم کټ کړي. نو د هغه سب د هغه سړي دي. کوم چې هغه ونیسي. ابوداؤد

**حل اللغات:** ① عَبِيدًا: غلام. ② مَتَاعَهُمْ: أَيْ ثِيَابَهُمْ: متاع سامان ته وائی په دې کښې جامې وغیره د ضرورت سامان شامل دي

**تسهيلات:**

**قوله: فَأَخَذَ مَتَاعَهُمْ**

**د حديث الباب څخه جواب:** په ظاهره دا حديث د احنافوخلاف دې څکه چې په دې کښې سعد بن ابی وقاص دهغه غلامانو سامان اخستې وو کوموچې د مدينې منورې ونې کټ کړې وې خو امام ابوبکر بزاررحمه الله فرمائی چې دا حديث د سعدبن ابی وقاص څخه سوا بل چا څخه نه دې مروی دویمه دا چې په دې حديث دجمهورو عمل نشته څکه چې د بل چا مال اخستل یوه لویه خبره ده په خبر واحد سره د دې جواز نشی ثابتیدې [ الدرالمنضود جلد ٣ صفحه ٣٢٦]

(١) اخرجه ابوداود فی کتاب المناسک باب فی تحریم المدينة (رقم-٢٠٣٨)

**قوله** وَعَنْ صَالِحٍ مَوْلَى لِسَعْدٍ:

**صاحب مشكاة ههه د سند په بيان كښې غلطى:** په صحيح روايت كښې سند داسې دې ,وعن صالح عن مولى لسعد, شيخ جزرى رحمه الله فرمائى چه دا حديث صالح دَ حضرت سعد رضي الله عنه دَ آزادکړې شوى غلام نه روايت کړې دې دَ مشکوة دَ سند نه معلوميږى چه صالح دَ حضرت سعد رضي الله عنه آزاد کړې شوې غلام دې حالانکه داسې نه ده بلکه ههه دَ شيخ توامة رحمه الله آزاد کړې شوې غلام دې لهذا دلته صحيح سند داسې دې "وعن صالح عن مولى لسعد" يعنى صالح دَ حضرت سعد رضي الله عنه دَ آزادکړې شوى غلام نه روايت کوى ههه غلام مجهول دې دلته دَ صالح نه پس دَ عن لفظ يا دَ کاتب غلطى نه پاتې شوې دې يا دَ مصنف مشکوة نه سهو دَ قلم شوې ده ځکه چه (لكل جواد كبوة ولكل سيف نبوة) دلته دَ حضرت سعد رضي الله عنه غلام مجهول دې معلومه نه ده چه څوك دې البته صالح ثقه دې.

**[٢٧٤٩] په مقام وج كښې دَ ښكار ممانعت**

| ٢٧٤٩-[٢٢] (١) وَعَنِ الزُّبَيْرِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- (٢) «إِنَّ صَيْدَ وَجٍّ وَعِضَاهَهُ حِرْمٌ مُحَرَّمٌ لِلَّهِ»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ (٣) وَقَالَ مُحْيِي السُّنَّةِ: وَجٌّ ذَكَرُوا أَنَّهَا مِنْ نَاحِيَةِ الطَّائِفِ، وَقَالَ الْخَطَّابِيُّ: أَنَّهُ بَدَلُ أَنَّهَا. |
|---|

**ترجمه** (١) حضرت زبير رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل (٢) د وَجّ ښکار او د ههه خاردار (آزغني) ونې حرامې دي، چې د الله جل جلاله د پاره (يعني د الله جل جلاله د حکم په موجب) حرام کړل شوي دي، يا دا چې د الله جل جلاله د محبوب بنده ګانو يعني غازيانو په وجه حرام شوي دي، ابوداؤد.

(٣) امام محي السنة رحمه الله فرمايي چې د وَجّ په باره کې علماؤ ليکلي دي چې وَجّ د طائف په غاړه يو مقام دى، او خطابي رحمه الله أَنَّهَا مِنْ نَاحِيَةِ الطَّائِفِ، کې د أَنَّهَا په ځای أَنَّهُ ليکلى دى

**حل اللغات:** ① وَجّ: مَوْضِعٌ بِنَاحِيَةِ الطَّائِفِ: د طائف په اطرافو کښې يو ځائې دې ② عِضَاهَهُ أَيْ أَشْجَارَ شَوْكِهِ: ازغو والا ونه يا جاړه ③ حِرْمٌ: أَيْ حَرَامٌ: حِرْمٌ په کسرې د حاء سره او حَرَامٌ په فتحې د حاء سره، دا دوه جدا لغتونه دى. معنى ئې يوه ده، يعنى حرام دى.

**تسهيلات:**

**قوله** قَالَ الْخَطَّابِيُّ: أَنَّهُ بَدَلُ أَنَّهَا:

**د ضمير په تذكير او تانيث كښې اختلاف او ههې تطبيق:** يعنى علامه خطابى انه مذكر استعمال کړې دې اومحى السنة انها مؤنث استعمال کړې دې په دې کښې هيڅ تعارض نشته دې ځکه چه دَ ضمير قاعده دَ هاهو والا قاعده ده که لفظ طرف ته ضمير راؤګرځولې

---

(١) اخرجه ابوداود فى كتاب المناسك ,باب فى مال الكعبة (رقم-٢٠٣٢) واحمد فى المسند: ١/١٦٥

شي نو مذكر دي اوکه چرې دَ کلمة طرف ته راؤګرځولې شي نو مؤنث دې دلته که د موضع په معنی کښې واخستلې شي نو مذکر اوکه چرې دَ بقعة په معنی کښې واخستې شي نو مؤنث دې

**قوله: صَيْدُ وَجٍّ:**

**د مقام وج د ښکار د ممانعت دوه تاويلات:** ① علماؤ ليکلی دی په مقام وج کښې دَ ښکار ممانعت دَ حرمت د حمی په توګه سره وو يعنی دَ ممنوع علاقه په توګه وو خکه چه په دغه علاقه کښې به دَ غازيانو اسونه څريدل دَ دې دَپاره ضروری وو چه دَ بل چا څناور دلته رانه شي دا يوه انتظامی معامله وه دَحرمت دَ وجې نه نه ووځکه چه طائف سره خواؤشا علاقه حرم کښې شامل نه ده. احنافو دَ مدينې باره کښې دَ ښکار اوونو پرې کولوکوم حکم بيان کړې دې داحديث دَهغې تائيد کوی

② بعض علماؤ ليکلی دی چه مقام وج کښې دَ ښکار حرمت دَ حرم په توګه وو نودا به دَ شروع دَ وخت خبره وی روستوداحکم منسوخ شوې امام شافعی رحمه الله دَ مقام وج باره کښې هم فرمائی چه په دې کښې مه ښکارکوئی اومه ونې پرې کوئی ليکن هغوی دَ څه ضمان يا جزا اوکفارې ذکر نه دې کړې.

**[٢٧٥٠] په مدينه منوره کښې دَمرکيدو فضيلت**

٢٧٥٠-[٢٣] ()[١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[٢]- «مَنِ اسْتَطَاعَ أَنْ يَمُوتَ بِالْمَدِينَةِ فَلْيَمُتْ بِهَا[٣]، فَإِنِّي أَشْفَعُ لِمَنْ يَمُوتُ بِهَا». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا.

**ترجمه:** [١] ابن عمر رضی الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړی چې په مدينه کې مړ کيدی شي، هغه ته په مدينه کې مړ کيدل پکار دي،[٣] ځکه چې کوم سړی په مدينه کې مړ شي، زه به د هغه شفاعت کوم. احمد، ترمذي

**حل اللغات:** ① فَلْيَمُتْ: أَيْ فَلْيُقِمْ بِهَا حَتَّى يَمُوتَ بِهَا: په مدينه کښې دې استوګنه اختيار کړې تردې چه هم دلته ورله مرګ راشی.

**تسهيلات:**

**قوله: فَلْيَمُتْ بِهَا:**

**په مدينه کښې د مړ کيدو دعا کول:** مرګ خودَ چا په اختيارکښې نه وی مګردَ حديث مطلب دادې چه څومره ممکن کيدې شی سړې دې دَهغه ځائی دَمرګ خواهش کوی دَدې دَپاره دې دعاکوی اوڅومره چه کيدې شی دَدې دَپاره دې اسباب راپيدا کوی.

---

[1] اخرجه الترمذی فی کتاب المناقب عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی فضل المدينة(رقم-٣٩١٧) واحمدفی المسند: ٢/٧٤

دامام مالک رحمه الله په باره کښې راغلی دی چې د مدينې څخه به د سخت ضرورت څخه بغير په سفر چرته نه تلو، ددې ويرې چې هسې نه د مدينې څخه بهر راته مرگ راشي او د مدينې د مرگ د سعادت څخه محرومه شم

**قوله**: أَشْفَعُ:

**په مدينه کښې مرگ د شفاعت سبب:** دَ حضورپاك شفاعت خودَ ټولو مسلمانانودپاره عام دې لهذادلته دَ شفاعت نه خاص شفاعت مراددې لکه چه دَداسې سړی دَ شفاعت دَ کارتښی خبره ده عام خبره نه ده داسې اوګنړنی چه دې سړي ته دَ شفاعت سند ملاؤشو ددې حديث نه معلومه شوه چه دَ مدينې منورې لونی شان دې او په دې کښې دَ مړ کيدو سعادت ډير لونی سعادت دې په دې وجه دَحضرت عمر فاروق رضي الله عنه دا دعا اوتمنا وه "اللهم ارزقني شهادة في سبيلك واجعل موتي في بلد رسولك".

**[٢٧٥١] دَ مدينې دَ ښار عمر دَ ټولو ښارونو نه اوږد دې**

حديث - [٢٤] (١) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ② - «آخِرُ قَرْيَةٍ مِنْ قُرَى الْإِسْلَامِ خَرَابًا الْمَدِينَةُ» ③. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** ① ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② په وران او خراب کيدونکو اسلامي ښارونو کې د ټولو څخه آخري خل به د مدينې وي. ③ امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړی دی او ويلي يي دي چې دا حديث حسن غريب دی

**حل اللغات**: ① خَرَابًا: خرابيدل، فنا کيدل.

**تسهيلات**:

**قوله**: خَرَابًا الْمَدِينَةُ:

**د حديث مطلب:** مطلب دادې چه قيامت سره نيزدې کله چه په کائنات کښې ماتيدل راماتيدل شروع شی نودَ دنيا ټول لونی واړه ښارونه به وران او فناه شی دَ ټولو نه په آخره کښې به دَ فناه دور په مدينه منوره باندې راشی دا عظمت دې ته دَ حضورپاك دَ وجود مسعود په برکت سره ملاؤ شوې دې

**[٢٧٥٢] دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ هجرت دَپاره دَ مدينې خوښول**

حديث - [٢٥] (١) ① «وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ② - قَالَ: إِنَّ اللَّهَ أَوْحَى إِلَيَّ ③ أَيَّ هَؤُلَاءِ الثَّلَاثَةِ نَزَلْتَ، فَهِيَ دَارُ هِجْرَتِكَ الْمَدِينَةَ أَوِ الْبَحْرَيْنِ أَوْ قِنَّسْرِينَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** ① جرير بن عبدالله رضي الله عنه د نبی کريم صلى الله عليه وسلم څخه نقل کوي ② چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم

---

(١) اخرجه الترمذي في كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في فضل المدينة (رقم - ٣٩١٩)

(٢) اخرجه الترمذي في كتاب المناقب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في فضل المدينة (رقم - ٣٩٢٣)

وفرمايل الله ﷻ په ذريعه د وحي زه خبر كړم، [٣] چې ته په دې درېو ښارونو ① مدينه ② بحرين ③ قنسرين كې په كوم ښار كې چې د اوسيدو د پاره خكته شي هغه به ستا د پاره دار الهجرت (د هجرت كور) وي. ترمذي

**حل اللغات:** ① اَلْبَحْرَيْن: مَوْضِعٌ بَيْنَ بَصْرَةَ وَعُمَانَ: د جزيرة العرب د مشرقى ساحل نه تر قطر او عمان پورې واقع دې ټولې علاقې ته بحرين وائي، نن صبا په احساء سره مشهور دې ② قِنَّسْرِيْنَ: بَلَدٌ بِالشَّامِ: د شام د ملک د يو لوئي ښار نوم دې

**تسهيلات: قوله:** أُوْحِيَ:

**د بحرين څخه مراد:** يعنى الله تعالى دَوحى په ذريعه ماته خبراوكړو چه په دې درېو ښارونو كښې چه كوم يوهم تاسو اختياركړئى اوهجرت كولوسره هلته وركوزشئى نوهم هغه به ستاسو دَ هجرت خانې وى. په دې كښې يو بحرين دې. ياد لرئى موجوده بحرين د ډيرو جزيرو مجموعې نوم دې چه دَخليج غربى جنوبى مغربى گوټ كښې واقع دې. په دې جزيرو كښې دَ ټولو نه لويه جزيره منامه ده دكوم چه دويم نوم بحرين دې. هم ددې جزيرې د نوم دَ وجې نه دَ پوره ملك نوم بحرين دې. علماؤ ليكلى دى چه زير بحث حديث كښې اود تاريخ په نورو كتابونوكښې دَ بحرين دا لفظ دَ هغه علاقې دپاره وئيلى شى چه دَ جزيرة العرب دَ مشرقى ساحل خليج بصره نه واخله دَ قطر اوعمان پورې خوره ده كوم چه دَ موجوده بحرين مغرب طرف ته واقع ده. نن صبا دې علاقې ته "احساء" وائى. په زير بحث حديث كښې دَ بحرين نه هم دغه احساء مراد دې چه دَ حكومت لاندې لوئى ښار دې

**قوله:** أَوْقِنَّسْرِيْنَ:

**د قنسرين ښار محل وقوع:** دَتاريخ دَ كتابونونه معلوميږى چه دا ښار دَ شام په ملك كښې لوئى مقدس ښار گڼلې شو. كله چه صحابه كرامو ﷺ دا فتح كړو نوهغوى ډيرزيات خوشحال شو او هغوى ټولو ته اندازه اوشوه چه اوس پوره شام په لاس راتلونكې دې. تاريخ مدينه كښې ليكلى دى چه حضورپاك ته دا اختيار په شروع كښې وركړې شوې وو روستو بياهم مدينه دَ هجرت دپاره متعين كړې شوه

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٢٧٥٢] مدينه منوره به دَ دجال دَ ويرې نه محفوظ وى**

حديث-[٢٦] (١) [١] عَنْ أَبِي بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] «لَا يَدْخُلُ الْمَدِينَةَ رُعْبُ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ، [٣] لَهَا يَوْمَئِذٍ سَبْعَةُ أَبْوَابٍ عَلَى كُلِّ بَابٍ مَلَكَانِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

(١) اخرجه البخاري في كتاب الحج/باب: لا يدخل الدجال المدينة (رقم-١٨٧٩) واحمد في المسند ٤٧/٥

**ترجمه** [١] حضرت ابو بکر ﷺ د نبی کریم ﷺ څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] په مدينه کې به د رانده دجال خوف هم داخل نشي، [٣] په هغه ورځ (هر کله چې دجال ظاهر شي) د مدينې به اووه دروازې (يعني اووه لارې) وي او په هره دروازه (په هره لار) به (ښي او چپ طرف ته) دوه فرشتې د مدينې په حفاظت مامورې وي. بخاري

**حل اللغات** ① رُعْبُ: أَيْ خَوْفُهُ: ويره، دهشت ② المَسِيحِ: دا فعيل دې په معنى د مفعول سره. يعنى مَسِيح په معنى د مَمْسُوح، ده ته مسيح ځکه وائي چه يوه سترګه به نې مسح شوې وی يعنى يوه سترګه به نې هواره وی. يا دا چه په ده کښې به هيڅ خير نه وی دخيرنه به خالی وی ③ الدَّجَّالِ: أَيْ كَثِيرُ الْفَسَادِ: په دجل کښې مبالغه ده دهوکه او فريب ته وائي يعنى ډير زيات فساد خورونکې

**تسهيلات:**

**قوله: لَهَا يَوْمَئِذٍ سَبْعَةُ أَبْوَابٍ:**

**د سبعة ابواب په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① د مدينې به په دغه وخت کښې اوه دروازې وی.

② د مدينې به اوه غريزی لارې وی.

**قوله: عَلَى كُلِّ بَابٍ مَلَكَانِ:**

**د ملک په مصداق کښې دوه اقوال:** ① د هرې دروازې په ښی او ګس طرف باندې دوه دوه فرشتې د مدينې د حفاظت د پاره مامورې وی.

② د هرې دروازې په ښی او ګس طرف باندې به دوه قسمه فرشتې د مدينې حفاظت کوی هغه فرشتې به دجال مدينه ته نه پريږدی

**[٢٧٥٤] مدينه منوره کښې د برکت دپاره د حضور پاک دعا**

> ٢٧٥٤–[٢٧] ([١]) [١] وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٢] - قَالَ «اللَّهُمَّ اجْعَلْ بِالْمَدِينَةِ ضِعْفَيْ مَا جَعَلْتَ بِمَكَّةَ مِنَ الْبَرَكَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [١] حضرت انس ﷺ د نبی کریم ﷺ څخه نقل کوي [٢] چې نبی کریم ﷺ (په طور د دعا) وفرمايل چې اې الله! ﷻ مدينې ته د هغه برکت څخه دوچنده برکت ورکړې، کوم چې تا مکې ته ورکړې دی. بخاري. مسلم

**حل اللغات** ① ضِعْفَيْ: أَيْ مِثْلَيْهِ: دوچنده

[١]) اخرجه البخارى فى كتاب الحج /باب: المدينة تنفى الخبث(رقم -١٨٨٥) ومسلم كتاب الحج /باب فضل المدينة. ودعاء النبى صلى الله عليه وسلم فيها بالبركة. وبيان تحريمها. وتحريم صيدها وشجرها. وبيان حدود حرمها (رقم-٤٦٦ - (١٣٦٩)

**تسهيلات:**

**قوله: فضل:**

**د مديني د افضليت دليل:** داحديث دَ امام مالك رحمه الله دليل دي هغوى فرمائي چه مدينه منوره دَ مكې معظمې نه افضل ده خكه چه دَ حضورپاك دعامقبول ده دَ جمهور امت په نيز مكه افضل ده خكه چه دَ حسنات په اعتبارسره مكې ته سبقت او وړانديوالې حاصل دې ليكن علماؤ ليكلى دى چه په مدينه كښې دَ رسول الله ﷺ مبارك بدن دَ روضې په كومه حصه كښې چه پيوست دې هغه حصه دَ زمكې دَ مكې نه څه چه دَ عرش نه هم افضل ده هم دغه شان په مرقات وغيره كتابونوكښې ليكلى دى اوهم دغه شان مونږ دَخپلو استاذانونه اوريدلى دى.

**[٢٧٥٥] په مدينه كښې دَ سكونت اختيارولوفضيلت**

٢٧٥٥-[٢٨] ()[١] وَعَنْ رَجُلٍ مِنْ آلِ الْخَطَّابِ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ[٢] - قَالَ «مَنْ زَارَنِي مُتَعَمِّدًا كَانَ فِي جِوَارِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ،[٣] وَمَنْ سَكَنَ الْمَدِينَةَ وَصَبَرَ عَلَى بَلَائِهَا كُنْتُ لَهُ شَهِيدًا وَشَفِيعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ،[٤] وَمَنْ مَاتَ فِي أَحَدِ الْحَرَمَيْنِ بَعَثَهُ اللّٰهُ مِنَ الْآمِنِينَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ».

**ترجمه:** [١] د خطاب د خاندان يو سړى ناقل دى[٢] چې نبى كريم ﷺ وفرمايل، كوم سړى چې بالقصد زما زيارت وكړى، هغه به د قيامت په ورځ زما ګاونډي او زما پناه كې وي.[٣] كوم سړى چې په مدينه كې سكونت اختيارولو سره د هغه په سختيو صبر وكړي، د قيامت په ورځ به د هغه د اطاعت شاهد يم، او د هغه د ګناهونو د بخښش د پاره به شفاعت كوم.[٤] او كوم سړى چې په حرمين (يعني په مكه او مدينه) كې په يوه كې هم مړ شي د قيامت په ورځ به يې الله تعالى په امن والاكې راپورته كړي (يعني د قيامت په ورځ د عذاب د خوف څخه مامون يعنى په امان وي)

**حل اللغات:** ① زَارَنِي : چه زما زيارت ني اوكړو ② مُتَعَمِّدًا : أَيْ لَا يَقْصِدُ غَيْرَ زِيَارَتِي: په قصد او پخه اراده سره يعني بل څه مقصد ني نه وو. ③ جِوَارِي : أَيْ فِي مُجَاوَرَتِي أَوْ مُحَافَظَتِي: ددې معنى ده ګاونډتوب. يا ددې نه مراد حفاظت دې يعنى زما په ګاونډ يا زما په حفاظت كښې به وى ④ شَهِيدًا : أَيْ لِطَاعَتِهِ: ګواه به نم (د اطاعت دهغه)، ⑤ شَفِيعًا :أَى لِمَعْصِيَتِهِ: شفاعت كونكې به يم (د ګناهونو دهغه) ⑥ الْحَرَمَيْنِ: د حرم تثنيه ده، د عزت او اكرام والادوه ځايونه (يعنى مكه اومدينه)

**تسهيلات: قوله: مُتَعَمِّدًا:**

**د نبى كريم د زيارت په اراده مديني ته د تلو فضيلت:** يعنى قصداو اراده كولوسره دحضوراكرم دَ زيارت په غرض سره ئى دَ مديني سفراوكړو چ څه تجارت يا رياكارى

() اخرجه البيهقى فى شعب الايمان

وغیره مطلوب نه وی دَعلامه طیبی دکلام نه معلومیږی چه کوم سړی دَ حج دپاره خی نو بیا زیارت هم کیږی داد قصد او ارادې زیارت نه دې چه صرف مدینې منورې ته دَ حضورپاك دَ زیارت په غرض سفر اوکړی

**[٢٧٥٦] دَ روضهٔ اطهر دَ زیارت فضیلت**

٢٧٥٥-[٢٩] ()[١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ مَرْفُوعًا: [٢] «مَنْ حَجَّ فَزَارَ قَبْرِي بَعْدَ مَوْتِي كَانَ كَمَنْ زَارَنِي فِي حَيَاتِي». رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه** [١] ابن عمر ﷺ په طریق مرفوع یعنې د نبی کریم ﷺ ارشاد گرامي نقل کوي چې نبی کریم ﷺ وفرمایل [٢] کوم سړي چې حج وکړی او بیا زما د وصال څخه روسته زما د قبر زیارت یې وکړي، نو هغه به د هغه سړي په مثل وي. چې هغه زما په ژوند کې زما زیارت وکړي، دا دواړه روایتونه بیهقي په شعب الایمان کې نقل کړي دي.

**حل اللغات** ① فَزَارَ: زیارت کول، ورتلل

**تسهیلات: قوله:** فِي حَيَاتِي:

**د نبی علیه السلام دحیات برزخی ثبوت:** دَ وفات نه پس حضورپاك ته کامل اواکمل حیات حاصل دې ځکه چه چا دَ وفات نه پس دَ حضور پاك دَ قبر زیارت اوکړو لکه چه هغه په ژوند د حضورپاك زیارت اوکړو اوهم دغه دَ حیات النبی مطلب دې

**د زیارة النبی فضائل:** ① حدیث کښې دی چه کوم سړی حج اوکړو اوزما دَ قبر زیارت نې اونه کړو هغه ماسره بې وفائی اوکړه

② حدیث کښې دی، چه کوم خلق زمادَ قبرزیارت کوی دهغه دپاره زما شفاعت واجب او لازم کیږی

③ حدیث کښې دی کوم سړی چه دَ مکې یعنی حج قصد اوکړو اوبیائی زما دَ زیارت اوزما د مسجد د حاضرنې قصد اوکړو نو دهغه دَ پاره دوه قبول شوی حجونه لیکلې کیږی

**[٢٧٥٧] مدینه منوره دَرسول الله ﷺ په نظر کښې**

٢٧٥٦-[٣٠] ()[١] وَعَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ جَالِسًا وَقَبْرٌ يُحْفَرُ بِالْمَدِينَةِ، [٢] فَاطَّلَعَ رَجُلٌ فِي الْقَبْرِ فَقَالَ بِئْسَ مَضْجَعُ الْمُؤْمِنِ، [٣] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بِئْسَمَا قُلْتَ، [٤] قَالَ الرَّجُلُ: إِنِّي لَمْ أُرِدْ هٰذَا، إِنَّمَا أَرَدْتُ الْقَتْلَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ،

**ترجمه** [١] یحیی بن سعید ﷺ وایي چې ماته دا حدیث رسیدلی دی چې یوه ورځ په مدینه کې یو قبر کنیدل کیدو. او نبی کریم ﷺ هم هلته تشریف فرما وو. [٢] یو سړی په قبر کې

---

[١]) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان

[٢]) اخرجه مالک فی کتاب الجهاد/باب الشهداء فی سبیل الله(رقم-٣٣)

وکتل او هغه اوویل چې دا قبر خو د مؤمن د پاره خراب خواب ګاه (د خوب ځای) دی (د دی ویډو سره) ٣ نبی کریم ﷺ وفرمایل چې ډیره خرابه خبره دي وکړه. ٤ هغه سړي عرض وکړي چې زما اراده دا نه وه، بلکه زما مطلب د الله ﷻ په لاره کې د شهید کیدو فضیلت بیکاره کول وو.

**حل اللغات:** ① يُنْفَرُ: کنستلې کیدو ② مضجع: أي مَرْقَدُهُ: د خوب ځاني ③ لَمْ أُرِدْ: زما دا اراده یا دا مطلب نه وو

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: لَا مِثْلَ الْقَتْلِ فِي سَبِيلِ اللهِ، ٢ مَا عَلَى الْأَرْضِ بُقْعَةٌ أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ يَكُونَ قَبْرِي بِهَا مِنْهَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ». رَوَاهُ مَالِكٌ مُرْسَلًا.

**ترجمه** ١ نبی کریم ﷺ وفرمایل ٢ چې هو دا خبره خو صحیح ده، چې د الله ﷻ په لار کې د شهید کیدو څخه بهتر هیڅ څیز نشته. لیکن (دا خبره هم ده چه) د زمکې په مخ هیڅ ټکره داسې نشته، چې په هغه کې زما قبر جوړ شي او هغه ماته د مدینې څخه زیات محبوب وي، نبی کریم ﷺ دا خبره دري ځله وفرمایله. دا روایت امام مالک رحمه الله په طریق د ارسال نقل کړی دی

**حل اللغات:** ④ بُقْعَةٌ: یوه ټکره، یوه حصه

**تسهيلات: قوله:** بِئْسَ مَضْجَعِ الْمُؤْمِنِ:

**د سړی دوینا مقصد:** هغه سړی اووئیل چه قبر دَ مؤمن دَپاره خراب دَ خوب ځائی دې په دې مطلق اطلاق کښې دَمؤمن هغه قبر هم راغلوکوم چه دَ جنت دَ باغیچونه یوه باغیچه وی په دې وجه حضورپاک دَ خفګان اظهارکولوسره اوفرمائیل چه تادیره خرابه خبره اوکړه خکه چه قبر دَ مؤمن دَ پاره جنت دې په دې باندې هغه سړی وضاحت اوکړو چه زما مقصد داوو چه دا سړې په مدینه کښې په خپل مرګ باندې مړکیدوسره قبرکښې دفن شو دَ دې په ځائی که هغه شهیدشوې وې اودهغه قبر بهرپه یوځائی کښې دَ شهید قبر جوړ شوې وې نو ښه به وه

**مدینه مدفن جوړیدل:** په دې باندې حضورپاک دَ دغه سړی په خبره باندې تحسین اوکړو چه او داخبره صحیح ده چه دَ الله تعالی په لارکښې دَ قتل کیدونه بهتر څه څیزنشته دې لیکن داخبره هم شته چه په پوره دنیاکښې داسې یوځائی نه وی چه په هغې کښې زما قبر جوړشی اوهغه دَ مدینې نه زیات محبوب وی حضورپاک داجمله دري خل اوفرمائیله په دې کلام سره حضور پاک په مدینه منوره کښې مرګ راتلل او په مدینه کښې دَ دفن کیدو فضیلت بیان کړو حضرت ابوسفیان بن حارث دَ رسول الله ﷺ په وفات باندې حضرت فاطمه رضی الله عنها سره داسې تعزیت اوکړو

أَفَاطِمُ إِنْ جَزِعْتِ فَذَاكِ عُذْرٌ ... وَإِنْ لَمْ تَجْزَعِيْ ذَاكَ السَّبِيْلُ

فَقَبْرُ أَبِيْكِ سَيِّدُ كُلِّ قَبْرٍ ... وَفِيْهِ سَيِّدُ النَّاسِ الرَّسُوْلُ

ترجمه. اې فاطمې که ته ژړا کوې نو په دې کښې ته معذوره يې او که ته ژړا انګولا نه کوې نو دا د شريعت طريقه ده ستا د والد صاحب قبر د ټولو قبرونو سردار دې ځکه چې په دې کښې د ټولو خلقو سردار مدفون دې

**[٢٧٥٨] د وادی عقيق فضيلت**

۲۷۵۸ ـ [٣١] ( ) ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: «قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ: ② سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ ـ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ وَهُوَ بِوَادِي الْعَقِيقِ ③ يَقُولُ أَتَانِي اللَّيْلَةَ آتٍ مِنْ رَبِّي ④ فَقَالَ: صَلِّ فِي هَذَا الْوَادِي الْمُبَارَكِ، ⑤ وَقُلْ عُمْرَةٌ فِي حَجَّةٍ وَفِي رِوَايَةٍ وَقُلْ عُمْرَةٌ وَحَجَّةٌ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** ① ابن عباس رضي الله عنهما راوي دی چې حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه اوويل ② چې ما په وادي عقيق کې (چې د مدينې يو جنګل دی) د نبی کريم ﷺ ځخه واوريدل ③ چې نن شپه زما د پروردګار د طرف ځخه يو راتلونکې (يعنی فرښته) ماته راغله. ④ او هغې اوويل چې په دې مبارك وادي کې مونځ وکړه. ⑤ او هغه عمره وکړه کومه چې حج سره کيږي. او د يوه روايت الفاظ دا دي چې د دې ثواب د هغه عمرې برابر دی، کومه چې حج سره کيږي. ب عمره او حج (دواړه) برابر دی، بخاري

**حل اللغات:** ① بِوَادِي الْعَقِيقِ : مَحَلٌّ قَرِيبٌ مِنْ ذِي الْحُلَيْفَةِ: دا د مدينې په واديانو کښې يوه مشهوره او لويه وادی ده او ذوالحليفه چې داهل مدينې ميقات دې په دې وادی کښې داخل دې ② صَلِّ: د امر حاظر صيغه ده. يعنی مونځ اوکړه ③ قُلْ: دلته قُلْ فعل امر دَ اِفْعَلْ په معنی کښې دې. يعنی حساب کړه. ④ عُمْرَةٌ فِي حَجَّةٍ: أَيْ حُسِبَتْ: يعنی دا مونځ د عمرې او حج برابر شمار کړه

**تسهيلات:**

**قوله:** أَتَانِي اللَّيْلَةَ آتٍ:

**د پيغمبر د خوب حکم:** دې نه مراد دادې چه ماته په تيره شوې شپه کښې داسې خوب راغلو او ښکاره خبره ده چه دَ انبياء کرام عليهم السلام خوب دَ وحی په حکم کښې وی نو دَ وادی عقيق فضيلت ښکاره شو که چرې رسول الله ﷺ په بيدارئ کښې داسې عمل کولو نو دَ هغې به هم دغه حکم وو کوم چه په خوب کښې حضور پاك عمل اوکړو

① **په وادی عقيق کښې د مونځ کولو شرعی حيثيت:** رسول الله ﷺ ته جبرائيل آمين حکم ورکړو چه په دې وادئ کښې مونځ اوکړه او بيا دا مونځ دَ عمرې او حج برابر شمير کړه عربی کلام کښې کله کله توضيح "قل" دَ افعل په معنی کښې راځی دلته دَ افعل په معنی

---

[١] اخرجه البخاري في كتاب الحج /باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: «العقيق واد مبارك» (رقم ـ ١٥٣٤) وابوداود في كتاب المناسك /باب في الإقران (رقم ـ ١٨٠٠) وابن ماجة في كتاب المناسك /باب التمتع بالعمرة إلى الحج (رقم ـ ٢٩٧٦) واحمد في المسند: ١/ ٢٤

کښې دي چه دوه رکعته مونځ اوکړه اودا د عمرې اوحج برابر شمیرکړه ملاعلي قاري رحمه الله فرماني وادي عقیق کښې د مونځ کولوحکمت مفوض الی الشارع دې بله داچه حضوراکرم ﷺ ته سره د دې چه جبرائیل علیه السلام د مونځ کولوحکم ورکړو لیکن دې نه پس خواص اوعوام ته هیڅ هم پته نشته چه دا د مونځ کولوخائي دې اود دې فضیلت دې چاهم په دې باندې عمل نه دې کړې اونه د باقي مقاماتو په شان دا ځائي چه څه زیارت جوړشوې. د دې نه معلومیږي چه داعمل د حضورپاك د خصوصیاتو نه یوخصوصیت وو

② **حج قران طرف ته اشاره:** د دې حدیث دا مطلب هم اخستې شي او شارحینو د دې طرف ته اشاره هم کړې ده او د حدیث سیاق اوسباق هم د دې تائید کوی هغه دا چه حضرت جبرائیل آمین حضورپاك ته د حج قران اشاره کړې ده چه د عمره اوحج نیت په یوځائي اوکړه اوهم دغه قران دې کوم چه د احنافو په نیزافضل دې دې نه مخکښې حضورپاك داسې الفاظ استعمال کړی وو دکوم نه چه معلومیدله چه حضورپاك یا مفرد دې یا متمتع دې

# [۱۲] کِتَابُ الْبُیُوْعِ

## د بیوعاتو بیان

**اشکال:-** لفظ د بیع مصدر دې اود مصدر تثنیه او جمع نه راځي حالانکه دلته کښې بیوع د جمع په صیغه سره ذکر شوې دې؟

**د اشکال دوه جوابونه:-** ① بیع بې شکه مصدر دې خود بیع د مختلف انواعو په وجه دا دجمع په صیغه سره ذکر شوې دې.

② ..بیع .. د مبیع اسم مفعول په معنی کښې دې اود مبیعات ډیر قسمونه او انواع دی په دې وجه دا دجمع په صیغه سره ذکر شوې دې.

**د بیعې دوه مصداقات:-** ① لفظ د ..بیع.. د اضدادو ځنې دې په لغت کښې د بیع لفظ د (إدخال الشئ في الملك بمال) دپاره وئیلې شي.

② اود (إخراج الشئ عن الملك بمال) یعنی د مال په عوض سره یوڅیز په ملك کښې د داخلو دپاره هم وئیلې شي او دمال په عوض څه څیز د ملك نه ویستلو ته هم وئیلې شي.

**د شراء د لفظ په اضدادو کښې استعمال:-** دغه شان لفظ د ..شراء.. او ..اشتراء.. د اضدادو ځنې دی یعنی دا لفظ هم د خرڅولو او اخستلو په معنی کښې مشترك دی مثلاً

① ﴿ وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهِ أَنْفُسَهُمْ ﴾ کښې هم په دې معنی کښې استعمال شوې دې یعنی .. ډیر بد څیز دې چه د هغې په بدله کښې خرڅ کړو دوی خپل ځان..(البقره۲: ۱۰۲) دغه شان لفظ د شراء او اشتراء په ډیرو آیاتونوکښې د اخستلو په معنی کښې استعمال شوې

دي مثلاً

② ﴿ وَاشْتَرَوْا بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُوْنَ ﴾ ..او واني خستلو ددي په بدله كښي لږشان مال نو خومره بد دي هغه چه دوی ئې اخلي.. په دې كښې اشتراء په معنى د اخستلو كښې مستعمل دې

**د بيع شرعي تعريف:**-د شريعت په اصطلاح كښې ..بيع.. (مبادلة المال بالمال بالتراضي بطريق التجارة ) ته واني يعني .د يوبل په رضامندئ سره د تجارت په طريقه باندې مال د مال په بدله كښې اخستل..

**د بيعې په تعريف كښې د قيوداتو فوائد:**-د ( مبادلة المال بالمال ) په قيد سره اجاره او نكاح خارج شو ځكه چه په اجاره كښې (مبادلة المال بالمنافع ) وی او په نكاح كښې (مبادلة المال بالبضع) وی اود (بالتراضي) په قيد سره د مكره بيع خارجه شوه ځكه چه مقصود نافذه بيع بيانول دی او ..مبادلة بلا تراضي.. شرعي بيع نه ده د (بطريق التجارة) په قيد سره ..هبه بشرط العوض ..خارجه شوه ځكه چه په.. هبه بشرط العوض.. كښې هم (مبادلة المال بالمال ) وی خو د تجارت په طريقه باندې نه وی دا خيال ساتل پكار دی چه په تعريف كښې د مبادله نه مراد تمليك دې يعني د مال په بدله كښې د مال مالك كول.د بيع مشروع كيدل د قرآن حديث .او اجماع دريو وارو نه ثابت دی

**د قرآن څخه د بيعې ثبوت:**-د قرآن نه ددې ثبوت په دې آيت سره كيږی ﴿أَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا﴾ ..الله تعالى حلال كړې ده بيع .او حرام كړې ئې دې سود.. دا آيت د بيع په جواز باندې دلالت كوی

**د سنت څخه د بيعې ثبوت:**-د حديث نه د دې ثبوت (عن ابي سعيد عن النبي ﷺ قال التاجر الصدوق الأمين مع النبيين والصديقين والشهداء) ابوسعيد خدري رضي الله عنه فرمائی چه رسول اكرم ﷺ فرمائيلي دی چه رشتوني او امانت داره سوداګر به ( د قيامت په ورځ ) نبيانو . صديقينو. او شهيدانو سره وی (ترمذي ج١ص٢٢٩) .

**د استدلال طريقه:**-په دې روايت كښې د رشتوني او ديانت داره سوداګر مقام او مرتبه بيان شوې ده او دده تعريف شوي دې دريې واړه روايتونه د تجارت اود بيع په جواز باندې دلالت كوی

**د اجماع څخه د بيعې ثبوت:**- اجماع هم د بيع په جواز باندې دلالت كوی ځكه چه د رسول الله ﷺ د زمانې واخله. ترننه پورې ټول مسلمانان د بيع په جواز باندې متفق راروان دی لكه چه سيرت نګارو ليكلي دی چه د نبوت نه پنځلس كاله وړاندې نبي

کریم ﷺ د ام المؤمنین حضرت خدیجة الکبرى رضي الله عنها دپاره تجارت کړې وو او اکابرو اصحابو . تولو تجارت کړې دې لکه چه حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه د کپړو سوداګر وو او حضرت عمر رضي الله عنه د غلې سوداګر وو حضرت عثمان رضي الله عنه کپړو . اود کجورو تجارت کولو ملاعلی قاری رحمه الله په شرح نقایه کښې لیکلې دی چه احنافو عالمانو فرمائیلې دی چه د جهاد نه پس د تولو نه بهتره ګټه تجارت دې بیا زمینداری ده بیا صنعت وحرفت (هنراوفن) دې. ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه زما په نیز افضل کسب کتابت ( خوشخطه لیکل ) دې.

**د بیع د مشروعیت سبب:** – د بیع مشروع کیدلو سبب (تعلق البقاء المعلوم لله تعالى على وجه جميل ) دې یعنی ..کوم ژوند چه الله تعالى ته معلوم دې دا په ښه طریقه باندې باقی ساتل دی ددې مطلب دادې چه د ژوند د بقاء دپاره د کوموځیزونو ضرورت وی دا ټول څه د یوکس په کور کښې نه تیاریږی بلکه یو قسم سامان یو کس تیاروی او بل قسم سامان بل څوك تیاروی نود ژوند د ضروریاتو د پوره کولو دپاره هرکس د بل محتاج دې اوس د بل کس نه د خپلو ضروریاتو څیزونه حاصلول. به یا په حرام طریقه باندې وی یا به په حلال طریقه باندې وی په حرام طریقه سره حاصلول خو شرعاً ممنوع دی په دې وجه د بیع حلال طریقه مشروع کړې شوه

**د بیع حکم:** – د بیع حکم ملك دې یعنی مشتری ته د .. مبیع ..په تصرف باندې قدرت ورکول.

**د بیع رکن:** – د بیع رکن ایجاب او قبول دې ایجاب هغه کلام دې کوم چه وړاندې اوونیلی شی که د بائع د طرفه وی او که د مشتری د طرفه وی او ددې متعلق دویم کلام ته قبول وائی

**د بیع د جواز شرطونه:** – د ..بیع .. دجواز شرطونه دا دی ی.

① د عاقد عاقل کیدل ② د مبیع مال متقوم او مقدور التسلیم کیدل.

**دذات په اعتبار سره د بیع څلور قسمونه:** – بیع د ذات په اعتبار سره ددې څلور قسمونه دی ① بیع نافذ ② بیع موقوف ③ بیع فاسد ④ بیع باطل.

ددې څلورو واړو قسمونو احکام به په خپلو موقعو باندې ذکرکولې شی

**د مبیع په اعتبار سره د بیع څلور قسمونه:** –

① بیع مطلق. یعنی بیع العین بالثمن

② بیع مقائضه. یعنی بیع العین بالعین

③ بیع صرف. یعنی بیع الثمن بالثمن

④ بیع سلم. یعنی بیع الدین بالعین.

**د ثمن په اعتبار سره د بیع څلور قسمونه:-**

① بیع مرابحه، یعنی د ثمن اول نه په زیاتی عوض باندې خرڅول

② بیع تولیه، یعنی د ثمن اول په عوض باندې خرڅول

③ بیع وضیعه، یعنی د ثمن اول نه په کم عوض باندې خرڅول

④ بیع مساومه، یعنی د هغه ثمن په عوض باندې خرڅول، په کوم چه عاقدین اتفاق اوکړی.

# [۱] بَابُ الْكَسْبِ وَطَلَبِ الْحَلَالِ

**دَ کټې اودَ حلال رزق لټون بیان**

**خلاصة الباب:-**

**فیه ثلاثون حدیثاً مشتملة علی خمس مسائل:**

① فضل الكسب الحلال: ۱، ۱۱، ۱۲، ۲۳، ۲۴، ۲۵، ۲۶، ۲۷.

② فضل أكل الحلال: ۲.

③ الإجتناب من أكل المشتبهات: ۲، ۳، ۴، ۷، ۱۱، ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۱۷، ۲۸، ۲۹، ۳۰.

④ بعض المحرمات: ۵، ۶، ۷، ۸، ۹، ۱۰، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۲، ۲۸.

⑤ المنع عن الحيل لتحليل الحرام: ۸، ۹.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۷۵۹] دَ خپل لاس د کټې غوره والی**

۲۷۵۹-[۱] (۱) ①عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "②«مَا أَكَلَ أَحَدٌ طَعَامًا قَطُّ خَيْرًا مِنْ أَنْ يَأْكُلَ مِنْ عَمَلِ يَدَيْهِ، ③وَإِنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ دَاوُدَ -عَلَيْهِ السَّلَامُ- كَانَ يَأْكُلُ مِنْ عَمَلِ يَدَيْهِ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①حضرت مقدام ابن معدي کرب رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ②هيڅ کله چا د خپل لاس د محنت ښه روزي نه ده خوړلې ③دا وجه ده چې د خدای ﷻ نبي حضرت داود عليه السلام به د خپلو لاسونو په محنت سره ګټلې روزی خوړله، بخاري

**حل اللغات:-** ① قَطُّ: هيڅ کله، د تاکيد دپاره استعمالیږی ② عَمَلِ يَدَيْهِ: د خپلو لاسونو په محنت سره روزی ګټلو ته وائی

---

[۱] اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب كسب الرجل وعمله بيده (رقم-۲۰۷۲)

**تسهیلات:**

**قوله: مِنْ عَمَلِ يَدَيْهِ:**

**د داؤد علیه السلام د خپل لاس کټې شروع کولو سبب:**-یعنی داؤد علیه السلام به په خپل لاس محنت سره ګټه کوله او بیابه ئې خوړله الله تعالی حضرت داؤد علیه السلام ته لویه بادشاهی ورکړې وه هغوی به هره ورځ د هرچانه د خپل ځان باره کښې تپوس پوښتنه کوله چه اوښایه داؤد څنګه بادشاه دې د هغه عادت اواخلاق څنګه دی؟ یوه ورځ الله تعالی د انسان په شکل کښې فرښته راؤلیګله هغه په جواب کښې اوفرمائیل داؤد ډیرښه سړې دې مګرافسوس چه هغه دبیت المال نه وظیفه نه خوړله په دې خبره باندې د حضرت داؤد علیه السلام په زړه اودماغوکښې لکه د بجلئی یوبرق غوندې تیرشو او هغوی وعده اوکړه چه بیا به وظیفه نه اخلم نو الله تعالی هغه ته د زغرې جوړولو هنر اوخودلو او د هغه په لاس کښې ئې اوسپنه لکه د موم نرمه جوړه کړه. وئیلی شی چه هغه به روزانه یوه زغره جوړوله او بیابه ئې په څلور پنځه زره کښې خرڅوله. څه به ئې پخپله خوړلې او باقی پاتې به ئې د بنی اسرائیلو په فقیرانو تقسیم کولې.

**د مختلفو انبیاء کرامو د آمدن ذرائع:** حضرت شاه عبدالعزیز رحمه الله په تفسیرعزیزی کښې د مختلفو انبیاء کرامو پیشې اوکسب داسې لیکلې دې

① د حضرت آدم علیه السلام پیشه زمینداری وه.

② د حضرت ادریس علیه السلام پیشه او ذریعه معاش درزی توب وو

③ د حضرت نوح علیه السلام پیشه اود معاش ذریعه ترکهانی وه.

④ د حضرت هود علیه السلام اوحضرت صالح علیه السلام دواړو پیشه تجارت وو

⑤ د حضرت ابراهیم علیه السلام پیشه زمینداری وه

⑥ د حضرت لوط علیه السلام هم دغه پیشه وه

⑦ د حضرت شعیب علیه السلام پیشه اود معاش ذریعه چیلئی ساتل وو

⑧ د حضرت موسی علیه السلام پیشه هم چیلئی ساتل وو

⑨ د حضرت داؤد علیه السلام پیشه زغرې جوړول وو

⑩ د حضرت سلیمان علیه السلام پیشه ټوکرئی جوړول وو

⑪ حضرت پاک محمدعربی ﷺ ذریعه معاش جهاد فی سبیل الله وو او الله تعالی د حضورپاک رزق د هغوی د نیزې لاندې ایخودې وو چنانچه په مدنی دورکښې حضورپاک ته دا روزی ورکړې شوه [تفسیرعزیزی، ۱/۲۴۵]

## [ ۲۷۶۰ ] ذحرام خور د دعا نه قبلیدل

۲۷۶۰—[ ۶ ] ( ) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[۲] إِنَّ اللّٰهَ طَيِّبٌ لَا يَقْبَلُ إِلَّا طَيِّبًا، [۳] وَأَنَّ اللّٰهَ أَمَرَ الْمُؤْمِنِينَ بِمَا أَمَرَ بِهِ الْمُرْسَلِينَ، [۴] فَقَالَ: ﴿يَا أَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا﴾ [المؤمنون: ۵۱] [۵] وَقَالَ: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ﴾ [البقرة: ۱۷۲]

**ترجمه:** حضرت ابوهریره وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] بلا شبه الله ﷻ د ټولو نقصانو او عیبونو څخه پاك دی، د هغه پاك ذات په بارگاه کې صرف صدقت او اعمال قبلیږي چې د شرعي عیبونو او د نیت د فساد څخه، پاك وي [۳] یاد لری: الله ﷻ چې کوم څیز یعني د حلال مال خوړلو او نیکو اعمالو کولو حکم، خپلو رسولانو ته ورکړي دی د هغه شي حکم یې ټولو مؤمنانو ته هم ورکړي دی، [۴] د الله ﷻ ارشاد دی: يَا أَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا یعني اې رسولانو حلاله روزي خورئ او نیك اعمال کوئ [۵] همدارنگه الله ﷻ فرمایلي دي: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ یعني اې مؤمنانو تاسو صرف هغه پاك او حلال رزق خورئ کوم چې مونږ تاسو ته درکړي دی.

[۱] ثُمَّ ذَكَرَ الرَّجُلَ يُطِيلُ السَّفَرَ، أَشْعَثَ، أَغْبَرَ، يَمُدُّ يَدَيْهِ إِلَى السَّمَاءِ: يَا رَبِّ! يَا رَبِّ! [۲] وَمَطْعَمُهُ حَرَامٌ، وَمَشْرَبُهُ حَرَامٌ، وَمَلْبَسُهُ حَرَامٌ، وَغُذِيَ بِالْحَرَامِ، فَأَنَّى يُسْتَجَابُ لِذَلِكَ؟!» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] بیا حضور ﷺ د مثال بطور، د یو سړي حال ذکر کړي چې هغه اوږد اوږد سفر ختیږ روي خواره واره ویښتان او په گرد لړلی هغه خپل دواړه لاسونه د آسمان طرف ته اوچتوي او وایي چې اې خما ربه اې خما ربه، یعني هغه د خپلو مقاصدو د پوره دعا غواړي [۲] حالانکه طعام د هغه حرام لباس د هغه حرام، د شروع څخه د اوسه پورې، د هغه پرورش په حرامو غذاگانو سره، شوی وي. نو بیا څنگه د هغه دعاء قبوله شي. مسلم

**حل اللغات** - ① يُطِيلُ السَّفَرَ: اوږدي اوږدي سفري نې کړي وي، د حج. عمرې. د جهاد او علم وغیره دپاره ② أَشْعَثَ خبرنو گډ وډ ویښتو والا. بيرسر. ③ أَغْبَرَ أغبر. گرد آلوده چې دوړې پرې الوتي وی ④ يَمُدُّ يَدَيْهِ أي مَاذا يديه: خپل دواړه لاسونه د آسمان طرف ته اوچتوی ⑤ مَطْعَمُهُ: مصدر میمی دې په معنی د مفعول سره. مطعوم یعنی خوارک. ⑥ مَشْرَبُهُ څکاک. ⑦ مَلْبَسُهُ: لباس. جامه، ⑧ غُذِيَ أي نُمِيَ پرورش نې شوی وی

**تسهیلات:** قوله: وَمَطْعَمُهُ حَرَامٌ:

**ددعا د قبلیدو شرط حلال خوراک:**- چې یو سړي عابد هم دې او مسافر هم دې په اوږد سفر کښې ډیرلوئی مشقت هم اوچت کړي دي خیرن ویښته دی او مجبوردې په ډیره

---

[۱] ) اخرجه مسلم في كتاب الزكاة/باب قبول الصدقة من الكسب الطيب وتربيتها (رقم) ۶۵ - (۱۰۱۵) و الترمذي في كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة البقرة (رقم-۲۹۸۹) واحمد في المسند: ۳۲۸/۲

زارئي او ژړا سره دعا هم غواړي دواړه لاسونه ئي دَ الله تعالى په وړاندې خواره كړي دي په داسې حالت كښې دَ دعا دَ قبليدو ډير زيات اميدوي ليكن حضورپاك اوفرمائيل دَ دغه سړي دعا څكه نه قبليږي چه خوراك څښاك ئي حرام دې او په بدن باندې چه كومې كپړې دي هغه هم حرامې دي نو دَ دغه سړي دعا څنګه قبليدې شي عارفينو مقوله ده چه دَ دعا دوه وزرې دي كه هغه وي نو دعا پورته خيژي يو حلال خوراك او بل رښتياونيل يعنى چه په خيټه كښې حلال وي او ژبه ئي رښتونې وي نو دعا قبليږي ګنې نه قبليږي

**[۲۷۶۱] په آخره زمانه كښې دَ حلالو او حرامو تميز ختميدل**

۲۷۶۱ ـ [۳] (¹) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " [۲] «يَأْتِي عَلَى الْمَرْءِ زَمَانٌ [۳] لَا يُبَالِي الْمَرْءُ مَا أَخَذَ مِنْهُ، أَمِنَ الْحَلَالِ أَمْ مِنَ الْحَرَامِ» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په خلقو به يوه داسې زمانه راشي [۳] چې سړي ته كوم مال حاصل شي د هغه په باره كې به هغه دا پروا نه كوي چې دا حلال دى يا حرام، بخاري

**حل اللغات:** - ① لَا يُبَالِي: پرواه نه كوي، څه اهميت نه وركوي ② مَا أَخَذَ: هغه مال چه حاصل ئي كړي

**تسهيلات:**

**قوله** لَا يُبَالِي الْمَرْءُ مَا أَخَذَ مِنْهُ، أَمِنَ الْحَلَالِ أَمْ مِنَ الْحَرَامِ

**دحلال اوحرامو تميز ختميدل:** - دَ قرب قيامت په وخت چه يو طرف ته فتنې او ګمراهئي وي نو بل طرف ته به دا ګمراهئي هم بنه په ترقئي وي چه خلق به دَ حلال او حرام فرق ختم كړي بس پيسه به پكاروي دَ كوم ځائي نه چه هم وي او څنګه چه هم وي چه راشي لكه چه دَ مزار دَ منجاور باره كښې وئيلى شوي دي اخون له خو بس پيسى دَ خرې وي او كه دَ سپني يعنى منجاور له پيسې پكار دي كه هغه دَ خرې وي او كه دَ سپنې وي چه پيسې وي

**[۲۷۶۲] دَ مشتبه څيزونو څخه ځان ساتل**

۲۷۶۲ ـ [۴] (²) [۱] وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] " «الْحَلَالُ بَيِّنٌ وَالْحَرَامُ بَيِّنٌ، وَبَيْنَهُمَا مُشْتَبِهَاتٌ لَا يَعْلَمُهُنَّ كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ، [۳] فَمَنِ اتَّقَى الشُّبُهَاتِ اسْتَبْرَأَ لِدِينِهِ وَعِرْضِهِ، [۴] وَمَنْ وَقَعَ فِي الْحَرَامِ كَالرَّاعِي يَرْعَى حَوْلَ الْحِمَى يُوشِكُ أَنْ يَرْتَعَ فِيهِ،

(¹) اخرجه البخاري فى كتاب البيوع /باب من لم يبال من حيث كسب المال (رقم-۲۰۵۹)

(²) اخرجه البخاري فى كتاب الإيمان /باب [ص: ۲۰] فضل من استبرأ لدينه (رقم ۵۲) ومسلم فى كتاب المساقاة /باب أخذ الحلال وترك الشبهات (رقم-۱۰۷ - (۱۵۹۹) وابوداود فى كتاب البيوع /باب فى اجتناب الشبهات (رقم-۳۳۲۹) والترمذي فى كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى ترك الشبهات (رقم-۱۲۰۵) والنسائي فى كتاب البيوع /باب اجتناب الشبهات فى الكسب (رقم-۴۴۵۳) وابن ماجة فى كتاب الفتن /باب الوقوف عند الشبهات (رقم-۳۹۸۴) واحمد فى المسند: ۲۶۷/۴

**ترجمه**: [١] او حضرت نعمان ابن بشير راوي ﷺ دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل حلال هم ښکاره دی او حرام هم ښکاره دی، او د دې دواړو په منځ کې مشتبه څيزونه دي چې ډير خلق يې نه پيژني [٢] نو کوم سړی چې د مشتبه څيزونو څخه پرهيز وکړي هغه خپل دين او خپل عزت پاك او محفوظ کړي (يعني د مشتبه څيزونو څخه ساتونکي ته به نه د دين د خرابۍ څه خوف وي او نه به څوك طعن باندې وايي) [٣] کوم سړی چې په مشتبه څيزونو کې مبتلا شو هغه په حرامو کې مبتلا شو [٤] او د هغه مثال د هغه شپونکي دی چې د ممنوعه ورشو (چراګاه) په کناره (خپل خاروي) څروي او هر وخت د دې امکان وي چې د هغه خاروي په هغه ممنوعه ورشو کې په ننوتلو سره څرند شروع کړي.

**حل اللغات**: - ① بَيِّنٌ: أَيْ: وَاضِحٌ: ښکاره، واضحه. ② مُشْتَبِهَاتٌ: أَيْ: أُمُورٌ مُلْتَبِسَةٌ غَيْرُ مُبَيَّنَةٍ: داسې کارونه چه واضحه او ښکاره نه وی چه دا حلال دي او که حرام. ③ اسْتَبْرَأَ: أَيْ: حَصَّلَ الْبَرَاءَةَ بِالصِّيَانَةِ: برات ئې حاصل کړو په دې بچ کيدلو سره (يعنی چه خان ئې د مشتبهاتو نه اوساتلو نو خپل دين او خپل عزت ئې هم محفوظ کړو) ④ عِرْضِهِ: خپل عزت (د طعن کونکو او ملامته کونکو نه). ⑤ الرَّاعِي: شپونکي، خاروی څرونکي. ⑥ الْحِمَى: أَي الْمَرْعَى: چراګاه يعنی ورشو، د څرن ځائې، بار، شپول. ⑦ يُوشِكُ: أَيْ: يَقْرُبُ: نزدې ده، زر ده. ⑧ يَرْتَعَ: چه اوننې څروی، څرن شروع کړی.

[١] أَلَا وَإِنَّ لِكُلِّ مَلِكٍ حِمًى، أَلَا وَإِنَّ حِمَى اللَّهِ مَحَارِمُهُ، [٢] أَلَا وَإِنَّ فِي الْجَسَدِ مُضْغَةً إِذَا صَلَحَتْ صَلَحَ الْجَسَدُ كُلُّهُ [٣] وَإِذَا فَسَدَتْ فَسَدَ الْجَسَدُ كُلُّهُ، [٤] أَلَا وَهِيَ الْقَلْبُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [١] پوهه شئ! چې د هر بادشاه يوه ممنوعه ورشو (چراګاه) وي او ياد لرئ د الله ﷻ ممنوعه ورشو حرام څيزونه دي [٢] او د دې خبري هم خيال ساتئ چې د انسان په جسم کې د غوښې يوه ټکړه ده هر کله چې هغه په درست حالت کې وي (يعني هغه چې په ايمان، عرفان او د يقين په نور سره منور وي) نو (د اعمال خير او حسن اخلاق واحوال په وجه) پوره جسم په درست حالت کې وي [٣] او هر کله چې په دې ټوکړه کې خرابي پيدا شي نو پوره جسم خراب شي [٤] ياد لرئ د غوښې هغه ټکړه زړه دی. بخاري مسلم

**حل اللغات** - ⑨ مَحَارِمُهُ: وَهِيَ أَنْوَاعُ الْمَعَاصِي: حرام کړی څيزونه (ددې نه مراد د نافرمانئ کارونه دی). ⑩ مُضْغَةً: وَهِيَ قِطْعَةٌ مِنَ اللَّحْمِ: د غوښې يوه ټکړه (ددې نه مراد زړه دی).

**تسهيلات**: **قوله** الْحَلَالُ بَيِّنٌ وَالْحَرَامُ بَيِّنٌ:

**د حلال او حرام ښکاره والي**: - يعنی واضح حلال هغه څيزونه دی دکوم په حلت چه د شريعت واضح دلائل موجودوی په هغې کښې د هيڅ قسم شك نه وی لکه نکاح کول اود حلال خناور غوښه خوړل په وخت اوده کيدل اود مخلوق خدا خدمت کول وغيره وغيره.

((والحرام بين وهوالذي توجد فيه دلائل الحرمة فقط)) يعنی چه واضح دلائل موجود وی په هغې کښې څه شك نه وی لکه زنا کول غلاکول دروغ ونيل او چغلی خوړل وغيره.

قوله:- وَبَيْنَهُمَا مُشْتَبِهَاتٌ

**د مشتبهاتو تعریف:**- د مشتبهاتو تعریف عالمانو داسې کړې دې ((هی ماتعارضت فیها أدلة الحل والحرمة ولم یتضح وجه الترجیح))یعنی مشتبهات هغه امور دی په کوم کښې چه حلت اوحرمت دواړه اړخونه موندلې شی مثلاً چه یواړخ ته نی اوکتلې شی نوداسې معلومیږی چه حلال دی اوکه چرې بل اړخ ته نی اوکتلې شی نوداسې محسوس کیږی چه حرام دی اوس په دې کښې شك پیدا شوکوم چه ډیر خلق نه پیژنی اونه دَهغې باره کښې څه فیصله کولې شی. اوجیدعلماء او مجتهدین په خپل قوت اختیاری سره یوطرف راجح ګرخولو سره فیصله کوی یا مثلاً داسې دلائل دی چه دَمجتهدینو دَ اجتهاد په هغې کښې ګنجائش وی نودَ یومجتهد دَ اجتهاد په رڼاکښې هغه څیزونه حلال کیږی. په دې کښې اوس شك راغلو نودَ احتیاط تقاضا داده چه دا ترك کړې شی.

**د دواړو قاعدو مثالونه:**-دَ پورته دواړو قاعدو دوه مثالونه داسې اوګنړئی

① یوسړی سره څه پیسې دَحلال ګټې وی اوڅه دَحرام ګټې وی نودَ تولو نه خان ساتل بهتر دی.

② یوې ښځې ګواهی ورکړه چه ما فلانکی هلك او فلانکې جینئی له پینی ورکړی دی لهذا دَدوی نکاح صحیح نه ده. اوس یوطرف نه دَدې ښځې وینا ده بل طرف ته قاعده داده چه دَ یوې ښځې ګواهی معتبر نه ده. لهذا دَ دوی په نکاح کښې جائز اوناجائز شك راغلو نوترك کول ئې بهتر دی.

**د مشتبهاتو په باره کښې درې اقوال:**-بهرحال دَ مشتبه څیزونو باره کښې دَعلماؤ اقوال په درې قسمه باندې دی.

① چه مشتبه څیزونه حرام اوګرخولې شی صرف په اضطراری حالت کښې دَ خان بچ کولو دَپاره استعمال کړې شی.

② چه داسې مشتبه څیزونه مباح اوګنړلې شی چه دَ دې استعمالول اونه استعمالول دواړه جائز دی

③ چه داسې مشتبه څیزونه نه حرام اوګنړلې شی اونه حلال لکه څنګه چه په مشتبه حالت کښې دی هم هغه شان پریخودې شی

قوله: كَالرَّاعِي:

**د حمی مطلب:**- پخوا زمانه کښې به ،،حمی،، هغې چراهګاه ته وئیلې شوه کومه چه به یو ملك بادشاه یا حاکم یا سردار دخپل خان دپاره خاص کړې وه اودا اعلان به ئې کولو چه په دې چراهګاه کښې بل چاته دخپلو خاروو څرولو اجازت نشته.

**دحمی جوړولو طریقه:**- اود ،،حمی،، جوړولو طریقه به دا وه چه په کومه علاقه کښې به

هغې سردار يا بادشاه د خپل خان دپاره ،،حمی،، جوړوله نوهلته به يوې اوچتې ديرو نه ورغلو اوخپل خان سره به ئې داوجت آواز سپې بوتلو هلته کښې به ئې هغه سپې غپلو ته تيار کړلو بيا چه به تر کومه خائې پورې د سپې د غپارآواز رسيدلو د هغې خائې پورې به د هغې سردار ،،حمی ،، جوړه شوه بيا به عامو خلقو ته په هغې کښې د دننه ورتلو او په هغې کښې د خپلو څاروو څرولواجازت نه وو

**دحمی د رسم ختمول:-** خوچه کله نبی علیه السلام تشریف راوړلو نو هغه رسم ئې ختم کړلو او اعلان ئې اوکړلو ((لاحمی إلا لله ولرسوله)) (٢) يعنی دالله تعالی او پيغمبر نه سوا به بل څوك آئنده دپاره د خان دپاره داسې،،حمی،،نشی جوړولې يعنی د بيت المال دپاره خو،،حمی ،، جوړولی شی د بيت المال نه سوا د بل څه دپاره يا دخپل خان دپاره به څوك ،،حمی،، نشی جوړولې

**د حمی مثال بیانول:-** په د حدیث کښې د مثال په رنړا کښې په دې باندې پوهول کوی چه لکه څنګه د جاهليت په دور کښې به دسردارانو ،،حمی،، وه او عام سړی ته به هغه ،،حمی،،کښې دخپلو څاروو څرولو اجازت نه وو نو عام سړی به د دې ويرې د هغې ،،حمی،، نه ګيرچاپيره هم خپل څاروی نه څرول چه هغې نه څاروی اوبروېری او دغې ،،حمی،، ته دننه ورشی نو د سردار يا د بادشاه د سزا مستحق به شی د مشتبه امورو ارتکاب هم دغه شان دی

**د تشبیه غرض:-** لکه چه دالله تعالی د ،،حمی،، نه ګيرچاپيره څريدل په دې کښې ددې خيرې خطره ده چه هغې نه د محرماتو ارتکاب اوکړی او دالله تعالی د سزا مستحق شی امام ابوداود رحمه الله دا حديث د دين دريمه حصه ګرځولې ده

**د مشتبهاتو څخه د ځان بچ ساتلو د حکم دوه قسمونه:-** په دې حديث کښې نبی کريم ﷺ د مشتبهاتو نه د بچ کيدو حکم کړې دې په بعضې حالاتو کښې دا حکم وجوبی وی او په بعضې حالاتو کښې دا حکم استحبابی وی

**د مشتبهاتو څخه د ځان بچ ساتلو د وجوب يومثال:-** که يوعالم يا مجتهد د يو څيز په باره کښې تحقيق کوی چه دا څيزحلال دې که حرام؟ اوددې تحقيق په دوران کښې هغه ته دواړه قسم دلائل مخکښې راشی بعضې دلائل په حلت باندې دلالت کوی او بعضې دلائل په حرمت باندې او د موازنې په نتيجه کښې د دواړه طرف دلائل د وزن په اعتبار باندې برابر معلوميږی اويوطرف ته ترجيح نشی ورکولې نوپه داسې صورت کښې هغه څيز مشتبه شو او په داسې صورت کښې هغې عالم يا متجهد ته پکار دی چه د حرمت طرف ته ترجيح ورکړی اود هغې د حرمت فيصله اوکړی څکه چه په داسې صورت کښې د مشتبه نه د بچ کيدو حکم وجوبی دې

**د مشتبهاتو څخه د ځان بچ ساتلو د وجوب دویم مثال:** - یا یو عام سړی په یوه مسئله کښې د دوو عالمانو نه فتوی واخستله یوعالم د هغې د جوازفتوی ورکړه اوبل دحرمت فتوی ورکړه که د دغې عام سړی په دغه دواړو عالمانو کښې د یو په علم اوتقوی باندې زیات اعتماد وو نو په دې صورت کښې هغه ته د هغې عالم په فتوی باندې عمل کول پکار دی په چا باندې چه ئې زیات اعتماد وی خو که دهغه په نظر کښې دواړه عالمانو په علم او تقوی کښې برابر وو نوپه داسې صورت کښې په هغې عامی سړی باندې واجب ده چه هغه د هغې عالم په فتوی باندې عمل اوکړی ځوك چه د عدم جواز فتوی ورکوی خکه چه په دې صورت کښې دا مسئله د مشتهباتونه شوه اوداسې مشتبه شوه چه د هغې نه د ځان ساتلوحکم وجوبی دې

**د مشتبهاتو څخه د بچ کیدو د استحباب یومثال:** - په بعضې حالاتو کښې د مشتبهاتو نه د بچ کیدو حکم استحبابی وی مثلا که په یوه مسئله کښې دحلت او حرمت دواړه دلائل متعارض وی اودحلت د جانب دلائل د حرمت ددلائلو په مقابله کښې زیات قوی او راجح وی اوپه داسې صورت کښې یومفتی او یو عالم دحلت د دلائلو د ترجیح دوجه د هغې د حلت فتوی ورکړه لیکن د حرمت په طرف کښې هم څه دلائل موجود وو د هغې دوجه دا مسئله مشتبه شوه اود هغې نه د بچ کیدو حکم استحبابی شو نود تقوی تقاضا دا ده چه سړې د هغې نه پرهیز اوکړی او دحرمت په طرف عمل اوکړی

**دانګریزی سیاهئ حکم:** - حکیم الامت حضرت مولانا اشرف علی تهانوی قدس سره به په فتوی کښې ددې خبرې کوشش کولو چه عامو خلقو ته چه څومره زیاته آسانتیا ملاویدې شوه هغه به ئې ورته ورکوله خود خپل ځان دپاره به ئې د سختطی طرف غوره کولو په هغه زمانه کښې د سیاهئ رواج شروع شو کومه چه نن مونږ خلق د سیاهئ په قلم کښې استعمالوو نود دې سیاهئ د جوازاو عدم جواز مسئله پیدا شوه خکه چه په دې سیاهئ کښې سپرټ وی او په سپرټو کښې الکحل ګروی او هغه د شرابو یوقسم دې او شراب نجس دی نوسپرټ هم پلیت شو نود سپرټ نه جوړه شوې سیاهئ هم پلیته کیدل پکار وو نود دې سیاهئ استعمال ناجائز کول پکار وو

حضرت تهانوی رحمه الله ددې مسئله دتحقیق نه پس یوه مستقله فتوی اولیکله په هغې کښې ئې اوفرمائیل چه په سیاهئ کښې الکحل ګروی اوهغه په اشربه اربعه کښې دیو نه هم نه جوړیږی نه هغه د کهجورو وی او نه د انګورو ددې وجه دامام اعظم رحمه الله د قول مطابق دا سیاهی پلیته نه ده نوددې استعمال هم جائز شو اوکه په یوه جامه باندې اولګی نوهغه نه پلیتیږی خوحضرت تهانوی رحمه الله چه تقریبا زر تصنیفات ئې پریخی دی ټول عمر ئې دا سیاهی نه ده استعمال کړې بلکه د سیاهئ قلم به ئې هم نه استعمالولو همیشه دپاره به

نې د لرګی قلم او دیسی سیاهی استعمالوله اوپه هغې باندې نې ټول تصنیفات لیکلی دی دې طرف ته رسول الله ﷺ په دې حدیث کښې اشاره کړېده
((دع ما یریبك إلا ما لا یریبك)) (٣) یعنی کوم څیزونه چه دې په شك کښې اچوی هغه پرېږده اوهغه څیزونه اختیار کړه کوم چه دې په شك کښې نه اچوی

**د جائز او ناجائز پنځه مراحل او په هغې کښې ترتیب:** - شیخ علی متقی رحمه الله دَدې حدیث په رڼاکښې جائز اوناجائز حدود په پنځو مرحلوباندې مشتمل یوترتیب داسې لیکلې دې ① ضرورت ② مباح ③ مکروه ④ حرام ⑤ کفر. فرمائی چه کله انسان دَخپلې بقاء اوخپل عزت دَحفاظت دَحده پورې په ضروری څیزونو باندې اکتفاء کوی نوهغه دَهرې فتنې او خطرې نه محفوظ وی.خوچې کله انسان دَ خپل ضروری حد نه تجاوز اوکړی اومخکښې تیر شی نوهغه دَمباح په حدودو کښې ورداخل شی اوکه چرې هغه حد دَ اباحت باندې هم صبر نه کوی نوهغه په حد دَ کراهت کښې داخلیږی اوکله چه هغه په حد دکراهت باندې هم صبر نه کوی نوهغه وړاندې کیږی اوحد دَ حرام ته وررسیږی دکوم نتیجه چه دا راوځی چه دې نه په وړاندې مرحله کښې هغه دَ کفر حد کښې داخلیږی.

**قوله:** أَلَاوَهِيَ الْقَلْبُ:

**د زړه اهمیت او عظمت:** - دَحدیث په آخری جمله کښې دَ نتیجې په توګه اوخودلې شوچه: حرام اومشتبه شیونو په استعمال سره په انسانی بدن کښې یوه ټکړه ده هغه متاثره کیږی په حرام خوراك سره په دې باندې تیارې خوریږی اوهغه ټکړه خرابیږی هغه دَ پوره بدن دَپاره په منزله دَ پاورهاؤس دې که هغه خراب شونو پوره بدن به خرابیږی هغه ټکړه په منزله دَ بادشاه ده که دَ بادشاه ارادې بنه پاتې نه شوې نودَ بدن دَ یو اندام اراده صحیح نه شی پاتې کیدې ونی فرمائیل هغه زړه دې دَ دې احساسات جذبات او رحجانات سره پوره بدن حرکت کوی لهذا دَدې دَ اصلاح کوشش کوئی دَ حرامو څیزونو نه بچ شئی اوحلال څیزونه استعمالوئی دې دَپاره چه زړه مو نیك پاتې شی اوکله چه زړه صالح وی نودَ هغې خدام یعنی دَ بدن ټول اعضاء به صالح وی

**[٢٧٤٣] دَزنا کارې ښځې داجرت حرمت**

٢٧٤٣ - [د] ( ) [١] وَعَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - " [٢] «ثَمَنُ الْكَلْبِ خَبِيثٌ، [٣] وَمَهْرُ الْبَغِيِّ خَبِيثٌ، [٤] وَكَسْبُ الْحَجَّامِ خَبِيثٌ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت رافع رضي الله عنه ابن خدیج وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] د سپي

---

[١] ) اخرجه مسلم فی کتاب المساقاة/باب تحريم ثمن الكلب. وحلوان الكاهن. ومهر البغی. والنهی عن بیع السنور(رقم-٤١ - (١٥٦٨)وابوداود فی أبواب الإجارة/باب فی کسب الحجام (رقم-٣٤٢١) والترمذی فی کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی ثمن الكلب (رقم-١٢٧٥) واحمد فی المسند: ٤٦٤/٣

قیمت ناپاك دى، [٣] د زناكارۍ ښځې مزدورۍ حرام مال دى [٤] د ښكر راوښكلو (د وينې وكونكى) گټه ناخوښه مال دى. مسلم

**حل اللغات** - ① ثَمَنُ الْكَلْبِ: د سپي گټه يعنى د سپى په اخستلو خرڅولو باندې پيسې گټل ② خَبِيثٌ دا لفظ په گنړو معانيو كښې مستعمل دې دلته ترې مراد حرام دې ③ مَهْرٌ: هغه مال يا قيمت كوم چه زنانه ته په بدل د بُضعه (فرج) كښې ملاؤ شى ④ اَلْبَغِىّ: زناكاره ښځه ⑤ كَسْبٌ: كار، روزگار. ⑥ اَلْحَجَّامِ ښكر لگونكې، يعنى د رگ څخه وينه راويستونكې

**تسهيلات: قوله: وَمَهْرُ الْبَغِيِّ خَبِيثٌ:**

**د خبيث لفظ اطلاق:**- په لغوى اعتبارسره لفظ خبيث دَ ناپاك دَ پاره وئيلې شى ليكن نقهى اصطلاح كښې فقهاء كرام اومجتهدين دا لفظ په موقع اومحل سره كله په حرام باندې حمل كوى كله ئې په مكروه باندې حمل كوى كله ئې په خلاف اولى اوناخوښه عمل باندې حمل كوى

**قوله ثَمَنُ الْكَلْبِ خَبِيثٌ:**

**د سپو د گټې په حكم كښې اختلاف:**- ① دَ احنافو فقهاؤ دا لفظ په مكروه باندې حمل كړې دې ② نورو ائمه حضراتو دَ خپل خپل اجتهاد مطابق په حرام باندې حمل كړې دې اختلاف په راتلونكى حديث كښې راروان دې

**قوله: وَكَسْبُ الْحَجَّامِ خَبِيثٌ:**

**د حجام د گټې حكم:**- دَ حجام كسب څكه خلاف اولى گرځولې شوې دې چه اسلام مسلمانانو ته اوچت اخلاق او اوچت مقام وركوى لهذا اسلام دَ مسلمانانودَپاره داسې پيشه اختيارول نه خوښه وى دَ كوم په اختيارولو سره چه دَ مسلمان په لوړ مقام كښې كوتهى راځى مثلاً خلق به وائى فلانكى صاحب دَ سپو فارم كولاؤكړې دې فلانكى صاحب دَ پيشوگانو دَاخستو خرڅولوفارم كولاؤكړې دې اوفلانكې صاحب په وينه راښكلو راښكلو سره خپل رزق گټى په دې سره دَمسلمان اوچت شان ته نقصان رسيږى

**[٢٧٠٣] دَ سپو دَ خرڅولو اخستلو ممانعت**

٢٧٠٣-[١] (١) [١] وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- [٢] «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ، [٣] وَمَهْرِ الْبَغِيِّ، [٤] وَحُلْوَانِ الْكَاهِنِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

(١) اخرجه البخارى فى كتاب البيوع/باب ثمن الكلب(رقم ٢٢٣٧) ومسلم فى كتاب المساقاة/باب تحريم ثمن الكلب. وحلوان الكاهن. ومهر البغى. والنهى عن بيع السنور(رقم-٣٩ (١٥٦٧) وابوداود فى أبواب الإجارة/باب فى حلوان الكاهن (رقم-٣٤٢٨) والترمذى فى كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى ثمن الكلب (رقم-١٢٧٦) وابن ماجة فى كتاب التجارات /باب النهى عن ثمن الكلب ومهر البغى وحلوان الكاهن وعسب الفحل (رقم-٢١٥٩) ومالك فى الموطا كتاب البيوع/باب ماجاء فى ثمن الكلب (رقم-٦٨)واحمد فى المسند: ١١٨/٢

**ترجمه**: [۱] حضرت ابو مسعود انصاري رضي الله عنه وايي [۲] چې رسول الله ﷺ د سپي قيمت [۳] د بدکارې ښځې مزدورې، [۴] او د کاهن حلوان (يعنې د هغه ځه ځه دأجرت په طور حاصليدونکی مال ځه يي د استعمالولو) منع فرمايلي ده. بخاري مسلم

**حل اللغات** - ① حُلْوَانِ: مَا يُعْطَاهُ عَلَى كَهَانَتِهِ: کاهن چې په خپل کهانت باندې کوم اجرت اخلی هغې ته حلوان وائی ② الْكَاهِنِ: هُوَ الَّذِي يَتَعَاطَى الْأَخْبَارَ عَنِ الْكَائِنَاتِ فِي الْمُسْتَقْبَلِ: کاهن هغه سړی ته وائی چه د راتلونکی وخت د غيبو خبرې کوی. ده ته فال گر او لاس کتونکې هم وائی

**تسهيلات**:

**قوله**: نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ:

**د سپي د خرڅولو او اخستلو حرمت**:- يعنی حضورپاك د سپی د قيمت اخستلو نه مسلمانان منع کړی دی دکوم مطلب چه دا شو د سپی اخستل اوخرڅول جائز نه دی

**د سپی د بيع او شراء د جواز او عدم جواز صورتونه**:-① د ټولو فقهاؤ کرامو په دې باندې اتفاق دې چه کلب عقور د ليونی سپی اخستل خرڅول ناجائزدی د شوقيه ساتلې شوو سپو اخستل خرڅول هم ناجائز دی اوداسې سپی په کوروونوکښې ساتل هم ناجائز دی

② شريعت دکومو سپو په کوروونوکښې د ساتلو او پاللو اجازت ورکړې دې لکه کلب معلم کلب صيد دې کلب ماشيه اوکلب حراسه دې. د دې بيع او شراء په جواز او عدم جواز کښې اختلاف دې

**د ثمن الكلب په حكم كښې مذاهب**:-

①په دې حديث کښ د بيع کلب نه منع کړې شوې ده، د امام شافعي او احمد رحمهما الله مذهب هم دا دې چې د سپی تجارت ناجائز دی.

② د احنافو په نزد بيع د کلب جائز ده که هغه معلم وی او که غير معلم.

③د امام مالك رحمه الله درې روايتونه منقول دی د جواز او د عدم جواز ، او دريم روايت دا دې چې

((والثالث يجب القيمة لا الثمن)) يعنی بيع خو نې اگر که جائز بالکل هم نه ده خو که يو سړې د بل چا سپې مړ کړی يا ئې ضائع کړی، نو بيا د هغې قيمت يعنی ضمان ورکول واجب وی،

④د امام ابو يوسف رحمه الله نه يو روايت دا دې چه د کلب عقور بيع جائز نه ده

⑤ عطاء او ابراهيم نخعی فرمائی ((يجوز بيع كلب الصيد دون غيره))

ويدل عليه ما اخرجه النسائی من حديث جابر قال نهى رسول الله ﷺ عن ثمن الكلب الا كلب صيد) الى آخر ما في العون.

حديث الباب د حديث د شوافعو او د حنابله مستدل دې

**د ثمن الکلب د حرمت دلائل:-** ① حدیث الباب د عدم جواز د قائلینو مستدل دې په دې کښې په واضحه توګه د سپی د قیمت اخستلو نه منع راغلې ده

② هغه احادیث هم د دوی مستدل دی په کومو کښې چه لفظ خبیث استعمال کړې شوې دې اوخبیث معنی په دې باب کښې حرمت دې

**دخصم د دلائلو درې جوابونه:**

① یوه توجیه دا ده چه په دې حدیث کښې هغه سپې مراد دې چه دکوم ساتل جائز نه وی

②دویمه توجیه دا ده چه دا حدیث منسوخ دې او ددې تاریخ هغه احادیث دی په کومو کښې چه د ..الا کلب صید.. استثناء راغلې ده او د منسوخ یوه وجه دا هم ده چه تاسو په ګڼرو احادیثو کښې لوستلې دی چه د نبی علیه السلام په زمانه کښې د سپو احکام د تشدید نه تخفیف ته راتلل په اول کښې حکم دا وو چه دا سپی مړه کړئ بیا دا حکم وشو چه صرف تور سپی مړه کړئ او بیا د سپی د ساتلو مطلقا ممانعت راغلو ددې نه پس د ښکار او د فصل د سپی د ساتلو استثناء راغله هم دغه شان دا احکام تخفیف طرف ته روان وو نو دغه شان دلته کښې هم وئیلی شی چه په اول کښې دهر قسم سپی دخرڅولو ممانعت وو او بیا د ددې اجازت ملاو شو ددې دلیل دا دې چه د رسول الله ﷺ نه پس صحابه کرامو ددې تاوان اخستې دې

③ دریمه توجیه دا ده چه نهی تحریمی نه ده بلکه تنزیهی ده ددې دلیل دا دې چه په روستو دحضرت جابر رضی الله عنه نه یو حدیث نقل کیږی د هغې الفاظ دا دی «نهی رسول الله ﷺ عن ثمن الکلب والسنور» په دې حدیث کښې دسپی سره پیشو هم شامله شوې ده حالانکه د پیشو بیع د چا په نزد هم ناجائز نه ده نوپه دې حدیث کښې به نهی په کراهت تنزیهی باندې حمل کول وی او ددې تائید ددې نه هم کیږی چه په بعضې روایاتو کښې نې ثمن الکلب د ..اجری الحجام.. سره یوځائې کړې دې حالانکه د حجام اجرت په اجماع باندې جائز دې او پخپله دنبی علیه السلام نه ثابته ده چه هغوی حجام ته اجرت ورکړې وو نو په دې روایت کښې به هم ممانعت په کراهت تنزیهی باندې حمل کړې شی بهر حال دا درې واړه توجیهات په دې حدیث کښې کیدې شی

**د ثمن الکلب د جواز دلائل:-** ① «عن جابر رضی الله عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم نهی عن ثمن السنور والکلب الاکلب الصید» (نسائی)

② د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما حدیث دې د کوم الفاظ چه دادی «عن ابن عباس رضی الله عنه قال رخص رسول الله صلی الله علیه وسلم فی ثمن الکب الصید» (مسند امام اعظم)

③ «عن جابر رضي الله عنه نهى عن ثمن الكلب الا الكلب المعلم» (احمد ونسائي)

④ دَ حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه واقعه ده چه هغوی څلویښت درهم دَ سپی په تاوان کښې وصول کړی وو دَ حضرت عمر رضي الله عنه فیصله مستدرك حاکم اوطحاوی کښې ذکر ده چه هغوی دَ کلب الصید په قتل باندې څلویښت درهم معاوضه کیخودې وه او دَ کلب ماشیه په قتل باندې دوه ګډان ایخودې وو

⑤ دَ ابن شهاب زهری رحمه الله فتوی ده که یوسړی دَ چابنکاری سپې قتل کړو نو په قتل باندې به دَهغې دَ قیمت تاوان راځي (طحاوی)

⑥ دَ قیاس هم دغه تقاضا ده چه دَ سپی قیمت جائز دې خکه چه کله شریعت دَ سپی نه دَ فائدې اوچتولو دَپاره دَ دې ساتل جائز ګرځولی نودَهغې مال کیدل هم ثابت شو اوکله چه یوڅیز دَ شریعت په نظر کښې مال وی نودَهغې اخستل اوخرڅول هم جائز دی

**قوله:** وَحُلْوَانِ الْكَاهِنِ:

**کاهن ته د ورکلو حرمت:-** کاهن ته چه دَ ده دَدې عمل په عوض کښې کوم څه ورکولې شي هغې ته حلوان اوونیلې شو یعنی دَ نجومی متهائی او شیرینی بهرحال نجومی له تلل او دَ هغه نه دَمستقبل باره کښې تپوس کول اودَهغه خبره منل ټول حرام دی دا نجومی پخپله اسن دې ده ته دَ غیب څنګه علم کیدې شي

**کاهن د خپل کور نه ناخبره:-** شیخ سعدی بابا په ګلستان کښې یوه قصه لیکلې ده دَ یونجومی کورته یو بدکاره سړې راننوتلو اودَ نجومی ښځې سره ئې په ګپ شپ کښې مزې اخستې او نجومی په بازارکښې خلقو ته دَآسمان خبرې خودلې

**[٢٧٦٥] د وینې خرڅولو حرمت**

٢٧٦٥-[١٠] ١ وَعَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ٢ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَهَى عَنْ ثَمَنِ الدَّمِ، ٣ وَثَمَنِ الْكَلْبِ، ٤ وَكَسْبِ الْبَغِيِّ، ٥ وَلَعَنَ آكِلَ الرِّبَا وَمُوكِلَهُ، ٦ وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ، وَالْمُصَوِّرَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابوجحیفه رضي الله عنه وایي ٢ چې رسول الله ﷺ د وینې قیمت، ٣ د سپي قیمت، ٤ او د بدکارې ښځې اجرت (په طورد اجرت حاصل کیدونکی مال د استعمال) څخه منع فرمایلې ده ٥ او حضور ﷺ سود آخستونکی او سود ورکونکی ٦ خال وهونکی (خان ته یابل ته) او په تصویر اخستونکي لعنت ویلی دی. بخاري

**حل اللغات-** ① ثَمَنِ الدَّمِ: د وینې ګټه (یعنی وینه اخستل یا خرڅول. یا ددې نه مراد ښکر لګولو سره د وینې راښکلو کار کول دی) ② آكِلَ: أي: آخِذَهُ: یعنی اخستونکې، ③ مُوكِلَهُ: أي: مُعْطِيَهُ: یعنی

[١] اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب ثمن الكلب(رقم-٢٢٣٨) واحمد في ٣٠٩/٢

وركوبكي. ⑦ الْوَاشِمَةَ: أي الْمَرْأَةُ الَّتِي تَشِمُ: خپل بدن كښي خالونه لگونكي ښځه، وَالْوَشْمُ أَنْ يُغْرَزَ الْجِلْدُ بِإِبْرَةٍ: وشم دې ته وائي چه څرمن په ستن سره كندې كړى بيا هغه په رانجو يا نيل سره رنګ كړى ⑧ الْمُسْتَوْشِمَةَ: أي الَّتِي يُفْعَلُ ذَلِكَ بِهَا: د بلې ښځې نه دخالونه لګولو مطالبه كونكې ښځه. ⑨ الْمُصَوِّرَ: تصويرونه جوړونكې

## د راوي مختصر تعارف:

**حضرت ابوجحيفه وهب بن عبدالله** نوم ئې وهب دې كنيت ئې ابوجحيفه دې دَ پلار نوم ئې عبدالله دې بعضو وئيلى دى چه دا اصل وهب السوائى دې كله چه رسول الله ﷺ دَ دنيانه رخصت شو هغه وخت دې وړوكې وو. دَ اسماء الرجال والا فرمائى بالغ شوې نه وو حضرت على رضي الله عنه به هغه سره ډيره مينه كوله او بيانى هغه كوفې ته اوليګلو كوفه دغه وخت دَ دين مركز وو.

**وفات:-** ۷۲ هجرى كښې هم په كوفه كښې وفات شوې دې.

**روايات:-** دَ هغوى نه ۴۵ روايات نقل دى په دې كښې په دوو باندې دَ بخارى اومسلم اتفاق دې او په بخارى كښې دوه او مسلم كښې درې احاديث منفرد دى.

**تسهيلات: قوله:** ثَمَنِ الدَّمِ:

### د ثمن الدم په مفهوم كښې دوه احتمالات:-

① كه دم نه مراد وينه وى نودَ وينې خرڅول اخستل حرام دى ځكه چه دا مال نه دې

② اوكه دَ دم نه مراد دَ ښكر راښكلو اجرت دې نوبيا دامكروه تنزيهى دى لكه چه اول ليكلې شوى دى دَ سود او ربوا خبره وراندې راځى

**قوله:-** الْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ،

**د خال لګولو طريقه:-** دَ وشم طريقه دا وى چه مثلاً يوسړې يا ښځه دَ بدن په يوه حصه كښې په ستن باندې زخم كوى بيا په دغه زخم كښې رانجه يا نيل وغيره اچوى كله چه زخم ټيك شى نو دغه رانجه او نيل دَ څرمن لاندې پاتې كيږى په كوم سره چه په بدن باندې يو خال او نښان جوړيږى اسلام دَدې نه ځكه منع كړې ده چه په دې سره دَ الله تعالى په تخليق كښې تغير راځى او په دې كښې كافرانو اوفاسقانو سره مشابهت هم دې بهرحال واشمه هغه رنګ اچونكى ښځې ته وائى چه په دې كار باندې پوهيږى اودَدې كاريګره وى او مستوشمة دا كار په ځا كونكى ښځې ته وائى دَدې ترجمه داده چه حضورپاك هغه ښځه چه كومه دا كار كوى او كومې ښځې له چه ئې كوى په دواړوباندې لعنت وئيلې دې.

**د خال لګولو رسم:-** دَ وشم دا قبيح رسم مصر ليبيا او افغانستان وغيره ملكونوكښې ډير زيات دې بعض توريان خلق مخ څيرلو سره په دې باندې كرښې اوكندې جوړوى داكار هم په تغير خلق الله كښې داخل دې او حرام دې

**قوله** - وَالْمُصَوِّرَ

**په تصوير جوړوونکی باندې لعنت:** - په دې حديث کښې په مصور باندې هم لعنت کړې شوې دې دې نه مراد هغه خلق دی چه د خناورو تصويران جوړوی د دې جوړول خرڅول اواخستل ټول ناجائز دی

**[٢٧٦٣] د حرام څيز د خرڅولو او اخستلو حرمت**

٢٧٦٣-[٨] () ① وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ عَامَ الْفَتْحِ وَهُوَ بِمَكَّةَ: ② «إِنَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ حَرَّمَ بَيْعَ الْخَمْرِ وَالْمَيْتَةِ وَالْخِنْزِيرِ وَالْأَصْنَامِ ③: فَقِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَرَأَيْتَ شُحُومَ الْمَيْتَةِ؟ فَإِنَّهُ تُطْلَى بِهَا السُّفُنُ، وَيُدْهَنُ بِهَا الْجُلُودُ، وَيَسْتَصْبِحُ بِهَا النَّاسُ؟

**ترجمه:** ① او د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دی چې هغوئ د مکي د فتحي په کال د حضور ﷺ څخه واوريدل ② چې الله ﷻ او د هغه رسول شراب مُردار خنزير او د بتانو خرڅول او واخستل حرام ګرځولی دی، ③ کوم وخت چې حضور ﷺ ته عرض وشو چې يا رسول الله ﷺ مونږ ته د مردارو دوازګي حکم هم وښايي چې په کشتو مږل کېږي. او په دې سره څرمني غوړېږي او خلق (په کورونو کې) په دې سره ډيوې بلوي.

**حل اللغات** - ① عَامَ الْفَتْحِ: أَيْ فَتْحِ مَكَّةَ: يعنی د فتح مکې په کال. ② شُحُومَ: جمع د شحم ده. وازګه ③ تُطْلَى: مږلې شی ④ السُّفُنُ: جمع د سفينة ده، کشتئ (دلته د کشتئ نه مراد دهغې تختې دی أَيْ أَخْشَابَهَا) ⑤ يُدْهَنُ: غوړولې شی ⑥ الْجُلُودُ: دا دجلد جمع ده، څرمن ⑦ يَسْتَصْبِحُ: أَيْ: يَتَنَوَّرُ: رڼا حاصلوی. يعنی د دې په تيلو باندې ډيوې بلوی.

① فَقَالَ: "لَا، هُوَ حَرَامٌ" ② ثُمَّ قَالَ عِنْدَ ذَلِكَ "③ قَاتَلَ اللَّهُ الْيَهُودَ، ④ إِنَّ اللَّهَ لَمَّا حَرَّمَ شُحُومَهَا أَجْمَلُوهُ ثُمَّ بَاعُوهُ فَأَكَلُوا ثَمَنَهُ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① نو حضور ﷺ وفرمايل د مُردار وازګه هم مرداره ده څکه د دې څخه دا فائده اخستل جائز نه دی. ② بيا حضور ﷺ هغه وخت دا هم وفرمايل ③ الله دې په يهودو لعنت وکړي ④ هرکله چې الله ﷻ د مرداري وازګه حرامه کړه نو يهودو (دا حيله اختيار کړه چې هغو، وازګه ويلې کوله او خرڅوله يې د هغې قيمت به يې خوړلو. بخاري مسلم

**حل اللغات** - ⑧ أَجْمَلُوهُ: دا د اجمال نه دې د باب افعال نه. أَيْ أَذَابُوهُ: ويلې کوله به نې وازګه ⑨ بَاعُوهُ: خرڅوله به نې وازګه

**تسهيلات: قوله:** بَيْعَ الْخَمْرِ:

**د لهو لعب آلات مثلاً ډهول، باجې وغيره د خرڅولو حکم:** - شيخ عطاء ﷫ ليکلی دی د شرابو خرڅول چه څنګه حرام دی دغه شان د لهولعب آلات مثلاً ډهول، باجې وغيره خرڅول

[1]) اخرجه البخاری فی صحيحه رقم الحديث ٢٢٣٦ ومسلم فی کتاب المساقاة/باب تحريم بيع الخمر، والميتة، والخنزير، والأصنام (رقم-٧١ - (١٥٨١) والنسائی فی السنن رقم الحديث ٤٢٥٦

هم ناجائز دی هغوی داهم ليکلی دی که چا د لهو لعب دا سامان مات کړو نو په هغه باندې ضمان اوتاوان نشته دې

**قوله** وَالْمَيْتَةِ:

**د کافرد نعش د خرڅولو حرمت:**- دمردارې اخستل اوخرڅول چه څنګه ناجائز دی دغه شان د يو کافرنعش خرڅول هم ناجائز دی غزوه خندق کښې د نوفل کافر نعش په عوض کافرانو د لس زره درهمو پيش کش کړې وو حضورپاك منع کړل اونعش نې ورته مفت کښې ورواپس کړو

**قوله** وَالْأَصْنَامِ:

**مصنوعی ګډيانود خرڅولو حکم:**- د بتانود خرڅولو اخستلو کاروبار ممانعت د لاندې د پلاستك وغيره ګډيانې اونورې مجسمې راتلې شی

**قوله** فَقَالَ: "لَا:

**د حرام الاصل څخه د فائدې اخستلوعدم جواز:**- يعنی کله چه يوڅيز په اصل کښې حرام دې نود هغې نه فائده اوچتول په هيڅ صورت هم جائز نه ده

**د حرام څيز بالتبع استعمال کښې مذاهب:**-

① امام شافعی رحمه الله فرمائی چه که په يوه کشتئی باندې څه نجس وازګه وغيره مرلې شوې وی يا په دې سره چراغ روښانه کړې شی نودا جائزدی مګردې اخستل خرڅول جائز نه دی

② جمهور فرمائی چه نه اخستل خرڅول جائز دی اونه نوره فائده اخستل جائز ده البته دمردارې څرمن چه کله دباغت ورکړې شی نود مستقل حديث دحکم د وجې نه ددې استعمال جائز دې

**قوله** أَجْمَلُوهُ:

**ديهوديانود شريعت په احکاماتو کښې حيلې کول:**- دا د اجمال نه دې اواجمال د باب افعال صيغه ده د ويلې کولو په معنی کښې دې دا صيغه دمجردنه هم راځی مګر په مزيد کښې مبالغه ده يعنی يهود د عيارنی اومکارنی اوحيله سازنی لاندې يوشان دا ويلې کوله اودا بهانه نې جوړه کړه چه اوس خودا وازګه نه ده بلکه تيل دی حالانکه په ويلې کولوسره دهغې حقيقت نه وو بدل شوې

**د حديث نه مستنبط قواعد:**-① دې نه معلومه شوه چه هره هغه حيله په کوم سره چه د يوحرام څيز د حلال کيدو کوشش اوکړې شی هغه حيله ناجائز ده

② ددې حديث نه داهم معلومه شوه چه د يوڅيز قيمت د هغه څيز تابع دې که چرې هغه څيز حرام دې نو د هغې قيمت هم حرام دې

**[٢٨٠٧] د يهودو مكاري**

٢٨٠٧ — [١] (١) وَعَنْ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "[٢] قَاتَلَ اللّٰهُ الْيَهُودَ حُرِّمَتْ عَلَيْهِمُ الشُّحُومُ فَجَمَلُوهَا فَبَاعُوهَا» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت عمر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] الله تعالى دې يهود هلاك كړي په هغوى د مردار وازګه حرامه شوه نو هغوى هغه ويلي كړه چې دوازګې نوم پټې نشي او بيا د هغه خرڅول او واخستل يې شروع كړه، د دې پوره وضاحت په حديث كې شوى دى. بخاري مسلم

**حل اللغات** - ① فَجَمَلُوهَا: أَيْ أَذَابُوهَا بِالنَّارِ: ويلې كوله به نې وازګه به نې ويلې كړه دې دپاره چه نوم نې بدل شي ډل او غوړى ترې جوړشي يعنى حيله به نې كوله چه حرام څيز خان دپاره حلال كړى.

**تسهيلات:**

**قوله فَجَمَلُوهَا فَبَاعُوهَا**

**داحنافو دليل:** - دا به نې په اور ويلى كړه نو د چربې نوم به ترې ختم شو دا حديث د احنافو دليل دې چه د مردارې د چربې نه هم فائده نشى اخستلې

**[٢٨٠٨] د پيشو د خرڅولو اخستلو ممانعت**

٢٨٠٨ — [٢] (٢) [١] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، [٢] «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَالسِّنَّوْرِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر ﷺ وايي [٢] چې رسول الله ﷺ د سپي او د پيشو قيمت په استعمال كې د راوستلو څخه منع فرمايلي ده. مسلم

**حل اللغات** - ① ثَمَن: قيمت. ګټه. ② الْكَلْب: سپى (كه معلم وى او كه غير معلم) ③ السِّنَّوْر: پيشو

**تسهيلات: قوله وَالسِّنَّوْرِ:**

**د پيشو د خرڅولو او اخستلو حكم:** - د پيشو خرڅول اخستل د ټولو علماؤ اوفقهاؤ په نيز جائز دې صرف خلاف اولى دې اومكروه تنزيهى دې اوحضرت ابوهريره ﷺ د هرة خرڅولو قائل نه وو په دې حديث سره د احنافو د مسلك تائيد كيږى چه قابل انتفاع سپى

---

(١) اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء /باب ما ذكر عن بني إسرائيل (رقم-٣٢٢٣) ومسلم في كتاب المساقاة /باب تحريم بيع الخمر والميتة والخنزير والأصنام (رقم ٧٢ (١٥٨٢) والنسائي في كتاب البيوع /باب ما يجب على التجار من التوقية في مبايعتهم (رقم ٤٤٥٧) واحمد في المسند ١/ ٢٥

(٢) اخرجه مسلم في كتاب المساقاة /باب تحريم ثمن الكلب وحلوان الكاهن ومهر البغي والنهي عن بيع السنور (رقم-٤٢ - (١٥٦٩) وابوداود في أبواب الإجارة /باب في ثمن السنور (رقم-٣٤٧٩) والترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في كراهية ثمن الكلب والسنور (رقم-١٢٧٩) وابن ماجة في كتاب التجارات /باب النهي عن ثمن الكلب ومهر البغي وحلوان الكاهن وعسب الفحل (رقم-٢١٦١)

اخستل خرخول مکروه تنزیهی دی یعنی خلاف اولی دی حرام نه دی د استدلال طرز دا سې دې چه څنګه الفاظ د پیشو د خرخولو اواخستلو دپاره استعمال شوی دی بالکل هم هغه الفاظ دَ سپی دپاره هم استعمال شوی دی خو جمهور د پیشو سره متعلق الفاظ مکروه تنزیهی باندې حمل کولوسره تاویل کوی نو احنافو هم دَ سپی باره کښې راغلې الفاظوکښې هم هغه تاویل اوکړو فرق صرف دومره دې چه دَ پیشو متعلق فیصله دَ جمهورو ده او دَ سپی متعلق فیصله دَ احنافو ده

**[٢٧٦٩] دَ ښکر لګولو اجرت اخستلو جواز**

٢٧٦٩—[١١] ()[1] ١ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: ٢ «حَجَمَ أَبُو طَيْبَةَ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٣ فَأَمَرَ لَهُ بِصَاعٍ مِنْ تَمْرٍ، ٤ وَأَمَرَ أَهْلَهُ أَنْ يُخَفِّفُوا عَنْهُ مِنْ خَرَاجِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضرت انس ﷺ وايي ٢ چې ابوطيبه حضور ﷺ ته ښکر ولګوی ٣ نو حضور ﷺ د يو صاع خرما په ورکولو حکم وکړي ٤ او حضور ﷺ د هغه مالکانو ته حکم ورکړي چې هغه دي د ابو طيبه د ګټې څخه کمه حصه اخلي. بخاري مسلم

**حل اللغات:** - ① حَجَمَ: ښکر ئې اولګولو (ښکر لګولوسره ئې ترې وينه اوويستله) ② يُخَفِّفُوا: چه سپک کړی، کم کړی. ③ خَرَاجِهِ: خراج ټيکس ته وائی.

**تسهيلات:**

**قوله: أَبُو طَيْبَةَ:**

**دابوطيبه مصداق:** - دادَ حضورپاك خاص حجام وو دې په سرخرولو او ښکرلګولوکار کښې ماهر وو

**دَ حجام پيشه حلال ده:** "امرله بصاع" دې نه معلومه شوه چه دَ حجام پيشه حلال ده کنی حضورپاك به ورته اجرت نه ورکولو

**قوله: مِنْ خَرَاجِهِ:** خراج ټيکس ته وائی دَ عربو عادت وو چه هغوی به خپل غلامان په مختلفو کسبونوکښې لګول اوهغوی سره به ئې دا فيصله کوله چه دَ روزانه په ګټه کښې به دومره حصه زمونږ وی اودومره به ستاسو وی ابوطيبه دَ بنوبياضه غلام وو هغه چه په ده باندې کوم ټيکس لګولې وو حضورپاك دَ هغې دَ کمولو سفارش اوکړو هغه کم کړو حضورپاك خو رحمة للعالمين وو دلته دَ يورحمت ظهور اوشو

[1] ) اخرجه البخاری فی کتاب البیوع/باب ذکر الحجام (رقم-٢١٠٢) ومسلم فی کتاب المساقاة/باب حل أجرة الحجامة (رقم-٦٤ - (١٥٧٧) وابوداود فی أبواب الإجارة/باب فی کسب الحجام (رقم-٣٤٢٤) والترمذی فی کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الرخصة فی کسب الحجام (رقم-١٢٧٨)ومالک فی الموطا کتاب الاستئذان/باب ما جاء فی الحجامة وأجرة الحجام (رقم-٢٦) واحمد فی المسند: ١٧٤/٣

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

[۲۷۷۰] د اولاد ګټه او مورپلار

۲۷۷۰-[۳] ()[۱]وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲]«إِنَّ أَطْيَبَ مَا أَكَلْتُمْ مِنْ كَسْبِكُمْ، [۳]وَإِنَّ أَوْلَادَكُمْ مِنْ كَسْبِكُمْ» "[۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ. [۵]وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ وَالدَّارِمِيِّ " «إِنَّ أَطْيَبَ مَا أَكَلَ الرَّجُلُ مِنْ كَسْبِهِ وَإِنَّ وَلَدَهُ مِنْ كَسْبِهِ» ".

**ترجمه:**[۱] بي بي عائشه رضي الله عنها راويه ده چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] څه چې تاسو خورئ په هغه کې د ټولو ښه هغه څيز دی چې تاسو ته د ګټې څخه حاصل شوی وي [۳]او ستاسو اولاد هم ستاسو ګټه ده، [۴] ترمذي نسائي ابن ماجه، [۵] د ابوداود او د دارمي د يو روايت الفاظ دا دي چې انسان څه خورئ په هغه کې د ټولو ښه هغه څيز دی چې د هغه د ګټې څخه حاصليږي او هغه اولاد هم د هغه ګټه ده.

**حل اللغات:**- ① كَسْبِكُمْ: د کار روزګار مزدورۍ او ګټه مراد ده.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَإِنَّ أَوْلَادَكُمْ مِنْ كَسْبِكُمْ:

**د والدينو د كفالت حكم:**- مورپلار دَ بچي دَ وجود دَ پاره ثانوی سبب دي. نوچه دکوم بچي وجود دَ مور پلار مرهون منت وی نوکه مور پلار دَ اولګې نه پريشانه وی نوبچی له خپل محنت دَهغوی مخې ته پيش کول پکاردی. دامناسب نه دی چه بچی دې آسوده حال وی او مورپلار نې اولګې تيروی. په دې حديث کښې هم دغه فرمائيلې شوی دی چه دَ اولاد مال دَ مورپلار دَ پاره حلال طيب دې. که چرې والدين محتاج وی نو په اولاد باندې دَهغوی کفالت واجب دې ليکن که والدين آسوده حال وی نوهغوی دې هسې په خپل اولاد باندې بوج نه جوړيږی

[۲۷۷۱] دَ حرام مال د صدقې عدم جواز

۲۷۷۱-[۴] ()[۱]وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنْ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [۲]«لَا يَكْسِبُ عَبْدٌ مَالًا حَرَامًا فَيَتَصَدَّقُ مِنْهُ فَيُقْبَلُ مِنْهُ، [۳]وَلَا يُنْفِقُ مِنْهُ ; فَيُبَارَكُ لَهُ فِيهِ، [۴]وَلَا يَتْرُكُهُ خَلْفَ ظَهْرِهِ إِلَّا كَانَ زَادَهُ إِلَى النَّارِ، [۵]إِنَّ اللهَ لَا يَمْحُو السَّيِّئَ بِالسَّيِّئِ، وَلَكِنْ يَمْحُو السَّيِّئَ بِالْحَسَنِ، [۶]إِنَّ الْخَبِيثَ لَا يَمْحُو الْخَبِيثَ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ وَكَذَا فِي " شَرْحِ السُّنَّةِ ".

[1] ) اخرجه الترمذي في كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن الوالد يأخذ من مال ولده (رقم-١٣٥٨) والنسائي في كتاب البيوع/باب الحث على الكسب (رقم-٤٤٥٠) وابن ماجة في كتاب التجارات/ باب ما للرجل من مال ولده (رقم-٢٢٩٠) واحمد في المسند: ١٦٢/٦

[2] ) اخرجه البغوي في شرح السنة رقم الحديث: ٢٠٣٠ واحمد في المسند: ٢٨٧/١

**ترجمه**: [١] حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ د رسول الله ﷺ څخه نقل کوي [٢] چې حضور ﷺ وفرمايل داسې هيڅ كله نه كېږي چې يو بنده دي د حرام مال په ګټلو سره د هغه څخه صدقه او خيرات كوي او د هغه صدقه دي قبوله شي (يعني كه يو سړی د حرامو ذرائعو سره ګټلی خراب مال صدقه او خيرات كوي نو د هغه صدقه قطعًا نه قبليږي او نه هغه ته څه ثواب حاصليږي) [٣] او نه كله داسې كېږي چې هغه سړی دي هغه حرام مال (په خپل ذات او اهل وعيال) خرڅ كوي او په هغه كې دي بركت وي (يعني په حرام مال كې چې څه خرڅ كړي په هغه كې بركت بالكل نه وي) [٤] او كوم سړی چې د خپل مرګ څخه وروسته حرام مال پريږدي نو د هغه حيثيت د دې څخه علاوه نور هيڅ نه دی چې هغه مال د هغه سړي د پاره يوه داسې توښه جوړيږي چې هغه د دوزخ اور ته رسوي [٥] (او دا خبره ياد لرئ چې) الله ﷻ بدي د بدۍ په ذريعه نه لري كوي، بلكه بدي د نيكۍ په ذريعه لري كوي.
[٦] د غه شان ناپاك مال ناپاك نه لري كوي (يعني حرام مال خرابي نه لري كوي. بلكه حلال مال ناپاك لري كوي) احمد ، شرح السنه.

**حل اللغات**: - ① يَتَصَدَّقُ : صدقه او خيرات كوی ② خَلْفَ ظَهْرِهِ: كِنَايَةٌ عَنِ الْمَوْتِ: دخان نه روسته. دا كنايه ده د مرګ نه، ③ لَا يَمْحُو: نه لري كوی، نه ختموی، ④ السَّيِّئَ: بدی، ګناه، ⑤ الْحَسَنَ: نيكی. ⑥ الْخَبِيثَ: ناپاک، حرام.

**تسهيلات**:

**قوله**: فَيَتَصَدَّقُ مِنْهُ فَيُقْبَلُ مِنْهُ،

**د حرام مال په صدقه كښې د ثواب د نيت كولو حكم**: -فقهاؤليكلی دی كه چرته چا سره حرام مال وی او دَهغې نه خان خلاصول غواړی نوهغه دې دَ ثواب دَ نيت نه بغير چا فقيرته وركړی كه دَ ثواب نيت ئې اوكړو نو په دې كښې دَ كفرخطره ده دَ ذمه وارئي نه دَ خلاصيدو نيت كول پكاردی بل كه حرام مال اخستونكي فقيرته دا معلومه شي چه دا دَ حرام صدقه ده نوهغه دې دَ صدقه وركونكي دَ پاره دَخير دعانه كوی كه چرې هغه دعااوكړه نودكفرخطره ده

**قوله**: لَا يَمْحُو السَّيِّئَ:

**په نيكو سره د ګناهونو معاف كيدل**: - په دې جمله كښې حضورپاك يوه ضابطه بيان كړه چه دين دَ ديندارئي په لاركښې حاصليږی دَ بې دينئي په لاركښې دَ دين ترقی نه شي كيدې مثلاً يوسړی دَ خپلو ګناهونو دَ بخښنې كوشش كوی نوهغه له پكاردی چه دَ حلال څيزصدقه اوكړی دې دَپاره چه ګناه ئې اووينځلې شي اوثواب ملاؤشي ليكن دا ممكن دی چه صدقه خو دَحرام څيزكوی اواميدئې دَ ثواب مخې ته كړې دې په دې حديث كښې ﴿اِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ﴾ [سورت هود، ۱۱۴] دَ آيت طرف ته اشاره ده.

[٢٧٤٣] دَحرام مال خوړلو عذاب

٢٧٤٣—[٣] ()[١] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ لَحْمٌ نَبَتَ مِنْ سُحْتٍ، [٣] وَكُلُّ لَحْمٍ نَبَتَ مِنْ سُحْتٍ كَانَتِ النَّارُ أَوْلَى بِهِ» [٤] " رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالدَّارِمِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هغه غوښه چې په حرام مال سره يې پرورش شوی وي په جنت کې به نه داخليږي (يعني د کوم سړي جسماني نش ونما چې د حرام مال په خوړلو سره شوی وي هغه به په جنت کې نه داخليږي) [٣] او کومه غوښه (يعني کوم جسم) چې په حرام مال سره نش ونما پيدا کړي (وده وکړي) هغه د دوزخ د اور لائق دی، [٤] (احمد دارمي بيهقي)

**حل اللغات:**- ① لَحْمٌ: أَيْ صَاحِبُ لَحْمٍ: ذکر د غوښې دې مراد تري غوښې والا يعنی انسان دي. ② نَبَتَ: نشونما، پرورش. ③ سُحْتٍ: أي الْحَرَامُ: حرام مال. ④ أَوْلَى: لائق دي، همدا ورسره مناسب دی

**تسهيلات:**

**قوله: لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ لَحْمٌ نَبَتَ مِنْ سُحْتٍ**

**دعدم دخول په مفهوم کښې څلور اقوال:-** ① د نجات يافته خلقو سره به په اول کښې جنت ته نه داخليږی. د حرام مال خوړولو په مقدار به چه کله سزا اوخوری نو جنت ته به داخل شی.

② هغه خلق به جنت ته نه داخليږی کوم چه په حرامو باندي د حلالو اعتقاد ساتی ځکه چې تحليل د حرامو کفر دې او کافر جنت ته نشی داخليدي.

③ داسې کس به د جنت په اعلی درجو کښې نه داخليږی نور نفس دخول به وی

④ دا زجر او توبيخ دې چې امت د حرامو ځخه ځان اوساتی.

[٢٧٤٤] د مشتبه څيزونو څخه ځان ساتل

٢٧٤٤—[٥] ()[١] وَعَنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: [٢] حَفِظْتُ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - " [٣] «دَعْ مَا يَرِيبُكَ إِلَى مَا لَا يَرِيبُكَ، فَإِنَّ الصِّدْقَ طُمَأْنِينَةٌ، وَإِنَّ الْكَذِبَ رِيبَةٌ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ وَرَوَى الدَّارِمِيُّ الْفَصْلَ الْأَوَّلَ.

**ترجمه:** [١] حضرت حسن ابن علي ﷺ وايي [٢] چې ما د رسول الله ﷺ دا ارشاد خپله اوريدلی دی او ياد کړي مې دي [٣] چې کوم څيز تا په شک کې اچوي هغه پريږده او د هغه شي طرف ته ميلان ساته چې تا په شک کې نه اچوي ځکه چې حق د زړه د اطمينان باعث

() اخرجه الدارمی فی الحديث (رقم-٢٧٧٦) واحمد فی المسند: ٣٢١/٣

() اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ٢٥١٨ والدارمی فی السنن (رقم-٢٥٣٢) واحمد فی المسند: ١/ ٢٠٠

دي او بطل د شك او تردد موجب دي، احمد ترمذي نسائي، او دارمي د دې حديث بواخې مخکنۍ حصه يعني دع مايريبك الى ما يريبك، نقل کړي ده

**حل اللغات** ① دَعْ: أي اتْرُكْ پريږده، ② يَرِيبُكَ: الرَّيْبُ الشَّكُّ: ريب شک ته وائي يعني چه تا په شک کښي اچوي ③ طُمَأْنِينَةٌ: اطمينان، د زړه تسلي ④ رِيبَةٌ: اى قَلَقُ النَّفْسِ وَاضْطِرَابُهَا: د زړه تردد او شک ته وائي

**د راوي مختصر تعارف:**

**حسن بن علي:**- دحديث د راوی نوم حسن د پلار نوم علي کنيت ئې ابومحمد لقب ئې شبيه رسول الله ﷺ خطاب ئې رياضة النبی ﷺ د مور نوم ئې فاطمه الزهرا وو د هجرت په دريم کال باندې په مدينه منوره کښې د رمضان په مياشت کښې پيدا شوې وو د دوی په پيدائش باندې نبی کريم ﷺ د فاطمې کور ته تشريف يوړلو اوتپوس ئې اوکړو څه نوم مو ورته کيخودې دې؟ نو اووئيل شو، حرب، ، نبی کريم ﷺ اوفرمائيل دده نوم، حسن، ، دې د پيدائش په اوومه ورځ ئې عقيقه اوشوه حضرت حسن لا د اووه کالو وو چه نبی کريم د دنيا نه رخصت شو.

**حسن بن علي د ابوبكر زمانه كښې:**- د نبی کريم ﷺ د فات نه پس به ورسره حضرت ابوبکر رضی الله عنه ډير محبت کول يو ځل ئې په اوږه سور کړو او وې فرمائيل په الله قسم دې د نبی کريم ﷺ پشان دې د علي پشان نه دې په دې اوريدو سره حضرت علي رضی الله عنه په خندا شو. ٥. حضرت عمر رضی الله عنه به هم دوی سره ډير محبت کولو د دوی وظيفه ئې د مياشتې پنځه زره روپئ مقرر کړې وه. (٢)

حضرت حسن رضی الله عنه د حضرت عثمان رضی الله عنه د محاصرې په وخت کښې د حفاظت خدمت هم کړې وو

حضرت حسن رضی الله عنه د جنګ جمل نه خپل پلار حضرت علي رضی الله عنه منع کړې وو دحضرت علي رضی الله عنه په وفات باندې د هغوی د جنازې مونځ هم حضرت حسن رضی الله عنه کړې وو اوبيا خلقو د دوی په لاس باندې د خلافت بيعت اوکړو

بل طرف ته حضرت امير معاويه رضی الله عنه د حضرت علي رضی الله عنه د شهادت نه پس د فوځ پيش قدمي شروع کړه په دغه وخت کښې حضرت حسن رضی الله عنه په کوفه کښې وو هغوی حضرت امير معاويه رضی الله عنه سره صلح اوکړه اود خلافت نه دستبردار شو چه د مسلمانانو وينه عبث توئې نشي په دې کولو سره د نبی کريم ﷺ دا پيشنګوئي پوره شوه چه، ، زما دا بچې سيد دې الله تعالى به د ده په ذريعه د مسلمانانو د دوو ډلو په مينځ کښې صلح اوکړي، ، (٣)

د دوی د خلافت مودة د پنځه يا شپږو مياشتو نه لږ غوندې زياته وه په حضرت حسن #

(١)(مشكوة) _ (٢) استيعاب (١\١٤٥ واسد الغابة (١٥\٢) - (٣)تهذيب التهذيب (٢\٣٠١)-

کښې ډير ښه صفتونه وو په هغې کښې بعضې دا دی ① د اوچتې درجې خطيب وو ② د دوی اشعار او د حکمت خبرې هم ډيرې منقول دی ③ د دنيا نه استغناء او بې نيازی په کښې وه ④ صدقې به ئې په کثرت سره ورکولې ⑤ زيات وخت به ئې د الله تعالی په عبادت کښې تيرولو ⑥ خلقو سره د ښه اخلاقو سلوک کولو کښې د ده مثال نه وو

**وفات:**- په ۵۰ هجری کښې دوی ته زهر ورکړې شود دې په دريمه ورځ پس دوی وفات شو د وفات په وخت کښې د دوی عمر ۴۷ يا ۴۸ کاله وو د دوی تمنا دا وه چه د خپل نيکه په اړخ کښې دفن کړې شی د خپلې نيا حضرت عائشې نه ئې اجازت اوغوښتلو نو مروان ئې مخالفت اوکړو بيا دوی په جنت البقيع کښې د خپلې مور په خوا کښې دفن کړې شو (٢)

**جنازه:**-په جنازه کښې دومره رش وو چه په مدينه کښې د دې نه وړاندې دومره رش نه وو ليدلې شوې که ستن به هم غورځولې شوه نو په زمکه به نه لګيدله (٣)

**تسهيلات: قوله:** دَعْ مَا يَرِيبُكَ إِلَى مَا لَا يَرِيبُكَ:

**د مشتبه څيز ترک کول:** يعنی چه د يو څيز په استعمال کښې پخپله سړی ته شک اوتردد کيږی چه آيا دا جائز دې که ناجائز دې. مناسب دې که نامناسب نو داسې سړی له پکار دی چه داسې په شک کښې اچونکې څيز پريږدی او هغه صورت اختيار کړی په کوم کښې چه د ده تسلی وی څه تردد نه وی

**نوټ:**- د دې حديث مضمون د دې نه پس راتلونکی حديث په شان دې. پوره تشريح به هلته وی.

**[٢٧٧٣] د نيکئ او د بدئ پيژندګلو به څنګه کيږی؟**

٢٧٧٣-[١٨] (١) ① «وَعَنْ وَابِصَةَ بْنِ مَعْبَدٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② "يَا وَابِصَةُ جِئْتَ تَسْأَلُ عَنِ الْبِرِّ وَالْإِثْمِ؟" ③ قُلْتُ: نَعَمْ ④ قَالَ: فَجَمَعَ أَصَابِعَهُ، فَضَرَبَ بِهَا صَدْرَهُ ⑤ وَقَالَ: (اسْتَفْتِ نَفْسَكَ، اسْتَفْتِ قَلْبَكَ) ثَلَاثًا. ⑥ الْبِرُّ مَا اطْمَأَنَّتْ إِلَيْهِ النَّفْسُ، وَاطْمَأَنَّ إِلَيْهِ الْقَلْبُ، ⑦ وَالْإِثْمُ مَا حَاكَ فِي النَّفْسِ وَتَرَدَّدَ فِي الصَّدْرِ وَإِنْ أَفْتَاكَ النَّاسُ» ) رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت وابصه رضی الله عنه ابن معبد وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② ای وابصه! ته دې پوښتنې ته راغلی يې چې نيکې څه ده او ګناه څه ده ③ ما عرض اوکړو چې هو ④ د هغه بيان دی (د دې اوريدو سره) حضور ﷺ خپلې ګوتې يو ځای کړې او ځما په سينه وهلو سره يې وفرمايل ⑤ د خپل ځان څخه پوښتنه وکړه او د خپل زړه څخه پوښتنه وکړه حضور ﷺ دا الفاظ درې ځله وفرمايل ⑥ بيا يې وفرمايل چې نيکې هغه ده چې په هغه سره انسان خپله مطمئن شی او په هغه سره يې زړه ته سکون حاصل شي ⑦ او ګناه هغه ده چې

(١) اخرجه الدارمی فی الحديث (رقم-٢٥٣٣) واحمد فی المسند: ٢٢٨/٤

په هغه سره د انسان وجود خلش محسوس کړي او په هغه سره د هغه زړه او په سينه کې شك او تردد پيدا شي اګر چې خلق درته دصحيح فتوې، درکړي

**حل اللغات:** - ① الْبِرِّ: أَيِ الإِنْسَانِ: نيکی، اطاعت، ② الإِثْمِ: أَيِ الذَّنْبِ: ګناه، نافرمانی ③ فَجَمَعَ أَصَابِعَهُ: راټولې کړې خپلې ګوتې مبارک ④ اسْتَفْتِ: أَيِ اطْلُبِ الْفَتْوَى: فتوی اوغواړه يعنی تپوس اوکړه، ⑤ اطْمَأَنَّتْ: مطمئن شی نفس، ⑥ حَاكَ: أَيْ أَثَّرَ: ويره پيدا کړی، شک شبه پيدا کړی ⑦ تَرَدَّدَ: شک او بې چينی پيدا شی (د زړه تسلی نه راځی)

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت وابصه بن معبد:** نوم وابصه دې دَ پلار نوم معبدابن مال بن عبدالاسدی دې. کنيت ابوشدادی دې اول په کوفه کښې اوسيدو بياجزيرې ته لاړو. دَحضور ﷺ په خدمت کښې دَلسوکسانودَوفدسره حاضرشواومسلمان شو.دا دَتولونه زيات ژړاکونکې صحابی رضی الله عنه وو.

**وفات:** - دَ دوی انتقال په مقام رقه کښې اوشو اودَ هغه ځائ په جامع مسجد کښې منارې سره دفن دې.

**مرويات:** - دَهغوی نه ١١ احاديث نقل دی. دَهغوی نه زيات تر فرهاد بن ابی الجعد روايت نقل کړی.

**تسهيلات:**

**قوله** تَسْأَلُ عَنِ الْبِرِّ وَالإِثْمِ:

**د نيکئي اوبدئی آسان علامت:** —په دې حديث کښې دَ نيکئی او بدئی يوداسې علامت خودلې شوې دې چه هرنيك اوصالح انسان ئی معلومولې شی چه آيادا قول اوفعل جائزدې که ناجائزدې. چنانچه فرمائيلې شوی دی په کوم قول اوفعل سره چه زړه مطمئن شی او زړه پرې فرحت اوخوشحالی محسوس کړی نودا ګنړل پکاردی چه داقول اوفعل ښه دې اوجائزدې او په کوم قول اوفعل سره چه زړه مطمئن نه وی بلکه په طبيعت کښې يوکشمکش پيداشی او په زړه اودماغوکښې دَ شك يوکيفيت پيداشی يوقسم شك پيداشی نو ګنړل پکاردی چه دا قول اوفعل غلط دې. که دَ دغه قول اوفعل باره کښې مفتيانو صاحبانودَ طرف نه فتوىٰ موجودوی چه دا جائزدې. دَ زړه دَ اضطراب په موجودګنی کښې فتوىٰ ته نه دی کتل پکار ځکه چه يوه فتوىٰ ده او بل تقوىٰ ده دَ دواړو حدونه جدا جدا دی "ياوابصة جئت تسال" په دې جمله کښې دَ رسول الله ﷺ دَ يوې معجزې پته لګی ځکه چه حضرت وابصه رضی الله عنه دَ رسول الله ﷺ په وړاندې دَ خپل مطلوب اومقصود نه خو تذکره کړې وه اونه ئی اشاره کړې وه حضورپاك پخپله اوخودل چه اې وابصه! آيا ته دَدې سوال دَ پوښتنې دَپاره راغلې ئی.

**قوله اسْتَفْتِ نَفْسَكَ، اسْتَفْتِ قَلْبَكَ**

**د زړه څخه د فتوی طلب کولو مطلب:-** دَ زړه نه استفتاء غوښتل هغه وخت دی کله چه په شریعت کښې څه واضح حکم موجودنه وی ګنی که په شریعت کښې څه واضحه حکم موجود وی نوهم په هغې به عمل کول وی بیاکه دَ قرآن پاك په آیاتونوکښې تعارض ښکاره شی نوواجب دی چه دَ احادیثوطرف ته رجوع اوکړې شی که په احادیثوکښې هم په ظاهره تعارض وی نوواجب دی چه دَ فقهاؤ دَ اقوالوطرف ته رجوع اوکړې شی اوکه چرې دَعلماؤ اوفقهاؤ په اقوال کښې هم په ظاهره تعارض وی نوبیا دَ خپل زړه نه فتوی معلومول پکار دی په کوم طرف چه دَ زړه تسلی حاصله وی هم په هغې باندې عمل کول پکار دی

**قوله: وَالْإِثْمُ مَا حَاكَ فِي النَّفْسِ:**

**د حرام څخه په زړه کښې کرکه پیدا کیدو صفت:-** داکیفیت هغه خلقوته حاصلیدې شی دَ چې زړونه چه دَ آئینه په شان صفا او روښانه وی متقی اوپرهیزګاروی دَالله والا په مجالسوکښې پاتې کیدو سره هغه دَ زړه دَ صفاکولو ښه محنت کړې وی داسې زړونه دا فیصله کولې شی چه دا څیز حلال دې یا حرام دې دادَ هرسړی کارنه دې

**د مولانا احمد علی لاهوری د کشف واقعه:-** نقل دی چې په عوامو اوخواصو کښې مشهوره وه چه حضرت مولانا احمدعلی لاهوری رحمه الله به حرام اوحلال دَ کشف په توګه معلومول په دې وجه مونږ دَ حضرت مولانا احمدعلی لاهوری رحمه الله امتحان کول غوښتل یو درجن حلال مالټې مو هغوی له یوړې مګر هغې سره مو یودرجن حرام مالټې یوځائی کړې دواړه مو ګډې وډې کړې او پیش موکړې حضرت مولانالاهوری رحمه الله دواړه یوځائی کړې او یوه دانه به ئې یو طرف ته کړه چه دا حلال ده بله به ئې بل طرف ته کیخوده چه دا حرام ده مونږ حیران شو

**[٢٧٧٥] دَ تقوی تعریف اومراتب**

[-] (١) [١] وَعَنْ عَطِيَّةَ السَّعْدِيِّ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[٢] «لَا يَبْلُغُ الْعَبْدُ أَنْ يَكُونَ مِنَ الْمُتَّقِينَ [٣] حَتَّى يَدَعَ مَا لَا بَأْسَ بِهِ حَذَرًا لِمَا بِهِ بَأْسٌ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] حضرت عطیه سعدي رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [٢] بنده هغه وخته پورې د (کامل) پرهیزګارۍ درجې ته نشي رسیدی [٣] د څو پورې چې هغه څیزونه پرې نه ږدي چې په هغه کې څه قباحت نشته. او دغه شان د هغه څیزونو څخه هم وساتل شي په کومو کې چې قباحت دی. (ترمذي ابن ماجه)

---

(١) اخرجه الترمذی فی کتاب صفة القیامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-٢٤٥١) وابن ماجة کتاب الزهد/باب الورع والتقوی (رقم-٤٢١٥)

**حل اللغات**:- ① لَا يَبْلُغُ: أَيْ: لَا يَصِلُ: نه رسيږي، کمال ته. ② يَدَعَ: أَيْ يَتْرُكَ: چه پرېږدي. ③ لَا بَأْسَ: نشته قبحت. نشته بدي ④ حَذَرًا: أَيْ: خَوْفًا: ويره، بچ کيدو دپاره، د احتياط په طور

**تسهيلات**:

**قوله**: مِنَ الْمُتَّقِينَ:

**د تقوی تعريف**:- دَ الله تعالی دَ نافرمانئي نه دَ خان بچ کولونوم تقوی ده دَدي حديث مطلب دادي چه سړي ترهغه وخته پورې دَ تقوی مقام ته نه شي رسيدي ترکومي پورې چه هغه دَ الله تعالی دَ ويرې نه بعض هغه جائز شيونه پرينږدی دکوم په کولوسره چه په ناجائزکښې دَ پريوتلوخطره وی يعنی چه بعض مباحات په دې وجه ترک کړی دَ کوم په وجه چه په ناجائزکښې دَ واقع کيدو خطره وی

**د تقوی درې مراتب**:- ملاعلی قاری رحمه الله دَ تقوی درې درجې ليکلې دی

① دَ شرك اوکفرنه خان ساتل تقوی ده لکه چه فرمائی ﴿وَأَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوٰى﴾ يعنی الله تعالی صحابه کرام رضي الله عنهم دَ شرك نه بچ کړل او په توحيد باندې واچول

② دَهرې کبيره ګناه نه خان ساتل دَ تقوی دويمه مرتبه ده بلکه دَ بعض علماؤ په نيزدَ تقوی دَدې مرتبې دَ حاصلولودپاره ضروری دی چه دَ صغائرونه هم خان اوساتی

③ دتقوی دريمه درجه چه سړې هرهغه څيز ترك کړی کوم چه دَ الله تعالی طرف ته په توجه کښې بنديز جوړيږی بلکه چه دا سړې په هغه درجه کښې وی چه دَ زړه دَ پوره توجه سره دَ الله تعالی طرف ته متوجه وی دَ هغه دَ زړه احساسات او رحجانات دَ الله تعالی نه سوا په بل څيزکښې مشغول نه وی

**د تقوی تعريف د حضرت کعب رضي الله عنه په ژبه**:- حضرت عمر رضي الله عنه دَ حضرت کعب رضي الله عنه نه دتقوی باره کښې تپوس اوکړونوهغوی دا تعريف اوکړو چه دَ تقوی حقيقت داسې دې لکه مثلاً يوسړې دَ ازغو په جاړه کښې ورننوځي اوتيريږی او هغه خپلې کپړې او خپل ځان يوشان بچ کوی دَ بعض احاديثونه دتقوی تعريف داسې معلوميږی چه "ان لايراك مولاك حيث نهاك" يعنی ظاهراً باطناً خپله معامله خپل رب سره دَ صفاساتلونوم تقوی ده

**[٢٧٧٦] دَ يوشرابی سړی دَ وجې لس کسان ملعون ګرځيدل**

٢٧٧٦-[١٨] (¹) [١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] «لَعَنَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي الْخَمْرِ عَشْرَةً: [٣] عَاصِرَهَا، [٤] وَمُعْتَصِرَهَا، [٥] وَشَارِبَهَا، [٦] وَحَامِلَهَا، [٧] وَالْمَحْمُولَةَ إِلَيْهِ، [٨] وَسَاقِيَهَا، [٩] وَبَائِعَهَا، [١٠] وَآكِلَ ثَمَنِهَا، [١١] وَالْمُشْتَرِي لَهَا، وَالْمُشْتَرَى لَهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

---

(¹) اخرجه الترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب النهي أن يتخذ الخمر خلا (١٢٩٥) وابن ماجة في كتاب الأشربة/باب لعنت الخمر على عشرة أوجه (رقم-٣٣٨١)

**ترجمه**: [١] حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ د شرابو په معامله کې په لسو سړو لعنت ويلى دى [٢] ١ شراب کشيد کونکى د خان د پاره [٣] ٢ شراب کشيده کونکى د بل د پاره [٤] ٣ شراب څکونکى [٥] ٤ شراب پورته کونکى [٦] ٥ شراب په بل اخستونکى ( يعنى هغه سړى چې چاته د شراب راوړلو حکم ورکړي) [٧] ٦ په بل شراب څکونکى ٧ [٨] شراب خرڅونکي [٩] ٨ د شرابو قيمت خوړونکى [١٠] ٩ شراب خريد کونکى يعنى هغه سړى چې د بل سړي د څکلو د پاره يا د هغه د تجارت بطريق ولايت شراب خرڅ کړي ١٠ [١١] په بل خرڅونکى ( يعنى هغه سړى چې په دويم سړي د خپلو څکلو يا خپل تجارت د پاره شراب خرڅ کړي. ) (ترمذي ابن ماجه)

**حل اللغات**: - ① عَاصِرَهَا: وَهُوَ مَنْ يَعْصِرُهَا بِنَفْسِهِ لِنَفْسِهِ أَوْ لِغَيْرِهِ: څوک چه شراب نچوړوى که خان دپاره وى اوکه بل چا دپاره، ② مُعْتَصِرَهَا: أَيْ مِنْ يَطْلُبُ عَصْرَهَا لِنَفْسِهِ أَوْ غَيْرِهِ: څوک چه دشراب نچوړولو مطالبه کوى که مطالبه دخان دپاره کوى اوکه بل چا دپاره. ③ شَارِبَهَا: شراب څکونکې. ④ حَامِلَهَا: شراب اوچتونکې. ⑤ الْمَحْمُولَةَ: أَيْ: مَنْ يَطْلُبُ أَنْ يَحْمِلَهَا أَحَدٌ إِلَيْهِ: د پورته کولو مطالبه کونکې چه دا شراب راته راوچت کړه ⑥ سَاقِيَهَا: چه شراب په خلقو څکوى. ⑦ بَائِعَهَا: أَيْ: عَاقِدَهَا: د شراب داخستلو يا خرڅولو بيعه کونکې (که هغه وکيل وى او که دلال وى). ⑧ آكِلَ ثَمَنِهَا: د شرابو ګټه خوړونکې. ⑨ الْمُشْتَرِي لَهَا: شراب اخستونکې (د لها ضميرنه مراد شراب دى). ⑩ الْمُشْتَرَي لَهُ: أَيْ: الَّذِي اشْتُرِيَ لَهُ بِالْوَكَالَةِ: دچا دپاره چه شراب اخستلې شى.

**تسهيلات**:

**قوله**: وَالْمُشْتَرِى لَهَا:

**ديوشربى په وجه لس کسان ملعون ګرځيدل**:-دې پسې حديث کښې دَ "مبتاعها" لفظ راغلې دې دې نه مراد دَ شرابو اخستونکې سړې

دې دَ زير نظر حديث نه معلومه شوه چه دَ يوشراب خور سړى دَ وجې نه لس کسان ملعون جوړيږى سوچ کول پکاردى چه شراب دَ يومسلم معاشرې دَپاره څومره لوئى لعنت دې اودَ عام اوخاص دَ پاره څومره همه ګيرلعنت دې عام خلق ګنړى چه دَ شرابو څکلوسره شرابى سړې ګناهګاريږى مونږ خو صرف دَ راوړلو والا يا نچوړى کولو والا يا دَ تقسيم کولو والا يو يادلرئى په شرابو کښې دَهرقسم امداد کونکې سړې ملعون جوړيږى اولکه څنګه چه دَ شرابو په ګناه کښې لس کسان ملعون اودَلعنت مستحق کيږى دغه شان په سودى کاروبار کښې هم ډير خلق ملعون جوړيږى.

[٢٧٧٧] په شرابو او متعلقینو د شرابو باندې لعنت

٢٧٧٧ــ[٥] (١) ١ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "٢ «لَعَنَ اللَّهُ الْخَمْرَ، وَشَارِبَهَا، وَسَاقِيَهَا، ٣ وَبَائِعَهَا، وَمُبْتَاعَهَا، ٤ وَعَاصِرَهَا، وَمُعْتَصِرَهَا ٥ وَحَامِلَهَا، وَالْمَحْمُولَةَ إِلَيْهِ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: ١ حضرت ابن عمر ﷟ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ الله ﷻ لعنت فرمایلی دي په شرابو اوپه شراب څکونکي ٣ اوپر شراب خرڅونکي او په شراب آخستونکي ٤ اوپر شراب کشید کونکی د ځان د پاره اوپرشراب کشید کونکي باندې د بل د پاره ٥ اوپر شراب پورته کونکي باندې اود چادپاره چې شراب وړل کیږي. (ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات** - ① مُبْتَاعَهَا: أَيْ مُشْتَرِيَهَا: اخستونکي دشرابو. ② الْمَحْمُولَةَ إِلَيْهِ: دچا دپاره چه شراب اوچتولي یا وړلي شي

**تسهیلات**: قوله: لَعَنَ اللَّهُ الْخَمْرَ،

**د اعتراض جواب**:- په ماقبل حدیث کښې د لسو ذکر دي او دلته د لږو ذکر دي نو عدد اقل د اکثر منافي نه وی.

[٢٧٧٨] د ښکرلګونکی د ګټې حکم

٢٧٧٨ــ[٦] (٢) ١ «وَعَنْ مُحَيِّصَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ٢ أَنَّهُ اسْتَأْذَنَ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي أُجْرَةِ الْحَجَّامِ ٣ فَنَهَاهُ ٤ فَلَمْ يَزَلْ يَسْتَأْذِنُهُ ٥ حَتَّى قَالَ: ٦ (اعْلِفْهُ نَاضِحَكَ، وَأَطْعِمْهُ رَقِيقَكَ) » ، رَوَاهُ مَالِكٌ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: ١ د حضرت محیصه په باره کې منقول دی ٢ هغه د رسول الله ﷺ څخه د ښکر لګونکي د ګټی خوړلو اجازت اوغوښتلو ٣ نو حضور ﷺ هغه منع کړي ٤ هغه چې بار بار د حضور ﷺ څخه اجازت غوښتی ٥ نو حضور ﷺ هغه ته دا حکم ورکړي ٦ چې دا ګټل شوی مال په خپل اوښ وخوره یا په خپل غلام یا په وینځې باندې یې خوره. (مالك ترمذي ابوداود ابن ماجه)

**حل اللغات** - ① أُجْرَةِ الْحَجَّامِ: د ښکر لګونکی ګټه او مزدوری ② اعْلِفْهُ: أَيْ أَطْعِمْهُ: اوخوره وه دا ګټه. ③ نَاضِحَكَ: وَهُوَ الْجَمَلُ الَّذِي يُسْقَى بِهِ الْمَاءُ: ناضح هغه اوښ ته وائی چه اوبه خور پرې کولې شي یعنی آرهټ ④ رَقِيقَكَ: أَيْ عَبِيدَكَ وَإِمَاءَكَ: غلامان او وینځې

[1] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الأشربة/باب العنب يعصر للخمر(رقم-٣٦٧٤) وابن ماجة في كتاب الأشربة/باب لعنت الخمر على عشرة أوجه (رقم-٣٣٨٠) واحمد في المسند: ٢/٢٥

[2] اخرجه ابوداود في أبواب الإجارة/باب في كسب الحجام (رقم-٣٤٢٢) والترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كسب الحجام (رقم-١٢٧٧)

**تسهيلات:**

**قوله: مُحَيصَةَ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-:**

**د محيصه تعارف:** - په ميم باندې ضمه ده او ياء باندې شد او كسره ده دَ يو صحابي نوم دې

**قوله: اسْتَأْذَنَ:**

**په مريو كښې د ښكر لګولو رواج:** - يعنى دَ ښكر رانښكلو كاروبار اودَ دې دَ ګټې دَ حلت اجازت نى اوغوښتلو دَ دې صورت به دا وو چه عربو به په خپلو غلامانو باندې ټيكى مقرركولو هغوى به ګټه كوله اومقرر حصه به نى خپل مالك ته وركوله اوهم په داسې صورت كښې حضرت محيصه رضي الله عنه دَ خپل غلام دَ ګټې خوړلواجازت غوارى كوم چه دَ ښكرلګولو په عمل سره حاصليدلو حضورپاك اجازت ورنه كړو اودَ هغه په بار بار اصرار باندې حضورپاك اوفرمائيل چه دَ ده ګټه واخله اودَ خپلو غلامانو په خوراك كښې استعمال كړه اودَ اسونو په واښو كښې خرچ كوه

**د حديث توجيه:** - دَ دې حديث دَ ظاهرنه معلوميږى چه دَ حجامه ګټه جائز نه ده ليكن ټولو فقهاؤ او ټولو علماؤ نورو احاديثو ته په كتلو سره دَ دې دَ جائز كيدو فتوى وركړې ده دې وخت كښې به دَ دې حديث حكم خلاف اولى او مكروه تنزيهى باندې محمول وى دَ دې حديث نه داهم معلومه شوه چه دَ غلامانو حيثيت دومره اوچت نه دې چه دَ يو ناكاره پيشې په ګټې سره به هغوى ته نقصان اورسى ليكن دَ شريفانو او آزادو خلقو شان خو چونكه اوچت وى په دې وجه داګټه دَ هغوى دَ شان منافى ده.

**د ناپانو د ګټې حكم:** - دَ دې حديث نه داخبره هم معلومه شوه چه دَ ناپانو هغه ګټه كومه چه په ږيره خرولو او دَ سر ويښته انګريزى جوړولو سره حاصليږى هغه هم جائز نه ده ځكه چه په وينه رانښكلو كښې صرف دَ پيشې حقارت دې په شريعت كښې دَ دې ممانعت نشته دې ليكن ږيره خرول خو په شريعت كښې حرام دى لهذا دَ دې ګټه هم حلال كيدې نه شى

**[٢٧٧٩] دَ سندرو ويونكو ښځو دَ ګټې حكم**

٢٧٧٩-[٢٠] (١) ⟨١⟩ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ ⟨٢⟩: «نَهَى رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ، وَكَسْبِ الزَّمَّارَةِ». رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** ⟨١⟩ حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي ⟨٢⟩ چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د سپي قيمت او د سندر غاړو ښځو د ګټې څخه منع فرمايلي ده. (شرح السنه)

**حل اللغات:** - ① الزَّمَّارَةِ: أي: الزَّانِيَةِ: سندرې او لوبې ويونكې ښځه، زناكاره ښځه

(١) اخرجه البغوى فى شرح السنة رقم الحديث: ١٢٨٢ واحمد فى المسند: ٧٣٣/٢

**تسهيلات:**

**قوله: وَكَسْبِ الزَّمَّارَةِ:**

**د زماره په مصداق کښې دوه اقوال:** -① زماره سندري ويونکي ښځې ته وائي زماره په اصل کښې شپيلئ ته وائي چونکه سندري ويونکي ښځې دا غږ وي په دې وجه دَدې نوم واخستې شو گني دَ سندرو ويونکي ټول آلات هم مغنيه استعمالوي په عربو کښې داهم دستور وو چه هغوی به دَ مغنيه په ذريعه پيسې راټولولې لکه چه دَ غلامانو او وينځو په نورو پيشو سره پيسې حاصلولې په دې وجه حضورپاک دا منع کړل

② ملاعلي قاري رحمه الله دَ زماره مصداق زناکاره ښځه هم گرځولې ده چه دَ وينځو اوکنجريانو گټه جائزنه ده ټول احتمالات صحيح دي البته که دَدې مصداق چرته مغنيه اوگرځولې شي نودَ ټولونه واضح ده دَدې نه معلومه شوه چه ټيلی وېژن وی سی آر اوکيبل وغيره آلات لهواودَغنا گټه اودَدې کار روزگار حرام دي

**[٢٧٨٠] دسندرغاړو داجرت حرمت**

٢٧٨٠—[٢٢] ( )[١] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[٢] «لَا تَبِيعُوا الْقَيْنَاتِ، وَلَا تَشْتَرُوهُنَّ، [٣] وَلَا تُعَلِّمُوهُنَّ، [٤] وَثَمَنُهُنَّ حَرَامٌ، وَفِي مِثْلِ هَذَا نَزَلَتْ ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ﴾ [لقمان: ٦]» رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ،

**ترجمه:** [١] حضرت ابو امامه رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [٢] سندرغاړي وينځې مه خرڅوئ مه يې خريد کوئ [٣] او مه وينځوته غزلې ورښايئ [٤] او د دې غزلو والا وينځو حاصليدونکې قيمت حرام مال دی [٥] او په دې سلسله کې يعنې د غزلو والاوو وينځو د خريد په مذمت کې، دا آيت نازل شوی دی وَمِنَ النَّاسِ مَن يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ ترجمه او په انسانانو کې بعضې داسې (نادان او غلط کار والا) خلق هم دي چې بې کاره خبرې اخلي (احمد ترمذي ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① الْقَيْنَاتِ: أَي الْأَمَةُ الْمُغَنِّيَةُ: سندرې او لوبې ويونکې وينزه ② لَهْوَ الْحَدِيثِ: أَيْ الْغِنَاءَ وَالْأَصْوَاتَ الْمُحَرَّمَةَ الَّتِي تُلْهِي عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ: لوبې، سندرې او حرام خبرې کومې چه انسان دالله تعالى دذکرنه غافل کوي، لکه د شپې قصې، فضول گپ شپ يا ټي وی کتل وغيره

[١] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، [٢] وَعَلِيُّ بْنُ يَزِيدَ الرَّاوِي يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ. [٣] وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ جَابِرٍ: نُهِيَ عَنْ أَكْلِ الْهِرِّ فِي بَابِ "مَا يَحِلُّ أَكْلُهُ" إِنْ شَاءَ اللَّهُ - تَعَالَى -.

**ترجمه:** [١] امام ترمذي رحمه الله فرمايي چې دا حديث غريب دی [٢] او د دې يو راوي علي ابن

) اخرجه الترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في بيع فضل الماء (رقم-١٢٧٢) وابن ماجة في كتاب التجارات /باب ما لا يحل بيعه (رقم-٢١٦٨) واحمد في المسند: ٢٦٤/٥

زيد د روايت حديث په سلسله کښ ضعيف شميرل شوي دی [٣] وحديث د جابر رضي الله عنه نهي عن أكل الهرة - به په باب ما يحل أكله کښ ذکر کړو ان شاء الله تعالی.

**تسهيلات: قوله: لَاتَبِيعُوا الْقَيْنَاتِ:**

**د قينات څخه مراد:-** دا جمع ده په دواړو کښې تخفيف دې مشددنه دی قينه مطلق وينځې ته وائی که د سندرو ويونکې وی اوکه نه وی، البته دلته د سندرو ويونکې وينځه مراد ده ځکه که دسندرو والا نه وی نود هغې اخستل اوخرڅول منع نه دی د بيع او شراء ممانعت دَدې خبرې دليل دې چه د سندرو والا وينځه مراد ده.

**قوله: وَثَمَنُهُنَّ حَرَامٌ:**

**د سندغاړو وينځو د کاروبار حکم:-** يعنی دَدې وينځو په اخستلو اوخرڅولوسره يا په ګډاګانو او سرودونو سره چه کومه پيسه حاصله شی هغه حرام ده. قاضی عياض رحمه الله فرمائی چه دَاخستلو اوخرڅولو دا ممانعت په هغه صورت کښې دې کله چه وينځه صرف او صرف هم د ګډاګانو اوسرودونودپاره حاصلولې شی. دَدې حديث ظاهری حکم هم دغه دې چه د ګانو ويونکو وينځو اخستل اوخرڅول ناجائز دی ليکن د جمهور علماؤ په نيز بيع اوشراء جائز ده. هغوی دَدې حديث د ضعيف کيدو باوجود په دې کښې تاويل کړې دې چه دلته بيع اوشراء مراد نه ده بلکه د هغوی په ګانو بجانو باندې اجرت اخستل جائز نه دی لکه چه په نورو احاديثو کښې دی.

**قوله: وَمِنَ النَّاسِ:**

**د آيات شان نزول:-** دا آيت د سورت لقمان دې چه د نضر بن حارث باره کښې نازل شوې دې سړې به د قرآن پاك سخت مخالفت کولو اود عجم ښارونوته به لاړو او د رستم د قصو کتابونه به نی راوړل او دې عربئی ته به نی منتقل کول اووئيل به ئی چه "محمد" تاسو ته د عاديانو اوثموديانو قصې اوروی زه د رستم اسفنديار او بادشاهانو قصې درته اوروم. دې سړی به د ګانو وئيلو د وينځو محفلونه جوړول اوچرته چه به ئی اوريدل چه څه خلق د قرآن طرف ته مائل کيږی هلته به ئی دغه وينځې ليګلې اود قرآن پاك اثر به ئی کمول غوښتلو لکه چه نن صبا ګمراه حکمرانانو شروع کړی دی.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٢٧٨١] د حلال رزق ګټلو فرضيت**

٢٧٨١-[٢٣] (١) [١] عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [٢] «طَلَبُ كَسْبِ الْحَلَالِ فَرِيضَةٌ بَعْدَ الْفَرِيضَةِ» " رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي " شُعَبِ الْإِيمَانِ.

(١) اخرجه البيهقي في شعب الايمان (رقم-٨٧٤١)

**ترجمه:** ١ حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه وايي چي رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ حلاله روزي ګټل د فرض څخه وروسته يو فرض دی. (بيهقي)

**حل اللغات:** - ① كَسْبِ الْحَلَالِ: حلاله روزی ګټل

**تسهيلات:** **قوله: طَلَبُ كَسْبِ الْحَلَالِ فَرِيضَةٌ:**

### د کسب حلال د فرضيت صورت:-

دکوم سړی په ذمه چه دَ بل سړی یا دَ خپل اهل وعيال نفقه واجب وی په هغه باندې فرض دی چه هغه دې محنت اوکړی اودَ هغوی رزق اوګټی اوکه دَ ګټې نه بغیرپه څه ذریعه باندې انتظام کیدې شی نوبیا فرض نه دې

**قوله: بَعْدَ الْفَرِيضَةِ:**

**د بعد الفريضه مفهوم:** - دَدې جملې مطلب دادې چه مال ګټل بې شکه فرض دی لیکن دَاسلام دَ نورو مقررکړې شوو فرائضو نه پس فرض دی مثلاً مونځ روژه عبادات په ځائی راوړلونه پس ګټه کول فرض دی. دامطلب ئی نه دې چه باقی پاتې فرائض پریږدی اوګټې پسې اولګی اوخوشحالیږی چه زه هم دَ یوفریضې په پوره کولوکښې لګیایم. دَ مانځه دَ قیام په دوران کښې ګټه کښې لګیاکیدل جائزنه دی. پاکستانی نوټونو باندې چه دا لیکلی دی حصول رزق حلال عبادت دې. داهغه وخت عبادت دې چه کله نور عبادات په ځائی راوړلې شوی وی ګنی هم دغه رزق به دې دَعذاب سبب جوړیږی.

### [۲۷۸۲]دَقرآن پاک په کتابت داجرت اخستلو جواز

> ۲۷۸۳-[۳۳] ( )١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا - ٢ أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ أُجْرَةِ كِتَابَةِ الْمُصْحَفِ ٣ فَقَالَ: لَا بَأْسَ، ٤ إِنَّمَا هُمْ مُصَوِّرُونَ، وَإِنَّهُمْ إِنَّمَا يَأْكُلُونَ مِنْ عَمَلِ أَيْدِيهِمْ. رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** ١ د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په باره کې منقول دی ٢ چې د هغه څخه د کتابت قرآن د اجرت حکم وپوښتل شو (چې د قرآن د کتابت مزدوري خوړل جائز دی که نه؟) ٣ نو هغه وفرمايل په دې کې څه حرج نشته ٤ ځکه چې کاتب سړی خو يوائې نقش کونکی دی چې د خپلو لاسونو ګټه خوري. (رزين)

**حل اللغات:** - ① أُجْرَةِ: أَيْ عَنْ أَخْذِهَا: يعنی د قرآن د ليکلو مزدوری اخستل او خوړل ② الْمُصْحَفِ: قرآن ③ مُصَوِّرُونَ: أَيْ يَنْقُشُونَ صُوَرَ الْحُرُوفِ: يعنی د قرآن د حروفو نقوش نقل کوی. ④ عَمَلِ أَيْدِيهِمْ: د لاسونو د مزدوری ګټه

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّمَا هُمْ مُصَوِّرُونَ، وَإِنَّهُمْ إِنَّمَا يَأْكُلُونَ مِنْ عَمَلِ أَيْدِيهِمْ:**

---

( ) رواه رزين

**دقرآن په کتابت د اجرت اخستلو جواز:** قرآن کريم د الفاظواومعانيود مجموعې نوم دې دا خيال کيدو شو چې د قرآن کريم د الفاظو په ليکلو سره اجرت اخستل به جائز نه وی نودا خيال اووهم ابن عباس رضی الله عنهما ختم کړلو چې د قران پاک ليکونکې نقش جوړوی په کوم کښې چې هغه ته د ډير مشقت برداشت کول وی نودا کار اوپه دې باندې معاوضه اخستل جائز دی

[۲۷۸۳] دلاس د کټې الفضليت

۲۷۸۳-[۲۵]( )[۱] وَعَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «قِيلَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ: [۲] أَيُّ الْكَسْبِ أَطْيَبُ؟ [۳] قَالَ: "عَمَلُ الرَّجُلِ بِيَدِهِ، وَكُلُّ بَيْعٍ مَبْرُورٍ" . رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] حضرت رافع ابن خديج راوي دی چې د رسول الله ﷺ څخه دا پوښتنه وشوه [۲] چې کوم کسب پاك (يعني افضل) دی؟ [۳] نو حضور ﷺ وفرمايل چې د انسان په خپل لاس سره ګټل او هر هغه تجارتونه چې مقبول وي (يعني د شرعي اصولو او قواعدو مطابق وي) (احمد)

**حل اللغات** - ① أَطْيَبُ: أَيْ أَحَلُّ وَأَفْضَلُ: پاک اوفضيلت والا ② بَيْعٍ: تجارت، اخستل خرڅول. ③ مَبْرُورٍ: أَيْ مَقْبُولًا فِي الشَّرْعِ: چه په شريعت کښې مقبول وی (يعنی د دروغ، خيانت او دهوکې نه پاک وی)

**تسهيلات:**

**قوله** عَمَلُ الرَّجُلِ بِيَدِهِ:

**په دوه رواياتو کښې د تعارض دفع:** -لکه چه وړاندې ليکلې شوی دی چه په نص صريح سره ثبت دی چه د ټولونه غوره ګټه دهغه ده چه په جهاد کښې چامسلمانانو ته د مال غنيمت نه په لاس ورکوی دلته د لاس ګټه د ټولونه غوره ګرخولې شوې ده په دې کښې هيڅ منفات نشته دې په جهاد کښې چه کوم مال په لاس راشی هغه خو د سخت محنت او د خان نه په تيريدو باندې راځی نو هغه هم د لاس اوچته ګټه ده

[۲۷۸۴] په جائزروزګار کښې شرم نه کول

۲۷۸۴-[۲۶]( )[۱] وَعَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كَانَتْ لِمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ جَارِيَةٌ تَبِيعُ اللَّبَنَ [۳] وَيَقْبِضُ الْمِقْدَامُ ثَمَنَهُ، [۴] فَقِيلَ لَهُ: سُبْحَانَ اللّٰهِ! [۵] أَتَبِيعُ اللَّبَنَ؟ وَتَقْبِضُ الثَّمَنَ؟ [۶] فَقَالَ: نَعَمْ وَمَا بَأْسٌ بِذٰلِكَ، [۷] سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ [۸] "لَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَا يَنْفَعُ فِيهِ إِلَّا الدِّينَارُ وَالدِّرْهَمُ" » رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوبکر ابن ابي مريم (تابعي) وايي [۲] چې د حضرت مقدام ابن معدي کرب ؓ (صحابي) يوي وينځې به د هغه د څارويو پي خرڅولې. [۳] او مقدام به د هغه

) اخرجه احمد فی المسند: ١٤١/٤
) اخرجه احمد فی المسند: ١٣٣/٤

خځه د پيئو حاصليدونکې قيمت آخستلو[٤] نو يوه ورځ مقدام ته اوويل شوه چې سبحان الله څومره د تعجب خبره ده [٥]چې وينځه پئ خرڅوې او ته د هغه قيمت اخلې[٦] مقدام اوويل چې صحيح خو دی په دې کې څه حرج نشته [٧]ما د رسول الله ﷺ ځخه اوريدلې دي [٨]چې يوه داسې زمانه به راشي چې په هغه کې به د هرويهودينار څخه علاوه بل هيڅ څيز فائده نه ورکوي. (احمد)

**حل اللغات:** - ① اللَّبَنَ: پئ، شيدې. ② يَقْبِضُ: قبض کولوبه يې، اخستلو به ئې (رقم د پئيو)

**تسهيلات:**

**قوله:** اتبيع اللبن ؟:

**د صحابه کرامو په دور کښې د پيئو خرڅولو آغاز:** -په کلوکښې اوډعريوبه قبانلوکښې به پيئوباندې د يوانسان امدادبه بغيرد څه معاوضه نه کيدلو لکه چه نن صبا د پاکستان په کلوکښې رواج دې حضرت مقدام ﷺ چه کله د پيئو خريداوفروخت کار شروع کړو نود معاشرې خلقو دا بد اوګڼړل حضرت مقدام ﷺ د دې جواب ورکړوچه په دې کښې د شرم څه خبره ده يوجائز کاروبار دې په کوم سره چه زه د خپل عزت او دين حفاظت کوم د حضورپاك پيشنګوئي ده چه يوه زمانه به داسې راځي چه په هغې کښې به صرف پيسه کاروږکوي يعنی خپل عزت اوخپل دين اوډعبادت حفاظت به په حلال پيسو باندې کيږي که چرې مال نه وي نودټولونه اول به د سړي دين ځي اوبيابه ئې عزت اوعظمت ځي

**[٢٧٨٥] بلا وجه د کاروبار د بدلولو حکم**

٢٧٨٥-[٢٠] (١) [١]وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ: كُنْتُ أُجَهِّزُ إِلَى الشَّامِ، وَإِلَى مِصْرَ. [٢] فَجَهَّزْتُ إِلَى الْعِرَاقِ [٣] فَأَتَيْتُ إِلَى أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ عَائِشَةَ، فَقُلْتُ لَهَا: يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ! [٤]كُنْتُ أُجَهِّزُ إِلَى الشَّامِ [٥]فَجَهَّزْتُ إِلَى الْعِرَاقِ، فَقَالَتْ: لَا تَفْعَلْ! [٦] مَا لَكَ وَلِمَتْجَرِكَ؟ [٧] فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " [٨]«إِذَا سَبَّبَ اللهُ لِأَحَدِكُمْ رِزْقًا مِنْ وَجْهٍ فَلَا يَدَعْهُ حَتَّى يَتَغَيَّرَ لَهُ أَوْ يَتَنَكَّرَ لَهُ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١]حضرت نافع وايي مابه د خپل تجارت مال او اسباب تيارولو سره (د خپلو ملازمانو او وکيلانو په سپردګۍ کې) شام او مصر ته ليږلی [٢]بيا روسته (يو ځل) ما د خپل تجارتي سامان عراق طرف ته د ليږلو اراده وکړه [٣]او د أم المؤمنين بي بي عائشې ﷺ په خدمت کې حاضر شوم عرض مې اوکړو چې ام المؤمنين! [٤] (مخکې خو) خپل تجارتي سامان به ما شام ته ليږې [٥]خو اوس خما اراده ده چې خپل تجارتي سامان عراق طرف ته وليږم (د دې اوريدو سره) بي بي عائشه ﷺ وفرمايل داسې مه کوه [٦]ستا او ستا تجارت ته څه شوي دي (چې ته د شام تجارت پريږدې) [٧] ما د رسول الله ﷺ ځخه اوريدلي

(١) اخرجه ابن ماجة في السنن كتاب التجارات /باب باب إذا قسم للرجل رزق من وجه فليلزمه (رقم-٢١٤٨)

دي⑧ چې کله الله ﷻ په تاسو کې د چا د رزق څه سبب په څه صورت کې پیدا کړي نو هغه پرېښودل نه دي پکار⑨ د دي پورې چې په هغه کې څه تبدیلي پیدا شي یا نقصان ورته ورسیږي، (احمد ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① أَجْهَزْ: أَيْ أَهَيِّئُ التِّجَارَةَ: دتجارت مال اسباب به مې تیارولو ② وَلِمَتْجَرِكَ؟: دا ظرف مکان دې یعنی ستا دتجارت والا خائې (شام) باندې څه چل شوي دې؟ (چه ته دغه تجارت پرېږدې) ③ سَبَّبَ اللهُ: یعنی چه کله دَ یو طرف او اړخ نه الله تعالی رزق ورکوی او هغه خائې سبب او ذریعه جوړه کړي ده نو دا ولې بدلوې ④ يَتَغَيَّرْ: أَيْ يَعْدَمِ الرِّبْحِ: یعنی چه نفع ئې بنده شي ⑤ يَتَنَكَّرْ: بِخُسْرَانِ رَأْسِ الْمَالِ: خراب صورت حال پیدا شي لکه اصل سرمایه کښې نقصان اوشي

**تسهیلات:**

**قوله:** أَجْهَزْ:

**دتجارتی سفر دپاره دعائشې رضی الله عنها مشوره:** - داسې فرمائي چه ما به دَ تجارت مال دَ شام او مصر وغیره دَ پاره پخپله تیارولو سره روانولو یا به مې دَ خپلو وکیلانو په ذریعه سره تیارولو. یو څل ما اراده اوکړه چه اوس تجارتی مرکز عراق جوړ کړم نو دَ هغه خائی دَپاره ما سامان تیار کړو لیکن په زړه کښې مې خیال راغلو چه حضرت عائشه ﷺ سره مشوره اوکړم چنانچه ما مشوره اوغوښتله نو حضرت عائشه ﷺ منع کړم چه یو خو عراق ډیر لرې دې بل دا چه په دې بدلون کښې حرص ښکاری.

**قوله:** وَلِمَتْجَرِكَ:

**د متجر په مصداق کښې دوه اقوال:** - ①دَ تجارت دَ پاره هم یادولې کیږی

② دلته دَ تجارت خائې مراد دې یعنی دَ دې بدلون څه ضرورت دې کله چه الله تعالی دَ یو خائی نه رزق ورکوی نو دَ هغې بدلون مناسب نه دې.

**قوله:** إِذَا سَبَّبَ اللهُ:

**د رزق په حصول کښې دالله تعالی نظام:** - دَ الله تعالی یو نظام دې نو هره ورځ دَ هغې په بدلون سره په دغه نظام کښې خلل راځی دَ چرته نه چه الله تعالی در کوی هم دَ هغه خائی نه اخلئ.

**[۲۷۸٦] دَ ناأهل کار بېکار ذکټې حکم**

٢٧٨٦—[٢٨] (¹) ①وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - قَالَتْ: ②كَانَ لِأَبِي بَكْرٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - غُلَامٌ③ يُخْرِجُ لَهُ الْخَرَاجَ④ فَكَانَ أَبُو بَكْرٍ يَأْكُلُ مِنْ خَرَاجِهِ⑤ فَجَاءَ يَوْمًا بِشَيْءٍ، يَأْكُلُ مِنْهُ أَبُو بَكْرٍ⑥ فَقَالَ لَهُ الْغُلَامُ: تَدْرِي مَا هَذَا؟⑦ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: وَمَا هُوَ؟

¹) اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب أیام الجاهلیة (رقم-٣٨٤٢)

**توجمه:** ١ بي بي عائشه رضي الله عنها وايي ٢ چي د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه سره يو غلام وو ٣ چي د خپلې گټې څخه يوه مقرره حصه به يې حضرت ابوبکر ته ورکوله (لکه څنګه چې د اهلِ عربو دا معمول وو چې هغوئ به خپل غلامان په کار لګول او د هغوئ د حاصل شوي مزدورۍ څخه به يې څه حصه د خان د پاره مقرروله) ٤ نو حضرت ابوبکر صديق به د هغه غلام راوړل شوی څيز خوړلو ٥ يو وخت هغه غلام څه څيز راوړو چې د هغه څخه حضرت ابوبکر رضي الله عنه هم خوراك وکړي (د خوراک څخه وروسته) ٦ غلام ورته اوويل چې ته پوهيږې چې دا څنګه شی دی؟ ٧ حضرت ابوبکر رضي الله عنه وفرمايل چې ماته څه معلومه وه ته وښايه چې دا څنګه څيز دی

**حل اللغات:** - ① يُخْرِجُ الْخَرَاجَ: أَيْ يَكْسَبُ لَهُ مَالَ الْخَرَاجِ: اهلِ عربو به خپل غلامان په کار لګول او د هغوئ د حاصل شوی مزدورئ څخه به ئې څه حصه د خان د پاره مقرروله، هغې ته به ئې خراج وئيل ② تَدْرِي: أَيْ: تَعْلَمُ: تاته پته ده،

| ١ قَالَ: كُنْتُ تَكَهَّنْتُ لِإِنْسَانٍ فِي الْجَاهِلِيَّةِ، ٢ وَمَا أُحْسِنُ الْكِهَانَةَ، إِلَّا أَنِّي خَدَعْتُهُ ٣ فَأَعْطَانِي بِذٰلِكَ، ٤ فَهٰذَا الَّذِي أَكَلْتَ مِنْهُ، ٥ قَالَتْ: ٦ فَأَدْخَلَ! أَبُوبَكْرٍ يَدَهُ، ٧ فَقَاءَ كُلَّ شَيْءٍ فِي بَطْنِهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |
|---|

**توجمه:** ١ غلام اوويل ما به د جاهليت په ورخو کې (يعني خپل د کفر په حالت کې) يو سړي ته د غيب خبري ښودلي ٢ حالانکه زه د کهانت په فن (يعني د پټو خبرو ښودلو په فن) ښه نه پوهه يدلم بلکه ما به هغه ته (غلطي خبري ښودلو سره) دهوکه ورکولی (اتفاقاً نن) ٣ د هغه سړي سره څما ملاقات وشو نو هغه ماته دا شی راکړي ٤ دا هغه څيز دی چې تا وخوړلی. ٥ بي بي عائشه رضي الله عنها وايي (د دي اوريدو سره) ٦ حضرت ابوبکر رضي الله عنه په خپله خوله (يعني په حلق) کې گوته دننه کولو سره هغه قي کړل، ٧ او څه چې يې په خيټه کې وه د احتياط له مخه ټول يې بهر راوغورځول، (بخاري)

**حل اللغات:** - ③ تَكَهَّنْتُ: أَيْ: أَخْبَرْتُ بِغَيْبٍ مُوهِمًا: کهانت به مې کولو يعنی دخانه به مې دغيب خبر ورکولو ④ خَدَعْتُهُ: دهوکه به مې ورکوله ⑤ فَقَاءَ: نو قئ ئې کړو (د ډيري پرهيزګارئ په وجه ئې خوراک د خيټي نه بهر راوغورځولو)

**تسهيلات: قوله: فَقَاءَ:**

**د حضرت ابوبکر رضي الله عنه د قي کولو توجيه:** حضرت ابوبکر رضي الله عنه په څه حيله سره دَخيټي دننه نه دغه مشتبه پيښی قي کړل دا دَ احتياط او تقوی په توګه وو خکه چه په دې ګټه کښې خوبودَ کهانت ګناه راغلې وه اودويمه ګناه دَ دهوکې وه خکه چه هغه سړې په دې فن کښې نااهل وو

**په مذکوره صورت کښې د حرام څيزه القئ کولو حکم:** امام شافعی رحمه الله فرمائی چه داسې صورت پيښيدو دَ وجې نه قي کول لازم او واجب دي.

لیکن امام غزالی رحمه الله دا په خپل کتاب منهاج العارفین کښې په تقوی او احتیاط باندې حمل کړې دې

**فائده:**-د دې حدیث نه دا خبره معلومه شوه چه د چانه یوسړې څه اخلی نو هغه له پکار دی چه ښه چهان بین او کړی چه چرته دې کښې خو حرام څه ګډون نشته دې راتلونکی حدیث کښې داخبره په واضحه توګه موجود ده چه حضرت عمر رضی الله عنه قې او کړو

**[٢٧٨٧]د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه تقوی**

٢٧٨٧-[٢٩]()[١]وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ: ([٢]«لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ جَسَدٌ غُذِّيَ بِحَرَامٍ») رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** [١]حضرت ابوبکر رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [٢] کوم بدن چې په حرام مال سره پرورش وکړي هغه به (په اول کې د نجات یافته خلقو سره او د سزا تیرولو څخه بغیر په) جنت کې نه داخلیږي

**حل اللغات**:-① جَسَدٌ: أَيْ لِآدَمِيّ: بدن د سړی، ② غُذِّيَ: أَيْ رُبِّيَ: چه پرورش او نشونما ئې موندلې وی

**تسهیلات**:

**قوله:** لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ

**نوټ**:-د عدم دخول شرح د حدیث نمبر (٢٧٧٢) په تسهیل کښې تیر شوې ده

**[٢٧٨٨]ذ حرامې کټې د سپیره والی په عبادت اثر**

٢٧٨٨-[٣٠]()[١]وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّهُ قَالَ: [٢]شَرِبَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-لَبَنًا، وَأَعْجَبَهُ، [٣]وَقَالَ لِلَّذِي سَقَاهُ: [٤]مِنْ أَيْنَ لَكَ هَذَا اللَّبَنُ؟ [٥]فَأَخْبَرَهُ أَنَّهُ وَرَدَ عَلَى مَاءٍ قَدْ سَمَّاهُ، [٦]فَإِذَا نَعَمٌ مِنْ نَعَمِ الصَّدَقَةِ وَهُمْ يَسْقُونَ، [٧] فَحَلَبُوا لِي مِنْ أَلْبَانِهَا، فَجَعَلْتُهُ فِي سِقَائِي، وَهُوَ هَذَا. [٨]فَأَدْخَلَ عُمَرُ يَدَهُ فَاسْتَقَاءَهُ. [٩]رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** [١]حضرت زید ابن اسلم رضی الله عنه (چې د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه ازاد کړده غلام وو) دی وایي[٢] یو خل حضرت عمر ابن خطاب رضی الله عنه پئ وڅکلي چې هغه ته ډیری ښه معلومې شوي.[٣] نو هغه د هغه سړي څخه چې هغه ورباندې پئ څکلي وي پوښتنه وکړه [٤]چې دا پئ تاته د کوم ځای څخه حاصلې شوي؟ [٥]نو هغه ورته وښودل چې هغه (یعني زه) د اوبو یوې چینې یا کوهي ته تلی وم (هغه د چشمې یا کوهي نوم هم وښودلو) [٦]هلته ما ولیدل چې د زکوه څه څاروي (یعني اوښان او بزې (چیلی) وغیره) اوبو څکلو ته راغلی وي او د هغه څارویو نګران پئ لوشلي او په خلقو یې څکلي[٧] نو هغه زما د پاره هم پئ ولوشلي ما

١) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان
٢) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان (رقم-٥٧٧١)

په مشك كې واچولي دا هغه پې دي (په دي اوريدو سره) [٨] حضرت عمر ﷺ په خپل حلق كې گوته دننه كولو سره قي كړلي (او هغه پې بې د خيتې څخه وايستلې خکه چې هغه د زكوة مال وو چې د هغه د پاره جائز نه وو) [٩] دا دواړه روايتونه بيهقي په شعب الايمان كې نقل كړي دي

**حل اللغات** - ① أَعْجَبَهُ: ډير ښه ورباندې اولگيدل ② سَقَاهُ: چه ورباندې ئې څكلي وو ③ وَرَدَ: أي: مَرَّ: تلي ووم. ④ نَعَمٌ: د أنعام نه دي. خاروى (اوښان يا گوډې، بزې وغيره) ⑤ يَسْقُونَ: خاروو ته ئې ربه وركولې. يا دا چه د خاروو پې ئې په خلقو باندې څكل ⑥ فَحَلَبُوا: نو پې راولوشل هغه مالكانو دخاروو. ⑦ فَاسْتَقَاءَهُ: نو قې ئې كړل دغه پې (يعنى عمر ﷺ څكلى پې وايس راوغورځول)

**تسهيلات:**

**قوله فَأَدْخَلَ عُمَرُ يَدَهُ:**

**حضرو ﷺ تقوى** :- دحضرت عمر فاروق ﷺ لوئى شان وو تاسو دې واقعه ته اوگورئى چه بالكل په خالي خيته سره دَ پيئو يو ځوگوټونه كول اوقي كول ځومره گران كاردې بيا دنه مسئله خالص دَ حرمت هم نه ده صرف شك راغلي وو چه دَ صدقې دَ اوښانونه حصل شوو پيشو كيدې شى دَ زكوة نه وى دَ كوم استعمالول چه دَهغوى دَپاره جائزنه وو

**[٢٧٨٩] دَ حرامې كټې سپيره توپ**

٢٧٦٠ - [٢٠] (١) [١] «وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، قَالَ: [٢] مَنِ اشْتَرَى ثَوْبًا بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ [٣] وَفِيهِ دِرْهَمٌ حَرَامٌ [٤] لَمْ يَقْبَلِ اللَّهُ لَهُ صَلَاةً مَا دَامَ عَلَيْهِ. [٥] ثُمَّ أَدْخَلَ أُصْبُعَيْهِ فِي أُذُنَيْهِ [٦] وَقَالَ: صُمَّتَا إِنْ لَمْ يَكُنِ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَمِعْتُهُ يَقُولُهُ»: رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ" وَقَالَ: إِسْنَادُهُ ضَعِيفٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابن عمر ﷺ وايي [٢] كه يو سړى (مثلا) يوه كپړه په لس درهمه واخلي [٣] او په هغه كې يو درهم هم د حرام مال وي [٤] نو الله ﷻ د هغه وقته پورې د هغه سړي مونځ نه قبلوي د څو پورې چې د هغه سړي په بدن هغه كپړه وي [٥] د دې څخه وروسته حضرت ابن عمر ﷺ د شهادت دواړې گوتې په خپلو غوږونو كې كېښودلې [٦] او وې فرمايل چې دا دواړه غوږونه دې كاڼه شي كه ما دا د رسول الله ﷺ څخه نه وي اوريدلي. (احمد بيهقي، او بيهقي ﷺ ويلي دي چې د دې حديث اسناد ضعيف دي

**حل اللغات**:- ① صُمَّتَا: په دې كښې ضمير د تثنيه أذنين ته راجع دې يعنى كاڼه دې شى دواړه غوږونه زما. (دخپلې خبرې د تاكيد او اثبات دپاره به عربو دغسې وئيل)

---

(١) اخرجه البيهقي في شعب الايمان (رقم-٦١١٤)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَمْ يَقْبَلِ اللهُ:

**د عدم قبول مطلب:** -يعنی دَ قرض مونځ ثواب به دغه سړی ته نه حاصلیږی اداکړې شوې مونځ خوبه اوشی قضا کول نی لازم نه دی خو قبولیت او ثواب به نه ملاویږی.

**قوله:** صُمْتًا:

**د مذکوره جملې غرض:** -یعنی که چرې ماداحدیث دَحضورپاك نه پخپله نه وې اوریدلې نوزما غوږونه دې کاڼړی شی. صحابه کرامو به داقسم کلام ځکه کولوچه اوریدونکوته به یقین راشی او یوسړې به غلطو اندازوسره احادیث بیانول شروع نه کړی.

# [٢] بَابُ الْمُسَاهَلَةِ فِي الْمُعَامَلَةِ

**په معاملاتوکښې دَ نرمئ بیان**

**خلاصة الباب:** -

**فيه ثمانية أحاديث مشتملة على ثلاث مسائل:**

① الترغيب للمساهلة: ١، ٢.

② شناعة كثرة الحلف والحلف الكاذب وهذا من عدم المساهلة: ٣، ٤، ٥، ٧.

③ فضيلة التاجر الصادق وهو المساهل: ٦، ٨.

**د مساهله معنی:** - خرڅول اخستل او قرض ورکول او اخستلوکښې نرمی کول او سترګې پټولوسره نرمی اختیارولو ته مساهله وائی. ای المجاملة والمسامحة

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[٢٧٩٠] معاملاتوکښې نرمی کونکی ته دَرسول الله ﷺ دعا**

٢٧٩٠-[١] (١) ①عَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ "قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "②«رَحِمَ اللهُ رَجُلًا ③سَمْحًا إِذَا بَاعَ وَإِذَا اشْتَرَى وَإِذَا اقْتَضَى». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①حضرت جابر ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ②الله ﷻ دې په هغه سړي خپل رحمت نازل کړي③ چې په خرڅولو کې او رانیولو کې او په غوښتنه کې نرمي کوي (بخاري)

**حل لغات:** - ① سَمْحًا: أَيْ سَهْلًا وَجَوَادًا: نرمی اوسخاوت کوی ② اقْتَضَى: أَيْ إِذَا طَلَبَ دَيْنًا: چه کله تري خپل قرض اوغواړی.

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب السهولة والسماحة في الشراء والبيع، ومن طلب حقا فليطلبه في عفاف (رقم-٢٠٧٦) وابن ماجة في كتاب التجارات/باب السماحة في البيع (رقم-٢٢٠٣)

**تسهيلات: قوله: سَمْحًا:**

**د سمحا مفهوم:** آساني كونكي چشم پوشي كونكي نرمي كونكي او سخاوت كونكي سړی دپاره د حضورپاك دعا هغه حالت سره مشروط ده چه هغه سړی په اخستلو خرڅولو كښې نرمي كوی.

**[٢٧٩] په لين دين كښې نرمي كولو بانديې جنت ته داخليدل**

٢٧٩-[٢] () [١] وَعَنْ حُذَيْفَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " [٢] «إِنَّ رَجُلًا كَانَ فِيمَنْ قَبْلَكُمْ [٣] أَتَاهُ الْمَلَكُ لِيَقْبِضَ رُوحَهُ، [٤] فَقِيلَ لَهُ: هَلْ عَمِلْتَ مِنْ خَيْرٍ؟ [٥] قَالَ: مَا أَعْلَمُ. [٦] قِيلَ لَهُ: انْظُرْ. [٧] قَالَ: مَا أَعْلَمُ شَيْئًا، [٨] غَيْرَ أَنِّي كُنْتُ أُبَايِعُ النَّاسَ فِي الدُّنْيَا وَأُجَازِيهِمْ [٩] فَأُنْظِرُ الْمُوسِرَ، وَأَتَجَاوَزُ عَنِ الْمُعْسِرِ، [١٠] فَأَدْخَلَهُ اللهُ الْجَنَّةَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت حذيفه ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] ستاسو څخه مخكې تير شوی خلقو (يعني په تيرو امتونو) كې د يو سړي واقعه ده [٣] كوم وخت چې هغه ته د مرگ فرشته د هغه د روح قبض كولو ته راغله [٤] نو د هغه څخه پوښتنه وشوه چې آيا تا يو نيك كار كړي دی؟ [٥] هغه اوويل چې ماته ياد نه دی (چې ما دی څه نيك كار كړي وی) [٦] د هغه څخه بيا پوښتنه وشوه چې ته ښه سوچ وكړه [٧] هغه اوويل چې ماته قطعًا نه ياد يږی [٨] هو (دومره ضرور پوهيږم چې) ما په دنيا كې د خلقو سره (د رانيولو او خرڅولو، معاملات كول د تقاضا په وخت (يعني د مطالباتو په وصولی كې) د هغوی سره به مې احسان كوی [٩] په دي طور چې صاحب استطاعت خلقو ته به مې مهلت وركوی او څوك چې به مجبوره وو هغوی ته به مې معاف كول (يعني د خپلو مطالباتو څه حصه يا پوره مطالبات به مې د هغوی د پاره معاف كوله) [١٠] نو الله ﷻ (په دي عمل سره په خوشحاليدو سره) په جنت كې داخل كړي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① أُبَايِعُ: أي أُعَامِلُهُمْ: معاملات به مې كول. اخستل خرڅول به مې كول ② أُجَازِيهِمْ: أي أُحْسِنُ إِلَيْهِمْ حِينَ أَتَقَاضَاهُمْ: د وصولي د تقاضا او مطالبي په وخت به مې ورسره احسان كولو ③ فَأُنْظِرُ: دا د إِنْظَار نه دي، أي أُمْهِلُ الْغَنِيَّ: مهلت به مې وركولو ④ الْمُوسِرَ: أي الْغَنِيَّ: مالدار، ⑤ أَتَجَاوَزُ: أي أَعْفُو: معاف كول به مې، ⑥ الْمُعْسِرِ: أي الْفَقِيرِ: محتاج، تنگدسته

٢٧٣-() [١] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ نَحْوَهُ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ وَأَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ: " [٢] «فَقَالَ اللهُ أَنَا أَحَقُّ بِذَا مِنْكَ، [٣] تَجَاوَزُوا عَنْ عَبْدِي» ".

[1]) اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب ما ذكر عن بني إسرائيل (رقم-٣٤٥١) ومسلم في كتاب المساقاة/باب فضل إنظار المعسر (رقم-٢٦ - (١٥٦٠)) والدارمي في (رقم-٢٥٤٦) واحمد في المسند: ٥/٣٩٥

[2]) اخرجه مسلم في كتاب المساقاة/باب فضل إنظار المعسر (رقم-٢٦ - (١٥٦٠)) واحمد في المسند: ٤/١١٨

**ترجمه:** [١] او د مسلم په يو بل روايت کې چې عقبه ﷺ ابن عامر او ابو مسعود انصاري ﷺ د ده په مثل (يعني د يو څه الفاظو د کموالی او زياتوب سره نقل کړي دی) دا الفاظ دي چې کوم وخت هغه سړی دا عمل بيان کړي [٢] نو الله ﷻ وفرمايل زه د دې (يعني د معاف کولو) حق ستا څخه زيات لرم (او بيا فرشتو ته اوويل چې) [٣] ځما دا بنده معاف کړي

**حل اللغات** - ① تَجَاوَزُوا: أي أعفو: معاف کړئ

**تسهيلات: قوله:** الْمَلَكُ:

**د ملک مصداق:** - حضرت عزرائيل ﷺ هم مراد کيدې شی اودَ الملك نه هغه فرښتې هم مراد اخستې شی چه دَ حضرت عزرائيل ﷺ ماتحت دَ مرګ په امورو باندې مقرردی دَ مرګ نسبت دَ فرښتې طرف ته اسناد مجازی دې ګنی په حقيقت کښې مرګ ورکونکې خو صرف دَ الله تعالی ذات دې

[٢٧٤٣] په خرڅولو او اخستلو کښې د قسمونو کولو ممانعت

٢٧٤٣-[٣] ()[١] وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[٢] «إِيَّاكُمْ وَكَثْرَةَ الْحَلِفِ فِي الْبَيْعِ [٣] فَإِنَّهُ يُنَفِّقُ ثُمَّ يَمْحَقُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابو قتاده ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] په خپل تجارتي ژوند کې د قسمو اخستلو څخه پرهيز کوئ [٣] ځکه چې په تجارتي معاملاتو کې زيات قسمونه اخستل (خو اول) کاروبار لره رواج ورکوي خو برکت يې ضائع کوي. (مسلم)

**حل اللغات** - ① إِيَّاكُمْ: أي: اتقوا: پرهيز اوکړئ، ځان اوساتئ. ② الْحَلِفِ: قسمونه ③ يُنَفِّقُ: دا د تَنْفِيق نه دې. او د تَنْفِيق معنی ده. التَّرْوِيج: يعنی رواج ورکول او مشهور کول. أَيْ يُرَوِّجُ الْمَتَاعَ وَيُكْثِرُ الرَّغَبَاتِ فِيهِ: يعنی سامان مشهورول چه دخلقو توجو او شوق ددې سامان طرف ته زياته شی ④ يَمْحَقُ: أي: يُذْهِبُ الْبَرَكَةَ: برکت ختموی

**تسهيلات: قوله:** وَكَثْرَةَ الْحَلِفِ:

**د کثرت حلف د ممانعت وجه :-** دَ ډيرو قسمونو ممانعت ځکه اوکړې شو چه په لين دين کښې څه نه څه قسمونه وی دَ کثرت نه بچ کيدل پکاردی اوکه دَ دروغو قسم يو هم وی هغه زياته تباهی راولی

**قوله:** يَمْحَقُ:

**په کثرت سره د قسم خوړلو نحوست :-** محق دَ ختميدو په معنی کښې دې يعنی دَهغې برکت خی دَ ډيرو قسمونو خوړلو سره دَ نحوست هم دغه اثر وی "ای ينفق حالا ويمحق مالا" که

١) اخرجه مسلم فی کتاب المساقاة/باب النهی عن الحلف فی البيع (رقم-١٣٢ - (١٦٠٧) وابن ماجة فی السنن کتاب التجارات/باب ما جاء فی کراهية الأيمان فی الشراء والبيع (رقم-٢٢٠٩) واحمد فی المسند: ١١٨/٤

چرې د دروغو قسم وی نو يو قسم هم د برکت ختمولو د پاره کافی دې او که څه رښتونی وی نو بيا په کثرت د قسمونو سره برکت ځی

**[٢٠٣] په قسمونو سره د تجارت برکت ختميدل**

٢٠٣ [-] ( ) ١ «وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " ٢ «الْحَلِفُ مُنَفِّقَةٌ لِلسِّلْعَةِ، ٣ مُمْحِقَةٌ لِلْبَرَكَةِ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابو هريره ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ چې قسم خو (په اول کې) د مال واسباب د منفعت سبب جوړيږي، ٣ ليکن (انجام کار) د برکت د خاتمي سبب جوړيږي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات** - ① الْحَلِفُ: قسم، ② مُنَفِّقَةٌ: أَيْ مَظِنَّةٌ وَسَبَبٌ: سبب او ذريعه ③ لِلسِّلْعَةِ: سامان، سودا، ④ مُمْحِقَةٌ: أَيْ سَبَبٌ لِذَهَابِ بَرَكَةٍ: د سامان برکت ورسره ختميږي

**تسهيلات:**

**نوټ:**-يدحديث مفهوم د ترجمي څخه واضح دې باقی دګرانو ټکو حل په حل اللغات کښي شوې دې

**[٢٠٥] په دروغه قسم خوړونکي سره د الله تعالى خبرې نه کول**

٢٠٥ [د] ( ) ١ «وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ " ثَلَاثَةٌ لَا يُكَلِّمُهُمُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، ٣ وَلَا يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ، وَلَا يُزَكِّيهِمْ، ٤ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ". ٥ قَالَ أَبُو ذَرٍّ: خَابُوا وَخَسِرُوا مَنْ هُمْ يَا رَسُولَ اللهِ؟ ٦ قَالَ: " الْمُسْبِلُ، ٧ وَالْمَنَّانُ، ٨ وَالْمُنَفِّقُ سِلْعَتَهُ بِالْحَلِفِ الْكَاذِبِ» ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابو ذر ﷛ د رسول الله ﷺ څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ دري خلق دي چې الله ﷻ به د قيامت په ورځ نه د هغوئ سره (د مهربانۍ او عنايت) کلام وکړي ٣ نه به (د رحمت په نظر سره) د هغوئ طرف ته وګوري او نه به هغه (د ګناهونو څخه) پاك کړي. ٤ او د دې دريو سرو د پاره دردناك عذاب دی. ٥ ابوذر ﷛ پوښتنه وکړه چې يا رسول الله ﷺ د خير څخه محرومه او په دې تاوان کې پراته کوم سړي دي؟

---

) اخرجه مسلم فی كتاب الإيمان/باب بيان غلظ تحريم إسبال الإزار، والمن بالعطية، وتنفيق السلعة بالحلف، وبيان الثلاثة الذين لا يكلمهم الله يوم القيامة، ولا ينظر إليهم، ولا يزكيهم ولهم عذاب أليم (رقم-١٧١ - (١٠٦) وابوداود فی السنن كتاب البيوع/باب فی كراهية اليمين فی البيع (رقم ٣٣٣٥) والنسائی فی كتاب البيوع/باب ما يجب على التجار من التوفية فی مبايعتهم (رقم-٤٤٦١)

) اخرجه البخاری فی صحيحه رقم الحديث ٢٠٨٧، مسلم فی كتاب الإيمان/باب بيان غلظ تحريم إسبال الإزار، والمن بالعطية، وتنفيق السلعة بالحلف، وبيان الثلاثة الذين لا يكلمهم الله يوم القيامة، ولا ينظر إليهم، ولا يزكيهم ولهم عذاب أليم (رقم-١٣١ - (١٦٠٦) والنسائی فی كتاب البيوع/باب ما يجب على التجار من التوفية فی مبايعتهم (رقم-٤٤٥٨) وابن ماجة فی كتاب التجارات/باب ما جاء فی كراهية الأيمان فی الشراء والبيع (رقم-٢٢٠٨) والدارمی فی (رقم-٢٦٠٥) واحمد فی المسند: ١٥٨/٥

حضور ﷺ وفرمايل٦ يو پېنځي لاندي ساتونكى، ٧دويم هغه څوک چې يو چا ته ځ څيز وركولو سره، په هغه احسان اچوي، ٨او دريم په دروغه قسمونو اخستلو سره خپل تجارت زياتونكى. (مسلم)

**حل اللغات:-** ① لَا يُزَكِّيهِمْ: أَيْ لَا يُطَهِّرُهُمْ مِنَ الْخَبَائِثِ: پاک به نې نه كړی د گناهونونه. ② خَابُوا: أَيْ حُرِمُوا مِنَ الْخَيْرِ: چه دخيرنه محرومه وى ③ خَسِرُوا: تاوانيان، نقصان موندونكى. ④ الْمُسْبِلُ: الْمُطَوِّلُ ثَوْبَهُ إِلَى الْأَرْضِ كِبْرًا وَاخْتِيَالًا: چه دكبر اوغرور په وجه لنگ يا پاجامه د گيتونه ښكته زوړنده ساتى ⑤ الْمَنَّانُ: أَيْ يَمُنُّ بِمَا يُعْطِيهِ لِغَيْرِهِ: چاسره چه نيكى اوكړى هغه باندې خپل احسان ضباطل

**تسهيلات:**

**قوله** وَالْمُنَفِّقُ سِلْعَتَهُ بِالْحَلِفِ الْكَاذِبِ

**نوټ:-** د حديث د نورو الفاظو تشريح د نورو بابونو سره تعلق ساتى په خپل متعلقه بابونوكښې ئې تشريح شوې ده يا به راروانه وى البته د حلف الكاذب وضاحت ليكم

**د دروغو قسم خوړولو صورت:-** په دروغو قسمونو باندې خپل څيز خرڅوى يو څيز ئې په (۱۰۰۰) روپۍ اخستې وى اوگاهگ ته قسم خورى چې په الله تعالى دا څيز ماته په خپله په ۱۵۰۰ پريوتې دې نوگاه پرې گمان اوكړى چې دې خو به په دروغه قسم نه خورى اوهغه څيز ترې په گران قيمت واخلى

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۲۷۹۲] دَ رښتونى او امانت دار تاجر فضيلت**

۲۷۹۲-[۲] (١) ١وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "٢«التَّاجِرُ الصَّدُوقُ الْأَمِينُ مَعَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ»". ٣رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ وَالدَّارَقُطْنِيُّ.

**ترجمه:** ١ حضرت ابوسعيد ؓ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل٢ په قول او فعل كې ډير رښتيا او ښه ديانتداري سره كاروبار كونكى سړى به د نبيانو صديقينو او شهداوو سره وي. ٣ (ترمذي دارمي دارقطني)

**حل اللغات:-** ① الصَّدُوقُ: أَيْ كَثِيرُ الصِّدْقِ: ډير رښتونې (په قول اوفعل هرحالت كښې) ② الْأَمِينُ: أَيِ الْمَحْفُوظُ مِنَ الْخِيَانَةِ: امانتدار يعنى چه د خيانت نه محفوظ وى ③ الصِّدِّيقِينَ: رښتيا ويونكى خلق. ④ الشُّهَدَاءُ: شهيدان

---

١) اخرجه الترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في التجار وتسمية النبي صلى الله عليه وسلم إياهم (رقم-١٢٠٩)والدارمي في رقم_٢٥٣٩

**تسهيلات:**

**قوله:** اَلتَّاجِرُ الصَّدُوقُ الْأَمِينُ مَعَ النَّبِيِّينَ

**د مذكوره خلقو سره د رشتيني سوداګر حشر وجه:-** داسي سوداګر چې په خپل تجارت كښې د صداقت او د امانت خيال ساتي نو هغه ته به د قيامت په ورځ د انبياؤ. صديقينو او د شهداؤ رفاقت ملاويږي دا بدله تاجرِ صدوق او امين له په دې وجه وركړې شوه چه دې كس د انبياؤ اطاعت اوكړو، د صديقنو سره به د خپل صدق په وجه وي. او د شهداؤ سره به ځكه وي چه شهدا به د دې كس د صدق او امانت ګواهي وركوي

**رشتيني سوداګر د عرش د سورى لاندې:-** په مسند ديلمي كښې د حضرت انس حديث دې چه التاجر الصدوق تحت ظل العرش يوم القيامة۔ (مرقات ج ۶ ص ۵۴)

٢٧٩٧ — (١) ① وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ عَنِ ابْنِ عُمَرَ. ② وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① او ابن ماجه دا روايت د حضرت ابن عمر ﷺ ځخه نقل كړي دى ② او ترمذي فرمايلي دي چې دا حديث غريب دى

**[٢٧٩٨] تاجرانو ته د صدقې كولو حكم**

٢٧٩٨ — [٧] (٢) ① وَعَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي غَرَزَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «كُنَّا نُسَمَّى فِي عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - السَّمَاسِرَةَ، ③ فَمَرَّ بِنَا رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ④ فَسَمَّانَا بِاسْمٍ هُوَ أَحْسَنُ مِنْهُ، ⑤ فَقَالَ: " يَا مَعْشَرَ التُّجَّارِ! ⑥ إِنَّ الْبَيْعَ يَحْضُرُهُ اللَّغْوُ وَالْحَلِفُ ⑦ فَشُوبُوهُ بِالصَّدَقَةِ» ". ⑧ رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① قيس بن غرزه ﷺ (چې سوداګري به يې كوله) دى وايي ② د رسول الله ﷺ په زمانه كې به مونږ خلقو (يعني سوداګرو) ته سماسره ونيل كيده ③ يوه ورځ رسول الله ﷺ زمونږ په طرف تير شو ④ نو حضور ﷺ زمونږ طبقي ته يو داسي نوم را كړې چې زمونږ د مخكې نوم ځخه ډير ښه دى ⑤ حضور ﷺ وفرمايل چې اې د تاجرانو طبقي! (د تاجرانو دلې) ⑥ په تجارت كې اكثره بې فائدې خبرې او ډير زيات قسمونه يا كله كله د دروغو قسم اخستلو صورتونه پيښيږي ⑦ نو تاسو تجارت صدقه او خيرات سره يو ځاى ساتئ، ⑧ ابوداؤد ترمذي نسائي ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① اَلسَّمَاسِرَةَ: دا د سِمْسَار جمع ده. اصل كښې محافظ او قيّم ته وائى بيا د مُتَوَسِّط دپاره

(١) اخرجه ابن ما جة فى كتاب التجارات /باب الحث على المكاسب (رقم-٢١٣٩)

(٢) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب البيوع /باب فى التجارة يخالطها الحلف واللغو (رقم-٣٣٢٦) والترمذى فى كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى التجار وتسمية النبى صلى الله عليه وسلم إياهم (رقم-١٢٠٨) والنسائى فى كتاب البيوع /باب ما يجب على التجار من التوقية فى مبايعتهم (رقم-٤٤٦٣) وابن ماجة فى كتاب التجارات /باب التوقى فى التجارة (رقم-٢١٤٥)

مستعمل شو. د اخستونکی اوخرڅونکی په مینځ کښې واسطه یعنی دلال ④ مُعْشَرَ: دله. يَحْضُرُهُ: پېښیږي په تجارت کښې ⑤ اللَّغْوُ: أي الْمُرَادُ مِنْهُ مَا لَا يَعْنِيهِ: بې فائدې خبرې، ⑥ فَشُوبُوهُ: دباب تفعیل نه دَ يوځائې کولو او ګډوډ کولو په معنی کښې دې، أي اخْلُطُوا: يوځائې ساتئ، تجارت سره ګډ ساتئ.

**تسهیلات:**

**قوله** التَّمَاسِرَةَ:

**د اسلام نه مخکښې د تاجرانو نوم:** - دَ اسلام نه مخکښې به دَ تاجرانو نوم دلال وو حضور پاك ﷺ دوی دَ تاجر په نوم سره یاد کړل دَ حضورپاك په تاجرانو باندې دا لوئی احسان دې

**قوله:** فَشُوبُوهُ: یعنی فضول خبرې اوقسمونه عموماً په تجارت کښې کیږی. په دې وجه دَ دې خرابو اثراتو دَ ختمولودپاره صدقه کوئی ځکه چه په صدقه سره دَ الله تعالی دَ غضب اور مړ کیږی

### [٢٧٩] د کامیاب سوداګر تعارف

٢٧٩- [٩] (١) [١] وَعَنْ عُبَيْدِ بْنِ رِفَاعَةَ، عَنْ أَبِيهِ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- [٢] عَنِ الرَّسُولِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "[٣] «التُّجَّارُ يُحْشَرُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فُجَّارًا، [٤] إِلَّا مَنِ اتَّقَى وَبَرَّ وَصَدَقَ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت عبید ابن رفاعه رحمه الله (تابعي) دخپل پلار محترم حضرت رفاعه ابن رافع انصاري صحابي رضي الله عنه څخه [٢] او هغه د رسول الله ﷺ څخه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمایل [٣] د قیامت په ورځ به د تاجرانو خلقو حشر به د فاجرانو (یعني دروغجنو او نافرمانه خلقو سره وي) [٤] هو (هغه تاجر به د دې څخه مستثنی وي) چې هغه پرهیزګاري اختیار کړي وي (یعني په خیانت او دهوکه ورکولو کې مبتلا شوي نه وي) او نیکي یې کړي وي. یعنی په خپلو تجارتي معاملاتو کې دخلقو سره یې نیك سلوك وکړي یا دا چې د الله ﷻ عبادت یې کولی او په رښتیا قائم وو (ترمذي ابن ماجه دارمي)

**حل اللغات:** - ① يُحْشَرُونَ: حشربه کولې شی د تاجرانو. ② فُجَّارًا: دا د فُجُور نه دې، د فَاجِر جمع ده، فاسق اونافرمان ته وائی ③ اتَّقَى: اویریدو د الله تعالی نه (یعنی څه ملاوټ او خیانت ئې په تجارت کښې اونه کړو، ④ بَرَّ: أي أَحْسَنَ إِلَى النَّاسِ: دخلقو سره ئې نیکی اوکړه ⑤ صَدَقَ: یعنی خلقو سره په عامو خبروکښې ئې هم دَ دروغونه ځان اوساتلو همیشه ئې رښتیا ونیلی او په تجارت کښې هم رښتیا اوونیل

(١) اخرجه الترمذی فی کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی التجار وتسمیة النبی صلی الله علیه وسلم إیاهم (رقم-١٢١٠) وابن ماجة فی کتاب التجارات /باب التوقی فی التجارة (رقم-٢١٤٥) واحمد فی المسند: ٤٢٨/٣

**تسهيلات**: **قوله**: وَبَرَّوَصَدَقَ:

**دقيامت په ورځ د صادق سوداګر مقام**:-قاضي عياض رحمه الله فرماني چونکه دَ تجارت عادت وی چه معيوب څيزخرڅوی په تجارت کښې ګړبړ کوی اودَ درغو په قسمونو سره په هرصورت کښې خپل تجارت له ترقی ورکولوپسې لګیدلې وی په دې وجه په هغوی باندې عمومی توګه باندې دَ فسق اوفجور حکم اولګولې شو بیا چه په هغوی کښې کوم نیه تاجران وو دَهغوی استثناء اوکړې شوه چه څوك دَ دې حرام څيزونودَ ارتکاب نه بچ شو اوصداقت ئې اختيار کړو نوهغه به دَقيامت په ورځ نه فاسق تاجرجوړيدو سره راؤچتيږی او نه به په بل څه جرم کښې ککړ کيدوسره راځی هغه به دَ الله تعالی په نيزکاميابيدوسره راځی

٢٨٠٠-(١)[١] وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ فِي "شُعَبِ الْإِيمَانِ" عَنِ الْبَرَاءِ.[٢] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَهَذَا الْبَابُ خَالٍ مِنَ الْفَصْلِ الثَّالِثِ

**ترجمه**:[١] او بيهقي په شعب الايمان کې دا روايت د حضرت براء رضي الله عنه څخه نقل کړي دی [٢] او امام ترمذي رحمه الله ويلي دي چې دا حديث حسن صحيح دی

# [٣] بَابُ الخِيَارِ

**دَ خيار بيان**

**خلاصة الباب**: -

**فيه ستة أحاديث مشتملة على مسئلتين**:

① ثبوت الخيار : ١، ٢، ٤، ٦.

② وجه ثبوت الخيار: ٣، ٥.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[٢٨٠١] دَ خيار مجلس حکم**

٢٨٠١-[١](٢)[١] عَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[٢]«الْمُتَبَايِعَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالْخِيَارِ عَلَى صَاحِبِهِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا[٣] إِلَّا بَيْعَ الْخِيَارِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[١] اخرجه الترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في التجار وتسمية النبي صلى الله عليه وسلم إياهم (رقم-١٢٠٨)

[٢] اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب: كم يجوز الخيار (رقم-٢١٠٧) ومسلم في باب ثبوت خيار المجلس للمتبايعين (رقم-٤٣ - (١٥٣١) وابوداود في السنن أبواب الإجارة/باب في خيار المتبايعين (رقم-٣٤٥٤) والترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في البيعين بالخيار ما لم يتفرقا (رقم_١٢٤٥)والنسائي كتاب البيوع/باب ما يجب على التجار من التوقية في مبايعتهم (رقم-٤٤٦٥) ومالك في الموطا كتاب البيوع/باب بيع الخيار(رقم-٧٩) واحمد في المسند: ٥٢/٢

**ترجمه:** [١] حضرت ابن عمر ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] خرخونکی او آخستونکی په دواړو کې هر يو په خپل دويم صاحب معامله باندې (د دې خبرې) اختيار لري چې کله غواړې د رانيولو او خرڅولو معامله باقي وساتي اوکه ختم يې کړي، د څو پورې چې هغه د يو بل څخه جدا نشي (يعني په کوم مجلس کې چې هغه معامله فيصله شي د څو پورې چې هغه ختم نشي په دې طور چې هغوئ د يو بل څخه جدا نشي نو په هغوی کې به يوه ته دا اختيار حاصل نه وي) [٣] هو خيار بيع د دې څخه مستثنی دی (يعني په بيعه کې خريدار د دې خيار شرط فيصله کړې وي که زه وغواړم نو دا خريد شوی څيز به وساتم او که ونه غواړم نو واپس به يې ورکړم په دې بيعه کې د يو بل د جدا کيدو څخه وروسته هم اختيار باقي دی) (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْمُتَبَايِعَانِ : أَيِ الْبَائِعُ وَالْمُشْتَرِي: بيعه کونکی يعنی خرڅونکي او اخستونکي. ② بِالْخِيَارِ: أَيْ خِيَارُ الْقَبُولِ: اختيارمند (چه دقبلولو او فسخ کولو اختيار ورته حاصل وی) ③ بَيْعُ الْخِيَارِ: په بيعه کښې د اخستلو يا واپس کولو اختيار ساتلو ته بيع خيار وائی

| [١] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: "[٢] «إِذَا تَبَايَعَ الْمُتَبَايِعَانِ [٣] فَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالْخِيَارِ مِنْ بَيْعِهِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا [٤] أَوْ يَكُونَ بَيْعُهُمَا عَنْ خِيَارٍ، فَإِذَا كَانَ بَيْعُهُمَا عَنْ خِيَارٍ قَدْ وَجَبَ» ". [٥] وَفِي رِوَايَةٍ لِلتِّرْمِذِيِّ " «الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا أَوْ يَخْتَارَا» " [٦] وَفِي الْمُتَّفَقِ عَلَيْهِ "أَوْ يَقُولَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ: اخْتَرْ" بَدَلَ "أَوْ يَخْتَارَا". |
|---|

**ترجمه:** [١] او د مسلم په يو روايت کې دا الفاظ دي [٢] چې هر کله خرخونکی او آخستونکی دخرڅولو رانيولو څه معامله وکړي [٣] نو په هغوئ کې هر يوه ته (د معاملې باقي ساتلو يا فسخ کولو) اختيار حاصل وي [٤] که هغوئ په خيار شرط سره څه تجارتي معامله کوي نو په دې صورت کې د جدايي څخه وروسته هم د اختيار حق به ورته حاصل وي.

[٥] د ترمذي په روايت کې داسې دی چې خرڅونکی او آخستونکي دواړه د څو پورې چې يو د بل څخه جدا نشي هغوئ ته اختيار حاصل دی خو دا چې په خپله تجارتي معامله کې خيار شرط يې ايښي وی (يعني که هغوئ په خپله تجارتي معامله مذکوره بلا اختيار شرط سره فيصله کوي نو هغوئ ته به د جدائي څخه وروسته هم اختيار حاصل وي) [٦] ليکن د بخاري او مسلم په يو روايت کې د ترمذي د دې روايت د اخري الفاظو ،، اويختارا،، خو دا چې هغه د خيار شرط فيصله وکړي د هغه په ځای دا الفاظ دي، چې په هغه دواړو کې يو خپل دويم صاحب معامله ته دا اووائي چې خيارشرط وکړه او هغه دويم اووائي چې ماته منظوره ده

**حل اللغات:** - ④ وَجَبَ: يعنی حق به ورته حاصل وی.

**تسهيلات:** قوله: فَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالْخِيَارِ:

**د خيار لغوی او اصطلاحی تعريف:** - "کل واحد منهما بالخيار" خيار د اختيار نه مشتق دې په

دوو څیزونو کښې دَ یوښه څیز خوښولوسره خوښیدوته په لغوی توګه باندې خیاروائی دَ فقهاؤ په اصطلاح کښې دَخیار تعریف داسې دې "یوه تجارتی معامله باقی ساتل یا فسخ کولو نوم خیاردې". داخیارپه بیع اوشراء کښې بائع او مشتری دواړو ته حاصل وی

**دَ خیار شپږ قسمونه**:- دَ خیار لوئی لوئی شپږ قسمونه دی

① **خیارشرط**: دَعقدمکمل کیدونه پس طرفین له دغه معامله باقی ساتلو یا ختمولو نوم خیارشرط دې

② **خیارعیب**: په یواخستې شوی څیزکښې عیب ښکاره کیدوباندې مشتری ددې په ساتلو یا واپس کولودَ اختیار نوم خیارعیب دې

③ **خیار رؤیت**: بغیردکتلو اخستې شوې څیز کله چه مشتری اوګوری نودَهغې دَ ساتلو یا واپس کولوچه کوم اختیار مشتری ته حاصل وی دَهغې نوم خیاررؤیت وی

④ **خیارتعیین**: دَ یوڅوڅیزونو په سوداکولوکښې بعض خان سره ساتل او بعض واپس کولوچه کوم اختیارمشتری ته وی هغې ته خیارتعیین وائی

⑤ **خیارقبول**: دَ بائع دَ ایجاب نه پس مشتری ته دَ قبلولو یا نه قبلولو چه کوم اختیاروی دا خیارقبول دې

⑥ **خیارمجلس**: په یومجلس کښې دَ بائع او مشتری په مینځ کښې معاملې فیصله کیدو نه پس دَ مجلس په ختمیدو باندې هریوته ددې عقد ختمولو یا باقی ساتلو دَ اختیارنوم خیارمجلس دې دَ خیار په دې آخری قسم کښې دَ فقهاؤ کرامو لوئی احتلاف دې

**د آخری قسم خیار په حکم کښې مذاهب**:-

① شوافع او حنابله فرمائی چه بائع اومشتری دَ عقد نه پس ترکومې پورې چه په مجلس کښې ناست وی هریوته دَ عقد فسخ کولو یا باقی ساتلو اختیارحاصل دې اودَ مجلس ختمیدو نه پس دَ فسخ اختیار ختمیږی او "مالم یتفرقا" کښې تفرق بالابدان مراد دې

② احناف او مالکیه فرمائی چه دَ ایجاب اوقبول نه پس کله چه عقد مکمل شی نواوس چاته هم دَ فسخ کولوحق حاصل نه دې که هغه دواړه په مجلس کښې ناست ولې نه وی او دَ "مالم یتفرقا" سره تفرق بالاقوال مراد دې

**دَ اول فریق دلیل**:- دې حضراتو دَ خیارمجلس دَ ثبوت دَپاره هم ددې حدیث نه استدلال کړې دې هغوی دَ خیار دَ لفظ نه خیار مجلس مراد اخلی او په "مالم یتفرقا" کښې دَ تفرق ابدان تفرق مراد اخلی مطلب دا شوچه دَعقد نه پس بائع اومشتری ترکومې پورې چه په مجلس کښې ناست وی هغوی ته به دَ عقد دَ فسخ کولو اختیارحاصل وی لیکن هغوی په بدنی توګه باندې دَیوبل نه جدا شو نواوس به دَ عقد دَ فسخ کولو اختیاردَ دواړو نه ختم

شی او دَ "الابیع الخیار یاالاان یختارا" چه کومه استثناء ده دَ هغې مطلب دادې که دواړو دَعقدنه روستو دَ یو ورځو وغیره خیار شرط کیخودې دې نو اوس د مجلس دَ برخاست کیدو نه پس هم هغه خیار باقي وي دغه شان دې حضراتو دَ حدیث مفهوم او مضمون بیان کړې دې

**د اول فریق د دلیل دوه جوابونه:-** ① چونکه احناف هم دَدې حدیث نه استدلال کوي لهذا دَدې دَجواب ورکولو ضرورت نشته دې خوبیا هم شارحین حدیث یو جواب ورکړې دې چه دلته "مالم یتفرقا" سره تفرق بالاقوال مراد دې نه چه "تفرق باالابدان تفرق باالاقوال" کښې دا لفظ حقیقت دې او په تفرق بالابدان کښې مجازدې نو په حقیقت باندې چه ترکومې پورې عمل کیدې شي دَمجاز طرف ته دَ تلو ضرورت نشته دې تفرق بالاقوال دا سې کیږي چه دَ ایجاب اوقبول نه پس عقد بیع دَخبرې نه علاوه نورې خبرې شروع شوې او طرفین په نورو خبرو کښې اخته شو بعض روایاتو کښې "مالم یتفرقامن بیعهما" الفاظ موجود دي چه دَدې خبرې قرینه ده چه تفرق بالاقوال مراد دې بل دَ ابراهیم نخعي رحمه الله نه نقل دي "مالم یتفرقاعن منطق البیع".

② که چرې خیار مجلس مراد دې دادَ اخلاقیاتو په توګه باندې مستحب امر دې قانون او قاعده نه ده

**د دويم فريق دلائل:-** ① احناف اومالکیه هم د دې حدیث نه استدلال کوي لکه څنګه چې د اول فریق طریقه داستدلال جدا ده .اګرچې حدیث یو دې دغه شان د دویم فریق مستدل هم دا حدیث دې خو طریقه د استدلال ئې جدا ده.نو دا نه شي وئیلې کیدې چه داحدیث صرف هم دَ یوطرف دَ فقهاؤ دلیل دې. اګرچه ظاهري الفاظوته په کتوسره داسې معلومیږي چه داحدیث دَ شوافع او حنابله دلیل دې

② حضرت عمرو بن شعیب رضی الله عنه حدیث کوم چه هم دَدې زیر بحث حدیث مختلف طرق کښې یوطریق دې الفاظ ئې داشان دي "ولایحل له ان یفارق صاحبه خشیة ان یستقیله" دا لفظ په واضح توګه باندې په اقاله باندې دلالت کوي معلومه شوه چه په مجلس کښې که چرې یو فریق عقد فسخ کول غواړي نودا به اقاله وي او په اقاله کښې دَ دویم ملګري رضامندي ضروري ده

بهرحال تفرق بالاقوال اخستو سره دَدې حدیث نه احناف استدلال کولې شي په کوم سره چه دَ خیار مجلس دَدعوی نفي کیږي

③ دَ بیوعات او عقود اوفسوخ اَصولي قواعدهم دلیل دې اودا استدلال ډیر مضبوط دې هغه داسې چه دَ ټولو عقودو حقیقت ایجاب اوقبول دې دَ ایجاب اوقبول نه علاوه بل څه خیز دَعقد رکن نه دې په بیع کښې هم دغه شان دې چه کله دَ بیع دا دواړه رکن متحقق شو نوعقد مکمل شو اوس دَ قرآن کریم دَآیت دَ حکم مطابق عقدپوره کول ضروري دي

ارشاد دي ﴿ يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَوْفُوا بِالْعُقُودِ﴾ [سورة مائده:١]
اوس كه يو فريق بيع فسخ كول غواړي نو دا به اقاله وي چه دَ بائع په رضا باندې موقوف ده.
③ دَدې باب فصل ثالث آخرى حديث په كوم كښې چه صفا الفاظ دى چه حضورپاك عقد دَ بيع نه پس كلي وال ته اختيار حق ورکړو كه چرې دا حق پخپله حاصل وو نو حضورپاك هغه ته ولې ورکړو؟
④ عقلي دليل دا دې چه كله كله طرفين په مجلس دَعقد كښې په ګهينټو ناست وى اوبل طرف ته په ماركيټ كښې په يو يو منټ حساب سره قيمتونو كښې اوچتيدل اوښكته كيدل راخى اوس به دا حضرات ناست وى چه قيمت به زيات شوې وى يا به كم شوې وى نو اوس به يو فريق عقد فسخ كوى اودويم فريق به انكاركوى دغه شان به جګړه جوړه شى اودَ عقد بيع حيثيت به مشكوك كيدوسره پاتې شى چه يووخت هم دا ختميدې شى هم دغه وجه ده چه شيخ الهند رحمه الله دا صورت دَ اخلاقياتو دَ قبيل نه ګرځولې دې هغوى فرمائى چه خيار په قانونى حيثيت سره نه دې اخلاقى اعتبار سره دې
بهرحال احناف دَ خيار نه خيارقبول مراد اخلى اوتفرق نه تفرق بالاقوال مراد اخلى او المتبائعان نه مشغولين فى البيع مراد اخلى

**قوله: إِلَّا بَيْعَ الخِيَارِ:**

**د استثناء دوه مطلبونه:-** ① دا استثناء دَ ماقبل حديث دَ پوره مفهوم نه ده دَحديث نه مفهوم كيدلو چه تفرق نه پس خيار باقى نه پاتې كيږى. په دې جمله كښې استثناء راغله چه كه چرته څه شرط كيخودې شوې دې نوبيابه دَهغه شرط لحاظ كيږى. دامطلب دَټولو فقهاؤ دَمسلك مطابق دې.
② بائع مشترى ته دَ عقد په وخت اووئيل چه هم اوس سوچ اوفكرسره فيصله اوكړه روستو به اختيار نه وى. مشترى اووئيل چه ما ښه په سوچ اوفكر سره فيصله كړې ده دغه شان كولوسره دَ ايجاب اوقبول نه پس چاته دَ خيارمجلس حق باقى نه پاتې كيږى دامطلب بيان كړې دې

**[٢٨٠٢] په تجارت كښې د رښتياوئيلو بركت**

٢٨٠٢-[٢] (١) ① وَعَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ② «الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا ③ فَإِنْ صَدَقَا وَبَيَّنَا بُورِكَ لَهُمَا فِي بَيْعِهِمَا، ④ وَإِنْ كَتَمَا وَكَذَبَا مُحِقَتْ بَرَكَةُ بَيْعِهِمَا» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

(١) اخرجه البخارى فى كتاب البيوع/باب إذا بين البيعان ولم يكتما (رقم-٢٠٧٩) ومسلم فى باب الصدق فى البيع والبيان (رقم-٤٧ - (١٥٣٢) والترمذى فى كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى البيعين بالخيار ما لم يتفرقا (رقم_١٢٤٦)واحمد فى المسند ٤٠٣/٣

**ترجمه**: [١] حضرت حکیم ابن حزام رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] خرڅونکی او آخستونکی دواړو ته د خپلې تجارتي معاملې باقي ساتلو یا فسخ کولو اختیار حاصل دی لیکن دا اختیار تر یو وخته ورته حاصل دی د څو پورې چې هغه جدا نشي [٣] او که د لرې د څو پورې چې خرڅونکی او خرید کونکی دواړه (فروخت کړي شي او د هغه په تعریف کې) رښتیا وایي او (هغه څیز او په قیمت کې چې کوم عیب او نقصان وي هغه ښکاره کوي (چې څه دهوکه په کې پاتې نشي) نو د هغوئ په تجارتي مال کې برکت اچولی کیږي، [٤] او هر کله چې هغه عیب پټوي او دروغ وایي نو د هغوئ په خرڅولو او رانیولو کې برکت ختمیږي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: - ① اَلْبَيِّعَانِ: أَيِ الْبَائِعُ وَالْمُشْتَرِي: بیعه کونکی یعنی خرڅونکې او اخستونکې. ② صَدَقَا: دواړه رشتیا وائی ③ بَيَّنَا: أَيْ: عَيْبَ الثَّمَنِ وَالْمَبِيعِ: دواړو ښکاره کړو (یعنی د ثمن یا د مبیع عیب ئې ښکاره کړو چه یوبل ته نقصان ورنکړی) ④ بُورِكَ: أَيْ: كَثُرَ النَّفْعُ: برکت به ورله واچولې شي. ⑤ كَتَمَا: دواړه پټوی (عیب د ثمن یا د مبیع لره) ⑥ مُحِقَتْ: أَيْ: يُذْهِبُ الْبَرَكَةَ: برکت ختموی

**تسهیلات**:

**نوټ**: -ددې حدیث لاندې چه کومه مسئله ده هغه په ماقبل کښې په تفصیل سره ذکر شوه او د هغې جوابات هم تیر شو. دا حدیث د امام شافعي رحمه الله مستدل دې چه خیار مجلس ثابت دې

**[٢٨٠٣] په غبن فاحش سره د بیع فساد**

(٣) [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - قَالَ: «قَالَ رَجُلٌ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [٢] إِنِّي أُخْدَعُ فِي الْبُيُوعِ [٣] فَقَالَ: [٤] " إِذَا بَايَعْتَ [٥] فَقُلْ: لَا خِلَابَةَ " [٦] فَكَانَ الرَّجُلُ يَقُولُهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [١] حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وایي چې یو سړي رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو زه [٢] د خرڅولو رانیولو په معامله کې دهوکه خورم [٣] حضور ﷺ ورته وفرمایل [٤] هر کله چې ته د خرڅولو رانیولو څه معامله کوې [٥] نو هغه وخت دا وایه چې (په دین) کې د دهوکې د پاره هیڅ ګنجائش نشته [٦] نو هغه سړی به دغه شان ویل. (بخاري مسلم)

**حل اللغات** - ① لَا خِلَابَةَ: أَيْ: لَا غَبْنَ وَلَا خَدِيعَةَ لِي فِي هَذَا الْبَيْعِ: په خاء باندې کسره ده او ضمه هم ده دهوکه او غبن ته وائی

[١] اخرجه البخاری فی کتاب البیوع/باب ما یکره من الخداع فی البیع (رقم-٢١١٧) ومسلم فی کتاب البیوع/باب من یخدع فی البیع(رقم-٤٨ - (١٥٣٣) وابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فی فضل الرباط (رقم-٢٥٠٠) والنسائی فی کتاب البیوع/باب ما یجب علی التجار من التوقیة فی مبایعتهم (رقم-٤٤٨٤) ومالک فی الموطا کتاب البیوع/باب جامع البیوع (رقم-٩٨) واحمد فی المسند: ٨/٢

**تسهيلات:**

**قوله قَالَ رَجُلٌ**

**د رجل مصداق او د حديث پس منظر:** داسرې حضرت حبان بن منقذ انصارى ﷺ وو دَدوى عمر ۱۳۰کال وو بعض غزوات كښې دې په سر په كانړى لګيدلې وو په كوم سره چه دَهغه خيالى قوت متاثرشوې وو دَ ده اخستلو اوخرخولو سره ډيرشوق وو مګر دَ تجربې دَ نشت والى دَ وجې نه به ئى اكثر دهوكه خوړله دَدوى خاندان حضورپاك ته عرض اوكړو چه په ده باندې دَ بيع اوشراء پابندى اولګوى حضورپاك چه كله هغه سره خبره اوكړه نوهغه ونيل يارسول الله ﷺ! زه دَ بيع اوشراء نه نه شم صبريدې

**دحديث په مفهوم كښې دوه اقوال:-** ① بيا حضورپاك اوفرمائيل چه ته كله بيع اوشراء عقد كوې نوداسې وايه "لاخلابة" يعنى ماسره به دهوكه نه كيږى كه چا څه دهوكه اوكړه نو ترديو ورځو پورې به ماته دَ واپس كولو اختياروى زه به ئى تجربه كارو خلقوته ښايم كه سودا مناسب وه نوقبوله ګنى واپس كوم به "اي لاخداع في الدين لان الدين النصيحة" لكه چه الفاظ دَدې سرى دَپاره دَ شرط په توګه وو په دې وجه بعض رواياتوكښې "ولي الخيار ثلاثة ايام" الفاظ هم دې لفظ سره دى. هم په دې وجه به خلقو دَ ده سره دَدهوكې كولو نه ځان بچ ساتلو هم دَدې مقصد دَپاره به دغه الفاظ استعماليدل بعض شارحينو دَ حديث هم دغه مطلب اخستې دې.

② بعض شارحينو ليكلى دى "لاخلابة" ونيلو سره خيارشرط ايږدل مقصودنه وو بلكه دَخيار شرط دَپاره دا الفاظ په توګه دَتمهيدوو دَ شرط ذكر به جدا كيدلو دَ جمهورو په نيز دې لفظ نه خيارشرط نه ثابتيږى دَدې ذكر جدا كول ضرورى دى دَدې لفظ په ونيلوسره به مقصود دومره كيدلو چه خلقو ته معلومه شى چه دا سړې تجربه كارنه دې په دې وجه ده سره دهوكه مه كوئى هغه وخت خلق ښه وو دَدې وضاحت نه پس به ئى دهوكه نه كوله

**په صورت مذكوره كښې د بيع په فسخ كښې مذاهب:-**

① اوس فقهى نقطه نظر سره امام احمد ﷫ فرمائى چه كه په وخت دَ بيع دا الفاظ اوونيل اوبيا هغه سره دهوكه اوشوه نوهغه بيع فسخ كولې شى

② جمهور وائى داسې سړې په هيڅ يوصورت باندې بيع نه شى فسخ كولې او احناف دَدې قائل دى چه كه چاسره غبن فاحش اوشى نوهغه ته حق حاصل دې چه بيع فسخ كړى ملاعلى قارى ﷫ ليكى "اقول الغبن الفاحش يفسد البيع ويثبت الخيار عند القائل به وقال ابوثور اذاكان الغبن فاحشا لا يتغابن الناس بمثله فسد البيع".

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۲۸۰۴] د خيار مجلس په نفي دليل**

۲۸۰۴—[۴] ( ) [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ [۲] أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [۳] «الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا، [۴] إِلَّا أَنْ يَكُونَ صَفْقَةَ خِيَارٍ، [۵] وَلَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يُفَارِقَ صَاحِبَهُ خَشْيَةَ أَنْ يَسْتَقِيلَهُ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت عمرو ابن شعیب رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د خپل نیکه څخه نقل کوي [۲] چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۳] خرڅونکی او اخستونکی دواړه د هغه وقته (د بیع باقي ساتلو یا د هغه د فسخ کولو) اختیار لري د څو پورې چې هغوئ جدا نشي، [۴] خو دا چې د هغوئ بیع بشرط خیار وي (نو په دې کې د جدائي څخه وروسته هم اختیار باقي وي) [۵] او په هغه دواړو کې د هیڅ یوه د پاره (د تقوی له مخه) دا جائز نه دی چې هغه معامله کولو سره د خپل ځای څخه پاڅیږي د دې خوف څخه چې داسې نه دویم فریق د معاملې د فسخ کولو اختیار وغواړي (یعني د څو پورې چې په یوه معامله کې دواړه فریق په پوره طور سره مطمئن نشي په ایجاب او قبول کې په هغوی کې څوك خاص په دې وجه تلواري ونکړي چې داسې نه فریق ثاني معامله فسخه کړي یا معامله فیصله کولو سره په هغوی کې څوك خاص په دې وجه ونه تښتي چې چرته دویم فریق د بیع فسخ کولو اختیار شرط ونه غواړي) ابوداؤد نسائي.

**حل اللغات:** - ① صَفْقَةَ: أَيْ: بَيْعَةَ: معامله، لین دین (د اخستونکی او خرڅونکی خپل مینځ کښې بیع کولو ته صفقه وائي) ② يُفَارِقَ: بِأَنْ يَقُومَ مِنَ الْمَجْلِسِ وَيَخْرُجَ: جدا شی یعنی د مجلس نه پاسی او لاړشی ③ خَشْيَةَ: ویره، ④ يَسْتَقِيلَهُ: أَيْ: يَطْلُبُ مِنْهُ الْإِقَالَةَ: چه د بیع فسخ کولو اختیار به او غواړی

**تسهیلات:**

**قوله: الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ:**

**د حدیث څخه د دوو مذاهبو استدلال:** - ① دا حدیث البیعان بالخیار مالم یتفرقا د جملې د وجې د امام شافعی رحمه الله مستدل دې

② لایحل له ان یفارق صاحبه خشیة أن یستقیله د جملې د وجې د احنافو مستدل دي ځکه چه إقاله د بیع تام کیدو نه پس کیږی نه که د تام کیدو نه مخکښې.

[1] ) اخرجه ابوداود فی السنن أبواب الإجارة/باب فی خیار المتبایعین (رقم-۳۴۵۶) والترمذی فی کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی البیعین بالخیار ما لم یتفرقا (رقم_۱۲۴۷) والنسائی فی کتاب البیوع/باب ما یجب علی التجار من التوفیة فی مبایعتهم (رقم-۴۴۸۳) واحمد فی المسند: ۱۸۳/۲

**[٢٨٠٥] په بيع كښې د متبايعينو د رضامندۍ ضرورت**

٢٨٠٥—[٥] (١) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [٢] «لَا يَتَفَرَّقَنَّ اثْنَانِ إِلَّا عَنْ تَرَاضٍ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] خرخونكى او آخستونكي دواړه دي په خپل منځ كښې د رضامندۍ څخه بغير نه جدا كيږي، (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله: إِلَّا عَنْ تَرَاضٍ:**

**مذكوره جملې مفهوم:** -يعني دَ متعاقدينونه چه هريويل ته دا اووائى آيا ته خوشحاله ئې څه خفګان خو نشته دې نودَ ايجاب اوقبول سره عقد تام شي بيا چاته دَعقد دَ فسخ كولوحق حاصل نه دې اودا كلام دَ اخلاقياتودَ قبيل نه دې چه يو استحبابى حكم دې

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٢٨٠٦] دَ خيارشرط دَ مودې اندازه**

٢٨٠٦—[٦] (٢) [١] عَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - [٢] «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَيَّرَ أَعْرَابِيًّا بَعْدَ الْبَيْعِ» [٣] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر رضي الله عنه وايي [٢] چې رسول الله ﷺ يو اعرابي (باندچي، كليوال) ته د رانيولو او خرخولو د معاملي كيدو څخه وروسته د دويم فريق د رضامندۍ سره د هغه معاملي د فسخ كولو اختيار وركړي وو، [٣] ترمذي رحمه الله دا روايت نقل كړي دى او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دى.

**حل اللغات:** - (١) خَيَّرَ: اختيار ني وركړي وو (د بيع د باقى ساتلو يا دَفسخ كولو، (٢) أَعْرَابِيًّا: أي: بَدَوِيًّا: باندېچى، كلى وال

**تسهيلات:** **قوله: خَيَّرَ أَعْرَابِيًّا:**

**د خيار شرط په موده كښې مذاهب:** -

دَدې حديث نه معلومه شوه چه دَخيارمجلس هيڅ قانونى حيثيت نشته ګنى حضورپاك به دغه سړى ته خيار نه وركولو بلكه هغه ته خپل پخپله دَ خيارمجلس حق حاصليږى اوس پاتې شوه دَ خيارشرط خبره نودا داسې اوګنړئى چه په يوعقدكښې په وخت دَعقد خيارشرط ساتل دَ شريعت په رڼا كښې جائز دې په دې باندې دَ ټولو فقهاؤ اتفاق دې البته دَ خيارشرط په موده كښې اختلاف دې

[1] ) اخرجه ابو داود في السنن أبواب الإجارة /باب في خيار المتبايعين (رقم-٣٤٥٨)
[2] ) اخرجه الترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم_١٢٤٩)

① امام ابوحنيفه رحمه الله او امام شافعي رحمه الله دَ درې ورځو دَ خيارشرط قائل دی دَدې نه زيات جائز نه دې

② امام احمد رحمه الله او صاحبين فرمائی چه دَ بائع اومشتری مرضی ده څومره موده چه دَخيارشرط ايږدل غواړی کيخودې شی

③ دَ امام مالك رحمه الله په نيزدَ يوې مودې مقرر کول مناسب نه دی بلکه دَ ضرورت مطابق موده زياتيدې اوکميدې شی دارومدار په مبيعات باندې دې لهذا په کور او زمکه کښې ۳۶ ورځې دې په غلام کښې ۱۰ ورځې په کورنی سامان وغيره کښې ۵ ورځې خيارشرط دې او څناورو کښې دوه ورځې دَخيارشرط حق حاصل دې

# [۴] بَابُ الرِّبَا

## دَ سود بيان

**خلاصة الباب: -**

**فيه سبعة وعشرون حديثاً مشتملة على أربع مسائل:**

① قباحة الربا وأهله: ۱، ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۲، ۲۳.

② الأموال الربوية وحكمها: ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸، ۱۰، ۱۱، ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۱۶، ۱۸، ۲۴، ۲۵، ۲۶، ۲۷، ۲۸.

③ ما يجوز فيه التفاضل: ۹، ۱۷.

④ عموم فتنة الربوا: ۱۲.

قال الله تعالى ﴿ وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا ﴾ [سورة بقره الايه: ۲۷۵] وقال الله تعالى ﴿ يَمْحَقُ اللَّهُ الرِّبٰوا وَيُرْبِي الصَّدَقٰتِ ﴾ [سورة بقره الايه ۲۷۶].

**دَ ربوا لغوي تحقيق او معنى:** ربا الف مقصوره سره ربا يربوا نصر نه دې دَعربو مشهور قبائل اهل حيره په لغت کښې دا لفظ په واؤ سره ربوا ليکلې کيږی بيا اهل حيره اهل حجاز ته دا لغت اوخودلو لهذا په مصاحف کښې دا لفظ واؤ سره ليکلې شوې دې دَ عربو په يولغت کښې دالفظ "رما" ميم سره دې هغه هم ربا ده ربا ته ربية هم وائی په لغت کښې ربا دَ زياتوالی او وړاندې کيدو په معنی کښې دې

**د ربا اصطلاحی تعريف:** -دَ ربا اصطلاحی تعريف داشان دې

"اَلرِّبَا هُوَ فَضْلٌ خَالٍ عَنِ الْعِوَضِ شُرِطَ لِأَحَدِ الْعَاقِدَيْنِ" ميرسيد شريف رحمه الله په خپل کتاب التعريفات کښې دَ ربا دغه تعريف ليکلې دې بعض علماؤ داتعريف ليکلې دې "الربا هو مبادلة المال بالمال مع الفضل بلا عوض" ربا يو عام مفهوم دې په کوم کښې چه بغيرد

عوض نه اضافي مال حاصلولې شي مروجه سود دَدې دَ شاخونونه يوڅانګه ده او دَدې دَ قسمونونه يوقسم دې لهذا دَ ربا ترجمه په سود سره کول په دې کښې منحصر کول غلط فهمي راپيدا کوي

**دَ لفظ ربا اطلاق:** قرآن او حديث کښې دَ ربوا لفظ په پنځو مفهوماتو او پنځومعانو باندې ونيلې شي

① رومبې مفهوم رِبَاالنَّسِيْئَةِ دې او هم دَدې نوم ربا القرض هم دې کوم چه الله تعالى په قرآن پاك کښې حرام کړې دې اودَ سورت بقره په آخرى حصه کښې دَ دې په حرمت باندې ډير آياتونه رانازل شوى دى. لکه دَ سورت بقره آيت ۲۷۵ او آيت ۲۷۸ او آيت ۲۷۹ او آيت ۲۸۰ کښې مکمل تفصيل ذکردې.

دَ رباالقرض صورت داوو چه يوسړى به بل سړى ته دَ يوخاص مودې پورې روپئى ورکولې اودا شرط به ئې لګولو چه کله قرض واپس کوې نودومره زياتى روپئى به راکوې اوکه په مقرروخت باندې دې قرض ادانه کړو بيابه دَدې ډبل راکوې مثلاً دَ دوو زرو په ځائى به څلور زره راکوې. په جاهليت کښې دَربوا هم دغه صورت مشهوروو او په قرآن عظيم کښې هم دَدې په حرمت باندې آياتونه نازل شوى دى. نن صبا په رباالقرض کښې سودى لين دين نه په زور او شور سره جارى دې

② **رباالفضل:** دَ ربا دويم قسم اودَدې دويم اطلاق په رباالفضل باندې دې کوم ته چه ربوالمعاملات هم وائى متحدالجنس والنوع او متحدالقدر اشياء بدلون کښې چه کوم زيات مال حاصلولې شي هغې ته رباالفضل وائى زيات تر دَ احاديثو تعلق دَ سود هم دې قسم سره دى لکه دَيوسير غنمو په ځائى دوه سيره غنم اخستل وغيره وغيره تفصيل وړاندې راروان دې

③ **ربوالعطية:** دَ ربا دريم قسم اودَدې دريم اطلاق په ربوالعطية باندې کيږى دَ دې صورت داوى مثلاً يوسړې بل ته عطيه کوى خو په زړه کښې ئى داخيال پټ پروت وى چه ماته به دَدې په بدله کښې زيات ملاويږى دَدې دپاره په قرآن کښې دا آيت دې

﴿ وَمَآ اٰتَيْتُمْ مِّنْ رِّبًا لِّيَرْبُوَا فِيْٓ اَمْوَالِ النَّاسِ فَلَا يَرْبُوْا عِنْدَ اللّٰهِ ﴾ [سورت روم: ۳۹]

④ **ربوالاعمال المالية:** دَ ربوا څلورم اطلاق په هرناجائز مالى معامله باندې هم کړې شوې دې لکه چه دَقرآن آيت دې کوم چه دَ يهودو په مذمت کښې راغلې دې ﴿ وَّاَخْذِهِمُ الرِّبٰوا وَقَدْ نُهُوْا عَنْهُ ﴾ [سورت نساء الايه: ۱۴۵]

⑤ **ربوا الافعال الغير المشروعة:** دَ ربوا پنځم اطلاق کله کله په هغه ناجائز کار باندې هم کړې شوې دې په کوم کار کښې چه دَ زيادت معنى موندلې شي لکه چه يوحديث کښې دى "ان اربى الربوا استطالة الرجل في عرض أخيه" (الحديث)

په قرآن او حدیث کښې دَ لفظ ربوا دا پنځه اطلاقات راغلی دی لیکن شریعت چه کوم څیز سود او ربوا ګرځولې دې هغه صرف اول دوه قسمونه دی یعنی ربا القرض او ربا الفضل دَدې دوو قسمونو لاندې ټول سودی کاروبار راځی هم په دې کښې ربا الرهن داخل دې چه یوسړې دَ مرهونه څیزنه فائده اوچته وی او رأس المال محفوظ دې دَ ربوا دَ دغه پورتنی دواړه قسمونه قرآن حدیث او اجماع امت نه مطلقًا حرام دی قرآن عظیم الشان کښې الله رب العزت ربوا القرض بیان کړې دې اودانی حرام ګرځولې دی تورات زبور او انجیل غوندې آسمانی کتابونو دا حرام ګرځولی دی

**د ربوالقرض تعریف:** -علامه جصاص رحمه الله دَ رب القرض تعریف داسې کوی "هو القرض المشروط فیه الاجل وزیادة مال علی التقرض" یعنی ربا القرض دې ته وانی چه چاته دې قرض مال ورکړو او په هغې کښې دَ واپسئی وخت مقرر کړې شو مګر په مدیون باندې دَ قرض دَ واپسئی په وخت څه زیات مال مقرر کړی.

**د قرآنی وعیداتو محل او مصداق:** -علماؤ لیکلی دی قرآن کریم کښې چه الله تعالی دَ ربوا کوم سختوالی سره وعیدونه بیان کړی دی هغه هم دغه دَ ربا القرض صورت دې هغه وخت په جاهلیت کښې هر سړی دا پیژندلو اوکله چه دَ قرآن ایاتونه نازل شو نوخلقو دا قسم ربا ترک کړه لهذا نن صبا دَ ملحدانو دا وینا هیڅ معنی نه لری چه قرآن دَ قرض نه علاوه دَ یوبل صورت تردید کړې دې او ربا القرض جائز دې

**د موجوده بینکونو لین دین:** -علماؤ لیکلی دی نن صباچه دَ بینکونو کوم کاروبار دې هغه هم دَدې دَ قسم نه دې چاچه قرض ورکړو یا ئی قرض واخستلو او په واپسئی باندې پوره رأس المال هم واخستو اودَ سود په توګه ئی اضافی پیسې هم واخستې دَ جاهلیت سودی کاروبار هم دغه شان وو او په قرآن کریم کښې هم دَدغه صورت بیان دې او هم دغه حقیقی سود اوربوا دې

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[٢٨٠٤] په سودی لین دین کښې ملوثکسان ملعون ګرځیدل**

٢٨٠٤-[١] (١) ١عَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ٢«لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ٣ - آكِلَ الرِّبَا وَمُوكِلَهُ وَكَاتِبَهُ وَشَاهِدَيْهِ ٤ وَقَالَ: (هُمْ سَوَاءٌ)» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١حضرت جابر رضی الله عنه وایې٣ رسول الله ﷺ په سود اخستونکی په سود ورکونکي د سودي لین دین کاغذ لیکونکي او د هغه په شاهدانو تولو باندې٢ لعنت ویلی دی،٤ او

(١) اخرجه مسلم فی کتاب المساقاة/باب لعن آکل الربا ومؤکله (رقم-١٠٦ - (١٥٩٨) والترمذی فی کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی أکل الربا (رقم_١٢٠٦)

حضور ﷺ وفرمايل چې دا ټول (په اصلي ګناه کې) يوشان دي اګر چې د کار د اعتبار په وجه مختلف دي. (مسلم) [اخرجه مسلم، ۱/۶۹۷]

**حل اللغات:** - ① آكِلَ الرِّبَا: أَيْ آخِذَهُ: سود اخستونکي (که خوري ئې اوکه نه يعني د خوړلو نه مراد اخستل دی) ② مُوْكِلَهُ: أَيْ مُعْطِيه: سود ورکونکي (که هغه ئې خوري اوکه نه ئې خوري) ③ كَاتِبَهُ: د سود معامله ليکونکي. ④ شَاهِدَيْهِ: د سود په معامله کښې ګواهان جوړيدونکي

**تسهيلات:** قوله: وَشَاهِدَيْهِ:

**د سود د ګواه جوړيدونکي باندې لعنت:** -يعني په سودی لين دين کښې ګواه جوړيدونکي سړې هم ملعون کيږي دَدې نه معلومه شوه چه سودی کاروبار کښې د څه قسم په امداد سره سړې به په سودکښې شريك ګڼړلې شی لهذا په دې کښې دَهرقسم تعاون کول حرام دی دَ بينکونو دَمختلف شعبوکارندې دې ښه سوچ اوکړی چه هغوی خو چرته په دغه کاروبار کښې معاون خونه جوړيږي

**[۲۸۰۸] دَسودي څيزونو تفصيل**

٢٨٠٨—[٢] ( ) [١] وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[٢] «الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ وَالْفِضَّةُ بِالْفِضَّةِ [٣] وَالْبُرُّ بِالْبُرِّ وَالشَّعِيرُ بِالشَّعِيرِ، وَالتَّمْرُ بِالتَّمْرِ وَالْمِلْحُ بِالْمِلْحِ [٤] مِثْلًا بِمِثْلٍ، سَوَاءً بِسَوَاءٍ يَدًا بِيَدٍ، [٥] فَإِذَا اخْتَلَفَتْ هَذِهِ الْأَصْنَافُ [٦] فَبِيعُوا كَيْفَ شِئْتُمْ [٧] إِذَا كَانَ يَدًا بِيَدٍ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت عباده بن صامت ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] سره زر د سرو زرو په بدله کې سپين زر د سپينو زرو په بدله کې [٣] غنم د غنمو بدله کې اوربشې د اوربشو په بدله کې او مالګه د مالګي په بدله کې که وآخستی شي او ورکول شي. [۴] نو د دې لين دين په مقدار کې مثل په مثل يعني برابر برابر او لاس په لاس کيدل پکار دي [٥] او که دا قسمونه مختلف وي مثلًا د غنمو تبادله په اوربشو سره وي يا د اوربشو تبادله په کجورو سره [٦] نو بيا اجازت دی چې څنګه غواړئ خريد وفروخت وکړي (يعني برابر برابر کيدل ضروري نه دی) [٧] البته د لين دين لاس په لاس کيدل په دې صورت کې هم ضروري دی. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① الذَّهَبُ: سره زر. ② الْفِضَّةُ: سپين زر. ③ الْبُرُّ: أَيِ الْحِنْطَةُ: غنم. ④ الشَّعِيرُ: وربشې. ⑤ التَّمْرُ: کهجوري. ⑥ الْمِلْحُ: مالګه. ⑦ مِثْلًا بِمِثْلٍ: چه جنس ئې يو وی ⑧ سَوَاءً بِسَوَاءٍ: أَيْ: مُتَسَاوِيَيْنِ فِي الْقَدْرِ: چه په مقدار کښې برابر وی ⑨ يَدًا بِيَدٍ: لاس په لاس يعني نغد وی او په يو مجلس کښې وی.

**تسهيلات:** قوله: الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ:

**د مذکوره جملې ترکيب:** - که چرې يباع فعل محذوف اومنلې شی نو الذهب به دَدې نائب

---

(١) اخرجه مسلم في كتاب المساقاة/باب الصرف وبيع الذهب بالورق نقدا (رقم-٨١ - (١٥٨٧)

فعل مرفوع شي اوکه چرې بيعوا دَ امر صيغه محذوف اومنلې شي نوالذهب به منصوب وی تر آخره پورې به اعراب هم دغه شان وی

**دتجارتی اجناسو درې قسمونه:** - ① دتجارتی جنس لين دين په وزن سره کيږی ددې مثال سره زر اوسپين زر وغيره دی دې ته موزونی وائی

② دتجارتی جنس اخستل خرخول په ناپ سره کيږی ددې قسم مثال غله ده دې ته مکيلی وائی

③ دتجارتی جنس اخستل خرخول نه په ناپ کښې راځی اونه په وزن کښې راځی ددې مثال هغه څيزونه دی په کوم کښې چه نه وزن وی اونه کيل وی يعنی نه موزونی وی اونه مکيلی وی

**نوټ:** -بيا داخبره هم په ذهن کښې ساتل پکاردی شريعت چه کوم څيزته موزونی يامکيلی اووئيل هغه به هميشه موزونی اومکيلی وی دَ زمانې په بدليدوسره به هغه بدلولې نه شی اونه دَخلقو په رواج سره هغه بدلولې شی.

**د جنس او قدر وضاحت:** -بيا داخبره هم ياد ساتئی چه په يوڅيزکښې دَهغې وزن اوکيل صفت ته قدر وائی اودَ يوڅيز حقيقت اوماهيت ته جنس وائی نودَ لين دين څيزونه يا په قدر کښې راځی او يا جنس کښې راځی.

**د ربوالفضل د حرمت وجه:** ددې حديث پس منظر دادې چه دا حديث د ربا د تحريم دنزول نه پس فرمائيلې دې. اصلی ربا هغه وه. کومه چه قرآن پاك حرامه کړې وه. الله تعالی فرمائی ((يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ))(البقرة،٢٧٨)يعنی کوم قرض چه ورکړې شی. په هغې باندې دزيادت مطالبه مه کوئ. دا د ربا حقيقت وو. کومه چه قرآن کريم حرامه کړې ده. څکه دې ته .. ربالقرآن .. هم وئيلی شی.

**په مذکوره څيزونو کښې تفاضلا اونسية دعدم جواز علت:** -د .. ربالقرآن .. د سد باب دپاره نبی عليه السلام ددې شپږو څيزونو په خپل مينځ کښې دتبادلې په صورت کښې " تفاضل اونسئة،،ناجائز اوګرځولو. او تماثل او يد بيد ئې ضروری اوګرځولو. ددې منع کولو حکمت نبی عليه السلام په يو بل حديث کښې بيان کړې دې. ((انی أخاف عليکم الربوا))(٦٨) يعنی زه ددې وجه دامنع کوم چه په تاسوباندې دسود نه ويريږم څکه که داسې معاملات تاسوکوئ نوکيدې شی. په څه وخت کښې په سود کښې اخته شئ. ددې نه بنکاره شوه چه په دې شپږو څيزونو کښې د تفاضل او نسيئة،،دحرمت حکمت د سود سد باب دې.

**دحديث پس منظر:** - څکه چه په کومه زمانه کښې نبی عليه السلام دا حديث بيان کړې وو. په هغه زمانه کښې به خلقو او بيا خاص کر دکلو خلقو سره نقدې پيسې کمې وې.

اوهغوی به عام طور دخیزونو په بدله کښې څیزونه ورکول مثلا که د جامو ضرورت به ورته وو نو د غنمو په بدله کښې به ئې کپړې واخستل د وروژو په بدله کښې به ئې غنم اخستل د کهجوور په بدله کښې به ئې اوربشې اخستل ګویا چه په هغه زمانه کښې به دا څیزونه د ثمن په طور استعمالیدل که په هغه وخت کښې دا څیزونه تفاضل سره بدلول جائز ګرځولې شوی وو نو خلقو به د سود حاصلولو دپاره دا حیله استعمالوله او د یو صاع غنمو په بدله کښې به ئې دوه صاعه غنم اخستل او دغه شان به په دې طریقه د سود دروازه پرانستې شوې وه نو ځکه نبی علیه السلام په دې شپږو څیزونو کښې تفاضل منع کړلو.

**په اشیاء سته کښې د حرمت سود په تخصیص اوعدم تخصیص کښې مذاهب:-**

① دبعضې تابعینو دا مسلك دې چه دا حکم صرف ددې شپږو څیزونو سره مخصوص دې که ددې نه علاوه سرې په نورو څیزونو کښې تبادله کوی نوکه یو جنس وی نو هم په کښې تفاضل او نسیئة،،حرام نه ده.مثلا په دې حدیث کښې داوربشو ذکر نشته نو که د اوربشو تبادله په جوارو سره وی.نو تفاضل او نسیئة،، په کښې هم جائز ده.دا دحضرت قتاده رحمه الله مسلك دې.

② فقهاء کرام فرمائی.چه دا حکم صرف په دې شپږو څیزونو پورې خاص نه دې بلکه دا معلول بعلة،، دې.یعنی یوعلت دې.چه هغه په دې شپږو څیزونو کښې مشترك دې.او س چه هغه علت په کوم ځائې کښې موجود شی.د حرمت حکم به په هغې باندې لګی او تفاضل او نسیئة،، به حرام وی.

**د حرمت سود په علت کښې مذاهب:-**

① دامام ابوحنیفه رحمه الله هغه علت ،، قدر او،،جنس دې د ،، قدر،، مطلب دا دې چه یو څیز کیلی یا وزنی وی نوچه کوم څیز چه په پیمانه یا په وزن په ذریعه تللې شی دهغې په باره کښې دا ونیلی شی.چه په دې کښې ،،قدر،، موجود دې او د ،،جنس،، مطلب دا دې.چه دیو څیز تبادله دخپل هم جنس سره کولې شی.نو په کوم ځائې کښې چه دا دواړه څیزونو موجود شی.هلته به د حرمت تفاضل او نسیئة،، حکم راځی نولکه څنګه چه غنم په غنمو خرڅولو کښې تفاضل او نسیئة،،حرام ده دغه شان چه اوربشو په جوارو خرڅولې شی.نو په دې کښې به هم تفاضل اونسیئة،،حرامه وی که د باجرې تبادله په باجره باندې کولې شی.نوبیا هم دا حکم دې.که د سیوو تبادله په سیوو کیږی.نوبیا هم دا حکم دې.که د عام په بدله کښې آم خرڅولې شی.نو بیا هم دا حکم دې.امام صاحب فرمائی.چه په دې حدیث کښې نبی علیه السلام د کومو شپږو څیزونو حکم کړې دې.په

دې کښې څلورڅیزونه کیلی دی.هغه حنطه ، شعیر، تمر، اوملح دی.او ذهب او فضه وزنی دی.نو په کوم ځائې کښې چه پیمانه یا وزن وی.او دجنس تبادله په جنس باندې کیږی.نو هغې ته به دحرمت تفاضل او حرمت نسیئة،حکم متوجه کیږی.

④ امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه دحرمت علت طعم او ثمنیت دې.اوچه د جنس تبادله په جنس باندې وی.ځکه چه په دې شپږو څیزونو کښې څلور د خوراك دی.هغه څلور دا دی.حنطه ، شعیر، تمر، ملح، او په دوه څیزونو کښې ثمنیت دې.یعنی ذهب او فضه.نو کوم څیز چه د خوراك قابل وی.په هغې کښې به هم دحرمت علت وی.اوچه کوم څیزکښې ثمنیت وی.په هغې کښې به هم د حرمت علت وی.نوچه په کومو څیزونو کښې طعم یا ثمنیت وی.هلته به په هم جنس سره د تبادلې په صورت کښې تفاضل جائز نه وی.

③ امام مالك رحمه الله فرمائی.چه دحرمت علت ،،اقتیاة،، او ،، ادخار،، مع الثمنیت وی.د ،، اقتیاة،، مطلب دا دې.چه هغه څیز د غذا قابل وی.او د،، ادخار،، مطلب دا دې.چه هغه ذخیره کیدې شی.او هغه څیز خرابیږی نه.نو په کومو څیزونو کښې چه دا علت موجود وی.هلته به دحرمت حکم موجودیږی.

**داول فریق دلیل:**- نبی علیه السلام په حدیث کښې دکومو شپږو څیزونو ذکر کړې دې.په هغې کښې څلور څیزونه دخوراك دی.غنم، اوربشې، مالګه او کهجورې.او د خوراك څیزونه په څلور قسمه وی.یو قسم هغه دې.چه کوم بنه مالدار کسان خوری.دویم قسم هغه وی.چه هغه غریبانان خلق خوری.دریم قسم هغه وی.چه هغه د مصالحې په طور استعمالیږی.پخپله مقصود بالذات نه وی.اوڅلورم قسم هغه وی.کوم چه ،،تفکه،، دپاره خوړلې شی.چه دخوراك نه پس دخولې خوند بدل شی.نبی علیه السلام د خوراك څلور څیزونه بیان کړل.او دخوراك په دې څلورو قسمونوکښې ئې دهر یو قسم نه یو یو فرد بیان کړلو.نو غنم دمالدارو خلقو خوراك دې.او اوربشې دغریبانانو خلقوخوراك دې.اومالګه دمصالحې یو فرد دې.او کهجورې د ،،تفکه،، یو فرد دې.او دوه څیزونه سره اوسپین زر دا دواړه د ثمینت نمائندګی کوی.نو ځکه امام شافعی رحمه الله طعم اوثمنیت علت اوګرځولو.

**د دویم فریق دلیل:**-دوی ،،اقتیاة او ،، ادخار،، مع الثمنیت علت ګرځولې دې.او هغه ددې په باره کښې فرمائی.چه زمونږ بیان شوې علت د ربا د تحریم علت سره زیات نزدې دې.ځکه چه ربوالفضل نبی علیه السلام د سد باب په طور باندې حرام کړې دے.چه سرې ربالقرآن کښې اخته نشی.نوکوم څیزونه چه خلق د ثمن په طور استعمالوی.نو هغې ته هم هغه حکم ورکول پکار دې.کوم حکم چه د سرو او سپینو زرو دې.یعنی په دې کښې هم تفاضل حرام کیدل پکار دی.او د ثمن په طور چه کوم څیزونه استعمالیږی.نو

هغه عام طور داسې خیزونه وی.کوم چه غذا په کار راځی.او یا داسې وی.چه هغه ذخیره کیدې شی.نوځکه هغوی ،، اقتیات،، او ادخار،، د حرمت علت اوګرځولو.

**اول او دویم فریق د دلائلو جواب:-** ترکومې پورې چه دامام شافعی او امام مالك رحمهما الله خبره ده.نو هغوی چه د حرمت کوم علت بیان کړې دې. په هغې ورسره څه نص نشته. بلکه هغوی دا علت په خپل اجتهاد او استنباط سره راویستې دې اودا اجتهاد او استنباط دهغه دوو حدیثونو په مقابله کښې حجت نشی جوړیدې کوم چې د امام ابوحنیفه په دلائلو کښې پیش کولی شی.

**د دریم فریق اول دلیل:-①** اودریم فریق چه کوم علت بیان کړې دې.یعنی ،، قدر،، او ،، جنس،، د هغې په تائید کښې یوحدیث په مسلم کښې باب بیع الطعام مثلا بمثل،، کښې دې.په دې کښې نبی علیه السلام ددې شپږو څیزونو د بیانولو نه پس فرمائیلی دی..وکذلك المیزان،، ددې مطلب دا دې.چه هم دا حکم دهغه څیزونو دې.چه هغه وزنی وی.په دې کښې نبی علیه السلام پخپله اوخودله.چه یو څیزوزنی وی.نو دا د تفاضل دحرمت علت دې.

**د دریم فریق دویم دلیل:-** په مستدرك حاکم جلد ۲صفحه ۴۲کښې باب النهی عن عسب الفحل،، کښې هم دا حدیث راغلې دې.اوهلته په آخر کښې دا الفاظ دی..وکذلك ما یکال و یوزن،، یعنی دا حکم په هغه څیزونو کښې دې.چه هغه پیمانه کولی شی.یا وزن کولی شی.ددې حدیث نه ښکاره معلومیږی.چه د اشیاء سته نه علاوه په کومو څیزونو کښې دحرمت دا حکم جاری کولې شی.هغه به د کیل اووزن په بنیاد باندې وی.

**په دویم دلیل اعتراض:-** د مستدرك حاکم په روایت باندې امام ذهبی رحمه الله دا اعتراض کړې دې.چه ددې راوی ،، حیان،، ضعیف دې.

**دااعتراض جواب:-**لیکن په ،، تکمله فتح الملهم،، کښې په دې باندې تفصیلی بیان کړې دې.دهغې نه دا نتیجه راوځی.چه دا حدیث قابل استدلال دې.او ددې تائید د صحیح مسلم او صحیح بخاری په روایاتو سره کیږی.په صحیح بخاری ،،کتاب الوکالة باب الوکالة فی الصرف والمیزان،، کښې چه کوم حدیث دې.د هغې حدیث په آخر کښې دا الفاظ دی..، وقال فی المیزان مثل ذلك،، بهر حال د دې احادیثو په وجه احنافو ،، کیل او وزن علت ګرځولې دې.

**د د قدر او جنس علت ګرځولو د ترجیح دوه وجوهات:-①** دنورو فقهاو سره نص موجود نه دې.او د احنافو سره نص موجود دې.

② دجمهور فقهاو په نزد په اتفاق سره دا خبره منلې شوې ده چه د حرمت تفاضل دا حکم صرف په دې شپږو څیزونو سره خاص نه دې بلکه معلول بعلة، دې نو داحتیاط تقاضا دا ده چه داسې څیزعلت مقرر کړې شي چه دهغې د وجه دتفاضل حرمت زیات او عام وی ځکه چه نبی علیه السلام خو په خپله علت نه دې بیان کړې نو په هر څیزکښې دا احتمال شته چه کیدې شي دا هم د حرمت تفاضل په علت کښې شامل وی چه په احتیاط باندې عمل اوشي ځکه چه په کوم ځائې کښې د حلت اوحرمت احتمال وی نوهلته د احتیاط تقاضا دا ده چه دحرمت طرف ته ترجیح ورکړې شي. نو علت هم داسې کیدل پکار دی چه هغه زیات وسیع او عام وی چه دهغې دوجه په زیاتو څیزونو کښې تفاضل حرام شي که .. طعم یا ،،اقتیاة، علت جوړ کړې شي نودې دائره ډیره تنګه ده اوچه .. کیل او وزن،، علت مقرر کړې شي نو د حرمت دائره به کولاو شي او د احتیاط تقاضا هم دا ده حضرت عمر فاروق رضی الله عنه فرمائیلی دی ((قبض رسول الله صلی الله علیه وسلم ولم یبین لنا أبواب الربا، فدعوا الربوا والریبة))(٦٩)

یعنی نبی علیه السلام د دنیا نه په داسې حالت کښې رخصت شو چه د سود ټول بابونه ئې نه وو کړی اود ربا نه مراد ربالفضل دې یعنی نبی علیه السلام دا بیان نه دې کړې چه ددې شپږو څیزونو سوا په نورو کومو څیزونو کښې ربالفضل حرام ده نو سود پریږدئ او په شك باندې هم عمل پریږدئ یعنی په کوم ځائې کښې چه د سود ویره وی هغه هم پریږدئ نو ځکه احنافو په احتیاط عمل اوکړلو او .. قدر او .. جنس،، ئې علت مقرر کړلو.

**د دریم فریق په علت باندې اولنې اعتراض:**- اګرچه احنافو .. قدر او جنس.. علت اوګرځولو نوپه دوی باندې څواعتراضات کولی شي ځکه چه دا علت اوګرځولې شي نو ددې تقاضا دا ده چه بیا څوخومره موزونات دی په هغې کښې په یو کښې هم .. بیع سلم .. جائز نه ده ځکه چه د .. بیع سلم .. مطلب هم دا دې چه پهدې کښې درهم او دینار في الحال بائع ته ملاویږی او مبیع او موزون به څه وخت پس مشتری ته ملاویږی. څیزچه اخستلې شي هغه هم وزنی دې اګرچه په دې تبادله کښې جنس جدا جدا دې لیکن په.. قدر.. کښې اشتراك دې نوځکه په خپل مینځ کښې دتبادلې په وخت کښې پکار ده چه تفاضل جائز شي لیکن پکار ده چه قرض حرام شي نو په موزوناتو کښې .. بیع سلم.. کول ناجائزه ګرځول پکار دی حالانکه تعامل دا دې چه داحنافو په نزد هم په موزوناتو کښې .. بیع سلم،، جائز ګنړلې شي.

**دااعتراض دوه جوابونه:**- ① په اصل کښې ددې علت تقاضا خو دا وه چه مونږ په

موزوناتو کښې بیع سلم ناجائز کړې وه خو د دې په جواز باندې اجماع شوې ده.نو ځکه مونږ په موزونانو کښې بیع سلم کول ددې حکم نه مستثنی کړله.

۞ که دا دراهم او دنانیر هم وزنی وی.او نور موزون څیزونه هم وزنی وی.لیکن د دواړو دتللو اوزار مختلف دی.سره او سپین زره په وړو وړو تلو کښې تللی شی.او نور څیزونه په غټوغټو تلوکښې تللی شی.نو اګرچه په دې کښې دواړه متحد دی چه وزنی دی.لیکن ددواړو د وزن آلات مختلف دی.نوځکه په حکم کښې دا مختلف القدر شو.او په دې کښې بیع سلم جائز ده.

**د دریم فریق په علت باندې دویم اعتراض:**- دراهم او دنانیر وزنی وو.ددې په باره کښې دا وینا کول آسان وو.چه ددې په خپل مینځ کښې د تبادلې په وخت کښې تفاضل جائز نه دې خو کله چه سکې رائجې شوې.او دا د سرو او سپینو زرو نه وې.بلکه د تانبې او پیتلو نه به جوړې وې.اوددې قیمت اصلی ددې ذاتی قیمت سره برابر نه وو.بلکه کمې زیاتې به په کښې وو.لکه دلته زمونږ په ملك پاکستان کښې د اته آنې سکه رائج ده.او دا داوسپنې نه جوړه شوې ده.اوس کومه اوسپنه چه په دې کښې استعمال شوې ده.دا ضروری نه ده.چه د اته آنو دې وی.کیدې چه هغه د دوو آنو وی.خو ددې قیمت اسمیه اته آنې دی.او عام طور داسې وی.چه ددې قیمت اسمیه ددې د ذاتی قیمت نه زیات وی.او دا سکې نه ،کیلی دی او نه وزنی دی.بلکه ،، عددی،، دی.نوهر کله چه دې سکو کښې د وزن صفت نشته.نو بیا خویه دې کښې د حرمت علت کوم چه احنافو ګرځولې دې.هغه هم نشته.یعنی قدر په کښې نشته.اوچه کله د حرمت علت نشته نو بیا ددې سکو په خپل مینځ کښې تفاضل هم جائز کیدل پکار دی.او دغه د نن سبا رائج شوې کاغذی نوټ هم دې.اودا جائز ده.چه د یو روپۍ نوټ د دوو یا پنځو روپو په نوټ باندې بدل کړې شی.ځکه چه په دې کښې ،، کیل او وزن،، نشته.نود تحریم ربا علت مفقود دې.

**د دویم اعتراض جواب:**- په اصل کښې خبره دا ده.چه ،، قدر او جنس،، دحرمت ربا علت ګرځولو په باره کښې کومې کیږی دا د ،، ربا الفضل،، په باره کښې دی.یعنی دکوم سود چه د حدیث نه ثابت دې.لیکن هغه سود دکوم ذکر چه په قرآن پاك موجود دې.او هغې ته ،،رباالنسیئة،، وائی.نو هغه دا ده.چه په قر باندې هرقسمه زیادت حاصلولو سود دې.ددې صحیح تعریف دا دې ،، الفضل الخالی عن العوض،، یعنی هغه زیادت چه دعوض نه خالی وی.چه دهغې په مقابله کښې څه عوض نه وی.نو هغه سود دې.ددې "رباالنسیئة" او ،، ربالقرآن،، دپاره د قدر او جنس موجودوالې ضروری نه دې.بلکه چه په کوم ځائې کښې هم فضل خالی عن العوض وی.نو د سود دا قسم به متحقق وی.البته په

. . ربالفضل. . كښې د قدر اوجنس موجود والې ضروري دی.

**بوله قاعده: دثمن عدم تعين :-** سکې د ثمن په ځائې استعماليږي.او په ثمن کښې دا قاعده ده چه دا په متعين کولو سره نه متعين کيږی.مثلا ما يو دوکان ته د لسو روپو نوټ اوخودلو.چه ددې په بدله کښې فلانې کتاب راکړه.هغه ماته هغه کتاب راکړلو.ماهغه نوټ واپس په جيب کښې کيخودلو.اوبل نوټ مې راويستلو.اوهغه ته مې ورکړلو.دوکاندار ته دا حق نه دې حاصل.چه هغه اووائی زه خو به هم هغه نوټ اخلم.کوم چه تا ما ته په اول ځل خودلې وو. ځکه چه مقصود ثمنيت دې.او ثمنيت په دواړو کښې برابر دې.نو ځکه په ثمن کښې تعين نشی راتلې.

**دويمه قاعده: د ثمن د اوصافو عدم اعتبار:-** په ثمن کښې اوصاف هدر وی.يعنی د يو شمار چه څومره نوټونه او سکې وی.هغه ټولې د يو قيمت تصور کولې شی.اوپه دې کښې که په يو کښې څه صفت زيات وی.نو هغه دهې په قيمت کښې د زياتی سبب نشی جوړيدې.او په وصف کښې کمې دهغې په قيمت کښې د کمی سبب نشی جوړيدې.مثلا يو نوټ بيښی نوې وی.او بل نوټ شليدې او زوړ وی.چه د څو کالو نه چليږی.د قيمت په اعتبار سره دا دواړه برابر دی.ځکه چه په ثمن کښې صفتونه هدر وی.ځکه بعضې فقهاء د ثمن په باره کښې فرمائی. «أمثال متساوية قطعاً»

**په نورو څيزونو کښې د اوصافو اعتبار:-** د ثمن نه علاوه په نورو څيزونو کښې اوصاف معتبر دی.مثلا که د يو کتاب په بدله کښې دوه کتابونه بدل کړې شی.نودا ونيلی شی.چه يو کتاب د کتاب په بدله کښې شو.او دويم کتاب د وصف په عوض کښې شو.کوم چه په دې يو کتاب کښې موجود دې.نودلته کښې فضل خالي عن الصفت نه دې.ليکن په اثمانوکښې چه کوم زيادت وی.هغه د صفت په مقابله کښې نه وی.بلکه هغه زيادت خالي عن العوض وی.

**د درهم په درهمينو د خرڅولو دحرمت وجه:-** ① دا ثمن عرفی دې.او په تعين سره نه متعين کيږی. مثلا چه زيد عمر ته يوه روپۍ ورکړی.او دهغه نه دوه روپۍ واخلی. نو زيد چه عمر ته کومه يوه روپۍ خودله وه.هم هغه ضروری نه ده.بلکه دويمه روپۍ هم ورکولې شی.که زيد عمر ته يوه روپۍ اوخودله او بيا هغه د عمر نه دوه روپۍ واخستلې.او بطور ثمن هغه ته د دوو روپو نه يوه روپۍ واپس عمر ته ورکړی.نو اوس ته په حقيقت کښې د بيع روح يعنی تبادله نشته.ځکه چه د زيد د جيب نه خو يوه روپۍ هم لا نړه.بلکه هغه د عمر د دوو روپو نه يوه روپۍ هغه ته واپس کړه.نو د تبادلې د نه موجودوالی دوجه دا بيعه نشوه.په خلاف ددې .چه يو قلم په دوو قلمونو باندې خرڅولې شی.نو دا جائز ده.ځکه چه قلم متعين کيدې شی.نو که زيد د عمر نه دوه قلمونه واخلی.او هغه ته يو

قلم ورکړي نو هغه به خامخا هغه قلم ورکوي.کوم چه ورته هغه د عقد په وخت کښې خودلې وو.داسې نشي کيدې چه دعمر د ورکړې شوې دوو قلمونو نه يو قلم عمر ته واپس کړي. نو په دې صورت کښې تبادله موجود يږي.او بيع به ټيک وي.(والله اعلم)
نو که يوه روپۍ په دوو روپو باندې خرخولې شي.نو د يوې روپۍ په مقابله کښې به يوه روپۍ راشي او دويمه روپۍ به خالي عن العوض وي نو په دې صورت کښې د سود رومبني قسم کوم چه قرآن خودلې ده.هغه متحقق شو .او په دې کښې د کيلي يا وزني څه قيد نشته.نو يوه روپۍ په دوو روپو يا يو نوټ په دوو نوټونو خرخول د .. ربوالقرآن.. دوجه حرام او ناجائز ده.

**نوټ**:-ليکن دا حکم ترهغه وخته پورې دې.چه تر څو پورې د دې روپو او نوټونو ثمنيت باقي وي.او هغه په متعين کولو سره نه متعين کيږي.څکه چه د نه متعين کيدو نتيجه دا راوځي.چه صفتونو هدر شي.دا دواړه په خپل مينځ کښې لازم او ملزوم دي.څکه چه دعدم تعين فائده ده.د صفتونو هدر کيدل .او د تيعين فائده ده.د صفتونو اعتبار.نو ترکومې پورې چه متعين وي.ترهغه وخته پورې به ددې صفتونو هدر وي.

**د ثمنيت په ابطال کښې د امام محمد او شيخينومذاهب**:-

① شيخين دا فرمائي.چه دا سکې او روپۍ خلقي ثمن نه دي.بلکه اصطلاحي ثمن دي.څکه متعاقدينو ته اختيار دې.چه هغوی په خپل مينځ کښې دا اصطلاح ختمه کړي.او ددې سکو د تعين په ذريعه ددې ثمنيت باطل کړي.نو په دې صورت کښې به دا سکې او روپۍ د عروض او سامان په حکم کښې شي.او بيا په دې کښې دکمي زياتي سره معامله کول جائز دي.

② امام محمد رحمه الله فرمائي.چه کله دا روپۍ او نوټونه ثمن اصطلاحي جوړې شي او رانجې شي.نو ترکومې پورې چه ټول خلق ددې ثمنيت باطل نکړي.نو ترهغه وخته پورې صرف د متعاقدينو په ابطال سره ددې ثمنيت نه باطليږي.اوچه کله ثمنيت نه باطليږي.نو په تعين کولو سره نه متعين کيږي.نود يوې روپۍ په دوو روپو يا د يو نوټ په دوو نوټونو تبادله کول د امام محمد رحمه الله په نزد جائز نه ده.

**دمفتي تقي عثمان مدظله العالي رائې**:-مفتي تقي عثماني صاحب فرمائي زما په رائې کښې د روپو او کرنسي نوټونو په مسئله کښې د امام محمد رحمه الله قول اختيارول مناسب دي.څکه چه د شيخينو مسلك اختيارولو سره به د سود دروازه پرانستې شي.البته که په يوه موقعه کښې په بيع الفلس بالفلسين کښې ثمنيت حاصلول مقصود نه وي.بلکه د روپو ذات مقصود وي.مثلا يو روپۍ د ١٩٩٦ عيسوی ده.او دوه روپۍ د ١٩٥٠عيسوی دي.يوکس د شوق د وجه زړې روپۍ جمع کول غواړي.اوهغه د ٩٦عيسوی دوه روپۍ

ورکول غواړی او دهغې په بدله کښې ۵۰ عیسوی یوه روپۍ حاصلول غواړی.نو دلته په دې روپو کښې ثمنیت مقصود نه دې.بلکه ددې ذات مقصود دې. نو په دلته د شیخینو په مسلك باندې غور کولې شی.که دا روپۍ متعین کوی.نو متعین کیږی به.او ددې ثمنیت به باطل شی.اوس به ددې حیثیت صرف د یوې اسپنې پاتې شی.نو ځکه په کښې تفاضل جائز دې.

**د بینک د ملازمت په عدم جواز باندې اعتراض:-** خوبه دې باندې دا اعتراض کیږی.که د بینك ملازمت ولې حرام دې.ځکه چه نن سبا خو دهر ځاې نه پیسه د بینك په ذریعه باندې راځی.هیڅ یوڅیز د سود نه پاك نه دې.نوبیا خو هر څیز حرامیدل پکار دی.

**داشکال جواب:-** شریعت دهر څیزدپاره یوه اندازه مقرر کړې ده.چه ددې حده پورې جائز دې.او ددې نه اخوا ناجائز دې.نود بینك د نوکرۍ د ناجائزوالی وجه دا ده.چه په بینك کښې سودی لین دین کیږی.اوکوم کس چه په بینك کښې نوکر وی.نو هغه دځه تا ځه حده پورې په سودی لین دین کښې تعاون کوی.او په هیڅ یوه ګناه کښې تعاون کول د قرآن پاك د حکم مطابق حرام دې.فرمائی. ((ولا تعاونوا علی الإثم والعدوان)) المائدة:۲) ددې وجه د بینك نوکری ناجائزه ده.او ترکومې پورې چه ددې اعتراض تعلق دې.چه هره یوه پیسه مونږ ته د بینك په ذریعه باندې رارسی.نوهره یوه پیسه حرام کیدل پکار دی.ددې جواب دا دې.چه د بینك نه پیسې په جائزاوحلاله طریقه باندې راځی.نو ددغې پیسو په استعمال کښې ځه ګناه نشته.اوکه په ناجائزه اوحرامه طریقه باندې راځی.نود هغې استعمال به حرام وی.

**په قرآن او حدیث کښې بیان شوې ربا :-** د ،، ربوا،، لفظ په لغت کښې دزیادت په معنی راځی.او دشریعت په اصطلاح کښې ددې استعمال په پنځه قسمه معانیو کښې راځی.خو زیات طور ددې استعمال په دوو معانیو کښې راځی.یود «ربوالنسیة»په معنی کښې او بل د ،، ربو الفضل ،، په معنی کښې.د «ربوالنسیة» تعریف دا دې.چه (( هوالقرض المشروط فیه الأجل وزیادة مال علی المستقرض)) دې ته ،ربوالقرآن» هم وائی.او د ،، ربوالفضل،، تعریف دا دې.چه هغه د هم جنس څیزونو په خپل مینځ کښې یو بل سره د بدلولو په وخت کښې کمی زیاتې کول دی.دې ته ،،ربوالحدیث،، هم وائی.ځکه چه اولنې قسم ربا په قرآن پاك او دویم قسم ربا په حدیث سره حرامه شوې ده.

**د سود په حرمت اعتراض:-** بعضې خلق دا اعتراض کوی.چه قرآن پاك صرف مرکب سود حرام کړې دې.سود مفرد ئې نه دې حرام کړې.او د قرآن پاك په دې آیت استدلال کوی.(( یٰأَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا لَا تَأْكُلُوا الرِّبٰوا أَضْعَافًا مُّضٰعَفَةً ))(آل عمران:۱۳۰)

په دې آیت کښې د ربا سره د «اضعافا مضاعفة» قید لګیدلې دې.او نهی په قید باندې

داخله شوي ده نو صرف هغه ربا به حرامه وي چه په هغې کښې رقم د راس المال نه کم از کم دوچنده زياتيږي.

**د اعتراض جواب:** - ا استدلال صحيح نه دې خکه چه د ،،اضعافا مضاعفة،، قيد دامت دعلمانو په اجماع سره احترازی نه دې بلکه اتفاقی دې او دا قيد بيښې داسې دې لکه دقرآن پاك په يو بل آيت کښې چه ئے فرمائيلی دی ((وَلَا تَشْتَرُوا بِآيَاتِي ثَمَنًا قَلِيلًا))(البقرة،٤١)په دې آيت کښې اگرچه د ثمن قليل قيد هم لگيدلې دې خوهيڅ عقلمند انسان به د دې آيت نه دا مطلب وانخلی چه قرآنی آياتونه خو په ثمن قليل باندې خرڅول جائز نه دی خو په ثمن کثير سره ئې خرڅول جائز دی.

**د اضعافاً مضاعفة قيداتفاقي کيدو دلائل** - ① د قران کريم آيت دې ((يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ))(البقرة،٢٧٨ په دې آيت کښې د ،،ما،، کلمه عامه ده دا د ربا قليل اوکثير مقدار دواړو ته شامل دې.

② دحجة الوداع په موقع باندې رسول الله ﷺ دا اعلان کړې وو.((الربوا موضوع كله وأول الربوا أضعه ربوا العباس بن عبدالمطلب فإنه موضوع كله))دلته کښې د ،،کل،، کلمه د ربا د هرڅومره مقدار په حرمت کښې صريح دې.

③ د حضرت علی رضی الله عنه نه يو حديث منقول دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی ((كل قرض جرنفعاً فهو ربوا))په دې حديث کښې د ،،نفعا،، کلمه په دې خبره دليل دې چه دنفع هر مقدار حرام دې ددې تفصيل نه معلومه شوه چه آيت کښې د ،،اضعافا مضاعفة،،قيد احترازی نه دې بلکه اتفاقی دې.

**سودخورو ته د جنگ اعلان:** - د ربا دحرمت آياتونه قطعی الدلالت دی او د سود لين دين کونکو په باره کښې چه څومره سخت وعيد په قرآن پاك کښې راغلې دې داسې سخت وعيد کيدې شی په بله گناه باندې نه وی راغلې الله تعالی فرمانی ((يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ فَإِنْ لَمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ))(البقرة،٢٧٨،٢٧٩)په دې آيت کښې ښکاره اعلان دې که تاسو سودی لين دين نه پريږدئ نو بيا د الله تعالی او رسول الله ﷺ جنگ ته تيار شئ.

**آيا دموجوده بينکونو سود حرام نه دے؟**

نن تولـه دنيا دسود په پنجه کښې انختې ده او دسرمايه دارانه نظام بنياد هم په سود باندې دې تول بينکونه د سود په بنياد باندې چليږی تولې سوداگرئ د سود په بنياد باندې چليږی لوئې لوئې سرمايه داران او غټې غټې کمپنئ د سود په بنياد باندې د بينك نه قرضې اخلی او په هغې باندې خپل کاروبار چلوی.

**د موجوده سود د جواز دعوی:-** په عالم اسلام کښې بعضې کسان داسې پیدا شوی دی هغوی دا دعوی کړې ده چه په موجوده بینکونو کښې چه کوم سود کیږی دا هغه سود نه دې کوم چه قرآن کریم حرام کړې دې

**د مذکوره دعوې دلیل:-** دلیل دا پیش کوی چه په هغه زمانه کښې به خلقو د ذاتی ضروریاتو دپاره قرض اخستلو مثلا که یو سړی سره به د خوراك دپاره پیسې نه وې نو هغه به د لوږې په حالت کښې یو مالدار سړی ته ورغلو اودا به ئې ورته اوئیل چه زه اوږې یم ماته څه پیسې قرض راکړه چه خپل بال بچ ته روټۍ ورکړم نو په جواب کښې به مالدار اوونیل چه زه به درته په سود باندې قرض درکړم ته دا وعده اوکړه چه ددې قرض سره به دومره سود راکوې ښکاره ده چه دا د ظلم خبره وه چه یو سړې اوږې دې او هغه د لوږې دختمولو دپاره ستا نه قرض غواړی او ته دهغه نه د سود مطالبه کوې حالانکه ستا اصلی فرض خو دا وو چه تا دخپل طرف نه د هغه دلوږې ختمولو انتظام کړې وی داسې نه چه هغه ته دې قرض ور کړې اوالتبه دهغه نه د سود مطالبه کوې د داسې سود په باره کښې قرآن کریم فرمائیلی دی که تاسو دا نه پریږدئ نو ستاسو خلاف دالله تعالی او دهغه درسول د طرف نه دجنگ اعلان دې

**په تجارتی قرضونو باندې د سود اخستلو حکم:-** لیکن ترکومې پورې چه په موجوده دور کښې د بینکونو دسود تعلق دې نو په دې کښې قرض اخستونکې غریبانان نه وی چه هغوی سره د خوراك دپاره څه نه وی او هغوی سره د مړی د کفن دفن دپاره پیسې نه وی داسې غریبانانو ته خو بینك قرض نه ورکوی که په ما او په تا کښې څوك د بینك نه د قرض اخستو دپاره لاړ شی نو د بینك خلق به مونږ اووهی او بهر ته به مو راوباسی بلکه د بینك نه قرض اخستونکی ډیر لوئې لوئې سرمایه دار او دولت مند خلق وی هغوی د لوږې لرې کولو او کفن دفن دپاره قرض نه اخلی بلکه دهغوی مقصد دا وی چه د بینك نه قرض واخلی او هغه په خپله سوداګرئ کښې اولګوی او هغې ته نوره ترقی ورکړی اوزیاته ګټه اوکړی مثلاچه د بینك نه یو لاکهه روپئ واخلی او د هغې نه دوه لاکهه جوړې کړی

بل طرف ته هغه روپئ چه سرمایه دار ئې د بینك نه قرض اخلی هغه د عوامو روپیه وی هغوی دخپل آمد نه په لږه لږه دا جمع کړې وی او په بینك کښې ئې د امانت په طور ایښې وی نوکوم سرمایه دار چه د بینك نه قرضه اخلی او د هغه نه دا مطالبه اوشی چه ددې قرض په ذریعه سوداګری کوه اوچه کومه ګټه اوشی نو په هغې کښې دومره فیصد ګټه ته بینك ته د سود په طور ادا کړه نو په دې کښې به کوم ظلم وی اوپه هغه زمانه کښې چه کوم سود رائج وو په هغې کښې به په قرض اخستونکی باندې ظلم کیدلو ددې وجه قرآن کریم هغه سود حرام کړلو نو د موجوده دور د بینکونو سود حرام نه دې

**مذكوره تقرير په بل انداز كښې:** –په نورو الفاظو كښې دا خبره داسې هم كولې شي چه يو قرض هغه دې چه هغه انسان دخپل ذاتي ضروورياتو پوره كولو دپاره اخلي داسې قرض ته صرفي قرض واني. دويم قرض هغه دې كوم چه انسان د سوداگرئ كولو او گټې كولو دپاره اخلي داسې قرض ته تجارتي او پيداواري قرض واني. د سود د جواز د قائلينو وينا ده چه قرآن كريم صرفي قرض باندې سود اخستل حرام كړې دې. په تجارتي قرض باندې سود اخستل په دې حرمت كښې داخل نه دې.

**د موجوده سود د جواز دليل:** – د سود دقائلينو جواز د قرآن كريم ددې آيت نه استدلال كوي چه (( احل الله البيع وحرم الربوا ))(البقرى رقم. ۲۷۵) په دې آيت كښې .. الربوا .. معرف باللام ده او په الف لام كښې اصل دا دې چه دا دعهد دپاره وي. نو د .. ربا .. دلفظ نه به هغه مخصوصه ربا مراد وي كومه چه زمانه د جاهليت او د نبي عليه السلام په ابتدائي دور كښې رائج وه او په هغه زمانه كښې صرف .. صرفي قرض.. او په هغې باندې د سود اخستلو رواج وو. دتجارتي قرض او په دې باندې د سود اخستو رواج نه وو. اوكوم څيزچه په هغه زمانه كښې رائج نه وو. نو قرآن كريم هغه څنگه حراموليې شي. نو د سود د حرمت اطلاق صرف په .. صرفي قرض.. باندې كيږي په تجارتي قرض باندې سود اخستو باندې ئې اطلاق نه كيږي.

**د سود د جواز قائلين:** – دا هغه استدلال دې كوم چه د په تعليمافته خلقو د طرف نه شوې دې او ددې په بنياد باندې دا وئيلې شوي دي چه د بينكونو سود جائز دې. تردې چه د مصر موجوده مفتي اعظم هم د بينكونو د سود دحلالوالي فتوى ور كړې ده او ددې فتوى دوجه په ټولو عربو كښې يو شور جوړ دې او ددې شهرت دې. ددې نه علاوه د عالم اسلام په هر گوټ كښې ددې نظرې كسان پيدا كيږي په هندوستان كښې سرسيد احمد خان. په عربو كښې مفتي عبده رشيد رضا هم ددې نظرې قائل تير شوې دې په پاكستان كښې د ډاكټر فضل الرحمان صاحب موقف هم دا وو او جسٹس قدير الدين ددې په جواز باندې يوه رساله ليكلې وه كه سړې په غور سره اوگوري. نو په ظاهر د جواز د قائلينو استدلال زړه ته دا اپيل كوي كه يو سرمايه درا د بينك نه قرض واخلي او گټه كوي. نو دهغه نه د سود په مطالبه كښې كوم ظلم او جرم دې. نو كوم كسان چه د نوئي تعليم حاملين دي. هغوى ددې استدلال نه مرغوبه كيږي او ددې حاميان جوړيږي

**د حكم تگيدل په حقيقت وي نه په صورت:** – حقيقت دا دې چه د جواز د قائلينو استدلال په يوه زبردسته غلطئ باندې مبني دې. د هغوى د استدلال صغرى اوكبرى دواړه غلطې دي. دهغوى د استدلال صغرى دا ده چه په عهد رسالت كښې تجارتي سود رائج نه وو. او كبرى دا ده چه كوم څيز په عهد رسالت كښې رائج نه وو. په هغې باندې د حرمت اطلاق نشي كيدې. دا صغرى او كبرى دواړه غلطې دي. نو د دوى استدلال هم صحيح نه دې. اول

په کبری خان پوهه کړئ چه دا کبری غلطه ده.ګورئ اصول دا دی.چه قرآن او حدیث کله یو ځیز باندې دحلت اوحرمت حکم اولګوی.نو هغه حکم ددغې ځیزپه یو خاص شکل او صورت باندې نه لګوی.بلکه د هغې ځیز په حقیقت ئې لګوی.نو کله چه هغه حقیقت موجود یږی.هلته به هغه حکم هم راځی.

**مذکوره تحقیق د مثال په رڼړا کښې:**-مثلا شراب راواخله په کومه زمانه کښې چه شراب حرام شوی وو.په هغه زمانه کښې به خلقو په خپلو کورونو کښې دننه د انګورو رس په خپلو لاسونو باندې نجوړکړلو.اوهغه به ئې زاړه کړلو.اوشراب به ئې ترې جوړول.نوکه اوس په موجوده وخت کښې یو کس اووائی.چه په هغه زمانه کښې به خلقوپه خپلو لاسونو په خپلو کورونو کښې شراب جوړولو.او په هغې کښې به ئې د صحت دحفاظت داصولوخیال نه ساتلو.نوځکه شراب حرام شوی وو.اوس چونکه په عجیبه مشینونو باندې د صحت دحفاظت د ټولو اصولو خیال ساتلې شی.اوډیر په پاکئ سره شراب جوړولښی.نوځکه د شرابو دحرمت اطلاق د موجوده دور په شرابو باندې نه کیږی.ښکاره خبره ده.چه دا استدلال بالکل د کم عقلتوب دې.ځکه چه شریعت د شرابو یو خاص شکل او صورت نه دېحرام کړې.بلکه د هغې حقیقت ئې حرام کړې دې.نوچه په کوم ځیز کښې د شرابو هغه حقیقت موجود وی.په هغې باندې به د حرمت اطلاق کیږی.برابره ده.که د هغې مخصوص صورت دنبی علیه السلام په زمانه کښې موجود وو او که نه وو.نو که نن یو سړې دا اووائی.چه د نبی علیه السلام په زمانه کښې وهسکی. بیئر او براندی موجود نه وو. نوځکه به دا حرام نه وی.ښکاره ده.چه دا خبره صحیح نه ده.ځکه چه د نبی علیه السلام په زمانه کښې اګرچه په دې نوم او په دېشکل کښې موجود نه وو.خو د هغې حقیقت یعنی داسې مشروب چه نشه راولی.موجود وو.او نبی علیه السلام دا حقیقت حرام کړې وو.اوس دا حقیقت همیشه دپاره حرام شو.که په هره زمانه کښې وی.او په کوم نوم چه وی.

**یوه لطیفه چه سندره حرام نه ده:**-دهندوستان یو سندرغاړې یو ځل حج ته لاړلو.دحج د کولو نه پس د مکې نه مدینې منورې ته تلو.په هغه زمانه کښې به په لاره کښې د ایساریدو دپاره سرائې ګانې وې.هغه هم د شپې تیرولو دپاره په یوه سرائې کښې قیام اوکړلو.لږ وخت پس هم هغې سرائې ته یو عربی سندرغاړې راغلو.سندرغاړې هم هلته وو.هندوستانی سندرغاړی ته د هغه د آواز نه ډیر سخت نفرت او کرکه ورغله.کله چه هغه سندره ونیل بند کړل.نوهندوستانی سندرغاړی اووئیل.نن دا خبره زما په ذهن کښې راغله.چه نبی علیه السلام سندرې ونیل ولې حرام کړې وی.ځکه چه هغوی د داسې میره والو سندرې اوریدلې وې.که زما سندره ئې اوریدلې وې.نو هیڅ کله به ئې سندرې نه

وي حرامې کړي.

**د سود د حلت قائلينو ته الزامي جواب:**- نن سبا دا يو مزاج جوړ شوي دي.چه د هرڅيز په باره کښې خلق وائي.چه صاحبه! د نبي عليه السلام په زمانه کښې دا څيز يا دا عمل داسې وو.ځکه نبي عليه السلام دا حرام کړي وو.او نن سبا چونکه دا عمل هغه شان نه دي پاتې شوي.نو دا حرام نه دي.تردې چه ويونکو تر دې پورې وئيلي دي.چه شريعت خنزير د دې وجه حرام کړي وو.چه خنزيز به گنده وو.پليتي به ئې خوړله.او په گنده ماحول کښې به د هغې خسمانه کيدله.خو نن سبا خو ډير په پاك صفا ماحول کښې د دې تربيت کيږي.او ددې د تربيت دپاره ئې ډير ښه فارمونه جوړ کړي دي.نواوس ددې د حرام والي څه علت نشته.نو ځکه پکار دي.چه دا حلال شي.

بيښي هم د سود په باره کښې دا وئيلي شي.که دا تجارتي سود د نبي عليه السلام په زمانه کښې وو.نو نبي عليه السلام به دا نه وو حرام کړي.ددې جواب وړاندې ور کړې شوي دي.چه شريعت کوم څيز حرام کړي.نو د هغې حقيقت حراموي.د هغې خاص شکل اوصورت نه حراموي.هم دغه شان ئې د سود حقيقت حرام کړي دي.نو په کوم ځاې کښې چه دغه حقيقت موجوديږي.هلته به حرمت راځي.برابره ده که د سود دغه مخصوص صورت د نبي عليه السلام په زمانه کښې موجود وو او که نه.

**د سود حقيقت:**- اوس دا کتل پکاردي.چه د سود حقيقت څه دي.کوم چه شريعت حرام کړي دي.او دا حقيقت په موجوده تجارتي سود کښې موجود دي او که نه؟ د سود حقيقت دا دي.چه يوکس ته کوم قرض ور کړې شي.او په هغې کښې دڅه قسم زيادت زيادت مطالبه کولې شي.مثلا ما يوکس ته سل روپۍ قرض ورکړې اوهغه سره مې دا فيصله اوکړه.چه يوه مياشت پس به ستا نه پنځه دپاسه سل روپۍ واپس اخلم.نو دا سود دي.خو که فيصله مې نه وه کړې.او ما ورته دغه شان سل روپۍ ورکړې.خوقرض اخستونکي په واپسۍ کښې په خپله خوشحالۍ باندې يو سل پنځه روپۍ راکړې.نو دا سود حرام نه دي.

**د قرض دواپسۍ ښه صورت:**-په خپله د نبي عليه السلام نه ثابته ده.چه کله به هغوی د چا مقروض شو.او د قرض مالك به د قرض د واپسۍ مطالبه اوکړله.نو نبي عليه السلام به ورته د څه زيادت سره قرض واپس کولو.چه دهغه زړه خوشحاله شي.خو چونکه دا زيادت داول نه مقرر شوے نه وو.نو ددې وجه به سود نه وو.د حديث په اصطلاح کښې دې ته ،، حسن القضاء ،، وئيلې شي.يعني په ښه طريقه قرض واپس کول.بلکه نبي عليه السلام خو تر دې پورې فرمائيلي دي. ((إن خياركم أحسنكم قضاء)) يعني په تاسوکښې بهترين خلق هغه دي.چه د قرض په واپس کولو کښې ښه سلوك اوکړي.

ددې نه معلومه شوه چه په مقررتیا سره زیات واپس کول سود دې او بغیر د مقررولو نه زیات واپس کول سود نه دې بلکه ،،حسن القضاء،، ده په هر حال د سود پورتنې حقیقت په موجوده بینکونو کښې موجود دې نو تجارتی سود هم حرام شو د پورتنی تفصیل نه د تجارتی سود دجوازد قائلینو صغری غلطه ثابته شوه

**د نبی علیه السلام په وخت کښې تجارتی وسعت:** -د هغوی د دلیل صغری دا وه چه د نبی علیه السلام په زمانه کښې تجارتی سود موجود نه وو دا صغری هم غلطه ده خکه چه د عربو هغه معاشره چه نبی علیه السلام ورته تشریف راوړې وو په هغې کښې هم د نن نوی دور د تجارت تقریبا د ټولو بینادونه موجود وو مثلا نن سبا مشترکه کمپنیانې جوړیږی کومو ته چه ،،جوائنټ سټاك کمپنیان،، وائی ددې په باره کښې دا خیال دې چه دا د څوارلسمې صدئ پیداوار دې ددې نه وړاندې ددې وجود نه وو خو چه کله مونږ د عربو تاریخ راواخلو او اوګورو نو دا په نظر راځی چه د عربو هره قبیله یوه ځان ته ،، جوائنټ سټاك کمپنی ،، وه خکه چه په هره قبیله کښې به د تجارت طریقه دا وه چه د قبیلې هر یوکس به یوه یوه روپئ او یو یو دینار راوړل او په یو ځاې کښې به ئې جمع کړل بیا به دغه روپئ د قافلې کسانو شام ته یوړې اومال تجارت به ئې واخستلو تاسو به د تجارتی قافلو نوم اوریدلې وی هغوی به هم دا کار کولو په قرآن پاك کښې چه کوم دا یو آیت دې ((لِإِيلَافِ قُرَيْشٍ إِيلَافِهِمْ رِحْلَةَ الشِّتَاءِ وَالصَّيْفِ))(القریش،)

په دې آیت کښې چه د ګرمئ او یخنئ د کومو سفرونو ذکر دې ددې نه مراد هم دا تجارتی قافلې دی کومې چه به په یخنئ کښې یمن طرف ته او په ګرمئ کښې شام طرف ته سفر کولو او په هغه ځاې کښې به ئې سامان تجارت واخستلو او په مکه کښې به ئې خرڅولو په دې قافلو کښې به بعضې وخت یو یو کس د خپلې قبیلې نه لس لاکهه روپئ قرض اخستل ښکاره خبره ده هغوی به دا قرض د خوراك څکاك د ضرورت دپاره یا د کفن دفن د انتظام دپاره نه اخستلو بلکه د تجارتی مقصد دپاره به ئې اخستلو

**دحضرت ابوسفیان تجارتی قافله:** - حضرت ابوسفیان رضی الله عنه چه د کومې تجارتی قافلې سره دشام نه مکې معظمې ته راتللو په هغې باندې مسلمانانو دحملې اراده اوکړله د هغې په نتیجه کښې دمسلمانانو اوکافرانو په مینځ کښې جنګ بدر پیښ شو ددے قافلې په باره کښې محدثینو اواصحاب السیرولیکلی دی ((لم یبق قرشي ولا قرشية عنده درهم إلا بعث به في العير)) یعنی دکوم قریشی سړی یا ښځې سره یوه روپئ هم وه نو هغه ئې په دې تجارتی قافله کښې لیږلې وه ددې نه معلومه شوه چه دې تجارتی قافلو به داسې مشترکه تجارت کولو

په روایاتو کښې راځی چه په بنو مغیره او بنو ثقیف قبیلو کښې به په خپل مینځ کښې د

سود لین دین وو یوې قبیلې به د بلې قبیلې نه په سود باندې قرض اخستلو او بلې قبیلې به ورته قرض ورکولو یوې قبیلې به د سود مطالبه کوله او بلې قبیلې به سود ورکولو او دا ټول تجارتی قرض وو.

**دټولو څخه وړومبې معاف شوې سود:**-د حجت الوداع په موقع باندې چه کله رسول الله ﷺ د سود د حرمت اعلان اوکړلو نو په هغه وخت کښې هغوی دا ارشاد فرمائیلې وو.

((وربوا الجاهلية موضوع، وأول ربوا أضعه ربوا العباس بن عبد المطلب فإنه موضوع كله)) یعنی نن ورځ د جاهلیت سود معاف شو او د ټولونه اول سود کوم چه زه معاف کوم دحضرت عباس رضی الله عنه سود دې هغه ټول ختم شو حضرت عباس رضی الله عنه به خلقو ته په سود باندې قرض ورکولو ددې وجه نبی علیه السلام اوفرمائیل چه زه نن ورځ د هغوی هغه سود معاف کوم کوم چه دخلقو په ذمه دې په روایاتو کښې راغلی دی چه هغه سود لس زره مثقاله سره زر وو او یو مثقال تقریبا څلور ماشې وی اودا لس زره مثقاله سره زر سرمایه او راس المال نه وو بلکه دا هغه سود وو کوم چه په اصل رقم باندې واجب شوې وو ددې نه اندازه اولګوئ چه هغه قرض چه په هغې لس زره مثقاله سره زر سود خیژی هغه به صرف د خوراك څکاك د ضرورت پوره کولو دپاره اخستې شوې وو؟ښکاره خبره ده چه دا قرض د تجارت په غرض اخستې شوې وو.

**دصحابو په دور کښې د بینکارئ یو مثال:**-د صحیح البخاری په کتاب الجهاد کښې دی چه حضرت زبیر بن عوام خپل ځان ته بینبی داسې نظام جوړ کړې وو لکه څنګه چه نن سبا د بینکونو نظام دې خلقوبه دهغه سره ډیرې لوئې رقمونه د امانت په شکل کیخودلې نوهغوی به ورته وئیل. ((لا ولكن هو السلف))دا امانت نه بلکه قرض دې یعنی زه دا رقم ستا نه بطور د امانت نه بلکه دقرض اخلم دا به زما په ذمه قرض وی لیکن هغوی به داسې ولې کولو؟حافظ بن حجر رحمه الله په فتح الباری کښې ددې وجه دا لیکی. چه دقرض په صورت کښې د دواړو طرفونو فائده وه دامانت کیخودونو دپاره خو دا فائده وه که دا رقم د امانت په طور کیخودې شوې نو په دې صورت کښې که دحفاظت باوجود که هلاك شوې وې یا غلا شوې وې نو د هغې ضمان په حضرت زبیر بن عوام رضی ا لله عنه باندې نه راتلو ځکه چه دامانت ضمان نه وی په خلاف د قرض د رقم ځکه که قرض هلاك شوې وې یا غلا شوې وې نو ددې ضمان په قرض اخستونکی باندې راځی نو د امانت کیخودو والا به دا فائده وه چه د هغوی رقم به محفوظ او مضمون شو اوبل طرف د حضرت زبیر بن عوام رضی الله عنه دا فائده وه چه هغه ته به د دې خبرې اختیار حاصل شو چه هغه به هغه رقم په کوم ځای کښې چه خوښه وه خرچ کولې شو او په تجارت کښې به ئې لګولې شو ځکه که دغه رقم به بمبنت وو نو امانت

محضه په تجبرت کښې لګول جېنز نه دی کله چه حضرت زبیر رضی ي لله عنه وفې شو نو : هغه خوی حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه دهغه د قرضونو حساب اولګولو. هغوی فرمائی ((فحسبت ما علیه من الدیون، فوجدته ألفی ألف ومأتی ألف)) یعنی ما چه کله دهغه په ذمه د واجب الاداء قرضونو حساب اولګولو. نو دویشت لاکهه دیناره وو.ښکاره خبره ده.چه دومره لوئے قرض تجارتی قرض وو.صرفی قرض نه وو.معلومه شوه.چه د.نبی علیه السلام په زمانه کښې د تجارتی قرضونو رواج وو.

**په عهد فاروقی کښې د تجارت دپاره د قرض اخستلو مثال:**—په تاریخ طبری کښې ئې د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د دور خلافت په حالاتو کښې لیکلی دی.چه هنده بنت عتبه چه حضرت ابوسفیان رضی الله عنه ښځه وه.حضرت عمر رضی الله عنه ته راغله.او د بیت المال نه ئې د قرض اخستلو اجازت طلب کړلو.حضرت عمر رضی الله عنه د قرض اخستلواجازت ورکړلو. هغې د قرض دا روپۍ واخستې.او،، بلاد کلب،، ته لاړله اوتجارت ئې اوکړلو.ددې نه ښکاره شوه.چه دا قرض د لوږې لرې کولو دپاره یا د کفن دفن دپاره نه وو اخستې شوې.بلکه دتجارت دپاره اخستې شوې وو.هم دغه شان نور ډیر مثالونه د نبی علیه السلام او صحابه کرامو د زمانې موجود دی.کوم چه په تکمله فتح الملهم کښې په تفصیل سره لیکلی دی.هلته دې اوکتلې شی.

د پورتنی تفصیل نه ښکاره شوه.چه دا وینا بیبنی غلطه ده.چه په عهد رسالت کښې به تجارتی قرضې نشوې اخستې.بلکه دتجارتی قرضو رواج وو.خود نبی علیه السلام د سود د حرمت داعلان نه پس په هغې باندې د سود لین دین بند شوې وو.نو د تجارتی سود د جواز قائلینو چه کوم دلیل پیش کړې وو.د هغې صغری او کبری دواړه غلطې ثابتې شوې.

**د سود دجواز د قائلینو یو بل استدلال:**—د سود د جواز د قائلینو د طرف نه یو استدلال دا هم کولې شی.که یو کس د خپل ذاتی ضروریاتو دپاره یا د خوراك څکاك د ضروریاتو دپاره قرض غواړی.او قرض ورکونکیکس دقرض ورکولو نه وړاندې د هغه نه د سود مطالبه کوی.نو دا د ظلم او بې انصافۍ خبره ده.او یو غیر انسانی حرکت دې.لیکن کوم کس چه د تجارت دپاره قرض غواړی.چه ددې قرض دا روپۍ په تجارت کښې اولګوی اود زیاتې نه زیاته ګټه اوکړی.که دهغه نه د سود مطالبه او کړې شی.نو په دې کښې د ظلم څه خبره نشته.او ددې استدلال په تائید کښې د قرآن پاك دا آیت پیش کوی. ((وَإِنْ تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ لَا تَظْلِمُونَ وَلَا تُظْلَمُونَ))(البقرة «٢٧٩») یعنی که تاسو د سود نه توبه اوباسئ.نو بیا چه ستاسو کوم راس المال دې.هغه ستاسو حق دې.نه به تاسو ظلم کوئ.او نه به په تاسو ظلم اوشی.ددې آیت نه دا معلومیږی.چه د سود د حرمت علت ظلم

دې او دا ظلم صرف په صرفی سود کښې دې په تجارتی سود کښې نشته.ددې وجه تجارتی سود حرام نه دې

**په علت او حکمت کښې فرق:**—په دې دليل کښې پرله پسې څو غلطئ دی اوله غلطی دا ده چه په دې دليل کښې ئې ظلم د ،، ربا،، د حرمت دپاره علت ګرځولې دې حالانکه ظلم لرې کول د ،، ربا،، د حرمت دپاره علت نه دې بلکه ددې حکمت دې او د حکم دارومدار په علت وی په حکمت نه وی ددې ساده غوندې مثال داسې اوګنړئ تاسو به کتلې وی چه په سړکونو باندې اشارې لګيدلې وی په هغې کښې درې رنګه باتئ وی سره ،پيکه سره ، او شنه، کله چه سره باتئ اولګی نوپه دغه وخت کښې دا حکم وی چه اودريږه او کله چه شنه باتئ اولګی .نو په هغه وخت کښې دا حکم وی چه روان شه اود اشارې دا نظام ئې ددې دپاره مقرر کړې دې چه ددې په ذريعه په ټريفك کښې نظم وضبط قائم کړی او د حادثاتو مخ نيوې اوشی او د جنګيدو خطره کمه شی په دې کښې چه دا خبره اوشوه چه په سره باتئ باندې اودريږه دا حکم دې او سره باتئ ددې حکم علت دې اوددې په ذريعه د حادثاتومخ نيوې ددې حکم حکمت دې اوس يو سړې د شپې دولس بجې ګاډې چلوی اودې اشارې ته راورسيدو نو سره باتئ لګيدلې ده خو د څلورو واړو طرفونو نه ټريفك او ګاړی نه راځی او د جنګيدو څه خطره نشته په دې وخت کښې اګرچه ددې حکم حکمت نشته خو بيا هم د هغې ډرائيور دپاره ګاړې اودرول ضروری دی څکه چه د اودريدو د حکم چه کوم علت دې يعنی سره باتئ هغه شته که هغه اونه دريدو نو د قانون د خلاف ورزئ په سزا کښې به نيولې شی

**دشرابو د حرمت حکمت:**—دغه شان چه دشريعت څومره احکام دی په دې ټولو کښې د حکم مدار په علت وی په حکمت نه وی د دنيا په قوانينونو کښې هم دا اصول موجود دی او د شريعت په قانون کښې هم دا اصول جاری دی قرآن کريم د شرابو په باره کښې فرمائيلی دی ((إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ وَعَنِ الصَّلَاةِ))(المائده،

**د شرابو د حرمت دوه علتونه:**— (١) په دې آيت کښې الله تعالی د شرابو اوجوارئ دحرمت يوحکمت دابيان کړې دې چه ددې دوجه په خپل مينځ کښې بغض اودشمنی پيدا کيږی.
(٢) انسان ددې د وجه دالله تعالی د ذکر نه غافله کيږی

**يوغلط استدلال:**—اوس که يوکس دا اووائی چه شراب او جواری په هغه وخت کښې حرامه ده چه ددې د وجه دشمنی او بغض پيدا کيږی اوکه دشمنی اوبغض نه پيدا کيږی نوحرام به نه وی ښکاره ده چه دا استدلال صحيح نه دې څکه چه د دشمنی او بغض پيدا کيدل د شرابو او جوارئ حکمت دې علت نه دې ګنی نن سبا څو خلق

واني چه شراب د دشمنئ پيدا كولو په ځاې محبت اودوستي پيدا كوي.كله چه دوه دوستان په خپلو كښې ملاو شي.نو د شرابو جامونه د يو بل د جام سره اوجنګوي.او دا ددې خبرې علامت دې چه زمونږ دواړو په مينځ كښې دوستي جوړه شوه.دا خبره يو شاعر بيانوي اوفرمائي.

(پیانه وفا بر سر پیانه ہوا تھا)

د اولې پيمانې نه مراد عهد او د دويمې پيمانې نه مراد د شرابو جام دې.يعنى د شرابو په جام باندې د وفا عهد شوې وو.سوال دا دې.كه شراب د بغض او دشمنئ په ځاې د دوستئ پيدا كولو ذريعه وى.نو په دې صورت كښې خوبه بيا شراب حلال شي؟

**دويم غلط استدلال:**-يا يوسړې داسې اووائي.چه زه شراب څكم.خو د الله تعالى دياد نه نه غافله كيږم.نو څكه زما دپاره شراب حلال دى.نو آيا د داسې سړى دپاره به شراب حلال شي؟څكه د الله تعالى د ذكر نه غفلت د شرابو د حرمت حكمت دې.علت نه دې او د حكم دارومدار په علت وى په حكمت نه وى.

**د سود په باب كښې هم دغه غلط استدلال:**-بيښى هم داسې د سود د حرمت په باره كښې قرآن كريم كښې فرمائي.چه ((لَا تَظْلِمُوْنَ وَلَا تُظْلَمُوْنَ)) (البقرة،٢٧٩) دا ئې په طور د حكمت بيان كړې دې.په طور د علت ئې نه دې بيان كړې.نو د سود د حراموالي دارومدار په ظلم او نه ظلم باندې نه دې.بلكه د سود د حقيقت په موجودوالي باندې دې.په كوم ځاې كښې چه د سود حقيقت موجود وى.هلته به حرمت وى.كه ظلم راشي اوكه رانشي.دا خو اولنئ غلطي وه.

**په شرعي احكامو كښې د امير او غريب عدم فرق:**-دويمه غلطي دا ده.چه د سود دجواز قائلين وائي.كه په .. صرفي قرضونو ..كښې څوك د سود مطالبه كوي.نوچونكه صرفي قرض.. غوستونكې غريب دې.ددې وجه دهغه نه د سود مطالبه كول ظلم دې.د تجارتي قرضونو په خلاف څكه چه په دې كښې د قرض طلبګار سرمايه دار او مالدار وى.او دده نه د سود مطالبه كول ظلم نه دې.دا هم يوه غلطي ده.چه په يو ځاې كښې سود اخستل ظلم دې.او په بل ځاې كښې ظلم نه دې.حالانكه اصل سوال دا دې.چه په قرض باندې د سود مطالبه كول جائز ده كه نه ده؟ كه ته دا وايې چه په قرض باندې د سود مطالبه كول جائز نه ده.نو بيا په دې كښې د مالدار او غريب په مينځ كښې څه فرق نه دې كول پكار.

**د مثال په رڼا كښې وضاحت:**-دا خبره د يو مثال نه اوپيژنئ.څنګه چه يو نانباى روټئ خرڅوي.او د يوې روټئ خرڅه دولس آنې راخي.او څلور آنې هغه د خپلې ګټې مقرر كړي.او په يوه روپئ روټئ خرڅوي.او هغه د غريب او مالدار په مينځ كښې څه فرق نه وى مقرر كړې.بلكه ټولو ته ئې په يو قيمت باندې وركوي.ليكن څوك هم هغه ته دا نه

وائي چه نه په غريب باندې په يوه روپۍ روتۍ خرخوي او ظلم کوي.خکه چه هغه خپل حق اخلي او د مالدار او غريب دواړو نه د گټې مطالبه کول جائز ده ظلم نه دي

**مقصودي څېړه:**-سالکل هم داسې يو غريب سړي د بل نه د قرض مطالبه کوي.او هغه دويم کس په دې قرض باندې د سود مطالبه کوي نوته دا وائي چه چونکه قرض اخستونکې غريب دې.نو دهغه نه دسود مطالبه کول ظلم دې.سوال دا دې چه يونانبائي په غريب سړي باندې په يوه روپۍ روتۍ خرڅوي نو دا ظلم نه دې اوبل کس د غې غريب نه په قرض باندې د سود مطالبه کوي.نو ته وايې چه دا ظلم دې.

**د بحث نتيجه:**-ددې نه معلومه شوه چه د ظلم علت د کاروبار کونکي غربت نه دې بلکه د ظلم اصل علت روپۍ دی.اودا علت چه لکه څنګه دغريب په قرض کښې موجود دې دغه شان د مالدار په قرض کښې هم موجود دې.حاصل د بحث دا شو چه په روتۍ باندې د گټې مطالبه کول او د خپلې خرچې نه په زيات قيمت باندې خرڅول څنګه ظلم نه دې.بلکه جائز دې.او دانصاف مطابق خبره ده.ليکن په روپو باندې د زيادت مطالبه کول د انصاف نه هم خلاف ده.اود شريعت نه هم خلاف ده.خکه چه روپۍ داسې څيز نه دې چه په دې باندے د گټې مطالبه اوشي.نو روپيې چه څوك قرض اخلي.که هغه غريب وي او که مالدار په دواړو صورتونو کښې پرې د حرمت حکم جاري کيږي.

**په گټه اونقصان دواړو کښې د شرکت لزوم:**-د تجارتي سود د جواز قائلين يوه خبره دا هم کوي چه په تجارتي سود کښې ظلم نشته.دا هم يوه غلطي ده.د دې لږ په تفصيل سره د پيژندو ضرورت دې .شريعت دا اصول مقرر کړې دی.که ته يو کس ته روپۍ قرض ورکوې نوته د وړاندې نه دا فيصله اوکړه.چه په دې روپو باندې ته دهغه امداد کول غواړې اوکه هغه سره په کاروبار کښې شريکيدل غواړې.که د قرض ورکولو نه ستا مقصد هغه سره مدد کول وي.نو بيا هغه صرف امداد پاتې کيدل پکار دې په هغې باندې ستا دپاره د زيادت مطالبه کول جائزنه دی.اوکه ددې روپو په ذريعه ته دهغه سره په کاروبر کښې شريکيدل غواړې.نو بيا به ستا دپاره په دې کاروبار کښې په گټه او تاوان دواړو کښې شريکيدل وي.دا نشي کيدې چه ته دا اووايې چه په گټه کښې به حصه دېر يم.هو په تېوبن کښې به حصه دېر نه يم

په تجېرتي سود کښې قرض ورکونکې بينك سرمېيه دېر ته وېنی.چه په دې قرض به ستا نه پنځلس فيصده سود اخلم.که تاته په دې تجارت کښې گټه کيږي او که نقصان. زما ستا گټې اوتاوان سره څه غرض نشته زما غرض صرف خپل سود سره دې.ښکاره خبره ده.چه دا خبره د شريعت داصولو نه خلاف ده.

**په موجوده سود کښې د طرفينو د ظلم وجوه:**- ددې تجارتي سود معمه داسې ده.چه ددے په هر صورت کښې ظلم دې.که سرمايه دار سوداگر ته گټې وي.نو بيا هم ظلم

دي او که نقصان وی نو بیا هم ظلم دې د گټې په صورت کښې قرض ورکونکی باندې ظلم دې او د نقصان په صورت کښې قرض اخستونکی باندې ظلم دې.نن چه په دنیا کښې په بینکونو کښې څنګه مالیاتی نظام چلیږی.په دې کښې په قرض ورکونکی باندې زیات ظلم دې

**په قرض ورکونکی باندې د ظلم د زیادت وضاحت:**-په دې خبره د پوهیدلو دپاره اول دا خبره زده کړئ چه عام طور په بینکونو کښې د خلقو امانتونه کیخودې شوی وی. لکه چه د خلقو د روپو دوجه بینکونه جوړ شوی دی.لیکن که هم دا عوام د بینک نه د قرض اخستلودپاره ورشی.نو بینک دوی ته قرض نه ورکوی.بلکه بینک هغه سرمایه دارانو ته قرض ورکوی.چا سره چه د وړاندې نه سرمایه موجوده وی.لیکن د بینک نه قرض واخلی او په ډیره لویه پیمانه باندې تجارت کول غواړی.یا هغه سرمایه دار چه دهغوی فیکټریانې اوملونه چلیږی.هغوی په هغې کښې د نور زیادت دپاره دبینک نه قرضه اخلی

**د سوداګر د ګټې صورت:**-اوس داسې کیږی.مثلا که یو سرمایه دار د بینک نه یو لاکهه روپۍ په پنځلس فیصد سود په بنیاد باندې قرض اخستې وی.او په هغې کښې څه روپۍ دخپل طرفه ملاو کړی.او کاروبار شروع کړی.بعضې وخت په کاروبار کښې سل فیصده ګټه اوشی.اوبعضې وخت کمه هم اوشی.اوس فرض که دغې سرمایه دار ته په دې کاروبار کښې سل فیصده ګټه اوشوه.چه د هغې په وجه د یولاکهه روپو نه دوه لاکهه روپۍ جوړې شوې.یو لاکهه دغه سرمایه او یو لاکهه ګټه.او په دې ګټه کښې هغه بینک ته پنځلس زره د سود په طور باندې ورکړې.او باقی ۸۵ زره روپۍ ئې په خپل جیب کښې کیخودلې اوبیا بینک د دغې پنځلس زره روپو نه خپل اخراجات او مصارف اوباسی.اود هغې نه پس صرف اووه زره روپۍ هغې عوامو ته ورکړی.د چا په پیسو چه سوداګر تجارت اوکړلو اویو لاکهه روپۍ ئې اوګټلې اوپه هغې کښې په خپله سوداګر پنځه اتیا زره روپۍ واخستې ددې نه اندازه اوکړئ چه دا په عوامو باندې څومره لوئې ظلم دې لیکن دا عوام ډیر خوشحاله دی چه هغه ته په یو لاکهه روپۍ اووه زره روپۍ ګټه ملاو شود حالانکه د هغه په یو لاکهه روپو باندې د یو لاکهه روپو ګټه شوې ده.

**د عوامو په ګټه دوباره قبضه:**-بیا بل طرف ته چه عوامو ته کومې اووه زره روپۍ ملاو شی سرمایه دار دغه اووه زره روپۍ هم په بل طرف قبضه کړی.او هغه داسې چه د سوداګرو اصول دا دی چه هغه کوم سود بینک ته ورکوی.نو هغه دغه سود په خپلو تیار کرو څیزونو په خرچه کښې حسابوی.مثلا فرض کړه چه دې سوداګر په لاکهه روپۍ باندې کپړه تیاره کړه.د هغې کپړې د نرخ لګولو نه وړاندې هغه په دغه کپړه باندې د راغلی خرچ حساب لګوی.او په دغه خرچه به دغه پنځلس زره سود هم شاملوی.کومې چه هغه د سود په طور بینک ته ور کړې وې.او بیا په هغې باندې خپله ګټه مقرر کړی.او

دکېږې قيمت اولګوی هم دغه شان د کېږې په قيمت کښې په خپله د پنځلس فيصد سود زيادت راغې او په بازار کښې چه دغه کېږه کله عوام اخلی نو هغه پنځلس فيصده سود به ورکوی کوم چه ده د بينك نه اخستې وو نو په دې طريقه يو طرف ته سرمايه دار عوامو ته اووه فيصده ګټه ورکړی اوبل طرف ته د دغې عوامو نه پنځلس فيصده اخلی خو دا عوام بيا هم خوشحاليږی چه ماته اووه فيصده ګټه ملاو شوه حالانکه په حقيقت کښې :وی ته په يو لاکهو روپو کښې د ۹۳ زرو روپوګټه ملاو شوه

**د سوداګرد نقصان صورت:-** دا تفصيل خو په هغه صورت کښې وو چه سوداګر ته ګټه شوې وه او که نقصان ورته اوشی نو د نقصان د پوره کولو دپاره هغه نور قرض د بينك نه واخلی او د قرض په رقم کښې زيادت کيږی د هغې په نتيجه کښې هغه بينك ديواليه شی او د بينك د ديواليه کيدو مطلب دا دې چه کومو خلقو په دغه بينك کښې روپئ جمع کړې وې اوس به ورته هغه واپس نه ملاويږی لکه يو څو کاله وړاندې ،، بي سی سي آئی ،، بينك کښې شوې وو لکه چه په دې صورت کښې ټول نقصان د عوامو کيږی دسوداګر څه نقصان اونشو ددې نه اندازه اولګوئ چه د تجارتی سود په صورت کښې چه کوم ظلم کيږی نو دې د ،، صرفی سود ،، ظلم ته هم شکست ورکړلو ځکه چه په تجارت کښې پيسې ټولې د عوامو استعماليږی او بيا که ګټه وی نو د سرمايه دار وی اوکه نقصان وی نو دعوامو وی ددې نه زيات ظلم بل څه کيدې شی؟

دا خو د نقصان هغه صورت وو په کوم کښې چه بينك ديواليه شی ليکن که ددې تجارت په مينځ کښې د سرمايه دار څه معمولی نقصان اوشی مثلا هغه د کېږې جوړلو دپاره مالوچ اخستې وو اومالوچو ته اور اولګيدو نو ددې نقصان د کمی پوره کولو دپاره دې سرمايه دار يوه بله لار اختيار کړې ده هغه ده ،، انشورنس کمپنی،، نو هغه بيمه کمپنی .. به د دې نقصان تلافی کوی او په بيمه کمپنئ کښې چه کومې روپئ دی نو هغه هم د عوامو دی هغه عوام کوم چه خپل ګاډې تر هغه وخته پورې په سړك باندې نشی چلولې ترڅو پورې چه ئې بيمه کړې نه وی د عوامو د ګاډو حادثه خو ډيره کمه پيښيږی ليکن هغه د بيمې قسطونه هره مياشت مجبورا جمع کوی نو دغه سرمايه دار هم ددې عوامو په پيسو باندې دخپل نقصان کمې پوره کوی.

**د سود ادنی حصه دخپلې مور سره د زنا برابريدل:-** دا ټوله معمه ددې دپاره کولې شی که ګټه وی چه د سرمايه دار وی اوکه تاوان وی چه د عوامو وی اوددې په نتيجه کښې دولت دغريبانانو خلقو په ځاې مالدارانو ته ځی هغوی ورځ په ورځ مالداريږی او غريبانان ورځ په ورځ غريبيږی هم ددې مفاسدو دوجه نبی عليه السلام فرمائيلی دی.

((إن الربوا بضع وسبعون شعبة أدناها كالذي يقع على أمه)) يعني د سود څه دپاسه اويا حصې دی.

او ددې د ټولو نه وړه حصه داسې ده لکه چه خپلې مور سره زنا کول العياذ بالله. نو دا وئيل چه په تجارتي سود کښې ظلم نشته بالکل غلطه ده ددې نه به زيات ظلم نور کوم وی چه اجتماعی طور ټول قوم په معاشی بدحالئ کښې اخته کولی شی نن په ټوله دنيا کښې سودی نظام شروع دې او دې نظام ټوله دنيا د تباهئ په غاړه اودرولې ده او انشاء الله يو وخت به داسې راشی چه خلقو ته به ددې حقيقت معلوم شی او دوی ته به پته اولګی چه قرآن پاك د سود خلاف د جنګ اعلان ولې کړې وو؟

**[٢٨٠٩] په شپږو څيزونو کښې د سود راتلل**

٢٨٠٩ - [٣] (١) ١ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ٢ «الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ وَالْفِضَّةُ بِالْفِضَّةِ ٣ وَالْبُرُّ بِالْبُرِّ، وَالشَّعِيرُ بِالشَّعِيرِ ٤ وَالتَّمْرُ بِالتَّمْرِ، وَالْمِلْحُ بِالْمِلْحِ، ٥ مِثْلًا بِمِثْلٍ، يَدًا بِيَدٍ، ٦ فَمَنْ زَادَ أَوِ اسْتَزَادَ فَقَدْ أَرْبَى، ٧ الْآخِذُ وَالْمُعْطِي فِيهِ سَوَاءٌ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ سره زر د سرو زرو په بدله کې سپين زر د سپينو زرو په بدله کې ٣ غنم د غنمو په بدله کې اوربشې د اوربشو په بدله کې ٤ کجورې د کجورو په بدله کې او مالګه د مالګې په بدله کې که ورکول شي ٥ نو د دوئ لين دين برابر برابر او لاس په لاس کيدل پکار دی ٦ نو (چا چې داسې ونه کړل بلکه) زيات يې ورکړل يا زيات يې طلب کړل او وايې خستل نو ګوياکې هغه سود واخستلو او سود يې ورکړي ٧ او اخستونکی او ورکونکي دواړه په دې کې برابر دي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① زَادَ: أَيْ: أَعْطَى الزِّيَادَةَ: زيات ئې ورکړل ② اسْتَزَادَ: أَيْ: طَلَبَ الزِّيَادَةَ: زيات ئې اوغوښتل ③ أَرْبَى: أَيْ: طَلَبَ الرِّبَا: سود ئې واخستلو يا ځان ئې په سود کښې اخته کړو ④ الْآخِذُ: اخستونکې د سود. ⑤ الْمُعْطِي: ورکونکې د سود.

**[٢٨١٠] د سرو زرو او سپينو زرو په خپل منځ کښې د بدلولو حکم**

٢٨١٠ - [٣] (٢) ١ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ٢ «لَا تَبِيعُوا الذَّهَبَ بِالذَّهَبِ إِلَّا مِثْلًا بِمِثْلٍ ٣ وَلَا تُشِفُّوا بَعْضَهَا عَلَى بَعْضٍ ٤ وَلَا تَبِيعُوا الْوَرِقَ بِالْوَرِقِ إِلَّا مِثْلًا بِمِثْلٍ، ٥ وَلَا تُشِفُّوا بَعْضَهَا عَلَى بَعْضٍ ٦ وَلَا تَبِيعُوا مِنْهَا غَائِبًا بِنَاجِزٍ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ٧ وَفِي رِوَايَةٍ " «لَا تَبِيعُوا الذَّهَبَ بِالذَّهَبِ، وَالْوَرِقَ بِالْوَرِقِ، إِلَّا وَزْنًا بِوَزْنٍ» ".

**ترجمه:** ١ حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ سره زر د سرو

(١) اخرجه مسلم فی کتاب المساقاة/باب الصرف وبيع الذهب بالورق نقدا (رقم-٨٢ - (١٥٨٤)
(٢) اخرجه البخاری فی کتاب البيوع/باب بيع الفضة بالفضة (رقم-٢١٧٧) ومسلم فی کتاب المساقاة/باب الربا (رقم-٧٥ - (١٥٨٤) والنسائی فی کتاب البيوع/باب بيع الذهب بالذهب (رقم-٤٥٧٠) ومالک فی الموطا کتاب البيوع/باب بيع الذهب بالفضة تبرا وعينا (رقم-٣٠) واحمد فی المسند: ٩٣/٣

زرو په بدله کې مه خرڅوئ خو دا چې دواړه په وزن کې برابر برابر وي [۳]نو په دي دواړو کې کمی زیاتی مه کوئ [۴]د غه شان سپین زر د سپینو زرو په بدله کې مه خرڅوئ خو دا چې دواړه برابر وي [۵]نو په دواړو کې کم والی زیاتوالی مه کوئ[۶] او په دي سرو زرو او سپینو زرو کې د هیڅ یوه په خپلو کې لین دین داسې مه کوئ چې یو نقد وركړي او بل قرض. بخاري مسلم.

[۷]او په یوروایت کې دا الفاظ دی چې سره زر د سرو په بدله کې سپین زر د سپینو زرو په بدله کې مه خرڅوی که څه هم چې په وزن کې برابر برابر وی. بخاري مسلم.

**حل اللغات** - ① لَا تُشِفُّوا: أي: لَا تُفَضِّلُوا: اضافه مه کوئ یعنی برابر سرابر لین دین کوئ. ② الْوَرِقَ: أي: الْفِضَّةَ: چاندی، سپین زر. ③ مِثْلًا بِمِثْلٍ: چه جنس ئې یو وی ④ غَائِبًا: أي: نَسِيئَةً: قرض ⑤ بِنَاجِزٍ: أي: بِحَاضِرٍ وَنَقْدٍ: حاضر اونقد ته ناجز ونیلی شوي دي

**تسهيلات:**

**قوله: وَلَا تُشِفُّوا:**

**د مذکوره جملې ترکیبی حیثیت:** -ملاعلی قاری رحمه الله لیکی چه دا جمله ماقبل "مثلاً بمثل" دپاره تاکید دي او هاء ضمیر ذهب طرف ته راجع دي دذي طرف ته دمؤنث ضمیرهم راګرځولی شی

**قوله: غَائِبًا:**

**د یوې فقهی مسئلې استنباط:** -دذي حدیث نه علماؤ داخبره راویستي ده چه د سرو زرو په کلو اود سرو زرو په ځنیته کنبي هم وزن کولوکنبي برابری ضروری ده د کلو جوړولو اضافی رقم اخستل جائز نه دی

**[۲۸۳]د هم جنس څیزونو تبادله برابر برابر کول**

۲۸۳-[د]( )[۱]وَعَنْ مَعْمَرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-، قَالَ: [۲]كُنْتُ أَسْمَعُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "[۳]«الطَّعَامُ بِالطَّعَامِ مِثْلًا بِمِثْلٍ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱]حضرت معمر ابن عبد الله رضي الله عنه وايي [۲]ما به د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه دا اوریدل [۳]چې غذا د غذا په بدله کې (یعني غله د هم جنس غلي په بدله کې، که وآخستی شي ورکول شي نو دا لین دین برابر برابر کیدل پکار دی. (مسلم)

**حل اللغات** - ① الطَّعَامُ: هُوَ اسْمُ مَا يُؤْكَلُ: دخوراک هر څیز ته شامل دي خوددي اطلاق په غله یعنی غنمو او اوربشو باندې کیږی

( ) اخرجه مسلم فی كتاب المساقاة/باب بيع الطعام مثلا بمثل (رقم-۹۳ - (۱۵۹۲) ومسلم فی كتاب المساقاة/باب بيع الطعام مثلا بمثل (رقم-۹۳ - (۱۵۹۲)

## [٢٨٣] په هم جنس څیزونو کښې د قرض لین دین عدم جواز

٢٨٣—[١]( )[١]وَعَنْ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢]«الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ، [٣]وَالْوَرِقُ بِالْوَرِقِ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ، [٤]وَالْبُرُّ بِالْبُرِّ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ، [٥]وَالشَّعِيرُ بِالشَّعِيرِ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ، [٦]وَالتَّمْرُ بِالتَّمْرِ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١]حضرت عمر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] د زرو په خپل منځ کښې (برابر برابر هم) تبادله سود دی خو دا چې لين دين لاس په لاس وي (يعني که د دواړو طرفو څخه برابر برابر او لاس په لاس وي نو بيا سود نه دی)[٣] دغه شان د سپينو زرو د سپينو زرو سره تبادله سود دی خو دا چې لين دين لاس په لاس وي [٤]د غنمو غنمو سره تبادله سود دی خو دا چې لين دين لاس په لاس وي [٥]د اوربشو د اوربشو سره تبادله سود دی خو دا چې لين دين لاس په لاس وي [٦]د کجورو د کجورو سره تبادله سود دی خو دا چې لين دين لاس په لاس وي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**- ① هَاءَ وَهَاءَ: دا اسم فاعل دې په معنى د خُذْ سره، يعنى لاس په لاس. نقد

**تسهيلات:**

**نوټ:**- دحديث د اجزاء تشريح د مذاهبو په بيان کښې ذکرشوې ده البته صرف د ها وها لغت دې هغه په حل اللغات کښې اوګورئ.

## [٢٨٣] په ښه او خراب کښې د تفاضل عدم جواز

٢٨٣—[٢]( )[١]وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ وَأَبِي هُرَيْرَةَ، [٢]«أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- اسْتَعْمَلَ رَجُلًا عَلَى خَيْبَرَ [٣]فَجَاءَهُ بِتَمْرٍ جَنِيبٍ، [٤]فَقَالَ: أَكُلُّ تَمْرِ خَيْبَرَ هَكَذَا؟ [٥]قَالَ: لَا وَاللهِ يَا رَسُولَ اللهِ [٦]إِنَّا لَنَأْخُذُ الصَّاعَ مِنْ هَذَا بِالصَّاعَيْنِ وَالصَّاعَيْنِ بِالثَّلَاثِ. [٧]فَقَالَ: لَا تَفْعَلْ [٨]بِعِ الْجَمْعَ بِالدَّرَاهِمِ [٩]ثُمَّ ابْتَعْ بِالدَّرَاهِمِ جَنِيبًا». وَقَالَ فِي الْمِيزَانِ مِثْلَ ذَلِكَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١]حضرت ابوسعيد او ابوهريره ﷺ راويان دي [٢]چې رسول الله ﷺ يو سړی د خيبر عامل جوړولو سره وليږلی [٣]هغه سړی چې د هغه ځای څخه واپس راغلو نو د حضور ﷺ په خدمت کې په ډير ښه قسم کجورو سره حاضر شو[٤] حضور ﷺ (هغه کجوره

( ) اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب ما يذكر في بيع الطعام والحكرة (رقم-٢١٣٤)ومسلم في كتاب المساقاة/باب الصرف وبيع الذهب بالورق نقدا (رقم-٧٩ - (١٥٨٦) وابوداود في السنن كتاب البيوع/باب في الصرف (رقم-٣٣٤٨) والترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الصرف (رقم_١٢٤٣)والنسائي في كتاب البيوع/باب بيع التمر بالتمر متفاضلا (رقم-٤٥٥٨) وابن ماجة في كتاب التجارات/باب صرف الذهب بالورق (رقم-٢٢٥٩) ومالك في الموطا كتاب البيوع/باب ما جاء في الصرف (رقم-٣٨)

( ) اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب إذا أراد بيع تمر بتمر خير منه (رقم-٢٢٠١) ومسلم في كتاب المساقاة/باب بيع الطعام مثلا بمثل (رقم-٩٥ - (١٥٩٣) والنسائي في كتاب البيوع/باب بيع التمر بالتمر متفاضلا (رقم-٤٥٥٣) ومالك في الموطا كتاب البيوع/باب ما يكره من بيع التمر (رقم-٢١)

ليدو سره، د هغه څخه پوښتنه وکړه چې آيا د خيبر ټولې کجورې داسې (ښې) دي؟[٥] هغه اوويل چې يا قسم په خداى ټولې کجورې داسې (ښې) نه دي[٦] بلکه مونږ داسې کوو چې د دوه صاع (د خرابو) کجورو په بدله کې يو صاع ښې کجورې او د دريو صاع (خرابو) کجورو په بدله کې دوه صاع ښې کجورې اخلو. [٧]حضور ﷺ ورته وفرمايل چې داسې مه کوه [٨]بلکه مخکې ټولې کجورې يو ځاى کولو سره د درهمو په عوض کې خرڅې کړه[٩] بيا د هغه درهمونو په عوض کې ښې کجورې واخله. (بخاري مسلم)

**حل اللغات** - ① اسْتَعْمَلَ : أَيْ جَعَلَهُ عَامِلًا: عامل ئې مقرر کړو، په مال راجمع کولو ئې مقرر کړو ② جَنِيب: نَوْعٌ جَيِّدٌ مِنْ أَنْوَاعِ التَّمْرِ: اعلى او عُمده قسم کهجورې ③بِعْ: خرڅې کړه. ④الْجَمْعَ: أَيْ تَمْرٌ رَدِيءٌ: ردى کجورې، معمولى کجورې. ⑤ابْتَعْ: أَيْ اشْتَرِ: واخله، خريد کړه

**تسهيلات: قوله**: بِعِ الْجَمْعَ:

**په کجورو کښې د سود نه د بچ کيدلو حيله او تدبير**:-جمع دَردى کهجورو مجموعې ته وائى يعنى خرابې کهجورې اول په دراهم باندې خرڅې کړه او په دراهم باندې بيا ښه کهجورې واخله ددې حديث په تعليم سره هرمسلمان له سوچ پکار دې که په حلال اوحرام کښې يو سړې فرق کول غواړى اودَ حرام نه دَ بچ کيدو کوشش اوکړى نودا څه ګران کار نه دې بلکه دَمعمولى حيلې په ذريعه سره سړې دَحرام نه بچ کيدې شى نن صبا ملحدين وائى شرعى احکام په دې دورکښې نه شى چليدې دَهغوى داخبره غلطه ده دَ دين په دښمنئى کښې ده ګنى کار ډير آسان دې

**قوله**: فِي الْمِيزَانِ مِثْلَ ذَلِكَ:

**په موزونى څيزونوکښې د ښه او ردى برابرى**:-يعنى څنګه چه په مکيلى څيزونوکښې جيد او ردى برابردى دغه شان په موزونى څيزونوکښې هم جيد او ردى مساوى دى دا جائز نه دى چه عمده سرو زرو سره ردى سره زر په تبادله کښې ردى زيات واخستې شى دا سود دې څکه چه "جيدها ورديها سواء" واضح حکم دې احناف په شپږو څيزونوکښې کيل او وزن چه کوم په توګه دَ علت راويستې دې دَهغې تائيد په دې لفظ سره کيږى څکه چه دلته دَ وزن واضح لفظ موجود دې

**[٢٨٣]په خراب او ښه کښې په کمى زياتى سره سود راتلل**

٢٨٣-[٨](1)[١]وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: [٢]«جَاءَ بِلَالٌ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِتَمْرٍ بَرْنِيٍّ [٣]فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ أَيْنَ هَذَا؟[٣]قَالَ: كَانَ عِنْدَنَا تَمْرٌ رَدِيءٌ فَبِعْتُ مِنْهُ صَاعَيْنِ بِصَاعٍ[٥]فَقَالَ: أَوَّهْ عَيْنُ الرِّبَا، عَيْنُ الرِّبَا، لَا تَفْعَلْ[٦] وَلَكِنْ إِذَا أَرَدْتَ أَنْ تَشْتَرِيَ فَبِعِ التَّمْرَ بِبَيْعٍ آخَرَ ثُمَّ اشْتَرِهِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

(1) اخرجه البخارى فى كتاب الإجارة/باب: إذا باع الوكيل شيئا فاسدا. فبيعه مردود (رقم-٢٣١٢) ومسلم فى كتاب المساقاة/ باب بيع الطعام مثلا بمثل (رقم-٩٦ (١٥٩٤) والنسائى فى كتاب البيوع/باب بيع التمر بالتمر متفاضلا (رقم ٤٥٥٧)

**ترجمه**: [١] حضرت ابو سعيد رضي الله عنه وايي [٢] چې (يو ځل) بلال رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کې بنه قسم کجوري راوړي [٣] نبي عليه السلام ورته ووئيل دا قجوري دې دکوم ځائې حاصلې کړی دی؟ [۴] هغه عرض اوکړو چې زما سره ځه خرابې کجوري وي د هغه ځخه ما دوه صاع کجوري ورکولو سره د هغه په بدله کې مې دا يو صاع بنې کجوري واخستې [۵] حضور ﷺ ورته وفرمايل اوه دا خو بالکل سود دی داسې مه کوه [٦] البته چې ته خرابې کجورې، بدلول غواړې نو دا طريقه اختيار کړه چې مخکې خپلې خرابې کجورې د درهم يا د روپو په عوض کې خرڅې کړه بيا د هغه درهم يا روپو په ذريعه کجوري واخله. (بخاري مسلم)

**حل اللغات**:- ① بَرْنِيّ : وَهُوَ مِنْ أَجْوَدِ التَّمْرِ: برنی دَمدينې منورې يو قسم مشهورې کهجورې دی ② رَدِيءٌ: د فَعِيلٌ په وزن باندې د رَدَاءَة نه ماخوذ دې، ادنی او معمولی ته وائی ③ أَوَّهْ: وَهِيَ كَلِمَةُ تَحَسُّرٍ وَتَنَدُّمَةٍ: دا فسوس،خپيمانتيا اونقصان رسيدودَاظهار دَپاره داکلمه وئيلی شی ④ عَيْنُ الرِّبَا: أَيْ حَقِيقَةُ الرِّبَا الْمُحَرَّمِ: يعنی دا خوخالص سود دې کوم چه حرام د ي،ځکه چه دَ جنس اتحاد سره تفاضل راغلو

**تسهيلات**:

**قوله**: بِتَمْرٍ بَرْنِيٍّ:

**په مدينه کښې د برنی قجورو وجود**:- دا قجورې اوس هم د مدينې د کهجورو په منډئ کښې برنی کهجورې موجود دی دکوم ذکرچه په دې حديث کښې دې. دا دَ درميانه درجې ښکلې کهجورې دی

**[٢٨٥] دَيوغلام په بدله کښې د دوو غلامانو د ورکولو حکم**

٥- [۴] (١) [١] وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: [٢] «جَاءَ عَبْدٌ فَبَايَعَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى الْهِجْرَةِ، [٣] وَلَمْ يَشْعُرْ أَنَّهُ عَبْدٌ [۴] فَجَاءَ سَيِّدُهُ يُرِيدُهُ [٥] فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بِعْنِيهِ [٦] فَاشْتَرَاهُ بِعَبْدَيْنِ أَسْوَدَيْنِ [٧] وَلَمْ يُبَايِعْ أَحَدًا بَعْدَهُ حَتَّى يَسْأَلَهُ أَعَبْدٌ هُوَ أَوْ حُرٌّ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [١] حضرت جابر رضي الله عنه وايي [٢] يوغلام د نبی کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو او هغه د حضور ﷺ ځخه په هجرت بيعت وکړي (يعني هغه عهد وکړي چې زه د خپل وطن پرېښودلو سره به ستا په خدمت کې حاضر يم) [٣] او حضور ﷺ ته دا معلومه نه وه چې دی غلام دی (ځه ورځې وروسته) [۴] چې د هغه مالك د هغه په لټون کښې راغلی نو حضور ﷺ هغه ته وفرمايل چې دا غلام په ما باندې را خرج کړه [٦] نو حضور ﷺ هغه د دوو تور رنګه غلامانو په بدله کې رانيوی بيا د دې ځخه وروسته حضور ﷺ د هيچا ځخه

---

[١]) اخرجه مسلم فی کتاب المساقاة /باب جواز بيع الحيوان بالحيوان من جنسه متفاضلا(رقم-١٢٣ - (١٦٠٢) والترمذی فی کتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی شراء العبد بالعبدين (رقم_١٢٣٩) وابن ماجة فی کتاب الجهاد/باب البيعة (رقم-٢٨٦٩)

بیعت نه آخستلو د څو پورې چې دا به یې معلومه کړي نه وه چې هغه غلام دی که آزاد. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① فَبَايَعَ: أي عَاهَدَ: بیعت ئې اوکړو یعنی عهد ئې اوکړو ② لَمْ يَشْعُرْ: أَيْ: لَمْ يَدْرِ: پوهه نه شو نبی علیه السلام. ③ سَيِّدُهُ: مالک د غلام. ④ يُرِيدُهُ: أَيْ يَطْلُبُهُ: تلاش او لټون ئې کولو دخپل غلام. یا دا مطلب چه دغلام نه ئې دخپل خدمت اخستلو اراده وه ⑤ بِعْنِيهِ: راخرڅ کړه په ما باندې دا غلام. ⑥ لَمْ يُبَايِعْ: نه به بیعت کولو نبی علیه السلام. ⑦ عَبْدٌ: غلام. ⑧ حُرٌّ: آزاد

**تسهیلات:**

**قوله:** حَتَّى يَسْأَلَهُ أَعَبْدٌ هُوَ أَوْ حُرٌّ

**دمالک د اجازت څخه بغیره غلام په جهاد کښې د شرکت عدم جواز:** - غلام چونکه دَ یوانسان په ملکیت کښې وی په دې وجه هغه نه دَ مولی دَ اجازت نه بغیرجهاد ته تللې شی نه حج کولې شی نه هجرت کولې شی. په زیربحث حدیث کښې هم دغه مسئله ده چه یوغلام دَ حضورپاك په لاس مبارك باندې دَ جهاد بیعت اوکړو حضورپاك ته معلومه نه وه چه دا غلام دې اودَ مولی اجازت ضروری دې روستو بیا دَهغه مالك راغلو دَحضورپاك مکارم اخلاق دابرداشت نه کړه چه غلام ناامیده کړی او هغه واپس دَ مالك په لاس کښې ورکړی چنانچه حضورپاك هغه مالك ته دوه غلامان ورکړل اودا غلام ئې واخستلو

**په حدیث کښې د هجرت دوه مطلبونه:** - ① غلام دَخپلې علاقې نه دَ هجرت کولو او دَ حضور په خوا کښې دَ اوسیدلو بیعت اوکړو دَملاعلی قاری رحمه الله دَ کلام نه دَدې مطلب طرف ته معمولی اشاره کیږی سره دَدې چه دَ هجرت دامفهوم عام نه دې

② غلام دَ مکې نه دَ مدینې طرف ته په هجرت باندې بیعت واخستو دامفهوم عام اومشهوردې.

**یو غلام د دوو غلامانو په عوض کښې د ورکولو او اخستلو حکم:** -دَدې حدیث نه دا مسئله هم معلومه شوه چه یوغلام دَ دوو غلامانو په عوض ورکول اواخستل جائز دی په دې کښې تفاضل جائزدې

**دځناورو په تبادله کښې د نقد شرطیت:** -اودَ ځناورو هم دغه حکم دې بلکه ټول اموال حکم هم دغه شان دې شرط دادې چه لین دین نقد وی قرض نه وی.

قرض کښې دَ فقهاء معمولی شان اختلاف دې چه آیا دَ ځناورو په بدله کښې دَ ځناورودَ قرض لین دین جائزدې که نه؟دَدې تفصیل روسته دحدیث نمبر(٢٨٢١ په تسهیل کښې راځی

## [٢٠٨٣] ذهم جنس څیزونو په لین دین کښې د تفاضل حرمت

٢٠٨٣ -[٠] ( ) وَعَنْهُ قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ بَيْعِ الصُّبْرَةِ مِنَ التَّمْرِ لَا يُعْلَمُ مَكِيلَتُهَا بِالْكَيْلِ الْمُسَمَّى مِنَ التَّمْرِ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر رضي الله عنه وايي [٢] چې رسول الله ﷺ د کجورو يو داسې ډهير [٣] چې د هغه مقدار معلوم نه وي [٤] د يوې معلومې پيمانې د کجورو په بدله کې د اخستلو او رکولو څخه [٦] منعه کړي ده. (مسلم)

**حل اللغات** - ① الصُّبْرَةِ: وَهِيَ الطَّعَامُ الْمُجْتَمِعُ كَالْكُومَةِ: دخوراک څيز چه په يو ځائې راجمع وی يعنی: خوراک ډيرې. ② مَكِيلَتُهَا: أَيْ مِقْدَارُ كَيْلِهَا: د پيمانې مقدار

**تسهيلات:**

**قوله الصُّبْرَةِ:**

**د مجهولې بيعې عدم جواز:** -صبرة نه دلته دکهجورو نامعلومه ډيرې مراددې دَ بيوعتو داصولی قواعدونه دا دی چه مبيعه معلوم وی ثمن هم معلوم وی په دې دواړو څيزونو کښې جهالت نه دې پکار ځکه چه په دې کښې راتلونکی وخت کښې جګړه پيداکيدې شی او شريعت دمعاملاتو هرهغه صورت ناجائز ګرځولې دې په کوم کښې چه جګړه راپيدا کيدې شی په زير بحث حديث کښې "لايعلم مكيلتها" الفاظ نه دَ دغه ضابطې طرف ته اشاره ملاويږی چه کله دَ کهجورو دَ ډيری دَ مقدارپته نه وی نو په هغې کښې دَ کم يا زيات کيدو احتمال شته دَ کوم په وجه چه په سود کښې دَ پريوتلوخطره ده دا هغه وخت کښې دی چه کله دواړه څيزونه هم جنس وی که چرې جنس ئې جدا جدا دې نو بيا تفاضل جائزدې

## [٢٠٨٤] دَ سروزرو په بدله کښې دَ سروزرو دلين دين حکم

٢٠٨٤ -[٠] ( ) [١] وَعَنْ فَضَالَةَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ قَالَ: اشْتَرَيْتُ يَوْمَ خَيْبَرَ قِلَادَةً بِاثْنَيْ عَشَرَ دِينَارًا [٢] فِيهَا ذَهَبٌ وَخَرَزٌ [٣] فَفَصَّلْتُهَا فَوَجَدْتُ فِيهَا أَكْثَرَ مِنَ اثْنَيْ عَشَرَ دِينَارًا [٤] فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ [٥] "لَا تُبَاعُ حَتَّى تُفَصَّلَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت فضاله ابن عبيد رضي الله عنه وايې چې ما د خيبر په کال يو هار په دولس دينارو واخستې. [٢] د سرو زرو وو او په هغه کې غمی لګيدلی وو [٣] بيا چې ما هغه جدا

---

( ) اخرجه مسلم فی كتاب البيوع/باب تحريم بيع صبرة التمر المجهولة القدر بتمر(رقم ٤٢ - (١٥٣٠) والنسائى فى كتاب البيوع/باب بيع الصبرة من التمر لا يعلم مكيلها بالكيل المسمى من التمر (رقم-٤٥٤٧)

( ) اخرجه مسلم فى كتاب المساقاة/باب بيع القلادة فيها خرز وذهب (رقم-٩٠ - (١٥٩١) وابوداود فى السنن كتاب البيوع/باب فى حلية السيف تباع بالدراهم (رقم-٣٣٥٢) والترمذى فى كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى شراء القلادة وفيها ذهب وخرز (رقم_١٢٥٥) والنسائى فى كتاب البيوع/باب بيع القلادة فيها الخرز. والذهب بالذهب (رقم-٤٥٧٣) واحمد فى المسند: ٢١/٦

جدا کړل، يعني غمی مي د سرو زرو څخه ؤبېکل، نو هغه سره زر د دولس د ينارو څخه د زيات قيمت وختله ۴ما د هغه ذکر رسول الله ﷺ ته وکړي نو رسول الله ﷺ وفرمايل ۵چې (داسي هار دي) د هغه وقته خرڅ نه کړل شي د څو پورې چې سره زر او غمی جدا جدا نه شي. (مسلم)

**حل اللغات** - ① قِلَادَةً: مَا يُقَلَّدُ فِي الْعُنُقِ: څه چه په غاړه کښې راځوړندولې شی يعنی هار. اميل ② خَرَزٌ: غمی، مشکنړي. ③ فَفَصَّلْتُهَا: أَيْ مَيَّزْتُ ذَهَبَهَا وَخَرَزَهَا: جدا جدا مي کړل. يعنی د اميل نه مي سره زر او غمی جدا جدا کړل ④ تُفَصَّلَ: چه جدا جدا کړې شي

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا تُبَاعُ حَتَّى تُفَصَّلَ

**په مذکوره حديث کښې د بيع د جواز صورت:** -دَ مثال په توګه دَ سرو زرو يواميل دې په هغې کښې سره زر هم دی اونور جواهرات هم دی که دا يوسړې دَ سرو زرو په بدله کښې اخستل غواړی نو په شرعی توګه داضروری دی چه اول دَ دې اميل سره زر جدا کړې شی دَدې برابر سره زر وزن کولوسره دې سودا اوکړی چه سره زر دَ سرو زرو په مقابله کښې بالکل يوشان برابر شی اودَ ربوا صورت پيدا نه شی دَ اميل دَ نورو څيزونو جدا قيمت لګولوسره اخستلې شی بل که دَ سرو زرو اميل دَ چاندې بدله کښې يا دَ نقدو روپوبدله کښې واخستلې شی نودغه صورت جائزدې

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۲۸۱۸]دَ سود دعام کيدو پيشنګوئی

۲۸۱۸ ـ [۴] (١) ۱عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "۲«لَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَا يَبْقَى أَحَدٌ إِلَّا أَكَلَ الرِّبَا ۳فَإِنْ لَمْ يَأْكُلْهُ أَصَابَهُ مِنْ بُخَارِهِ ۴وَيُرْوَى مِنْ غُبَارِهِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ۱حضرت ابوهريره رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲په خلقو به يوه داسې زمانه راشي چې د سود خوړلو څخه به هيڅوك پاتي نشي ۳او كه يو سړی داسې هم پاتې شی چې هغه ددې كاروبارنه كوي نو هغه ته به د سود بخار ضرورورسيږي ۴او (په څينو كتابونو كې د لفظ من بخاره په ځای) من غباره (يعنې هغه ته به د سود ګرد وغبارضرورورسيږي) نقل شوی دی. (احمد ابوداود نسائي ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① بُخَارِهِ: أَيْ أَثَرُهُ: بهراس. ددې نه مراد د سود اثر دې ② غُبَارِهِ: ګرد. دوړه. ددې نه هم د سود اثر مراد دې

[1] اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الديات/باب ديات الأعضاء (رقم-٤٥٦٠) وابن ماجة فی كتاب التجارات/ باب الصرف وما لا يجوز متفاضلا يدا بيد (رقم-٢٢٥٤)

**تسهيلات**

**قوله بُغَارٌ واوغُبَارة**

**د سود د عام كيدو پيشنګونې:-** يعني داسې وخت به راشي چه د سود لعنت به عام شي څو خلق خو به بيع به نيعه سودخوري اوڅه خلق به په څه واسطه سره په خوړلوكښې اخته وي اوڅه خلق به په غيرشعوري توګه د سود په جال كښې اونخلي دا پيشنګوني نن صبا په مكمل توګه باندې صدق ده اوس خود تجارت بنياد په بين الاقوامي توګه باندې په سود باندې قائم دې ددنيا په منډيانوكښې په ناجائز طريقه باندې كاروبار په هرتجارت باندې اثر كوئكې دې يوه معمولي شعبه هم د سود نه پاك نه شي ګرخولې د بيع نه چه كله ميوه راخي نوهغه په ناجائزطريقه باندې راخي ددې سودنه څوك بچ كيدې نه شي

**[٣٠] د بعضي مخصوص شيزونو په خپل مينځ كښې په برابرۍ سره د تبادلې عدم جواز**

٢٨٠٣-[٣] (١) وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "«لَا تَبِيعُوا الذَّهَبَ بِالذَّهَبِ وَلَا الْوَرِقَ بِالْوَرِقِ وَلَا الْبُرَّ بِالْبُرِّ وَلَا الشَّعِيرَ بِالشَّعِيرِ وَلَا التَّمْرَ بِالتَّمْرِ وَلَا الْمِلْحَ بِالْمِلْحِ إِلَّا سَوَاءً بِسَوَاءٍ عَيْنًا بِعَيْنٍ يَدًا بِيَدٍ،

**ترجمه:** حضرت عباده ابن صامت رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل مه سره زر د سرو زرو په بدله كې خرڅوئ نه سپين زر سپينو زرو په بدله كې. نه غنم د غنمو په بدله كې. نه اوربشې د اوربشو په بدله كې. نه كجوري د كجورو په بدله كې. او نه مالګه د مالګې په بدله كې هو برابر برابر نقد په نقد يعني لاس په لاس لين دين جائز دى.

**حل اللغات -** ① اَلْوَرِقَ أَيِ الْفِضَّةَ: چاندي، سپين زر. ② عَيْنًا بِعَيْنٍ: أَيْ حَاضِرًا چه موجود وي. په يومجلس كښې وي ③ يَدًا بِيَدٍ: لاس په لاس يعني نقد وي او په يومجلس كښې وي

وَلٰكِنْ بِيعُوا الذَّهَبَ بِالْوَرِقِ وَالْوَرِقَ بِالذَّهَبِ وَالْبُرَّ بِالشَّعِيرِ وَالشَّعِيرَ بِالْبُرِّ وَالتَّمْرَ بِالْمِلْحِ وَالْمِلْحَ بِالتَّمْرِ يَدًا بِيَدٍ كَيْفَ شِئْتُمْ» " رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ.

**ترجمه:** سره زر د سپينو زرو په بدله كې او سپين زر د سرو زرو په بدله كې او غنم د اوربشو په بدله كې او اوربشې د غنمو په بدله كې او كجوري د مالګې په بدله كې او مالګه د كجوري په بدله كښې لاس په لاس څنګه چې غواړئ خريد او فروخت كوئ. (نسائي)

**تسهيلات**

**قوله لَا تَبِيعُوا الذَّهَبَ بِالذَّهَبِ:**

**د مبادلة المال بالمال دوه صورتونه:-** ① دحديث خلاصه داده چه كه چرې د داسې دوه

(١) اخرجه النسائي في السنن كتاب البيوع/باب بيع البر بالبر (رقم-٤٥٦٠) وابن ماجة في كتاب التجارات/ باب الصرف وما لا يجوز متفاضلا يدا بيد (رقم-٢٢٥٤)

خرمونو په خپل مينځ کښې لين دين کوئ کوم چه د يو جنس وی لکه غنم د غنمو په بدله کښې نو په دې صورت کښې برابر برابر او لاس په لاس کيدل ضروری دی

② اوکه د داسې دوه خرمونو خپل مينځ کښې لين دين کولې شی کوم چه يو جنس نه وی بلکه د جدا جدا جنس وی لکه غنم د وربشو په بدله کښې نو په دې صورت کښې صرف لاس په لاس کيدل ضروری دی برابر برابر کيدل ضروری نه دی

**[۲۸۲۰] د اوچو او تازه ميوو خپل مينځ کښې د لين دين حکم**

۲۸۲۰—[۲] [۱] (وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، قَالَ: "«سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[۲] سُئِلَ عَنْ شِرَاءِ التَّمْرِ بِالرُّطَبِ "[۳] فَقَالَ " أَيَنْقُصُ الرُّطَبُ إِذَا يَبِسَ "[۴] فَقَالَ نَعَمْ[۵] فَنَهَاهُ عَنْ ذَلِكَ». [۶] رَوَاهُ مَالِكٌ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] حضرت سعد ابن ابي وقاص رضي الله عنه وايي چې ما د حضور ﷺ نه واوريدل [۲] کله چې د تازه کجورو په بدله کې د وچو کجورو خريد کولو مسئله ويوښتل شوه [۳] نو حضور ﷺ وفرمايل آيا تازه کجوري د وچيدلو نه وروسته کميږي؟ [۴] عرض وشو چې هو. [۵] نو حضور ﷺ د داسې لين دين نه منعه وکړه. [۶] مالک ترمذي ابوداود نسائي ابن ماجه

**حل اللغات** - ① بِالرُّطَبِ: لمدې يعنی تازه کجوري ② أَيَنْقُصُ: آيا کميږی؟ ③ يَبِسَ: چه اوچې شی

**تسهيلات:**

**قوله سُئِلَ عَنْ شِرَاءِ التَّمْرِ بِالرُّطَبِ:**

دَ لمدو کهجورو بيع دَ اوچو کهجورو په بدله کښې جائز ده که ناجائز؟ په دې کښې دَ فقهو اختلاف دې

**د بيع الرطب بالتمر په بيع کښې مذاهب:-**

① دَ ائمه ثلاثه او صاحبينو په نيز بيع الرطب بالتمر جائز نه ده ② دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز ده

**داول فريق دليل:** - زيربحث حديث دليل دې دَ کوم خلاصه چه دا ده چه دَ رسول الله ﷺ نه دَ بيع الرطب بالتمر باره کښې تپوس اوشو نو حضورپاک پوښتنه اوکړه چه لمدې کهجورې اوچيدو سره کميږی که نه؟ صحابه کرامو عرض اوکړو کميږی نو بيا حضورپاک دا بيع منع کړه

[۱] اخرجه ابوداود في السنن كتاب البيوع/باب في التمر بالتمر (رقم ٣٣٥٩) والترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في النهي عن المحاقلة. والمزابنة (رقم: ١٢٢٥) والنسائي في كتاب البيوع/باب اشتراء التمر بالرطب (رقم-٤٥٤٥) وابن ماجة في كتاب التجارات/ باب بيع الرطب بالتمر (رقم-٢٢٦٤) ومالك في الموطا كتاب البيوع/باب ما يكره من بيع التمر (رقم-٢٢) واحمد في المسند: ١٧٥/١

په اصل کښې دَ ائمه ثلاثه په نيز بيع کښې حالاً او مآلاً مساوات ضروري دي اودلته چه لمدې کهجورې کله اوچې شي نومساوات باقي نه پاتې کيږي په دې وجه ناجائز دي

**دوه جوابونه:** - ① دَدې تعلق قرض سره دې اودَدې تائيد هم دَحضرت سعد رضي الله عنه دَهغه حديث سره کيږي په کوم کښې چه حضورپاك دَ تازه کهجورو په بدله کښې دَ اوچو کهجورو لين دين په قرض او نسيئة کښې منع فرمائيلې دې الفاظ دادي «عن سعد بن ابي وقاص ان رسول الله صلى الله عليه وسلم نهى عن بيع الرطب بالتمر نسيئة» (ابوداؤد)

② امام ابوحنيفه رحمه الله دَ اهل بغداد دَ استدلال په جواب کښې دا هم فرمائيلي چه زير بحث حديث دَ ابو عياش راوي دَ وجې نه ضعيف هم دې لهذا دَ قواعد بيوع خيال به ساتلې شي او په جزئيات کښې به تاويل کولې شي لکه څنګه چه دَ امام صاحب فقهي سوچ دې

**د ائمه اربعه فقهي سوچونه:** - ①دَ امام ابوحنيفه فقهي سوچ خو تير شو

② دَ امام مالك رحمه الله دَ فقهي سوچ مدار دَ اهل مدينه په تعامل باندې دې

③ دَ امام شافعي رحمه الله فقهي سوچ مدار دَ اهل مکه په تعامل باندې دې

④ دَ امام احمد رحمه الله فقهي سوچ مدار په ظاهر دَحديث باندې دې هم دغه وجه ده چه هغوی په يوه مسئله کښې ډير اقوال او احوال باندې فتوی ورکوی.

**د دويم فريق دليل:** - دَ بيوعاتو شرعي قاعده او ضابطه ده د کومې چې په هرحال کښې خيال ساتلې شی هغه دا چې دکهجورې لوندوالې اوچوالې دا په دې کښې وصف زائده دې اودَ وصف زائد اعتبارنشته دې په حديث کښې راغلی دی "جيدها وردیها سواء" لهذا په مستقبل اومآل کښې دَمساوات ضرورت نشته دې.

**دامام ابوحنيفه سره په زيربحث مسئله کښې بحث:** - امام ابوحنيفه رحمه الله چه کله بغدادته تشريف يوړو نودَ هغه خاني علماؤ په دې مسئله کښې امام صاحب سره بحث اوکړو اوسخت مخالفت ئې اوکړو هغوی ورته اوفرمائيل چه دا راته اوښايئ چه رطب اوتمر يوجنس دې که جدا جدا جنس دې که چرې يوجنس دې نوحديث التمر بالتمر مثلاً بمثل دَ وجې نه دابيع جائز ده اوکه چرې رطب دَ تمر دَ جنس نه نه دې نوحديث «اذا اختلف النوعان فبيعوا كيف شئتم» دَ وجې نه دا بيع جائز کيدل پکاردی امام صاحب داهم فرمائی چه که چرې په رطب کښې نقص راغلو نودَدې ذمه واری دَ بائع نه ده دا نقص خودَ مشتری په لاس کښې راغلي دې دکوم نه چه بائع خلاص دې په وخت دَ بيع نقص نه وولهذا بيع جائز ده

**د نورو ميوؤ حکم:** - هم دغه شان مسئله دَنورو ميوو هم ده اودغه شان حکم دَ تازه او اوچې غوښې هم ده بهرحال جمهور هم يوطرف ته دی اوصاحبين هم هغوی سره دی حديث هم واضح دې که فتوی دَ صاحبينو اوجمهورو په مسلك باندې ورکړې شي نو بعيد به نه وی

**[۲۸۲۱] دَ غوښې اوژوندی څاروی دَ بدلون حکم**

۲۸۲۱—[۱۵] ( )[۱] وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ مُرْسَلًا، [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " نَهَى عَنْ بَيْعِ اللَّحْمِ بِالْحَيَوَانِ» " [۳] قَالَ سَعِيدٌ: [۴] كَانَ مِنْ مَيْسِرِ أَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ. رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت سيعد بن مسيب رحمه الله بطريق ارسال نقل كوي[۲] چې رسول الله ﷺ د څارويو په بدله کې د غوښې د لين دين څخه منعه فرمايلي ده، [۳] او د حضرت سعيد رحمه الله بيان دی[۴] چې د حيوان په بدله کې د غوښې لين دين د جاهليت د زماني د جوارې د قسم څخه وو، (شرح السنه)

**حل اللغات:** - ① اللَّحْمِ: غوښه، ② الْحَيَوَانِ: څاروي.

**تسهيلات: قوله:** مَيْسِرِ أَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ:

**د ميسر اهل الجاهلية مطلب او معنی:** -دَدې مطلب دادې لکه څنګه چه په غلطه طريقه سره به اهل جاهليت دَ خلقو مالونه خوړل په دې بيع کښې هم دغه شان دی سره دَدې چه دَ جوارئی طريقه جداده. هلته به دَ غشو په ذريعه سره جواری کيدله اودلته لين دين کيږی په غلطه طريقه سره دَمال دَ حصول تشبيه ده

**د بيع بالحيوان اللحم په حکم کښې مذاهب:-**

په دې مسئله کښې چې دَ ژوندی څاروی بدلون په غوښې سره جائز دې که نه؟ د فقهاؤ اختلاف دې

① امام شافعی رحمه الله دا بيع مطلقًا حرام او ناجائز ګرځوی.

② امام احمد رحمه الله فرمائی که غوښه دَ څاروی دَ غوښې نه زياته کيخودې شی چه دَ غوښې په مقابله کښې غوښه راشی اودَ حيوان دَ زياتی حصول په بدله کښې اضافی غوښه راشی نودا صورت جائزدې ګنی جائزنه دې

③ امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی چه دَ غوښې په بدله کښې دَ ژوندی څاروی لين دين کول نقدًا جائزدی قرض جائزنه دې

**نوټ:** اصل اختلاف دلته دشوافعو اواحنافو دې شوافع د عدم جوازقائلين دی اواحناف نقدًا دجواز اونسية دعدم جوازقائلين دی نودلته دفريق اول اوفريق ثالث دلائل ذکر کولی شی

**داول فريق دلائل:** - زيربحث حديث داول فريق دپاره ښه واضح دليل دې

**جوابونه:** - ① داحديث دَ قرض په لين دين باندې محمول دې اودَ قرض دَ عدم جواز احناف هم قائل دی چه يوطرف ته څيز موجوددې اوبل طرف ته صرف وعده وی څيز موجود نه وی نودا ناجائز دی

---

١) اخرجه مالک فی الموطا کتاب البيوع/باب بيع الحيوان باللحم (رقم-٦٤)

۞ اهل جاهليت به ددې نه جواري جوړوله او کوله به ئې په دې وجه د جوارئي بندولو پاره د ممانعت راغلې دی

**د فريق ثالث دليل:** -د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل د بيوعاتو د اصولي قواعدو رعايت دې هغوی فرمائي چه غوښه موزوني ده او حيوان غيرموزوني دې لهذا د اتحاد قدر د نشت والي د وجې نه کمي بيشي باوجود دلته سود نشته دې لهذا جائزدی

**[۲۸۲۲] د بيوعاتو په قاعدو کليو باندې د احنافو دليل**

٢٨٢٢-[١٠] (١) وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَهَى ۞ عَنْ بَيْعِ الْحَيَوَانِ بِالْحَيَوَانِ نَسِيئَةً». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ۞ حضرت سمره ابن جندب رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ۞ حيوان د حيوان په بدله کې د قرض نين دين کولو څخه منعه فرمايلي ده، ترمذي ابوداود نسائي ابن ماجه دارمي

**تسهيلات:**

**قوله نهى عَنْ بَيْعِ الْحَيَوَانِ بِالْحَيَوَانِ نَسِيئَةً**

**متعارض احاديثو کښې تطبيق:** -د احناف دا حديث د سود په بابونو کښې په بنيادی توګه ښودې اخستې دې او د بيوعاتو د قواعدو کليو د حفاظت د پاره په ډيرو جزئي احديثو کښې تاويل کړې دې دلته په حديث کښې په واضحه توګه د قرض لفظ موجود دې نوچه کوم ځائې دا لفظ نشته دې هلته به هم دا مراد اخستې شی دې د پاره چه په احديثو کښې تطبيق راشي

**[۲۸۲۳] د غيرمثلي څيزونو د قرض اخستلو حکم**

٢٨٢٣-[١١] (٢) وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، ۞ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَمَرَهُ أَنْ يُجَهِّزَ جَيْشًا ۞ فَنَفِدَتِ الْإِبِلُ ۞ فَأَمَرَهُ أَنْ يَأْخُذَ عَلَى قَلَائِصِ الصَّدَقَةِ ۞ فَكَانَ يَأْخُذُ الْبَعِيرَ بِالْبَعِيرَيْنِ إِلَى إِبِلِ الصَّدَقَةِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ۞ د حضرت عبد الله ابن عمرو ابن عاص رضي الله عنه په باره کې روايت دی ۞ رچې د يوي غزا په موقع رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه ته وفرمايل د لښکر سامان تيار کړه ريعني په لښکر کې د شامليدو د پاره سوارلی او اسلحه وغيره تيار کړه ۞ نو کوم وخت چې د اوښانو کمی شوه يعني خومره اوښان چې وو هغه په اکثره خلقو کې تقسيم شو او څه خلق چې په هغوی کې

---

[1]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الصلاة باب من قال: يقوم صف مع الإمام وصف وجاه العدو (رقم-١٢٣٧) والترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب ما جاء في كراهية بيع الحيوان بالحيوان نسيئة (رقم: ١٢٣٧) والنسائي في كتاب البيوع باب بيع الحيوان بالحيوان نسيئة (رقم-٤٦٢٠) وابن ماجة في كتاب التجارات/ باب كتاب التجارات/ باب الحيوان بالحيوان نسيئة (رقم-٢٢٧٠) واحمد في المسند: ١٢/٥

[2]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب البيوع باب في الرخصة في ذلك (رقم-٣٣٥٧) واحمد في المسند: ١٧١/٢

حضرت عبد الله ابن عمرو ابن عاص ﷺ هم شامل وو اوښان ورته حاصل نه شو، ⑦نوحضور ﷺ حضرت عبد الله ﷺ ته حکم ورکړې چې هغه د زکوة د اوښانو په بدله کې اوښان (قرض) واخلي ⑧نو حضرت عبد الله ﷺ د زکوة د اوښانو د راتلو پورې (په وعده) د دوو اوښانو په عوض کې يو اوښ واخستلى. (ابوداؤد)

**حل اللغات** - ① يُجَهِّزَ: چه تيارکړى (سامان) ② جَيْشًا: لښکر ③فَنَفِدَتْ: کم شو ④ قَلَائِصِ: قلائص جمع ده دَدې مفرد قلوص دې ځوان اوښ ته وائى

**تسهيلات:**

**قوله: قَلَائِصِ الصَّدَقَةِ:**

**دمذکوره جملې مطلب:** -دَ صدقه نه مراد دَ زکوة اوښان دى يعنى حضورپاك عمروبن العاص ﷺ ته اوفرمائيل چه دَ يوسړى نه اوښ قرض واخله او په مجاهدينو باندې تقسيم کړه دې دَپاره چه دَ جهاد لښکر روان شي اوکله چه دَصدقه اوزکوة اوښان بيت المال ته راشى بيا دَ دغه سړى قرض اداکړه.

**قوله: بِالْبَعِيرَيْنِ:**

**دعمروبن العاص عمل په جهاد کښې حصه اخستل:** -يعنى حضرت عمرو بن العاص ﷺ به دَ ددو اوښانوپه بدله کښې يو اوښ اخستلو او په مجاهدينوکښې به ئې تقسيم کول.

**په غير مثلى څيزونو کښې د قرض د اخستلو په حکم کښې مذاهب:** -

① د شوافعو په نيزپه غيرمثلى څيزونو کښې قرض اخستل ناجائزدى

② د احنافوپه نيز جائز دى. د دې وضاحت دا دې چې دَ قرض اخستلو باره کښې دا اصولى خبره ياد ساتل پکاردى چه قرض صرف دَهغه څيز اخستلې شى کوم څيزچه خپل مثل لرى مثلاً هګئى دى دا مثلى دى غله مثلى ده روپئى پيسې مثلى دى اودَدې څيزونو قرض اخستل ورکول جائزدى ځکه چه نن ئې قرض واخستو نو ځو ورځې پس به دَدغه څيزيه شان په قرض کښې واپس کړى ځکه چه مثل موجوددې خوچه دَ کومو څيزونو مثل موجودنه وى نودَهغې قرض اخستل ورکول هم ناجائزدى ځکه چه که صباقرض ورکونکې خپل قرض اخستل غواړى نومثل ورکول به ګران شى لکه چه په زير بحث حديث کښې د ځاروى مسئله ده حيوان مثلى نه دې بلکه دَ ذوات القيم اشياء نه دې اوس په قرض کښې دَدې مثل ورکول ګران دى لهذا دَدې قرض اخستل ورکول ناجائزدى

**داول فريق دليل:** -زيربحث حديث د دوى مستدل دې

**د اول فريق د دليل جواب:** -دَدې حديث باره کښې احناف تاويل کوى دې دَپاره چه په احاديثو کښې تطبيق راشى يوجواب داورکوى چه دَ يوځاروى په بدله کښې دوه ځاروى ورکول دَ قرض په توګه هغه وخت جائز وو کله چه دَ ربوا اوسود دَ ممانعت حکم نه وو

راغلې بیاچه کله سود حرام شو نوداقسم بیوعات هم ختم شو علامه توربشتی رحمه الله هم دغه جواب ورکړې دې هغوی داحدیث ضعیف هم ګرځولې دې

**د دویم فریق دلیل:** - دحضرت سمرة بن جندب رضی الله عنه د حدیث نه استدلال کوی کوم چه دې نه وړاندې تیرشوې دې اودامسئله هم سره دَ اختلاف او دلائلو لکلې شوې ده

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۲۸۲۳] دَ قرض په لین دین کښې دَ سود حکم

٢٨٢٣ -[٨] ( )[١] عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "[٢] «الرِّبَا فِي النَّسِيئَةِ " [٣] وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ " لَا رِبًا فِيمَا كَانَ يَدًا بِيَدٍ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حضرت اسامه بن زید رضی الله عنه وایې چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل [٢] په قرض لین دین کې سود کېږي [٣] او په یوبل روایت کې داسې دی چې په هغه لین دین کې سود نه وي کوم چې لاس په لاس وي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات** - ① اَلنَّسِیْئَة: قرض لین دین ② یَدًا بِیَدٍ: لاس په لاس، نغد

**تسهیلات:**

**قوله:** اَلرِّبَا فِی النَّسِیْئَةِ:

**په قرض کښې د سود راتلل:** یعنی دوه څیزونه چه کله دَ یوجنس نه وی اوبرابر سرابر وی اونقد وی قرض نه وی نو په دې صورت کښې سود نه دې بل په دې صورت کښې هم سود نه دې چه دوه څیزونه په مختلف جنس کښې وی نودَ اختلاف دَ وجې نه به بیا هم سود نه راځی البته سود به هغه وخت راځی چه کله دَ یوجنس دَ دوو څیزونو لین دین په قرض کښې وی حضرت اسامه رضی الله عنه هم دغه صورت بیان کړې دې

**د حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما د خپلې رائې نه رجوع:** -دَ حضرت اسامه رضی الله عنه په کلام سره دَ ابن عباس رضی الله عنهما شك شو اوهغه په نقد کښې دَ ربا انکاراوکړو اوونی فرمائیل چه ربا صرف دَ قرض په صورت کښې ده لیکن حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه هغه سخت اورټلو او په سختنی سره نی منع کرو نوهغوی د خپلې رائې نه رجوع اوکړه او ونی فرمائیل چه ما دَ اسامه رضی الله عنه دَ کلام نه داسې ګنړلې وو حضرت ابی رضی الله عنه داهم اوفرمائیل آیا داسې کیدې شی چه تادَ حضورپاك نه یوحکم اوریدلې وی یا دَهغې مشاهده دې کړې وی اومونږ نه

[١] ) اخرجه البخاري فی کتاب الإجارة/باب الاشتراک فی الذهب والفضة وما یکون فیه الصرف (رقم-٢١٧٩) ومسلم فی کتاب المساقاة/باب بیع الطعام مثلا بمثل (رقم-١٠٢ - (١٥٩٦) والنسائی فی کتاب البیوع/باب بیع الفضة بالذهب وبیع الذهب بالفضة (رقم-٤٥٨٠) وابن ماجة فی کتاب التجارات/ باب من قال: لا ربا إلا فی النسیئة (رقم-٢٢٥٧) واحمد فی المسند: ٥/٢٠٠

اوريدلي وى اونه مو مشاهده كړې وى حالانكه زمونږ ملګرتيا حضورپاك سره ډيره اوږده ده؟ بيا حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه هغوى ته دَ ربا متعلق صريح حديث واوږولو نوهغوى اوفرمائيل چه ته ګواه اوسيږه زه هم دې ربا ته حرام وايم اودې نه ويزاره يم

**[٢٨٢٥] دَ سود يوې روپۍ خوړلو دګناه سختوالى**

> ٢٨٢٥-[١٩] (١) ١وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حَنْظَلَةَ غَسِيلِ الْمَلَائِكَةِ قَالَ: ٢قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "٣«دِرْهَمُ رِبًا يَأْكُلُهُ الرَّجُلُ وَهُوَ يَعْلَمُ٤ أَشَدُّ مِنْ سِتَّةٍ وَثَلَاثِينَ زَنْيَةً» " رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالدَّارَقُطْنِيُّ. ٥وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ٦ وَزَادَ وَقَالَ: "«مَنْ نَبَتَ لَحْمُهُ مِنَ السُّحْتِ فَالنَّارُ أَوْلَى بِهِ»".

**ترجمه:** ١حضرت عبد الله ابن حنظله رضي الله عنه غسيل ملائكه وايي٢ چې رسول الله ﷺ وفرمايل٣ د سود يو درهم د دې پوهه يدو باوجود خوړل چې دا سود دى٤ دشپږ دېرش خله زنا كولو څخه هم زياته لويه ګناه ده، احمد دارقطني٥ دا روايت بيهقي رحمه الله په شعب الايمان كې دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه نقل كړې دى ٦او بيهقي رحمه الله په دې روايت كې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا الفاظ هم نقل كړي دي چې حضور ﷺ دا هم وفرمايل چې د كوم سړي غوښه د حرام مال څخه پيدا شوى وي يعنى د كوم سړي چې جسماني نشو ونما د حرام مال مثلاً سود او رشوت وغيره څخه شوى وي. هغه سړى د دوزخ لائق دى

**حل اللغات:** - ①نَبَتَ: زرغونيدل، نشونما، ②السُّحْتِ: حرام.

**تسهيلات: قوله:** غَسِيلِ الْمَلَائِكَةِ:

**د حضرت حنظله رضي الله عنه تعارف او مناقب:** - حضرت حنظله رضي الله عنه يودَ لوئى شان والا صحابى دې دَ ابوعامر فاسق څوئى دې دَهغه پلار دَ حضور اكرم او دين اسلام ډير لوئى مخالفت كړې اول ابوعامر دَ راهب په نوم باندې مشهور وو بيا دَحضورپاك ﷺ دَ مخالفت دَ وجې نه هغه دَ ابوعامر فاسق په نوم سره يادولو دَ احد په ميدان كنبې هغه كندې كنستلې وې په كوم كنبې چه ډير مسلمانان پريوتو سره شهيدان شوى وو دَهغه څوئى حنظله رضي الله عنه كافرانو شهيد كړوليكن ابوعامر دَهغه مړ وجود دَ ازغنوپه ښاخونو نور هم اووهلو الله تعالى دغه صحابى ته ډيرلوئى شان وركړو كوم وخت چه حضورپاك دَ احد دَميدان طرف ته دَ وتلو اعلان اوكړو نودَ دې صحابى په ذمه فرض غسل وو هغه غسل پريخودو اودَ حضورپاك په اعلان ئى لبيك اووئيل اولاړو كافرانو سره په ميدان جنګ كنبې جنګيدلوسره شهيدشو چونكه په جنابت كنبې وو په دې وجه فرښتو ده ته غسل وركړو نوغسيل الملائكه مشهور شو

---

(١) اخرجه احمد فى المسند:٥/٢٢٥

**قوله: وَهُوَيَعْلَمُ:**
**د علم بلوجود د سودی کاروبار کولووعید:**- دَدې مطلب دادې چه دغه سړی ته معلومه ده چه دا دَ سود پیسې دی اوبیائی هم خوری نودا لویه ګناه ده دَدې نه معلومه شوه که یوسړی ته په صحیح توګه معلومه نه وی چه دادَ سود پیسې دی اوهغه اوخوړلې نودَدې غلطئ دَ وجې نه دې معذوردې اوکوم سړې چه په دارالاسلام کښې اوسیږی اودَ سود دَ حکم نه جاهل دې او دَدې دَ حرام اوحلال دَ صورتونو زده کولوکوشش نه کوی نوهغه سړې هم په دې وعید کښې شامل دې

**قوله: مِنْ سِتَّةٍوَثَلَاثِينَ:**
**د سود یوه روپۍ خوړل مورسره شپږ دیرش ځله زنا کول:**- یعنی شپږ دیرش ځل زن کولونه دَ سود ګناه لویه ده. دَ ۳۶خل تعداد تحدید اوتعین دَ شارع کار دې هم هغه دَدې په حکمت باندې پوهیږی مونږ دَ دغه حکمت په لټون باندې مکلف نه یو. ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه په دې حدیث کښې دَ سود حرمت اودَدې دَ خوراك په ممانعت کښې دَ سختئ او زورنې په توګه مبالغه کول مقصود دی دې دَپاره چه دَدې حرام نه سړې بچ شی او دَحلال طرف ته لاړ شی.

**د حدیث لره په تهدید باندې حمل کول :**- ملاعلی قاری رحمه الله دا هم لیکلی دی چه دَ سود په معمله کښې دَ سودخورسره دَ جنګ اعلان کړې دې دا صورت هم دَ ډیرو زناګانونه سخت دې بل علماء لیکی چه کوم سړې سودی کاروبارکوی نوهغه دَ بیوعاتو دَ پیچیده مسائلو دَ وجې نه دا حلال ګنړی اوعقیده لری چه دا جائز دی

**زنا سره د تشبیه ورکولو وجه:**- بل طرف ته زنا دَ هرمذهب خلق عیب ګناه او ناجائز ګنړی په دې وجه سره هم دَ سود نوعیت دَ زنانه خراب دې کوم چه په دې حدیث کښې بیان کړې شوی دی

**[۲۸۲۶]د سود د ګناه یوه حصه مورسره زنا کول**

۲۸۲۶-[۲۰] (١) [١]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "[٢]«الرِّبَا سَبْعُونَ جُزْءًا[٣] أَيْسَرُهَا أَنْ يَنْكِحَ الرَّجُلُ أُمَّهُ»".

**ترجمه:** [١]حضرت ابوهریره رضي الله عنه وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢]د سُود د ګناه اویا درجې دي[٣] او په دي کې چې کومه ادنی درجه ده هغه داسې ده لکه چې یو سړی د خپلې مور سره زنا وکړي

(١) اخرجه ابن ماجة في كتاب التجارات/ باب التغليظ في الربا (رقم- ٢٢٧٤)

تسهیلات:

قوله أَيْسَرُهَا إِثْمًا:

**د سود خوراک مور سره د زنا کولو پشان:** - قباحت وشناعت کښې دا تشبیه په خپل آخری مقام باندې واقع ده ددې نه زیات څوك څنګه پوهه کولې شی خپله مور او هغې سره زنا کول استغفرالله

قوله أَنْ يَنْكِحَ:

**د نکاح څخه مراد:** - دَ نکاح په معنی کښې نه دې بلکه لغوی معنی جماع کول مراددی دا خو په اویا درجې ګناه کښې کمه درجه ده نورې درجې به څه وی؟ نعوذبالله منها.

**[۲۸۲۷]د سود مال د کمیدو پیشنګوئی**

۲۸۲۷—[۳۱] ()١وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "٢«إِنَّ الرِّبَا وَإِنْ كَثُرَ٣فَإِنَّ عَاقِبَتَهُ تَصِيرُ إِلَى قُلٍّ»٤" رَوَاهُمَا ابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ وَرَوَى أَحْمَدُ الْأَخِيرَ.

**ترجمه:** ١حضرت ابن مسعود رضی الله عنه وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل٢ د سود (څخه حاصل شوی مال) خواه هر څومره زیات وی ٣خو آخر په هغه کښې کمی (یعنې بې برکتې) راځي ٤او دا دواړه روایتونه ابن ماجه او په شعب الایمان کښې بیهقي نقل کړي دی او دویم روایت امام احمد هم نقل کړي دی.

**حل اللغات:** - ①قُلٍّ: کموالې، بې برکتی

تسهیلات:

قوله فَإِنَّ عَاقِبَتَهُ تَصِيرُ إِلَى قُلٍّ:

**د سود د تباهئ پیشنګوئی:** - دا حدیث دَ پیشنګوئی په درجه کښې دې چه دَ سودی کاروبار انجام تباه کن وی او سودخور په آخره کښې پیسې پیسې ته محتاج شی دَ الله تعالی ارشاد دې ﴿ يَمْحَقُ اللَّهُ الرِّبَا وَيُرْبِي الصَّدَقَاتِ ﴾ [سورت بقره الایه: ۲۷۶]

دَ تجربه نه ثابته ده چه لوئی لوئی سودخواره اودَ هغوی غټ غټ محلونه او لوئی لوئی ستې په آخره کښې تباهئ سره مخ شوی دی داخوئی دَ دنیا رسوائی ده او که په دنیا کښې هیڅ هم نه وی نودَ آخرت خساره خو دومره یقینی ده لکه چه دَ ورځ نه پس دَ شپې راتلل یقینی دی

**حقیقی مالداری:** - مال دَ هغه څیزنوم نه دې چه دا اوشمیرلې شی اوسرې پخپله ددې څوکیدار جوړ شی بلکه مال دَ هغه خوشحالی ورکونکی څیزنوم دې چه دَ انسان دَ پاره د

[١] اخرجه ابن ماجة فی کتاب التجارات/ باب التغلیظ فی الربا (رقم-۲۲۷۹) واحمد فی المسند: ۳۹۵/۱

روح خوشحالي جوړه شي سودخور كله هم په دنيا كښې دَمال دَ وجې نه په راحت كښې نه وي داهم دَخراب انجام نشاني ده سودخورسره خودَ راحت ډيرسامان وي ليكن هغه پخپله دَ راحت نه محروم پاتې وي او په سامان راحت او راحت كښې ډير لوئي فرق دې يوغريب سړې حلال رزق گټلوسره دَ شكوپه ډيرى باندې بې پرواه خرړېږى اوده وى خوسودخور اومالدارسړې قسم قسم دوايانې خوړلوسره هم دَ خوب دَ لذت اوخوند نه محروم پاتې وى سودخور سړې دَ معاشرې دَپاره دَ زهريله مار نه زيات زهريله جوړيږى. دَ همدردئى او خيرخواهئى خو هډو نوم دَهغه په ذات كښې باقى نه پاتې كيږى بلكه هغه دَ يوغريب سړى دَ وينو څكلودَپاره هروخت سرگردان وى.

**[۲۸۲۸] دَ سودخور په خيټه كښې زهريله ماران اچول**

۲۸۲۸ — [۳۲] (¹) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "② «أَتَيْتُ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِي عَلَى قَوْمٍ بُطُونُهُمْ كَالْبُيُوتِ ③ فِيهَا الْحَيَّاتُ تُرَى مِنْ خَارِجِ بُطُونِهِمْ ④ فَقُلْتُ: مَنْ هَؤُلَاءِ يَا جِبْرِيلُ؟ ⑤ قَالَ: هَؤُلَاءِ أَكَلَةُ الرِّبَا» " رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د معراج په شپه خما تيريدل په داسې خلقو وشوه چې د هغوئ خيټې د كورونو په شان (غټې غټې) وې ③ او د هغوئ خيټې د مارانو څخه ډكې وې چې د خيټو څخه بهر په نظر راتلل ④ ما (د هغه په ليدو سره په لوى حيرت سره د جبرائيل عليه السلام څخه) پوښتنه وكړه چې اې جبرائيل! دا كوم خلق دي؟ ⑤ هغه وفرمايل چې دا سود خواره دي. (احمد ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① الْحَيَّاتُ: ماران.

**نوټ:** - دحديث د ترجمې څخه د سودخورو د عذاب مطلب ښكاره دي

**[۲۸۲۹] په سودخوربانديې د رسول الله ﷺ لعنت ويل**

۲۸۲۹ — [۳۳] (²) ① وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "② «لَعَنَ آكِلَ الرِّبَا وَمُوكِلَهُ ③ وَكَاتِبَهُ وَمَانِعَ الصَّدَقَةِ ④ وَكَانَ يَنْهَى عَنِ النَّوْحِ» " رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① د حضرت علي كرم الله وجهه په باره كې منقول دي چې هغه واوريدل ② چې رسول الله ﷺ په سود اخستونكو سود وركونكو ③ د سود استهام ليكونكو د سود حساب كتاب ليكونكو او د صدقه څخه منع كونكو باندې لعنت فرمايلى ④ او حضور ﷺ به د ژړا (په مړي باندې وير) كولو څخه منعه فرمايله. (نسائي)

**حل اللغات:** - ① النَّوْحِ: نوحه. په مړى باندې واويلا كول. او ژړا كول.

¹) اخرجه ابن ماجة في كتاب التجارات/ باب التغليظ في الربا (رقم-٢٢٧٤) واحمد في المسند: ٢/ ٣٦٣
²) اخرجه النسائي في كتاب الزينة/باب الموتشمات وذكر الإختلاف على عبد الله بن مرة والشعبي في هذا (رقم-٥١٠٢)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَمَانِعَ الصَّدَقَةِ:

**د صدقي مانع جوړيدو وعيد:** - يعني يوخيرات نه برداشت كونكي بلكه هغه منع كونكي يعني داسي سړي چه نه پخپله صدقه كوي او نه بل څوك كولوته پريږدي.

**قوله:** عَنِ النَّوْحِ:

**د نوحې معنى او حكم:** -په مړي ژړا كونكي، دمړي صفتونه كولوسره په چغو چغوژړا كونكى ته نائح ونيلي شي اودَ ده دَ دې عمل نوم "نوحه" ده چه ناجائز اوحرام كاردې

**د مړې ورځو څخه زيات د ماتم عدم جواز:** - دري ورځي ماتم كول په يومړي باندې جائزدي دَ دريو ورځونه زيات ماتم اوخفګان كول جائزنه دى البته غم او دَستركونه اوښكي توئيدل جدا څيزدي كوم چه جائز دې بل ښځي له دَ خپل خاوند په مرګ باندې لس ورځي او څلور مياشتي ماتم كول يعني دول سنګارپريخودل كول جائز دى

**[٢٨٣٠] حضرت عمر ﷺ اودَ سود ضابطه نبودل**

| |
|---|
| ٢٨٣٠ - [٢٣] ( ) ١ وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ " ٢ إِنَّ آخِرَ مَا نَزَلَتْ آيَةُ الرِّبَا، ٣ وَإِنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قُبِضَ وَلَمْ يُفَسِّرْهَا لَنَا، ٤ فَدَعُوا الرِّبَا وَالرِّيبَةَ ". (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ). |

**ترجمه:** ١ د حضرت عمر فاروق ﷺ څخه دا ارشاد منقول دى ٢ چي اخري كوم څيز نازل شوى دى (يعني دقرآن كريم) د هغه معاملاتو سره متعلق چي كومه حصه د ټولو څخه په آخر كي نازله شويده هغه د ربا آيت دى ٣ وداچي رسول الله ﷺ د دې دنيا څخه په داسي حالت كي تشريف يوورى چي حضور ﷺ د دې تفصيل بيان نه كري ٤ نو سود هم پريږدئ او په كوم څيز كي چي د سود شك شبهه وي هغه هم پريږدئ. (ابن ماجه دارمي)

**حل اللغات:** - ١ الرِّيبَةَ: شک شبهه

**تسهيلات: قوله:** وَلَمْ يُفَسِّرْهَا:

**دعدم تفسير څخه مراد:** - دَدي مطلب دانه دي چه حضوراكرم دَ سود متعلق قاعدي او ضابطي نه دى بيان كړي بلكه مطلب دادي چه حضورپاك باندي دَ رباحكم په آخرى عمركښي نازل شوي حضورپاك دَدي قاعدو خو بيان كړى دى ليكن دَ دي تفصيلات نى تردغه وخته پوري نه وو بيان كړي چه دَ دنيا نه ئى تشريف يوړو لهذا سود هم پريږدنى او چرته چه دَ سود شك او احتمال وى هغه صورت هم پريږدنى نوحضورپاك دَ ضابطه په توګه شپږو څيزونوكښي دَ سود ذكر اوفرمائيلو په كوم سره چه دَ يوضابطه او قاعده طرف ته اشاره اوكړي شوه. دَدي اشاري تفصيلات ائمه مجتهدين دَ خپل اجتهاد په ذريعه بيان

() اخر جه ابن ماجة في كتاب التجارات / باب التغليظ في الربا (رقم - ٢٢٧٤)

کړل اوس هر یو ګوټ دَدې قاعده کلیه لاندې راغلو لهذا چرته چه دَ سود قاعده جاري کیږي دَهغې نه به خان ساتلې کیږي دَحضرت عمر رضي الله عنه دَ قول هم دغه مطلب دې ملحدینو چه دَدې قول نه دَ سود دَمعاف کیدو کوم مطلب راویستې دې هغه الحاد او زندقه دې کوم چه دَ هغوی خپله ورڅه ده

**[۲۸۳۱] دَ قرض داری څخه دَ فائدې حاصلولو حرمت**

۲۸۳۱-[۲۵] (١) ١ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٢ «إِذَا أَقْرَضَ أَحَدُكُمْ قَرْضًا ٣ فَأَهْدَى إِلَيْهِ أَوْ حَمَلَهُ عَلَى الدَّابَّةِ ٤ فَلَا يَرْكَبْهُ وَلَا يَقْبَلْهَا ٥ إِلَّا أَنْ يَكُونَ جَرَى بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ قَبْلَ ذَلِكَ» (رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه:** ١ او حضرت انس رضي الله عنه وايې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل ٢ کله چې په تاسو کې يو سړی چاته قرض ورکړي ٣ او بيا قرض اخستونکی (هغه قرض ورکونکي ته څه تحفه وليږله يا د سوارلۍ د پاره څه شی ورته وليږلو ٤ نو هغه (قرض ورکونکی) دې نه په هغه حيوان سوريږي او نه دې د هغه تحفه قبلوي، ٥ خو که د قرض ورکونکی او قرض اخستونکی د دواړو منځ کې د مخکې څخه د تحفې يا د سوارلۍ د حيوان لين دين (راکړه ورکړه) جاري وو (نو بيا د هغه په قبلولو کې څه حرج نشته) ابن ماجه بيهقي،

**حل اللغات:** - ① جَرَى: جاري وی.

**تسهيلات:**

**قوله فَأَهْدَى إِلَيْهِ أَوْ حَمَلَهُ عَلَى الدَّابَّةِ فَلَا يَرْكَبْهُ وَلَا يَقْبَلْهَا:**

**د حديث نه د يوې شرعي قاعدې استنباط:** -يعنی دَ قرض ورکولو دَوجې نه مديون دغه دائن سره کومه هم دَ نرمئ معامله کوی هغه دَ سود په زمره کښې راځی ځکه چه قرض خواه خپل قرض دَ وجې نه دَهغه نه دا فائده حاصله کړه او "کل قرض جر نفعا فهو ربا" دَعلماؤ متفقه قاعده ده کوم چه يوحقيقت دې که دَ دغه قرض دَ لين دين نه وړاندې مديون دغه دائن سره دَ تحفه اوهديه معامله کوله نودَ قرض نه پس هم جائز دی.

**حديث الباب او د امام ابو حنيفه رحمه الله عمل:** - حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دَخپل مديون د مکان دَسوری لاندې نه اودريدلو حالانکه سخت نمر هغه تنګ کړې وو. دا دَ دې ويرې نه وو چه چرته مديون نه دَ دين دَ وجې نه څه نفع حاصله نه کړی. دَدې نه معلومه شوه چه کوم خلق نن دورکښې دَ مديون کورته ورځی دَ قرض دَپاره شپه تيره وی اودَ قرض داری نه خوراک وغيره کوی دا ټول ناجائز اوحرام دی اوکه دَ اول نه ئې تعلقات وی نوهغه جدا خبره ده

[1] اخرجه ابن ماجة في كتاب الصدقات/باب القرض (رقم-٢٤٣٢) والبيهقي في شعب الايمان

**[۲۸۳۲] د مقروض څخه د هديه اخستلو ممانعت**

۲۸۳۲ – [۲۰] ( ) [۱] وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [۲] «إِذَا أَقْرَضَ الرَّجُلُ الرَّجُلَ فَلَا يَأْخُذْ هَدِيَّةً» " [۳] رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ فِي تَارِيخِهِ، هَكَذَا فِي الْمُنْتَقَى.

**ترجمه:** [۱] حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړی چې چاته قرض ورکړي نو هغه دي د خپل قرضدار څخه بطور تحفه هم څه څيز نه قبلوي. [۳] امام بخاري رحمه الله دا روايت په خپل تاريخ کې نقل کړي دی او په منتقی کې هم دغه شان روايت منقول دی

**نوټ:** - د دې حديث وضاحت وړاندې د حديث نمبر (۲۸۳۱) په تسهيل کښې تيرشوې دې

**[۲۸۳۳] د مقروض څخه د ډالۍ اخستلو ممانعت**

۲۸۳۳ — [۲۱] ( ) [۱] وَعَنْ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ أَبِي مُوسَى قَالَ: [۲] قَدِمْتُ الْمَدِينَةَ [۳] فَلَقِيتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ سَلَامٍ [۴] فَقَالَ: " «إِنَّكَ بِأَرْضٍ فِيهَا الرِّبَا فَاشٍ، [۵] فَإِذَا كَانَ لَكَ عَلَى رَجُلٍ حَقٌّ فَأَهْدَى إِلَيْكَ حِمْلَ تِبْنٍ أَوْ حِمْلَ شَعِيرٍ أَوْ حِمْلَ قَتٍّ [۶] فَلَا تَأْخُذْهُ [۷] فَإِنَّهُ رِبًا» " رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ابوبرده ابن ابي موسى (تابعي) رحمه الله وايي [۲] زه چې مديني ته راغلم [۳] او د حضرت عبد الله ابن سلام (صحابي) رضي الله عنه سره يو ځای شوم [۴] نو هغه راته وفرمايل [۵] چې ته په يو داسې وطن کې يې چې هلته د سُود رواج ډير دی [۵] که په چا ستا حق وي .يعني څوك ستا قرضدار وي) او هغه تاته د بوسو يا د اوربشو يا د وښو يو ګاډی د تحفې په طور درکوي [٦] نو هغه مه قبلوه [٧] ځکه چې هغه د سود حکم لري. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① فَاشٍ: عام، ډير زيات. ② حِمْلَ: په معنی د محمول سره، بار، بوج. ③ تِبْنٍ: بهوس. بوره. ④ شَعِيرٍ: اوربشې. ⑤ قَتٍّ: شنه واښه، شنه ګيا.

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت ابوبرده بن ابوموسى اشعرى** رضي الله عنه : نوم عامر ابوبرده کنيت. دې د مشهورصحابی ابوموسى اشعرى رضي الله عنه خوئ وو. حضرت ابوبرده رحمه الله زيات علم دَحضرت عبدالله بن سلام رحمه الله نه زده کړې وو او دې سره سره ئې د خپل پلار نه هم علم حاصل کړې وو حافظ ذهبي رحمه الله ليکي: "ابوبردة ابن ابى موسى الاشعري الفقيه احدالائمة الاثبات". امام نووى رحمه الله په تهذيب الاسماء کښې فرمائي چه دَ هغه په توثيق او جلالت باندې دَ ټولو اتفاق دې. علامه ابن سعد رحمه الله فرمائي "كان ثقة كثيرا الحديث" احاديث په کثرت سره روايت کوی ثقه دې. دَ قاضی شريح رحمه الله نه په کوفه کښې قاضی جوړشو دَدې نه پس دَهغه خوئ بلال قاضی جوړشو.

---

[۱] لم اظفر على تخريجه فى التاريخ ا لكبير للبخارى ولافى غيره من الكتب .شاه فيصل

[۲] اخرجه البخارى فى كتاب المناقب/باب مناقب عبد الله بن سلام رضى الله عنه (رقم-۳۸۱٤)

**وفات:**-٤٠١ هـ کښې وفات شو. (١) دَ راوی حدیث حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه حالات حدیث نمبر (٢٨٣) کښې تیرشوی دی.

**تسهیلات: قوله: حِمْلَ تِبْنٍ:**

**مذکوره جملې مطلب:**-یعنې چه مقروض دَ خر او قچر دَ بار برابر بهوس راوړی درکړی یا چه څه راوړی درکړی

**قوله: أَوْحِمْلَ قَتٍّ:**

**د قت څخه مراد:**- قت دَ یوښکلی واښو نوم دې چه تك شنه وی کوم ته چه رطبه هم وائی مراد ترې نه ښکلې واښه دی. کوم چه څناور په ډیر شوق سره خوری حبل دَمحبول په معنی کښې دې دَ ښکلې وښو ترلې شوې پنډ مراد دې.

**قوله: فَلَاتَأْخُذْهُ فَإِنَّهُ رِبًا**

**دقرضداری څخه د نفعې اخستلوحکم:**- یعنې دَ قرض په دباؤ کښې چه کومه نفع هم حاصله شی هغه دَ سود په زمره کښې راځی اوکه دَ پخوانی دستور او رواج مطابق وی اودَمروت او احسان لاندې وی نو په دې کښې مضائقه نشته دې اوکوم خلق چه قرض ورکولوسره دَ څه نفع شرط لګوی دَهغې په حراموالی کښې هیڅ شك نشته دې

## [٥] بَابُ الْمَنْهِيِّ عَنْهَا مِنَ الْبُيُوعِ

**دَممنوع بیوعاتوبیان**

**خلاصة الباب:-**

**فيه أربعون أحاديث مشتملة على ثلاث مسائل:**

① البيوع المنهية عنها: ١، ٢، ٣، ۴، ۶، ٧، ٨، ٩، ١٠، ١١، ١٢، ١٣، ١۴، ١۵، ١۶، ١٧، ١٨، ١٩، ٢٠، ٢١، ٢٢، ٢٣، ٢۴، ٢۵، ٢٧، ٢٨، ٢٩، ٣٠، ٣١، ٣٢، ٣٣، ٣۴، ٣۵، ٣۶.

② البيوع الجائزة: ۵، ٣٧، ٣٨، ٣٩.

③ الزجر على الغش: ٢۶، ۴٠.

**د ژوند تیرولو دپاره د اسلام کامل نظام:**- اسلام چونکه یوژوندې او آباد مذهب دې اودا کامل مکمل بالکل کامله دَ ژوند یوضابطه ده په دې وجه په دې کښې دَ انسان دَ ژوند تولوارخونو دَ ضروریاتو او مشکلاتو حل موجود دې هم په دې سلسله کښې اسلام دَ هر

(١) ابن سعد ١٨٧/٥).(٢) البخاری فی المغازی باب من قال فی الخطبة بعد الثناء أما بعد).
(٣) روضة المتیقین ٧٩/٢.

انسان دَ لين دين اودَ اخستلو خرڅولو هره يوه زاويه دَ نظرلاندې ساتي او هروخت دَ انسان لاڅخودنه کوی چه داسې کوه په دې کښې فائده ده اوداسې مه کوه په دې کښې نقصان دې اوس چه په بيوعاتوکښې دَ نه کولوکوم ممنوعه صورتونه دی په شريعت کښې دَ هغې ښه وضاحت کړې شوې دې بعض صورتونه خوهغه دی دَ کوم ممانعت چه دَ حرام په توګه دې اودَ بعض ممانعت دَ کراهت په توګه دې هم دا په زيربحث باب کښې بيانولې شی

**په عباداتو ‌ه باطل او فاسد مفهوم:** - په عباداتو کښې چې کله لفظ باطل او فاسد استعماليږی نو په دې کښې هيڅ فرق نشته دې دواړه الفاظ دَ غيرمقبول اوناجائزدپاره استعماليږی

**په بيوعاتو کښې ‌ه باطل او فاسد مفهوم:** - دَ بيوعاتو اومعاملاتو معامله بل شان ده دا الفاظ چه کله په بيوعاتوکښې راځی نو په باطل اوفاسدکښې فرق وی بيع فاسد هغه وی چه اصلاً صحيح وی مګر وصفاً صحيح نه وی او بيع باطل هغه وی چه نه اصلاً صحيح وی اونه وصفاً صحيح وی

**مزيدوضاحت:** - په نورو الفاظوکښې داسې اوګڼرئی چه بيع فاسد کښې خرڅ کړې شوې څيز دَ قبض کولونه پس دَ مشتری په ملکيت کښې راځی سره دَدې چه حرام وی ليکن په بيع باطل کښې يوخرڅ شوې څيزدَمشتری په ملکيت کښې نه راځی په ممنوع بيوعاتو کښې داهم دی چه کوم څيز مال نه دې دَ هغې بيع کول صحيح نه دی اوکوم څيزچه دَ چا په لاس کښې نه دې دَهغې بيع صحيح نه ده کومه بيع چه جګړه اوفساد پيداکوی هغه جائزنه ده په معاملاتوکښې دروغ دهوکه او وعده خلافی کنځلې وغيره کول هم حلال مال خرابه وی لهذا دَدې نه ځان ساتل ضروری دی دغه شان په بيوعاتو کښې دَ عقد بيع منافی شرط لګول هم باطل دی

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[٢٨٣٣] دَبيع مزابنه تعريف اوممانعت**

٢٨٣٣ - [١] (١) [١] عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: نَهَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُزَابَنَةِ: [٢] أَنْ يَبِيْعَ تَمْرَ حَائِطِهِ إِنْ كَانَ نَخْلًا بِتَمْرٍ كَيْلًا [٣] وَإِنْ كَانَ كَرْمًا أَنْ يَبِيْعَهُ بِزَبِيْبٍ كَيْلًا أَوْكَانَ [٤] وَعِنْدَ مُسْلِمٍ وَإِنْ كَانَ زَرْعًا أَنْ يَبِيْعَهُ بِكَيْلِ طَعَامٍ [٥] نَهَى عَنْ ذٰلِكَ كُلِّهِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[١] ) اخرجه البخاری فی كتاب البيوع/باب بيع الزرع بالطعام كيلا (رقم ٢٢٠٥) ومسلم فی كتاب البيوع/باب تحريم بيع الرطب بالتمر إلا فی العرايا (رقم-٧٦ - (١٥٤٢) والترمذی فی كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی العرايا والرخصة فی ذلك (رقم: ١٣٠٠) والنسائی فی كتاب البيوع/باب بيع الزرع بالطعام (رقم-٤٥٤٩) وابن ماجة فی كتاب التجارات/ باب المزابنة والمحاقلة (رقم-٢٢٦٥) ومالك فی الموطا كتاب البيوع/باب ما جاء فی المزابنة والمحاقلة (رقم-٢٣) واحمد فی المسند: ٧/٢

**ترجمه**: [١] حضرت ابن عمر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ د مزابنه څخه منع فرمايلي ده [٢] او مزابنه دا ده چې يو سړی د خپل باغ ميوه (تازه ميوه) که هغه کجوري وي د وچو کجورو په بدله کې د پيماني په ذريعه (مثلًا د لس پيماني په قدر) خرڅه کړي (يعني د يو سړي په باغ کې تازه کجوري لګيدلي دي او د يو بل سړي سره اوچي کجوري پرتي دي نو باغ والا سړی د هغه دويم سړي څخه لس پيماني د کولو سره اوچي کجوري واخلي او د هغه په عوض کې په خپله ونه کې تازه کجوري د هغه پيماني مطابق اندازه کړي خرڅي کړي) [٣] او که ميوه انګور وي نو د هغه د وچو انګورو په بدله کې د پيماني په ذريعه يې خرڅ کړي (حاصل دا چې د بيع مزابنه مطلب دا دی چې په ونه باندې لګيدلي ميوي که هغه کجوري وي يا يو بله ميوه وي د اوچي ميوي په عوض کې خرڅول) [٤] او په مسلم کې دا هم دي که فصل وي نو (په هغه کې د بيع مزابنت شکل دا دی چې) هغه د غلي په عوض کې د پيماني په ذريعه خرڅ کړي (يعني په کښې تې کې ولاړه غله د اېښودل شوي غلي په عوض کې خرڅه کړي مثلًا د يو سړي په کښې تي کې غنم ولاړ دی او د يو بل سړي سره غنم پراته دي نو مخکني سړی په خپله کښې تي کې د ولاړو غنمو اندازه کولو سره هغه د دويم سړي په لاس خرڅ کړي او د هغه په عوض کې د هغه سړي څخه هغه پراته غنم د خپلي اندازې مطابق پيمانه د کولو سره واخلي) [٥] حضور ﷺ د بيع دا ټول قسمونه منع فرمايلی دی. (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: - ① الْمُزَابَنَةِ: د زبن نه په معنی د دفع کولو، فسخ کولو ② كَرْماً: انګور

[١] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا: [٢] نَهَى عَنِ الْمُزَابَنَةِ [٣] قَالَ: "وَالْمُزَابَنَةُ: أَنْ يُبَاعَ مَا فِي رُؤُوْسِ النَّخْلِ بِتَمْرٍ بِكَيْلٍ مُسَمًّى [٤] إِنْ زَادَ فَلِي وَإِنْ نَقَصَ فَعَلَيَّ، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [١] او د بخاري او مسلم په يو بل روايت کې داسې دي [٢] چې حضور ﷺ د بيع مزابنت څخه منع فرمايلي ده [٣] او فرمايلي يې دي چې بيع مزابنه دا ده چې يو سړی په خپلو ونو کې لګيدلي تازه کجوري د يو سړي په لاس د هغه سره د اېښودل شوو اوچو کجورو په عوض کې پيمانه معين کولو سره خرڅي کړي [٤] او خريدار ته اوواني که د ونې کجوري د معين مقدار څخه زياتي شوي نو ښه دي (يعني زه به هغه اخلم او که کم وختلې نو د هغه هم ذمه واريم چې هغه کمی به زه پوره کوم)

**تسهيلات**:

**قوله**: عَنِ الْمُزَابَنَةِ:

**ه مزابنه لغوي معنی**: ـ دا دَ زبن نه دي دَ دفع په معنی کښې دې ځکه چه په دې عقد کښې کوم سړی دهوکه خوړلې هغه ته دَ خبر کيدونه پس عقد دفع او فسخ کول پکاردی.

**ه مزابنه اصطلاحي تعريف**: ـ دَدې اصطلاحي تعريف دادې چه په ونو باندې لګيدلي تازه

ميوې که هغه عام ميوې وي او که خاص کهجورې وي هم دَ دغه جنس کيخودې شوو اوچو ميوو په عوض دَ خرڅولو نوم مزابنه دې دَدې نه لږ شان مختصر تعريف داسې دې چه په ونوباندې لګيدلې ميوې هم دَهغه جنس دَ راشوکولو ميوو په بدله کښې خرڅولو نوم مزابنه دې

بهرحال په ونو باندې لګيدلې ميوې وي او که فصل يا دَدې قسم نور څيزونه وي په ټولو باندې مزابنه صادق راځي کله دَ مزابنه اطلاق محاقله باندې هم کيږي

**د بيع مزابنه د ممانعت وجه:** - دَ مزابنه دَ ممانعت وجه داده چه په دې کښې په ونوباندې لګيدلې شوې ميوې معلوم نه دي په دې کښې جهالت دې صرف په اندازه سره ورکولې شي او هره هغه بيع په کومه کښې چه مبيعه يا ثمن مجهول وي هغه مفضي الى النزاع وي او مفضي الى النزاع بيع جائز نه ده لهذا مزابنه جائز نه ده دَ محاقله دَ ممانعت وجه هم دغه ده دَ مزابنه او محاقله تعريف پخپله په حديث کښې مذکور دې لهذا هم دغه کتل پکار دي

**[٢٨٣٥] دَبيع محاقله ممانعت**

٢٨٣٥ - [٢] (١)١ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: ٢ «نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنِ الْمُخَابَرَةِ وَالْمُحَاقَلَةِ وَالْمُزَابَنَةِ ٣ وَالْمُحَاقَلَةُ أَنْ يَبِيعَ الرَّجُلُ الزَّرْعَ بِمِائَةِ فَرَقٍ حِنْطَةً ٤ وَالْمُزَابَنَةُ: أَنْ يَبِيعَ التَّمْرَ فِي رُءُوسِ النَّخْلِ بِمِائَةِ فَرَقٍ، ٥ وَالْمُخَابَرَةُ كِرَاءُ الْأَرْضِ بِالثُّلُثِ وَالرُّبُعِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت جابر ﷺ وايي ٢ چې رسول الله ﷺ د مخابرت محاقلت او د مزابنت څخه منع فرمايلي ده ٣ او محاقلت دا دی چې يو سړی خپل فصل د سل فرق غنمو په بدله کې خرڅ کړي ٤ او مزابنت دا دی چې يو سړی په ونو کې لګيدلي کجوري د سل فرق اينبودل شوو کجورو په بدله کې خرڅ کړي ٥ او مخابرت دا دی چې يو سړی خپله زمکه په يوه معينه حصه لکه دريمه يا څلورمه باندې کاشت د پاره ورکړي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْمُخَابَرَةِ: زمکه په کرايه يا مزارعه باندې د ورکولو يو ناجائز قسم، ② الْمُحَاقَلَةِ: د ولاړ فصل د خرڅولو د معاملې يو ناجائز قسم، ③ فَرَقٍ: يوه پيمانه چه د ١٦ رطل يعنی اته سيره برابر ده

**تسهيلات: قوله: وَالْمُحَاقَلَةُ:**

**د محاقله لغوی معنی:** - دَ باب مفاعله نه دې حقل آبادې زمکې ته هم وائی او حقل مزارعت او زميندارئی ته هم وائی دلته په زميندارئی کښې معامله کول مراد دی.

(١) اخرجه مسلم فی كتاب البيوع/باب النهی عن المحاقلة والمزابنة، وعن المخابرة، وبيع الثمرة قبل بدو صلاحها، وعن بيع المعاومة وهو بيع السنين (رقم-٨١ - (١٥٣٦)

**د محاقله اصطلاحي تعريف:** - دَ دې اصطلاحي تعريف داسې دې ولاړ فصل هم دَ هغه جنس دَ وتلې شوې غلې په بدله کښې دَ خرڅولو نوم محاقله دې دَ سود احتمال، دَ جګړې مکان او دَ جهالت مبيع دَ وجې نه دا بيع ناجائز ده

**قوله: فَرَق:**

**د لفظ فرق لغوي تحقيق او مصداق:** -په راء باندې زبردې دادَ يوپيمانې نوم دې په کوم کښې چه ۱۶ رطل يعنى اته سيره غله راځي په دې کښې يولفظ دَ راء په سکون سره هم دې هغه دَ هغه پيمانې نوم دې په کوم کښې ۱۲۰ رطل غله راځي په دې حديث کښې دَ فرق ذکر دَ مثال په توګه دې څه تحديد اوتعين نشته دې

**[۲۸۳۶] دَ کلونودَپاره دباغونو د خرڅولو ممانعت**

۲۸۳۶-[۳] ()⑴ وَعَنْهُ قَالَ «نَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنِ الْمُحَاقَلَةِ وَالْمُزَابَنَةِ وَالْمُخَابَرَةِ وَالْمُعَاوَمَةِ وَعَنِ الثُّنْيَا ⑵ وَرَخَّصَ فِي الْعَرَايَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ⑴ حضرت جابر ﷺ وايي رسول الله ﷺ د محاقلت مزابنت مخابرت معاومت او ثنيا څخه منع فرمايلي ده ⑵ ليکن حضور ﷺ د عرايا اجازت ورکړي دى. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْمُعَاوَمَة: د ميوو ونې دکال يا دکال نه زيات په کرايه باندې ورکول ② الثُّنْيَا: استثنى کول. څه خاص حصه مستثنى کول ③ رَخَّصَ: اجازت ورکول. ④ الْعَرَايَا: عطيه ورکول

**تسهيلات:**

**قوله: وَالْمُعَاوَمَةِ:**

**د بيع معاومه تعريف:** - محاقله مزابنه او مخابره معنى دَدې نه وړاندې بيان شوى دى دلته په دې حديث کښې دَ معاومه لفظ راغلې دې دادَباب مفاعله نه دې دَدې په ماده کښې لفظ عام پروت دې کوم چه دَ کال په معنى کښې دې لکه چه په مشاهره کښې "شهر" لفظ پروت دې علامه ابن اثير رحمه الله په نهايه کښې ليکلى دى چه دَ کهجورو وغيره ونو ميوې دوه کاله يا درې کاله يا دَدې نه زيات کلونودَپاره خرڅولونوم معاومه دې

**د بيع معلومه د ممانعت وجه:** -دا بيع ناجائز ده څکه چه دَ مبيعه وجودنشته دې اودَ معدوم بيع ناجائزده څکه چه دا مفضى الى النزاع دې نن صبا تهيکداران خلق باغونه دَ دريو څلورو کالو په تهيکه باندې اخلى اوپيسې اول ورکوى کله په کال کښې ميوه راشى اوکله پيسې ضائع شى دا ناجائز او حرام دى

---

[۱] اخرجه مسلم فى كتاب البيوع/باب النهى عن المحاقلة والمزابنة، وعن المخابرة، وبيع الثمرة قبل بدو صلاحها، وعن بيع المعاومة وهو بيع السنين (رقم-۸۵ - (۱۵۳۶)) والترمذى فى كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى المخابرة والمعاومة (رقم: ۱۳۱۳) واحمد فى المسند: ۳/۳۱۳

**د بیع معلومه جائز صورت:** -ددې آسان او جائز صورت دادې چه زمکه دې په اجاره باندې حاصله کړی دَ معاومه دویم نوم بیع السنین هم ده چه په راتلونکواحادیثوکښې ذکر دې

**قوله وَعَنِ الثُّنْيَا:**

**د بیع ثنیا تعریف او د حرمت وجه:** -ثاء باندې پیش اونون ساکن دې دادَ استثناء په معنی کښې دې دَدې مطلب دادې چه په ونوکښې موجود میوې خرڅې کړې شی لیکن په دې کښې غیرمعین مقدار مستثنی کړې شی مثلاً داسې اووئیلې شی چه ماداباغ په تاباندې خرڅ کړومګر یو څو ونې نه په دې کښې په مبیع کښې جهالت راغلو چه دَ جګړې سبب دې لهذا بیع فاسد ده دعرایا بحث په وړیسې حدیث کښې را روان دې

**[٢٨٣٤]دَبیع عرایا حکم**

٢٨٣٤—[٠] ()١وَعَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ قَالَ٢«نَهَى رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-عَنْ بَيْعِ الثَّمَرِ بِالتَّمْرِ ٣إِلَّا أَنَّهُ رَخَّصَ فِي الْعَرِيَّةِ أَنْ تُبَاعَ بِخَرْصِهَا تَمْرًا٤يَأْكُلُهَا أَهْلُهَا رُطَبًا» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه:** ١حضرت سهل ابن ابي حثمه وايي٢ چې رسول الله ﷺ په ونه کې د لګیدلو کجورو د وچو کجورو په بدله کې د خرڅولو څخه منع فرمايلې ده٣ لیکن حضور ﷺ د عریه (یو محتاج ته د ورکول شوي ونې) متعلق دا اجازت ورکی چې هغه په ونې باندې لګیدلي میوه د هغه د وچیدو (څخه وروسته مقدار) آندازه کولو سره خرڅ شي (یعني دا اندازه وشي چې په هغه ونه باندې لګیدلي تازه کجوري د وچیدو څخه وروسته به څومره وي او بیا په هغه مقدار کې وچې کجوري هغه محتاج ته ورکولو سره په هغه ونې باندې کجوري وآخستی شي) ٤د غه شان د هغه مالك د هغه ونې میوه تازه وخوري. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ①الْعَرِيَّةِ: ددې جمع عرایا راځي، په معنی دخالی کولوسره. ②بِخَرْصِهَا: په اندازه کولو دهغې.

**تسهیلات: قوله: الْعَرِيَّةِ:**

**د العرایا لغوی تحقیق:** -داجمع ده دَدې مفرد عریة دې کوم چه په دې حدیث کښې ذکردې په نورو احادیثوکښې دَ جمع صیغه راغلې ده العریة والعرایا دَ الاضحیة والضحایا او المطیة والمطایا په شان دې عریه دَتعری نه دې چه دَ بربندولو او خالی کولوپه معنی کښې دې چونکه دَ باغ مالك دَ یوڅوکهجورو نه لاس راکاږی خالی کوی په دې وجه دې ته په لغوی توګه باندې عریه اووئیلې شو

---

[١] اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب بيع الثمر على رءوس النخل بالذهب أو الفضة (رقم-٢١٩١) ومسلم في كتاب البيوع/باب تحريم بيع الرطب بالتمر إلا في العرايا (رقم-٦٧ - (١٥٤٠) والنسائي في كتاب البيوع/باب بيع العرايا بالرطب (رقم-٤٥٤٢)

**د عرایا په تفسیر کښې مذاهب:-**

په دې باندې دَ ټولو فقهاؤ اتفاق دې چه عرایا جائز ده البته توضیح تشریح اودَ دې تفسیر اوتصویر کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې

① امام شافعی رحمه الله فرمائی چه په اصل کښې عریه دَ هغه محتاج خلقودَپاره وه چاسره چه نه څه باغ وو نه ورسره پیسه وه اوهغوی سره به اوچې کهجورې وې کله چه به دَ کهجورو موسم راتلو نودَهغوی به دَ رطب خوړلو شوق پیدا کیدو دَ اخستلو گنجائش دَنشتوالی دَ وجې نه هغوی حضورپاك ته درخواست اوکړو چه دَ اوچو کهجورو په بدله کښې که مونږ ته رطب ملاؤ شی نو حضورپاك اجازت ورکړو اودا شرط نې اولګولو چه دَ اوچو کهجورو وزن دې معلوم وی کیل دې معلوم وی اودا معامله دې په پنځو وسق کښې وی چونکه دا دَ ضرورت لاندې اجازت وو لهذا دَ ضرورت په رنړا کښې دا بیع مزابنه نه مستثنی اوګرځولې شوه ګنی په حقیقت کښې داهم مزابنه ده لکه چه مزابنه په دوه قسمه باندې ده یوه مزابنه ناجائز ده او دویمه مزابنه جائز ده دکوم نوم چه عریه دې.

② دَامام مالك رحمه الله نه دَ عریه دوه تفسیرونه نقل دی اول تفسیر اوتصویر دادې چه دَ عریه صورت به داشان وومثلاً دَ یوسړی به لوئی باغ وو په دغه لوئی باغ کښې به دَ دویم سړی په توګه دَملکیت دَ کهجورو یوځو ونې وې دَ عربو دستور وو چه دَ میوې دَراشوکولو په موسم کښې دَ خپل بال بچ سره خپلو باغونو ته راتله خیمې لګولوسره به اوسیدل اوس به دا مشکل پیښیدو چه باغ ته به هغه سړې هم تلو راتلو دَ چا چه یوځو ونې ملکیت وې دې سره به دَ لوئی باغ والا ته تکلیف کیدو په دې وجه به هغه دغه سړی ته اوچې کهجورې ورکولوسره دَهغه دَ هغه ونې اخستلې چونکه داخالص مجبوری وه په دې وجه حضورپاك ددې اجازت ورکړو لکه چه دا هم دَ مزابنه یو صورت وو لیکن دَ مجبورئی دَ وجې نه خلاص ګرځولې شوې

③ امام مالك رحمه الله دَ عریه دویم تفسیر داسې هم بیان کړې دې کوم چې احنافو امامانو اختیار کړې دې هغه داسې چې دې وخت کښې مثلاً دَ باغ مالك په باغ کښې یوسړی ته دَ هبه په توګه اوعطیه کښې یو څو کهجورې ورکولې بیا دَ موهوب له سړی په تګ راتګ سره دَ باغ مالك ته تکلیف کیدلو په دې وجه دَ باغ مالك دَ خپل کور نه اوچې کهجورې ورکولوسره هغه فارغ کولو ددې مجبورئی دَ وجې نه حضورپاك دَمزابنه ددې صورت اجازت ورکړې وو

**د امام مالك د تفسیر اختیارولو وجه:-** احنافو دَ امام مالك رحمه الله دا تفسیر څکه اخستې دې چه امام مالك رحمه الله دَاهل مدینه لغت ته دَ ټولو نه بهترین لغت وئیلو او په اهل مدینه کښې دَعریه هم دغه تفسیر شائع وو لهذا دَ هغې اخستل دَټولو نه بهتر دی

**اعتراض:**- دَ احنافو دَ تفسير مطابق دَهبه نه رجوع كول لازم راځي چه دَ باغ مالك اول ونې هبه كړې بيا رجوع كولوسره اوچې كهجورې وركړې دا څنگه جائزشو؟

**داعتراض جواب:**- دلته اول دَهبه نه رجوع نه ده كړې شوې بلكه دا نې فسخ كړې ده څكه چه تراوسه پورې دَ دې قبضه نه وه شوې نودا استردادالهبة بالهبة دې. دَ يوې عطيه په ځائې بله عطيه وركړه په دې كښې هيڅ مضائقه نشته دې

**د مالكيانو او احنافو په تنقيح كښې فرق:**- ليكن دَمالكيه او احناف تنقيح اوتخريج كښې لږ شان فرق دې

① هغه دا چه مالكيه دې ته بيع جديد وائى اودا بالكل مزابنه گرخوى مگر دَ ضرورت دَ وجې نه دا دَ مزابنه نه مستثنى گرځوى.

② ليكن احناف دا صورت هبه اوعطيه گرځوى اووائى چه دلته دَ يوې هبې بلې هبې سره تبادله شوې ده نودا استردادالهبة بالهبة دې. اگرچه دَ بيع صورت دې مگر حقيقت كښې عطيه ده دلته دَمزابنه هڅو سوال نه پيدا كيږى او په حديث كښې دَ مزابنه نه دَعرايا استثناء منقطع ده. لهذا عرايا په مزابنه كښې بالكل داخل نه ده څكه چه دَمزابنه ممانعت په ډيرو زياتو احاديثو كښې راغلې دې.

**د عرى تفسير په عطيه سره د اهل لغت د اقوالو په رڼړا كښې:**-

① امام لغت ابوعبيد رحمه الله فرمائى العرية العطية.

② امام لغت ازهرى رحمه الله هم دا شان تفسير كړې دې.

③ ابن سيده هم عريه ته عطيه وئيلې ده

④ جوهرى رحمه الله هم عريه ته عطيه وائى.

⑤ په صحاح كښې هم دغه قول نقل دې.

⑥ صاحب قاموس متشدد شافعى دې هغه دَ عريه تعريف په عطيه سره كړې دې چه دا عريه عطيه ده.

⑦ علامه ابن منظور لسان العرب كښې ليكلى دى "أَعْرَاهُ النَّخْلَةَ وَهَبَ لَهُ ثَمَرَةَ عَامِهَا" يعنى دَ پوره كال دَپاره ميوه عطيه كولونوم عريه دې

⑧ امام طحاوى رحمه الله يو حديث نقل كړې دې په كوم كښې چه په واضح توگه دَ عريه تصوير دَعطيه دې فرمائى ((رخص في العرايا في النخلة والنخلتين توهبان للرجل يبيعهما بخرصهما تمرًا))

**د پنځو وسقو نه په كم مقدار كښې د عرايا د اجازت وجه:**- دَدې حديث نه پس والاحاديث كښې پنځه وسق نه كم كښې دَعريه حكم وركړې شوې دې چونكه عريه دَ حاجت اوضرورت دَ وجې نه جائزگرځولې شوې ده او ضرورت هم په دې مقداركښې پوره كيدلو په دې وجه

ددې ذکر کړې شوې دې یووسق دَ ٦٠ صاع وی او په یوصاع کښې دَ انګریزی سیر په حساب سره درې نیم سیره غله راځی او په پنځه وسقو کښې ٢٦من غله راځی (بخاری: ٢/٩٩ ومسلم: ١/٦٦٨)

**[٢٨٢٨] د بیع عرایا مسئله**

٢٨٢٨—[د] (١) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «أَرْخَصَ فِي بَيْعِ الْعَرَايَا بِخَرْصِهَا مِنَ التَّمْرِ ② فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ أَوْ فِي خَمْسَةِ أَوْسُقٍ» ③ شَكَّ دَاوُدُ بْنُ الْحُصَيْنِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه:** ① حضرت ابوهریره ﷺ وایې چې رسول الله ﷺ عرایا (محتاجو ته عاریتًا د ورکول شوو ونو میوه) په وچو کجورو سره اندازه کولو سره د خرڅولو اجازت ورکړې دی (یعني که په عرایا باندې لګیدلې کجورې په وچو کجورو سره بدلول وي نو مخکښې دې دا اندازه وشي چې دا تازه کجورې وچیدو څخه وروسته به څومره وي بیا په هغوی مره مقدار کې وچې کجوري په اخستو سره تازه کجورې ورکول شي ② خو د دې اجازت تعلق د دې صورت سره دی کله چې هغه د پنځه وسق څخه کمې وي یا پنځه وسق وي ③ د دې حدیث یو راوي داود د ابن حصین ته شک دی (چې حضور ﷺ په ارشاد کې د پنځه وسق څخه د کم تذکره وه یا د پنځه وسق تذکره وه)، بخاري مسلم.

**حل اللغات** - ① أَرْخَصَ: اجازت ورکول، ② الْعَرَايَا: ددې مفرد عرية راځی، په معنی دخالی کولو سره. ③ بِخَرْصِهَا: په اندازه کولو دهغې ④ أَوْسُقٍ: د وَسق جمع ده، یو خاص پیمانه چه د شپیتو صاع برابر وی

**تسهیلات:**

**نوټ:** – د حدیث نمبر (٢٨٣٧) په تسهیل کښې ددې حدیث شرح ذکرشوې ده

**[٢٨٢٩] د میوې د پخیدو څخه وړاندې دهغې د خرڅولو ممانعت**

٢٨٢٩—[١] (٢) ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ: ② «نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ بَيْعِ الثِّمَارِ حَتَّى يَبْدُوَ صَلَاحُهَا، ③ نَهَى الْبَائِعَ وَالْمُشْتَرِيَ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: «نَهَى عَنْ بَيْعِ النَّخْلِ حَتَّى تَزْهُوَ، وَعَنِ السُّنْبُلِ حَتَّى يَبْيَضَّ وَيَأْمَنَ الْعَاهَةَ».

[1] اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب بيع الثمر على رؤوس النخل بالذهب أو الفضة (رقم-٢١٩٠) ومسلم في كتاب البيوع/باب تحريم بيع الرطب بالتمر إلا في العرايا (رقم-٧١ - (١٥٤١) ابوداود في السنن كتاب البيوع/باب في مقدار العرية (رقم-٣٣٦٤) والترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في العرايا والرخصة في ذلك (رقم: ١٣٠١) ومالك في الموطا كتاب البيوع/باب ما جاء في بيع العرية (رقم-١٤)

[2] اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب بيع الثمار قبل أن يبدو صلاحها (رقم-٢١٩٤) ومسلم في كتاب البيوع/باب النهى عن بيع الثمار قبل بدو صلاحها بغير شرط القطع (رقم-٤٩ - (١٥٣٤) وابوداود في السنن كتاب البيوع/باب في بيع الثمار قبل أن يبدو صلاحها (رقم: ٣٣٦٧) وابن ماجة في كتاب التجارات/ باب النهى عن بيع الثمار قبل أن يبدو صلاحها (رقم-٢٢١٤)

**ترجمه:** [١] حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه وايي [٢] چې رسول الله ﷺ د ميوو هغه وخته پورې د خرڅولو څخه منع فرمايلې ده د څو پورې چې د هغه پوخ والى ښکاره نشي [٣] دا ممانعت د خرڅونکو او د خريدار دوارو د پاره دى. بخاري مسلم. د مسلم په يو روايت کې دا الفاظ دي چې حضور ﷺ د کجورو ميوه هغه وخته پورې د خرڅولو څخه منع فرمايلې ده د څو پورې چې هغه سره او زيړه نشي او حضور ﷺ د فصل د وږو هغه وخته پورې د خرڅولو څخه منع فرمايلې ده د څو پورې چې هغه پاخه نشي او د يو آفت څخه محفوظ نشي

**حل اللغات:** - ① يَبْدُوَ: چه ښکاره شى. ② صَلَاحُهَا: پوخ والي دهغې. ③ تَزْهُوَ: ميوه زيړه يا سره کيدل. ④ السُّنْبُل: وږې. ⑤ يَبْيَضَّ: سپينيدل، پخيدل. ⑥ الْعَاهَةَ: آفت

**تسهيلات:**

**قوله: يَبْدُوَ صَلَاحُهَا:** يعنى ترکومې پورې چه په ميوه کښې پوخوالي نه وى ښکاره شوې دَدې نه مخکښې دَدې خرڅول حرام دى

**د بدؤ الصلاح په تفسير کښې اقوال:**

① تفسير دَ شوافع په نيزدادې چه ميوه پخيدل شروع شى

② احناف دا تفسير کړې دې چه ميوه دَعام آفت او تباهئى نه محفوظ شى

**د ميوې پخيدو دپاره د مختلفو الفاظو استعمال:** - دې حديث کښې دَ يبدو الصلاح لفظ راغلې دې په نورو روايتونو کښې نور هم الفاظ راغلى دى مثلاً ① حتى يزهو ② حتى يبيض ③ حتى تزهى ④ حتى تحمر ⑤ حتى يحمارّ ⑥ حتى يشتد ⑦ حتى يسود. دَ دې ټولو احاديثو اودې ټولو الفاظو سره هم يوه خبره بيانول مقصود دى هغه دا چه "بُدُوّالصَّلَاحِ" نه مخکښې بيع مه کونى يعنى ترکومې پورې چه ميوه دَخه آفت نه مامون اومحفوظ نه وى هغه مه خرڅونى

**د آفت څخه د محفوظ کيدو علامات:** - دَ آفت نه محفوظ کيدو دَپاره مختلف علامات دى

① بعض ميوه او فصل په سپينيدو باندې دَ آفت نه محفوظ کيږى

② بعض په سره کيدو باندې

③ بعض په توريدو باندې

④ بعض په زيړيدو باندې محفوظ کيږى دې مختلف الفاظو سره هم دې مختلف حقائق طرف ته اشاره کړې شوې ده.

**د ميوې خرڅولو دوه صورتونه:** - دَ فصل اوميوو خرڅولو دوه صورتونه دى.

① بيع قبل بدو الصلاح

② بيع بعد بدو الصلاح

**په هر صورت کښې هرڅ صورتونه:-** بيا په دوو صورتونو کښې درې صورتونه دي

① يعنی بيع بشرط القطع چه بائع شرط اولګوی چه ميوه به فوری توګه بانـدې دَ ونو نه پرې کوې

② بيع بشرط الترك يعنی په عقد کښې دا شرط وی چه په ونو کښې دا ميوه به دَ فلانکې وخته پورې لګيدلې وی

③ بيع بالاطلاق يعنی عقد کښې نه دَ ميوې پرې کولو ذکر وی اونه دَترك ثمر ذکر وی دغه شان ټول شپږ صورتونه جوړشو درې قبل بدوالصلاح او درې بعدبدوالصلاح په دې مسئله کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې

**د ميوې د خرڅولو په حکم کښې مذاهب :-**

① دَ شوافع اوحنابله په نيز بعدبدوالصلاح دريواړه صورتونه جائز دی او دَ قبل بدوالصلاح دريواړه صورتونه ناجائز دی. البته قبل بدوالصلاح يوصورت عقلاً مستثنی ګرځولې شوې دې يعنی بشرط القطع ځکه چه په دې کښې دَ جګړې امکان نشته دې

② دَ احنافو په نيز دارومدارپه قطع ثمر اوترك ثمر باندې دې که چرې بيع بشرط قطع الثمر وی نو قبل بدوالصلاح هم جائز دې او بعدبدوالصلاح هم جائز ده اوکه چرې بيع بشرط ترك الثمر وی نو قبل بدوالصلاح هم ناجائز ده او بعدبدوالصلاح هم ناجائز ده.

③ دَ مالکيه په اقوالو کښې انضباط نشته دې په دې وجه دا نشی ليکلې.

دَ فقهاؤ اختلاف په اصل کښې بشرط ترك الثمر کښې دې.

**داول فريق دليل:-** ((نهی رسول الله صلی الله عليه وسلم عن بيع وشرط)) دا معروف حديث دې دې کښې بيع صلب عقد کښې دَ شرط لګولونه ممانعت راغلې دې دا شرط دَ عقد بيع منافی دې اوپه دې کښې دَمشتری دَپاره فائده ده ځکه چه هغه وائی زه ميوه اخلم مګر په دې شرط چه ميوه به دَدومره مودې پورې پخپلو ونوکښې پريخودې پريږدې دغه شان بيع اوشرط ناجائز دې

**د اول دليل ځغه دوه جوابونه:-** ①دَ زير بحث حديث تعلق بشرط ابقاء الثمر نه دې اودا ناجائز ده دَ باقی صورتونونه نه دې

②امام طحاوی رحمه الله دا حديث بيع سلم باندې حمل کړې دې ځکه چه په سلم کښې بدوالصلاح په اتفاق سره ضروری دې

**د دويم فريق دليل:-** د دويم فريق دليل د نبی کريم ﷺ ارشاد دې ((من باع نخلا بعد أن تؤبر فثمرها للبائع إلا أن يشترط المبتاع)) (٣٠) په دې حديث کښې نبی عليه السلام د مشتری د

شرط لګولو په صورت کښې ميوه په بيع کښې داخل کړې ده.حالانکه چه په کوم وخت کښې د کهجورې تابير کيږي.په هغه وخت کښې په ميوه کښې ،، ،، بدو صلاح،، نه وي.او په هغه وخت کښې نبي عليه السلام ددې بيع جائز کړې ده.د دې نه معلومه شوه که په ونه باندې د پريخودوشرط او نه نشي لګولې نو د ،، بدو صلاح ،، نه وړاندې د ميوې خرڅول جائز دي.

**په دليل اعتراض:**- دلته کښې رسول الله ﷺ د ميوې بيع د کهجورې د بيعې په ضمن کښې جائز ګرځولې ده.مستقل ئې نه ده ګرځولې.او داسې ډير څيزونه دي.چه په هغې کښې د يوڅيز بيع ضمنا خوجائز وي.خومستقلا جائز نه وي.مثلا د شرب طريق او مسيل بيع مستقلا جائز نه ده.ليکن د زمکې او مکان د بيعې په ضمن کښې جائز ده.

**دااعتراض جواب:**- په فقه کښې دا خبره منلې شوې ده.چه کوم څيز په بيع کښې د شرط لګولونه بغير داخليږي.نودهغې بيع مستقلا هم جائز وي.او په حديث کښې رسول الله ﷺ دا خبره ښکاره کړې ده.چه د شرط نه بغير ميوه د ونې په بيع کښې نه شامليږي. ددې نه معلومه شوه. چه د ميوې بيع مستقلا بغيردشرط لګولوڅخه د ونې په بيع کښې داخل نه ده.نود ميوې بيع مستقلا هم جائز ده.

[٢٨٣٠]باغ کښې د ميوې پخيدو څخه روسته د خرڅولو جواز

٢٨٣٠—[٤] ()[١]وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: "«نَهَى[٢] رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الثِّمَارِ حَتَّى تُزْهِيَ.[٣] قِيلَ: وَمَا تُزْهِي؟[٤] قَالَ: حَتَّى تَحْمَرَّ.[٥] وَقَالَ: أَرَأَيْتَ إِذَا مَنَعَ اللَّهُ الثَّمَرَةَ[٦] بِمَ يَأْخُذُ أَحَدُكُمْ مَالَ أَخِيهِ؟»". (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه:**[١]حضرت انس رضي الله عنه وايي[٢] چې رسول الله ﷺ ميوې په ونو هغه وخته پورې د خرڅولو څخه منع فرمايلي ده د څو چې هغه خوش رنګه نشي، [٣]عرض وشو د خوش رنګ کيدو څه مطلب دی؟[٤] حضور ﷺ وفرمايل چې د څو هغه سرې نشي يعنی پخې نشي[٥] او بيا يې وفرمايل چې تاسو وښايئ که الله ﷻ ميوې (د پخيدلو څخه) منع کړي [٦]نو په تاسو کښې به يوڅوک د خپل وروړ مال په کومه وجه واخلي . (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**- ①تُزْهِيَ:ميوه زيړه يا سره کيدل.②تَحْمَرَّ: چه سره شي

**تسهيلات: قوله:** عَنْ بَيْعِ الثِّمَارِ حَتَّى تُزْهِيَ:

**دکچه باغ دخرڅولو د ممانعت وجه:**- مطلب دادې چه د ميوو د پخيدلو نه مخکښې دهغې په خرڅولوکښې ددې خبرې خطره وی چه شايد څه آفت مثلا تيزه هوا ، باران وغيره

---

[١]) اخرجه البخاری فی کتاب البيوع/باب إذا باع الثمار قبل أن يبدو صلاحها. ثم أصابته عاهة فهو من البائع (رقم-٢١٩٨) ومسلم فی کتاب المساقاة/باب وضع الجوائح(رقم-١٥ - (١٥٥٥) والنسائی فی کتاب البيوع/باب شراء الثمار قبل أن يبدو صلاحها على أن يقطعها. ولا يتركها إلى. أوان إدراكها(رقم: ٤٥٢٦)

راشي او ميوې د وونو نه راولغورزيږي او ضائع شي په دې صورت کښې چه خرخونکي د اخستونکي نه د ميوو د قيمت په طور باندې څه هم اخلي هغه به ده ته بغير د عوض نه په مفت کښې ملاويږي، لهذا دا ضروري ده چه د ميوو د پخيدلو پورې صبر اوانتظار اوکړې شي، کله چه هغه پخې شي نو هغه وخت د اخستلو خرڅولو څه معامله کول پکار دي

## [٢٨٣] دَ ډيرو کلونو دَپاره دَباغ ميوه د خرڅولو ممانعت

٢٨٣١-[٨] ()[١] وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: [٢] «نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ بَيْعِ السِّنِينَ[٣] وَأَمَرَ بِوَضْعِ الْجَوَائِحِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت جابر ﷺ وايي [٢] چې رسول الله ﷺ د څو کلونو د پاره ميوه د خرڅولو څخه منع فرمايلي ده (يعني يو کال يا دوه کاله يا درې کاله يا د دې څخه زيات کلونو د پاره د ونو ميوه پيشگي خرڅول نه دي پکار) [٣] او حضور ﷺ د آفت ځپلی سره د رعايت حکم ورکړي دی، (مسلم)

**حل اللغات:** - ①السِّنِينَ: د کلونو پورې، ②وَضْع: کمول، پريخودل، ③الْجَوَائِح: دَ جائحة جمع ده پټی اوميوه وغيره باندې آسماني آفت راتلل، او نقصان کيدل.

**تسهيلات: قوله:** بِوَضْعِ الْجَوَائِحِ:

**د حديث د دوه اجزاو دوه حکمونه:** - په دې حديث کښې دوه حکمونه ذکر دي

① د ميوې او باغونه دَ ډيرو کلونودَپاره پيشگی خرڅول جائزنه دی ځکه چه که ميوه رانغله نومالك او بايع دَ کوم اصول لاندې دَ مشتري پيسه اوخوړله داناجائزدي

② په "وامر بوضع الجوائح" کښې بيان کړې شوي ده

**دحديث مطلب:** - دَحديث مطلب دا شوچه حضورپاك اوفرمائيل که يوسړی دَ چانه باغ واخستلو او په هغې کښې ميوه هم راغله مگر دَ څه وجې نه دَ حادثه ښکارشويايع تردغه وخته پورې دَ مشتري نه پيسې نه دی وصول کړی اومال تباه شو نوحضورپاك بايع ته دَ اخلاقو تلقين کړې چه اوس ته دَ مشتري په پيسوکښې څه کمې اوکړه ځکه چه دَهغه لاس ته هيڅ هم رانغلل داحکم هم د اخلاقياتو حسن سلوك او مروت په بنياد دې گنی دَ قاعده اوقانون لاندې خو به مشتري ته هيڅ هم نه ملاويږی ځکه چه مبيع دَ مشتري دَ قبضې نه پس هم دهغه په لاس کښې ضائع شوه نودَ دې مسؤليت هم دَ هغه په ذمه دې ځکه چه دَ شريعت عام ضابطه ده چه "الغنم بالغرم والخراج بالضمان" يعنی تاوان به هم هغه سړې برداشت کوی چه دَ گټې حقدار وی

) اخرجه مسلم في كتاب البيوع/باب كراء الأرض (رقم-١٠١ - (١٥٣۶)) وابوداود في كتاب البيوع/باب في بيع السنين (رقم-٣٣٧٤) والنسائي كتاب البيوع/باب بيع الثمر سنين (رقم-٤٥٣١) وابن ماجة كتاب التجارات/ باب بيع الثمار سنين والجائحة (رقم-٢٢١٨) واحمد في المسند: ٣٠٩/٣

**[٢٨٤٢] دَ ضائع کیدونکی مبیعې ذمه وار**

٢٨٤٢-[٤] ()[١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "[٢]«لَوْ بِعْتَ مِنْ أَخِيكَ ثَمَرًا فَأَصَابَتْهُ جَائِحَةٌ[٣] فَلَا يَحِلُّ لَكَ أَنْ تَأْخُذَ مِنْهُ شَيْئًا، بِمَ تَأْخُذُ مَالَ أَخِيكَ بِغَيْرِ حَقٍّ»؟". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[١] او حضرت جابر رضی الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل[٢] که تاسو په یو مسلمان ورور میوه خرڅه کړه او څه داسې آفت راغلی چې هغه میوه ضائع شوه[٣] نو ستاسو د پاره د هغه څخه څه آخستل حلال نه دي (تاسو خپله سوچ وکئ چې په داسې صورت کې) د یو ورور مال به ناحق څنګه اخلئ. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① جَائِحَةٌ: یعنی اومیوه وغیره باندې آسمانی آفت راتلل. او نقصان کیدل.

**تسهیلات:**

**قوله: فَلَا يَحِلُّ لَكَ:**

**دهلاکت قبل القبض حکم:** -یعنی که یوسړې په بل سړی باندې میوه یا فصل خرڅ کړی مګر دَمشتری دَ قبضه کولونه وړاندې دَ بایع په لاس کښې مبیع هلاك شی په دې صورت کښې دَ دې حدیث حکم بالکل واضح دې دَ څه تاویل ضرورت نشته دې

**د مشتری په قبضه کښې د مبیع د هلاکیدو په صورت کښې مذاهب:** -

① امام مالك رحمه الله فرمائی که چرې په باغ کښې دَ یوپه درې نه زیات نقصان شوې دې نوبیا دَ نقصان ذمه واربه بایع دې اوکه دَ یوپه درې نه کم نقصان شوې دې نوبیا دَ نقصان ذمه وار مشتری دې

② چه دَ بایع نه مشتری مبیع په قبضه کښې واخستو اوبیا دَهغه په لاس کښې هلاك شو نودَ احناف اوشوافع په نیز به مشتری ذمه وار وی چه بایع ته قیمت اداکړی

**داول فریق دلیل:** - دمالکیانو د مسلک مطابق دغه شان به په ټولو احادیثوکښې تطبیق راشی چه دَ زیات نقصان والا روایاتو تعلق بایع سره دې چه هم هغه ذمه وار دې او دکم نقصان والاروایاتو تعلق مشتری سره دې چه هغه ذمه وار دې

**دحدیث الباب جواب:** - دَ حدیث تعلق تقویٰ احسان. حسن اخلاق او مروت سره دې چه د اخلاق اومروت تقاضاداده چه بایع دې دَ مشتری نه هیڅ نه اخلی خکه چه دَمشتری لاس ته هیڅ نه دی راغلی سره دَدې چه دَ ضابطه قانون اوقاعدې مطابق دَده نه قیمت وصول کیدې شی

---

[١] ) اخرجه مسلم فی کتاب المساقاة/باب وضع الجوائح(رقم- ١٤ - (١٥٥٤) أبواب الإجارة/باب فی وضع الجائحة (رقم-٣٤٧٠) والنسائی کتاب البیوع/باب وضع الجوائح (رقم-٤٥٢٧) وابن ماجة فی کتاب التجارات/ باب بیع الثمار سنین والجائحة (رقم-٢٢١٩)

**د دويم فريق دليل**:- په مسلم شريف ج۲ص۱۶ كښې دحضرت ابوسعيدخدري ﷺ روايت د دې دليل دې چه حضورپاك مشترى ذمه وارګرځولې وو او خلقوته ئې دهغه دَ پاره دَ صدقه كولو اپيل كړې وو

**[۲۸۴۳] په منقولې څيزونو كښې د بيع قبل القبض عدم جواز**

۲۸۴۳- [۱۰] ()[۱] «وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: [۲] كَانُوا يَبْتَاعُونَ الطَّعَامَ فِي أَعْلَى السُّوقِ فَيَبِيعُونَهُ فِي مَكَانٍ [۳] فَنَهَاهُمْ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ بَيْعِهِ فِي مَكَانِهِ حَتَّى يَنْقُلُوهُ» . [۴] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَلَمْ أَجِدْهُ فِي الصَّحِيحَيْنِ.

**ترجمه**:[۱] او حضرت ابن عمر ﷺ وايي[۲] د بازار په هغه حصه كې چې پورته خوا ته واقع وه خلقو به غله واخسته او بيا هغه ، په هغه ځاى كې (په قبضه كې د اخستلو څخه مخكې) به يې خرڅوله،[۳] نو حضور ﷺ هغه د دې خبري څخه منع كړل چې د څو پوري غله (د خريد كولو څخه وروسته) د هغه ځاى څخه منتقل نه شي په هغه ځاى دې يې نه خرڅوي. [۴] دا روايت ابوداود نقل كى او ماته دا روايت په بخاري او مسلم كې نه دى حاصل شوى

**حل اللغات**:- ① يَنْقُلُوهُ: نقل كول (مبيع لره)

**تسهيلات**: **قوله**: حَتَّى يَنْقُلُوهُ:

**د مبيع د نقل كولو مطلب**:- مبيع نقل كولومطلب دادې چه تركومې پورې دا مشترى په خپله قبضه كښې اخستې نه وى دهغې خرڅول جائز نه دى

**د مبيع قبل القبض د بيعې او شراء صورتونه**:-

① كه چرې مبيع غله او خوراكى څيزونه وى نو مخكښې دَ قبضې اخستونه خرڅول جائز نه دى دا اتفاقى مسئله ده

② كه چرې مبيع غلې او طعام نه علاوه څيز وى نو په دې كښې دَ فقهاؤ اختلاف دې

**په دويم صورت كښې مذاهب**:-

① امام شافعى رحمه الله اوامام محمد رحمه الله فرمائى چه څنګه دَ غله او طعام خرڅول مخكښې په قبضه كښې دَ راتلونه جائز نه دى دغه شان نور غيرمنقوله څيزونه زمكه اوكور وغيره خرڅول هم د قبضې نه مخكښې جائز نه دى

② دَ امام مالك رحمه الله په نيزغله اوطعام نه علاوه ټول څيزونه خرڅول مخكښې دَ قبضې نه جائز دى

---

[۱] اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب منتهى التلقى (رقم-۲۱۶۷) ومسلم في كتاب البيوع/باب بطلان بيع المبيع قبل القبض (رقم-۳۳ - (۱۵۲۷) وابوداود أبواب الإجارة/باب في بيع الطعام قبل أن يستوفى (رقم-۳۴۹۳) والنسائى كتاب البيوع/باب بيع ما يشترى من الطعام جزافا قبل أن ينقل من مكانه (رقم-۴۶۰۶) ومالک في الموطا كتاب البيوع/باب العينة وما يشبهها (رقم-۴۲)

② امام ابوحنيفه رحمه الله امام ابويوسف رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نيز دَ منقوله څيزونو خرڅول مخکښې دَ قبضې ناجائز دى ليکن غيرمنقوله څيزونه مثلاً زمکه کور وغيره خرڅول دَ قبضې نه مخکښې جائز دى

**د اول فريق دلائل:** - ① زير بحث حديث د اول فريق دليل دې

② دغه شان راتلونکى حديث نمبر (٢٨٤٣) کښې هم "حتى يستوفيه او حتى يکتاله" الفاظ راغلى دى

③ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چه "ولا احسب کل شئ الامثله" يعنى دَ ټولو څيزونو هم دغه حکم دې دَ دې ټولو رواياتونه شوافع استدلال کوى

**د اول فريق د دريم دليل جواب:** - حضرت ابن عباس رضي الله عنهما چه څنګه حکم په منقوله اوغيرمنقوله ټولو څيزونوکښې عام منلې دې دا دَ هغوى خپله رائې او اجتهاد دې چه هغوى په غله باندې غيرغله قياس کړه.

**د دويم فريق دليل:** - امام مالك رحمه الله دَ زير بحث حديث نه استدلال کړې دې اودا حکم ئې صرف غله اوطعام کښې منحصر منلې دې په نوروڅيزونوکښې پابندى نشته دې

**د اول او دويم فريق د دلائلو ګډه مجموعى جوابونه:** - ① په دې حديث کښې دَ ممانعت اصل علت دَ مبيع دَ هلاکت ويره ده اودا علت په منقوله څيزونوکښې په فورى توګه باندې دې نوحکم اوشو چه اول قبضه کښې واخله بيا خرڅول کوه او په غيرمنقوله څيزونوکښې په فورى توګه باندې دَ هلاکت ويره نه وى لهذا دَ دې دَ قبضه کولونه مخکښې دَ دې خرڅول جائزدى

② دَ هر څيز دَ قبضه کولوجدا صورت وى. بعض څيزونوکښې صرف په کتلوسره قبضه راځي دَ هغې نقل کول ممکن نه وى لکه زمکه وغيره او بعض ته نقل کولوسره قبضه ونيلى شى بعض کښې تول کول يا ناپ کولوته قبضه ونيلى شى. په دې وجه احنافو منقوله اوغير منقوله قاعده راويستلوسره حکم عام کړو چه دَ حديث په ټولو صورتونو باندې عمل اوشى شوافع صرف يوصورت خپل کړې دې

**د دريم فريق دليل:** - په زير بحث حديث کښې چه دَ غله او طعام ذکر دې دا دَ منقوله څيزونوطرف ته اشاره ده لهذا په ټولو منقوله څيزونوکښې قبل القبض بيع ناجائز ده

**د ابن عمر حديث ته د ترجيح ورکولو وجه:** - دريم فريق چې احناف دى دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما رائې ته ترجيح ورکړې ده هغوى فرمائى چه بيع قبض القبض کښې دَ ممانعت علت "ربح ما لم يضمن" دې کوم چه ناجائز دې ځکه چه نفع شته اونقصان نشته دې. بهرحال که چرې مبيع دَ مشترى په مخکښې وزن کړې شى يا ناپ کړې شى نو دَ مشترى دَ پاره دوباره وزن کول او ناپ کول يا کيل کول ضرورى نه دى. که چرې څوك ئې اوکړى نو استحبابى حکم دې

٢٨٣٤ —[١] (١) ١ وَعَنْهُ قَالَ: ٢ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٣ «مَنِ ابْتَاعَ طَعَامًا فَلَا يَبِعْهُ حَتّٰى يَسْتَوْفِيَهُ».

**ترجمه**: ١ او حضرت ابن عمر ﷺ وايي ٢ چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٣ كوم سړى چې غله واخلي نو هغه دي د هغه وخته پورې نه خرڅوي د څو پورې چې هغه په پوره طور سره وانخلي

**حل اللغات** - ① يَسْتَوْفِيَهُ: پوره طور سره اخستل

٢٨٣٥ —(٢) ١ وَفِي رِوَايَةِ ابْنِ عَبَّاسٍ: حَتّٰى يَكِيلَهُ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه**: ١ او د حضرت ابن عباس ﷺ په روايت كې دا الفاظ دي چې د څو پورې هغه ناپ تول نه كړي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات** - ① يَكِيلَهُ: ناپ تول كول.

**تسهيلات**: **قوله**: حَتّٰى يَسْتَوْفِيَهُ:

**نوټ**: -د بيع قبل القبض د مسئلې تفصيل د حديث نمبر (٢٨٢٣) په په شرح كښې تيره شوې ده

**[٢٨٣٦] د طعام قبل القبض د بيع ممانعت**

٢٨٣٦ —[٣] (٣) ١ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: ٢ "أَمَّا الَّذِي «نَهَى عَنْهُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٣ فَهُوَ الطَّعَامُ أَنْ يُبَاعَ حَتّٰى يُقْبَضَ» ٤ " قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: وَلَا أَحْسِبُ كُلَّ شَيْءٍ إِلَّا مِثْلَهُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ١ او حضرت ابن عباس ﷺ وايي ٢ رسول الله ﷺ چې كوم څيز منع كړي دى ٣ هغه غله ده چې د هغه په قبضه كې د راوستو څخه مخكې خرڅ شي ٤ حضرت ابن عباس ﷺ وايي چې څما ګمان دى چې (په دې باره كې) هر څيز د غلې په شان دى، (بخاري مسلم)

**تسهيلات**: **قوله**: فَهُوَ الطَّعَامُ أَنْ يُبَاعَ حَتّٰى يُقْبَضَ

**د طعام قبل القبض مسئله**: - په دې مسئله كښې د ائمو اتفاق دى چه طعام د قبضې نه مخكښې خرڅول جائز نه دى

---

[١] ) اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب الكيل على البائع والمعطى (رقم-٢١٢٦) ومسلم في كتاب البيوع/باب بطلان بيع المبيع قبل القبض (رقم-٣٢ - (١٥٢٦) وابوداود أبواب الإجارة/باب في بيع الطعام قبل أن يستوفى (رقم-٣٤٩٢) والنسائي كتاب البيوع/باب النهي عن بيع ما اشترى من الطعام بكيل حتى يستوفى (رقم-٤٦٠٤) ومالك في الموطا كتاب البيوع/باب العينة وما يشبهها (رقم ٤٠) واحمد في المسند: ٢٢/٢

[٢] ) اخرجه مسلم في كتاب البيوع/باب بطلان بيع المبيع قبل القبض (رقم-٣١ - (١٥٢٥) وابوداود أبواب الإجارة/باب في بيع الطعام قبل أن يستوفى (رقم-٣٤٩٦) والترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية بيع الطعام حتى يستوفيه (رقم: ١٢٩١) والنسائي كتاب البيوع/باب بيع الطعام قبل أن يستوفى (رقم-٤٥٩٧) وابن ماجة كتاب التجارات/ باب النهي عن بيع الطعام قبل ما لم يقبض (رقم-٢٢٢٧)

[٣] ) اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب بيع الطعام قبل أن يقبض. وبيع ما ليس عندك (رقم-٢١٣٥) ومسلم في كتاب البيوع/باب بطلان بيع المبيع قبل القبض (رقم-٣٠ - (١٥٢٥)

[٢٨٤٧] د بيع مُصَرّات مسئله

٢٨٤٧-[٣] ( ) ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ٢ «لَا تَلَقَّوُا الرُّكْبَانَ لِبَيْعٍ، ٣ وَلَا يَبِعْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَيْعِ بَعْضٍ، ٤ وَلَا تَنَاجَشُوا، وَلَا يَبِعْ حَاضِرٌ لِبَادٍ، ٥ وَلَا تُصَرُّوا الْإِبِلَ وَالْغَنَمَ، ٦ فَمَنِ ابْتَاعَهَا بَعْدَ ذَلِكَ فَهُوَ بِخَيْرِ النَّظَرَيْنِ بَعْدَ أَنْ يَحْلُبَهَا، فَإِنْ رَضِيَهَا أَمْسَكَهَا وَإِنْ سَخِطَهَا رَدَّهَا وَصَاعًا مِنْ تَمْرٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ تاسو مخکې ورتلو سره دغلي وغيره راوړونکي قافلې سره دخريد وفروخت د پاره مه يوځاى کيږئ ٣ او په تاسو کې دې هيڅوك د بل سړي په بيع باندې بيع نه کوي ٤ او قيمت زياتول مه کوئ او د ښار سړى دې د کلى والا مال نه خرڅوي ٥ او د اوښې او بزې (چيلۍ) په غولانخه کې پئ مه جمع کوئ ٦ او که يو سړى داسې حيوان واخلي چې د هغه په غولانخه کې پئ جمع شوي وي نو د پينو لوشلو څخه وروسته د هغه حيوان دساتلو يا واپس ورکولو اختيار به وي يعني که د هغه رضا وي نو هغه حيوان دې وساتي او که رضا يې نه وي نو هغه ته دې واپس ورکړي، او د هغه سره دې يو صاع (دري نيم سيره) کجوري ورکړي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات** - ① تَلَقَّوْا: ملاقات کول. ② الرُّكْبَانَ: قافله. ③ تَنَاجَشُوا: شړل. دهوکه کول. قيمت زياتول. ④ حَاضِرٌ: د ښار والا. ⑤ لِبَادٍ: کلي والا. د باندې اوسيدونکي. ⑥ تُصَرُّوا: غلانخه کښې پئ شودې جمع کول. ⑦ النَّظَرَيْنِ: دوه اختيارونه. ⑧ يَحْلُبَهَا: چه اولوشي دا څاروي.

١ وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: "٢ «مَنِ اشْتَرَى شَاةً مُصَرَّاةً ٣ فَهُوَ بِالْخِيَارِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ ٤ فَإِنْ رَدَّهَا رَدَّ مَعَهَا صَاعًا مِنْ طَعَامٍ لَا سَمْرَاءَ»".

**ترجمه:** ١ د مسلم په يو روايت کې داسې دي چې ٢ کوم سړى داسې بزه واخلي چې د هغه په غولانخه کې پئ جمع شوي وي ٣ نو هغه ته دبزې (چيلۍ) د ساتلو بيا واپس ورکولو د دريو ورځو پورې اختيار دى ٤ که په دريو ورځو کې هغه بزه واپس ورکړي نو د هغه سره دې يو صاع طعام دې ورکړي خو غنم دې نه ورکوي

**حل اللغات** - ⑨ مُصَرَّاةً: هغه څاروي چه غلانخه کښې ئې پئ جمع کړي شوې وى. ⑩ سَمْرَاءَ: غنم.

**تسهيلات: قوله** لَا تَلَقَّوُا الرُّكْبَانَ:

**په حديث کښې د پنځو مسائلو بيان:** -په دې حديث کښې د پنځو اهم مسائلو ذکر کړې شوي دې په کوم کښې چه د ټولو نه اهم او تفصيل طلب مسئله بيع مُصَرّات ده مګر دَدې د

---

١) اخرجه البخاري في كتاب البيوع /باب النهي للبائع أن لا يحفل الإبل. والبقر والغنم وكل محفلة (رقم-٢١٥٠) ومسلم في كتاب البيوع /باب تحريم بيع الرجل على بيع أخيه. وسومه على سومه. وتحريم النجش. وتحريم التصرية (رقم-١١-١٥١٥) و ابوداود أبواب الإجارة /باب من اشترى مصراة فكرهها (رقم-٣٤٤٣) والنسائي في كتاب البيوع /باب المحفلة (رقم-٤٤٨٧) وابن ماجة في كتاب التجارات/ باب بيع المصراة (رقم-٢٢٣٩) ومالک في الموطا كتاب البيوع /باب ما ينهى عنه من المساومة والمبايعة (رقم-٩٦)

تفصیل نه مخکښې نورو څلورو مسائلو څه تذکره کول ضروري دي

**قوله** لَا تَلَقَّوُا الرُّكْبَانَ:

① **د تلقي رکبان مطلب:**- دَ اخستلو خرڅولو په غرض سره قافلې سره ملاقات کول دې فعل ته تلقي بیوع اوتلقي السلع اوتلقي جلب هم وائی مطلب دادې چه مثلاً سوداګروته معلومه شي چه دَ ښار دَ منډو طرف ته دَ بهر نه یوه تجارتی قافلې غله راخستې راوان دی منډنی ته دَ رسیدو نه مخکښې دَ ښار یو سوداګر بهرلاړشی هغوی سره سوداکولوسره توله غله واخلی

**دتلقي الرکبان د ممانعت دوه وجوهات:**- ① اسلام دا منع کړی دی اودَمنع کولویوه وجه داده چه په دې سره دَ ښاروالوته نقصان رسیدې شی. دَ غلې قیمت به زیات شي څکه چه مال دَ کولاؤ منډنی په ځائی به یوسړی له لاړشي.

② دَ ممانعت دویمه وجه داده په دې صورت کښې پخپله دَ قافلې والوته دَ نقصان رسیدو خطره ده څکه چه هغوی ته به دَ ښار ریټ معلوم نه وی اودَ ښار سوداګر به هغوی ته غلط ریټ خودلو سره غله واخلی. په دې وجه حضورپاك دا طریقه ممنوع ګرځولې ده دَدې دوو حکمتونو په رڼړاکښې دَدې عمل په مکروه کیدوباندې دَ ټولو فقهاؤ اتفاق دې احناف هم دې ته مکروه وائی لیکن پورته چه دا کوم دوه حکمتونه ذکر شو په دې کښې به کراهت نه وی امام ابوحنیفه رحمه الله تلقي رکبان ته هیڅ کله هم جائز نه دی ونیلی لیکن حدیث کښې دممانعت کوم علت ذکر دې دکوم چه عاموخلقو ته نقصان دې که چرې دغه علت نه وی نوبیا به ممانعت هم نه وی.

**د فسخ بیع داختیار صورت:**- بهرحال دَ مسلم شریف په روایت کښې دی که دَ قافلې والا سره دهوکه اوکړې شوه نوهغه به ښارته راځی دَدې سودا دَ فسخ کولو اختیارلری لکه چه راتلونکی حدیث نمبر(۲۸۳۸) کښې راځی جمهورفقهاء فرمائی چه که دَ غبن فاحش په درجه کښې خساره شوې وی نوقافلې والاسودا ختمولې شی امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه اخلاقاً اومروةً اودیانةً حکم هم دغه دې کوم چه په حدیث کښې ذکر دی لیکن دَقضاء په توګه به هغوی ته دَ سودا فسخ کولوحق نه وی هغوی په خپل هوش اوحواس سره سودا کړې ده کوم چه لازم شوې ده هم هغه په شریعت کښې دَ بیوعاتودپاره عام ضابطه ده علماؤ دَ تلقي رکبان مسافت هم خودلې دې بعض دوه فرسخ دَ ښارنه بهرتلوته تلقي ونیلې دې بعض دوه ورځې اوبعض یومیل ونیلې دې

**قوله:** وَلَا يَبِعْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَيْعِ بَعْضٍ:

② **د بل چا د بیع د عقد په دوران کښې د د اخلیدو کراهت:**- مثلاً چه دوه کسان په خپل مینځ کښې سوداکوی ثمن متعین شوې دې صرف اخستل ورکول باقی دی چه دریم سړې

راضي او بائع او مشتري ته لالچ ورکولو سره دَ سودا خرابولو کوشش کوي. دا عمل مکروه دې خکه چه په دې سره بغض او عداوت دروازه کولاویږي. اوکه دَ بائع اومشتري په سودا باندې اتفاق اونه شي نواوس دريم سړې خپله خبره پيش کولې شي دَ نکاح دَ پيغام حکم هم داسې دې

**قوله وَلَاتَنَاجَشُوا،**

③ **دَ تناجش لغوي معني:-** ①تناجش: "النجش"نون باندې فتحه ده اوجيم ساکن دې اوفتحه هم جائز ده په لغت کښې نجش معنی "اثارة الصيد من مكان الى مكان" ده يعنی ښکار ديخوانه اخوا تختول او پره کول

② بعض علماؤ دَ نجش لغوي معنی دهوکه خودلې ده

③ بعضې علماؤ مدح کول ليکلي دي. [رحمة الامة في اختلاف الائمة ص: ۱۴۳]

**دنجش اصطلاحي تعريف:-** "هوان يزيد في الثمن لا لرغبة بل ليخدع" وغيره يعنی نجش هغې ته وائي چه يوداسې سړې دَ سودا قيمت په مشتري باندې زيات کړي چه پخپله ئې اخستل نه غواړي دې دَپاره چه بل سړې دَاخستلودَپاره په دهوکه باندې تيارکړي. په دې عمل کښې مشتري په سودا اخستلو باندې تيارول هم دي دې سره دهوکه هم ده اوبې ځايه دَ سودا اوسامان مدح اوتعريف هم دې. دا درويواړه مفهوم دَنجش لغوي معنی کښې هم دي اوپه اصطلاحي تعريف کښې هم دي. په عام توګه نجش کښې دهوکه مشتري ته ورکولې شي

**د نجش حرمت:-** دَ فقهاؤ په نيز په اتفاق سره نجش حرام دې که دَ بائع او نجش دواړه په رضامندئ سره دا عمل شوې وي نودواړه به ګناه ګار وي ګنی صرف ناجش به ګناهګار وي علماؤ ليکلي دي چه دَ ناجش دَپاره تعزير ضرروري دې.

**دَ بيع نجش حکم:** دَ نجش په نتيجه کښې دَ دغه بيع حکم دادې چه دَ احناف او شوافع په نيز نفس بيع صحيح او جائز ده. مګر داعمل مکروه اوګناه ده ليکن حنابله اومالکيه او اهل ظواهر په نيز دا بيع باطل ده او مشتري ته دَ بيع فسخ کولو اختيار دې احناف او شوافع فرمائي چه قانوناً دَ بيع دَ فسخ حق نشته دې اوديانةً او اخلاقاً شته بهرحال دَ غرر او دهوکې دوه قسمونه دي يو غرر فعلي دې او بل غرر قولي دې په غررفعلي کښې بيع ديانةً فسخ کولې شي اوغررقولي کښې قضاء دَ فسخ کولې شي دلته غرر فعلي دې لهذا فسخ ديانةً ده.

**قوله: وَلَايَبِعْ حَاضِرٌ لِبَادٍ:**

④**د بيع الحاضر للبادي حکم:-** يعنی ښارې سړې دَ يوشار کلي وال دَپاره مال خرڅوي دا ناجائز دي. علماؤ دَ دې بيع دوه تفسيرونه ليکلي دي اول تفسير اومطلب دادې چه يو

بنارې په خپل خان باندې دا خبره لازم کوی هغه به د مال ارزان اخستو په غرض سره هميشه صرف د کلی وال نه سودا اخلی چه ګټه زياته اوشی صاحب د هدايه هم دغه تعريف ليکلی دې هم په دې صورت کښې د دغه بيع ممانعت هغه وخت وی کله چه د بنار والوته د مال سخت ضرورت وی يا په بنار کښې قحط وی

**د بيع الحاضر للبادي په حکم کښې دويم تفسير:** - د دې بيع دويم تفسير اودويم مطلب ځينو محدثينو او فقهاؤ دابيان کړې دې چه مثلاً څوک بنارې سړې يوکلی وال ته وائی ته خپله غله وغيره ماسره کيږده زه به په ښه مهارت سره ښه د ګټې په حلاتو کښې په تسلئی سره ستادپاره خرڅ کړم اوس دا بنارې لکه چه د کلی وال وکيل جوړشو په حديث کښې هم دې د دلال وکيل او سمسار په نوم باندې ياد کړې شوې دې د حديث دا تفسير اودا مطلب واضح اوراجح دې خاص کر کله چه "لِبَادٍ" کښې لام خو په کيل باندې دلالت کوی شمس الائمه حلوانی رحمه الله او ابن همام رحمه الله او ابن نجيم رحمه الله صاحب دهدايه قول مرجوح ګرځولې دې دا بيع او دا عمل د جمهور په نيز اود اهل ظواهر په نيز دا بيع باطل واجب الفسخ وی جمهور وائی چه د قضا په توګه بيع صحيح ده البته د ديانت په توګه فسخ کيدې شی د فقهاؤ په نيزدا ضابطه ده چه دغرر دهوکې دوه قسمونه دی يوغرر فعلی او دويم غرر قولی دې په غرر فعلی کښې بيع ديانةً فسخ کولې شی او غرر قولی کښې قضاءً فسخ کولې شی دلته غرر فعلی دې

**قوله: بَيْعُ الْمُصَرَّاتِ:**

⑤ **د بيع مصرات مسئله:** -په دې حديث کښې چه کومه اهم او تفصيل طلب مسئله ده هغه د مصرات مسئله ده

**د مصراة لغوی معنی:** - مصرات د باب تفعيل نه د اسم مفعول صيغه ده صَرّي يُصَرِّ تَصر وَمُصَرَّاةً د يوڅيز منع کولواو بندولوته وائی "يقال صريت الماء في الحوض اي حبسته"

**د مصراة اصطلاحی تعريف:** - د دې اصطلاحی تعريف داسې دې "هو حبس اللبن في الضرع ليغتربه المشتري" يعنی د يوڅاروی پينې يو دوو ورځو پورې په تينوکښې رامنع کول دې دپاره چه کله مشتری دا وينی نو چه اوګنړی دا خو د پينوخزانه ده دې عمل ته تحفيل هم وائی اوداسې څناور ته مصراة اومحفلة وائی

مصراة صفت دې د دې موصوف ناقة مصراة دې يا بقرة مصرات دې يا شاة مصراة دې دتصرية په دې عمل سره مشتری ته دهوکه ورکولې شی په دې وجه اسلام دا منع کړی دی اوداعمل ئی حرام ګرځولې دې

**د حديث مطلب:** - دحديث مطلب اوخلاصه دا شان ده چه تصريه ناجائز او حرام دې ليکن که څوک داسې عمل اوکړی اوروستو مشتری ته معلومه شی چه په دې کښې د تصريه

عمل کړي شوي دي نو مشتری له دَ دوو خبرو اختیار دي یا خودي هم دغه شان عیب والا خناور خان سره اوساتی ځکه چه سودا خوشوي ده اویا دي خناور واپس کړی او یو صاع کهجورو سره دي واپس کولو سره بائع ته ورکړی داد حدیث مطلب دي
که یو مشتری مصراة واخستله نو ده ته د بیعې فسخ کولو په اختیار کښې اختلاف دي

**د مصراة په واپس کولو کښې مذاهب:-**

① امام شافعی رحمه الله امام احمد بن حنبل رحمه الله امام مالک رحمه الله او امام ابو یوسف رحمه الله یعنی جمهور و فرمائیلی دی چه مشتری ته دَ خیار شرط کیخودو نه بغیرد حق حاصل دي چه هغه دي بیع فسخ کړی ځکه چه تصریه عیب دي او دَ عیب په معلومیدو باندي مشتری اختیارمند دي چه یا دي مبیع خان سره اوساتی یا دي واپس کړی لیکن چونکه مشتری دَ څو ورځو پورې دَ څاروی نه پیئی څکلی دی په دي وجه دَ هغې په بدله کښې دَ څاروی دَ واپس کولو سره یو صاع کهجورې هم واپس کړی
② امام ابوحنیفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله فرمائی چه څاروي بائع ته واپس کولو په صورت کښې دا صرف اقاله ده دَ مشتری دَ طرف نه بائع باندي نه څه جبر کیدي شی اونه هغه ته دَ بیع فسخ کولو اختیار دي اونه څه جرمانه ده نه صاع دي اونه تمر و سمراء شته

**د اول فریق دلیل:-** اول فریق د زیربحث حدیث په ظاهر باندي عمل کړي دي اویا ئی دَ ډیرې زیاتې غصې اظهار کړي دي چه احناف و صریح حدیث پریخودو سره قیاس خپل کړي دي

**د فریق اول د دلیل څخه جوابونه:-** احناف دَ حدیث مصرات محمل دَ یو څو وجوهاتو سره بیان کړي دي

① دا حکم دَ دیانت په توګه دي دَ عدالت او قضا په توګه نه دي محقق ابن همام یو ضابطه لیکلي ده فرمائی چه دَ غرر او دهوکې دوه قسمونه دی یو غرر قولی او دویم غرر فعلی دَ غرر قولی په وجه سره مشتری به بائع ته مبیع قضاءً په زور دَ عدالت واپس کولې شی او په غرر فعلی کښې هغه بائع ته مبیع دیانةً واپس کولې شی لیکن جبراً او قضاءً ئی نه شی واپس کولې لکه چه دلته دَ رسول الله ﷺ فرمان دَ دیانةً دَ اصول لاندې دي
② دا حکم اخلاقاً دَ حسن خلق دَ قبیل نه دي اوپه دي باندي دریو ورځو پورې دَ خیار والا روایت دال دي ځکه چه خیار عیب دریو ورځو پورې محدود نه دي لکه چه دا استحبابی حکم دي ③ دَ مصراة حکم دَ ربوا دَ حرمت نه دَ مخکښې وخت دي کله چه ربوا حرام شوه نو مصرات هم حرام شو
④ دا حدیث دَ بیوعاتو دَ اصولی قاعدو نه معارض دي په دي وجه باندي په ظاهری توګه پریخودي شی
⑤ دَدي روایت په الفاظو کښې اضطراب دي چرته دَ صاعٍ من تمرٍ الفاظ دی نو چرته صاعٍ من

طعام لا سمراء دی چرته مثلاً لبنها قمحاً الفاظ دی چرته مثلی لبنها قمحا الفاظ دی

⑨ دا دَ صلح یو صورت دې خلاصه دا چه حضورپاك خلق دَدې دهوکې والادَعمل نه منع کولودَپاره په حکمت سره په استثنائی توګه داسې فیصله کړې ده اودا دَخلقو دَ حالاتو عین مطابق ده اونن هم دَدې دهوکې نه دَ بچ کیدو دپاره دَدې نه بهترڅه فیصله نه شی کیدې

**د دویم فریق دلائل:-** ① دویم فریق دَ بیوعات قواعد کلیه اصولیه شرعیه ته کتلو سره په دې باندې عمل کړې دې او په جزئیاتو کښې ئې تاویل کړې دې

**قرآنی ضابطې:-** ① په قرآن پاك کښې یوه ضابطه داسې ده

﴿ فَمَنِ اعْتَدٰی عَلَیْکُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَیْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰی عَلَیْکُمْ ﴾ اسورة بقره: ١٩۶ا

② یوه ضابطه داده ﴿ وَجَزٰٓؤُا سَیِّئَةٍ سَیِّئَةٌ مِّثْلُهَا ﴾ اسورة الشوری: ۴٠.

③ یوه ضابطه داده ﴿وَاِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوْا بِمِثْلِ مَا عُوْقِبْتُمْ بِهٖ﴾ اسورة نحل: ١٢۶ا په دې ټولو آیاتونوکښې دَ څه قسم نقصان په صورت کښې تاوان ورکولوکښې مثل اومساوات لازم کړې شوې دې که هغه مثل صوری وی یا معنوی وی

**قرآنی ضابطه او مسئله د مصرات:-** په مسئله دَ مصرات کښې دَ خاروی دَ پینومقابله کښې یوصاع کهجورې واپس کول نه مثل صوری دې اونه معنوی دې څکه چه پینی ذوات امثال نه دی نودَ کهجورو په ځائی هم پینی واپس کول پکاردی نودَ پینو دَ قیمت برابر کهجورې واپس کول پکاردی یوصاع متعین کول دَ بیوعاتو دَ اصول خلاف دی څکه چه پینی کله کم شی اوکله زیاتیدې شی مثلاً مشتری دَ دوو سوو روپوپینی اوڅکل یا دَ شلو روپوپینی اوڅکل او بیائی یوصاع کهجورې واپس کړې نونه مثل صوری دې اونه مثل معنوی یعنی قیمت دې بل په دې کښې دا عجیبه صورت هم پیښیدې شی چه مثلاً یو کمزورې چیلئی وی اودهغې قیمت هم دَ یوصاع کهجورو برابر وی کله چه چیلئی واپس کړې شوه او یوصاع کهجورې هم واپس کړې شوې نو په دې دَ بدل او مبدل منه اجتماع دَ یوسړی په لاس کښې راغله کوم چه ناجائز دی اودَ بیوعاتو دَ اصول خلاف دی

② حدیث دادې "الخراج بالضمان" دَدې حدیث مطلب دادې چه دا نفع اومنافع دَ دغه سړی حق دې په چاچه تاوان راځی دَمصرات په صورت کښې که چیلئی مړه شوه نو تاوان په مشتری باندې راځی لهذا دَدې چیلئی نفع کوم چه پینی دی هغه هم دَمشتری حق دې بیادَدې په بدله کښې کهجورې په توګه دَ تاوان ورکول دَدې حدیث د ضابطه نه خلاف دی دویم فریق دَدې حدیث نه هم استدلال کړې دې

**یوه فقهی قاعده:-** دَفقهاؤ په کتابونوکښې یوه عربی جمله ده (الغنم بالغرم) د دې مطلب دا دې چه دَنفع تعلق تاوان سره دې کوم سړې چه دَ تاوان ذمه وار دې هم هغه دَ نفع حقداردې

زير بحث حديث كښې دَ تاوان ذمه دار مشترى دې لهذا دَ قواعد بيوع لاندې په دې باندې دَ پينوځكلو بدله وركول لازم نه دى

**ملحوظه په بعضې كتابونو كښې يوه غلطه تنبيه:** - باقى دَ اصوليه كوموكتابونوكښې چه ليكلى دى دَدې حديث راوى ابوهريره ﷺ غيرفقيه دې اودَ غيرفقيه راوى روايت كه چرې په قياس سره مقابل وى نوقياس مقدم وى دا قول دَاحنافو دَمسلك خلاف دې احناف خو دَ صحابى قول هم په قياس باندې مقدم منى نوڅه چه مرفوع حديث دَ احنافو دَ مسلك لونى اثمو نه چادا خبره نه ده كړې صرف دَ امام محمد شاګرد عيسى بن ابان طرف ته دا قول منسوب دې اودا نسبت هم غلط دې لهذا مونږ توبه كوو اودَ الله تعالى نه پناه غواړو چه مونږ دَحضرت ابوهريره ﷺ غوندې فقيه صحابى بلكه دَ صحابه كرامو مفتى ته غيرفقيه اووايو نعوذبالله من ذلك

**[٢٨٣٨] د يوځيز اخستلو دپاره د ښار څخه د بهروتلو حكم**

٢٨٣٨ - [٣] () [١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - " [٢] «لَا تَلَقَّوُا الْجَلَبَ، [٣] فَمَنْ تَلَقَّاهُ فَاشْتَرَى مِنْهُ [٣] فَإِذَا أَتَى سَيِّدُهُ السُّوقَ فَهُوَ بِالْخِيَارِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره ﷺ وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] تاسو مخكښې ورتلو سره دغله وغيره راوړونكي قافلې سره مه يو ځاى كېږئ [٣] كه يو سړى ورشي او څه سامان ترې نه واخلي [٣] او بيا د سامان مالك بازار ته راشي نو هغه ته به اختيار وي (كه بيع قائم وساتي، بيا يې فسخ كړي)، (مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْجَلَبَ: د دې لغوى معنى راښكلو سره راوړل دى، د دې معنى مختلف دى دلته ترې مراد د سوداګرد كلى وال څخه يوځيز په لاره كښې په كم قيمت باندې اخستل

**تسهيلات:**

**نوټ:** - ددې حديث توضيح اوتشريح د حديث نمبر (٢٨٣٧) په شرحه كښې تيره شوې ده

**[٢٨٣٩] د يو ځيز بازار ته دراتلو نه وړاندې دهغې خرڅونكو سره د ملاقات ممانعت**

٢٨٣٩ - [٥] () [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] «لَا تَلَقَّوُا السِّلَعَ [٣] حَتَّى يُهْبَطَ

[١] ) اخرجه مسلم فى كتاب البيوع/باب تحريم تلقى الجلب (رقم-١٧ - (١٥١٩) وابو داود فى السنن أبواب الإجارة/باب فى التلقى (رقم-٣٤٣٧) والترمذى فى كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية تلقى البيوع (رقم: ١٢٢١) والنسائى فى كتاب البيوع/باب التلقى (رقم-٤٥٠١) وابن ماجة فى كتاب التجارات/باب النهى عن تلقى الجلب (رقم-٢١٧٨)

[٢] ) اخرجه البخارى فى كتاب البيوع/باب النهى عن تلقى الركبان وأن بيعه مردود لأن صاحبه عاص آثم إذا كان به عالما وهو خداع فى البيع. والخداع لا يجوز (رقم-٢١٦٥) ومسلم فى كتاب البيوع/باب تحريم تلقى الجلب (رقم-١٤ - (١٥١٧) وابوداود فى أبواب الإجارة/باب فى التلقى (رقم-٣٤٣٦) والترمذى فى كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية تلقى البيوع (رقم: ١٢٢٠) واحمد فى المسند: ٩١/٢

بِهَا إِلَى السُّوقِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې رسول كريم ﷺ وفرمايل [٢] سامان راوړونكو سره د هغوئ بنار ته را رسيدو څخه مخكې په لار كې ورتلو سره د هغوئ سره مه يو ځاى كيږئ [٣] او هغه وخته پورې د هغوسره څه معامله مه كوئ د څو پورې چې د هغوئ سامان بازار ته راوړلو سره خكته نه كړى شي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① السِّلَعَ: سامان ته وئيلى كيږى يا هغه څيز ته چه د هغې تجارت كيږى ② يُهْبَطَ: چه كوز كړې شى،

**تسهيلات:**

**نوټ:** - دحديث مطلب واضح دې د شرحې څه ضرورت نشته.

**[٢٨٥٠] دبل په سودا كښې عدم مداخلت**

٢٨٥٠—[٦] (١)[١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[٢] «لَا يَبِعِ الرَّجُلُ عَلَى بَيْعِ أَخِيهِ [٣] وَلَا يَخْطِبْ عَلَى خِطْبَةِ أَخِيهِ إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ لَهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هيڅ سړى دې د خپل (مسلمان) ورور بيع باندې خپله بيع نه كوي [٣] او نه دې هيڅ سړى د خپل (مسلمان) ورور د نكاح په پيغام باندې د خپلې نكاح پيغام ليږلو خو دا چې هغه ده ته د دې اجازت وركړي. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① خِطْبَةِ: دنكاح پيغام وركول،

**تسهيلات:**

**قوله. وَلَا يَخْطِبْ:**

**د بل چا په خِطبه نكاح (دنكاح پيغام) دپاسه د پيغام ليږلو مطلب:** - يعنى يو سړى مثلاً يوې ښځې ته دنكاح پيغام وركړو نوتر كومې پورې چه د هغې فيصله نه وى شوې د بل سړى دپاره جائز نه دى چه د هغوى په مينځ كښې كار اولرى په دې سره بغض حسد او دښمنى پيدا كيږى د بيع حكم هم دغه شان دې تفصيل وړاندې تيرشوي دي

(١) اخرجه البخارى فى كتاب النكاح/باب لا يخطب على خطبة أخيه حتى ينكح أو يدع (رقم-٥١٤٢) ومسلم فى كتاب البيوع/باب تحريم بيع الرجل على بيع أخيه. وسومه على سومه. وتحريم النجش. وتحريم التصرية (رقم-٨ - (١٤١٢) وابوداود فى كتاب النكاح/باب فى كراهية أن يخطب الرجل على خطبة أخيه (رقم-٢٠٨١) والنسائى كتاب البيوع/باب المحفلة (رقم-٤٤٨٧) وابن ماجة فى كتاب التجارات/ باب بيع المصراة (رقم-٢٢٣٩) ومالك فى الموطا كتاب البيوع/باب ما ينهى عنه من المساومة والمبايعة (رقم-٩٦)

[٢٨٥٠] دمسلمان د سودا په مینځ کښې د مداخلت ممانعت

٢٨٥٠-[٧] (١) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ [٢]: «لَا يَسُمِ الرَّجُلُ عَلَى سَوْمِ أَخِيهِ الْمُسْلِمِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابو هریره ﷺ وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] هیڅ سړی دې د خپل مسلمان ورور په سودا سودا نه کوي (یعني د چا سره د خرڅولو او انیولو معامله وي نو په هغه کې دې مداخلت نه کوي او د هغه شي زیات قیمت دې نه لګوي) مسلم

**حل اللغات** - ①سَوْمِ: سودا کول، د اخستلو معامله کول.

**تسهیلات**:

**قوله لَا يَسُمِ الرَّجُلُ عَلَى سَوْمِ أَخِيهِ الْمُسْلِمِ**

**دمذکوره ممانعت محمل**:- دا حکم په هغه صورت کښې دې کله چه خرڅونکې او اخستونکې دواړه په یو قیمت باندې راضي شوي وي، نو اوس دبل چا دپاره دا مناسب نه دی چه هغه ددې څیز داخستلو اراده اوکړي او زیات قیمت لګولو سره دهغوی معامله خرابه کړي، داسې کول مکروه دي اګرچه بیع به صحیح وي

**په مذکوره حکم کښې د غیر مسلم دخول**:- علامه ابن حجر ﷫ فرمائي چه په دې باره کښې د مسلمان په حکم کښې ذمي او معاهد او مستامن [٢] هم داخل دي

[٢٨٥١] د ښار سړی دې د کلي والا مال نه خرڅوي

٢٨٥١-[٨] (٣) [١] وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢]: «لَا يَبِيعُ حَاضِرٌ لِبَادٍ، [٣] دَعُوا النَّاسَ [٤] يَرْزُقِ اللهُ بَعْضَهُمْ مِنْ بَعْضٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [١] او جابر ﷺ وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] ښاري سړی دې د بانډچي (کلیوال) مال نه خرڅوي [٣] خلق د هغوی په حال پریږدئ [٤] چې الله ﷻ د چا په ذریعه چاته رزق رسوي. (مسلم)

**حل اللغات** - ①حَاضِرٌ: د ښار اوسیدونکې. ②لِبَادٍ: دکلي اوسیدونکې.

---

[١] اخرجه مسلم فی کتاب البیوع/باب تحریم بیع الرجل علی بیع أخیه، وسومه علی سومه، وتحریم النجش، وتحریم التصریة (رقم-٩ - (١٥١٥)) وابن ماجة فی کتاب التجارات /باب لا یبیع الرجل علی بیع أخیه، ولا یسوم علی سومه (رقم-٢١٧٢) واحمد فی المسند. ٢/٥٢٩

[٢] غیرمسلم کوم چه په اسلامي حکومت کښې اوسیږي او جزیه ورکوي چه هغه سره دیو مسلمان معاهده شوې وي چه هغه د یو مسلمان په پناه کښې وي)

[٣] اخرجه مسلم فی کتاب البیوع/باب تحریم بیع الحاضر للبادی (رقم-٢٠ - (١٥٢٢)) وابوداود فی أبواب الإجارة/باب فی النهی أن یبیع حاضر لباد (رقم-٣٤٤٢) والترمذی فی کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء لا یبیع حاضر لباد (رقم-١٢٢٣) والنسائی فی کتاب البیوع/باب بیع الحاضر للبادی (رقم-٤٤٩٥) وابن ماجة فی کتاب التجارات/باب النهی أن یبیع حاضر لباد (رقم-٢١٧٦)

**تسهيلات:**

**قوله دَعُوا النَّاسَ يَرْزُقِ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ مِنْ بَعْضٍ:**

**کليوال لره په ښهلو په ښار کښې مه خرڅولو د پرېښودو حکم:** - د حديث د آخرى جملې مطلب دا دي چه کلي وال په خپل حال باندې پرېږدئ چه هغوى د بهر نه غله راوړى او په ښار کښې نې په آرزان نرخ باندې خرڅه کړى او په دې طريقه هغوى د ښار د خلقو د رزق د فراخئ ذريعه جوړ شى، د باقى حديث وضاحت د حضرت ابوهريره ﷺ په روايت نمبر ٢٨٤٧ کښې تير شوې دې

**[٢٨٥٣] د جاهليت زمانې څو ممنوعې بيعې**

٢٨٥٣ – [٩] (١) ١ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ ٢ «نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ لِبْسَتَيْنِ وَعَنْ بَيْعَتَيْنِ ٣ نَهَى عَنِ الْمُلَامَسَةِ وَالْمُنَابَذَةِ فِي الْبَيْعِ». ٤ وَالْمُلَامَسَةُ: لَمْسُ الرَّجُلِ ثَوْبَ الْآخَرِ بِيَدِهِ بِاللَّيْلِ وَبِالنَّهَارِ ٥ وَلَا يَقْلِبُهُ إِلَّا بِذٰلِكَ،

**ترجمه:** ١ او حضرت ابو سعيد خدري ﷺ وايي ٢ چې رسول الله ﷺ د دوه قسمه اغوستلو څخه او دوه قسمه بيع څخه منع کړي ده ٣ او په بيع کې يې د ملامست او منابذت څخه منع کړي ٤ او ملامست دا دى چې يو سړى (يعني خريدار) د دويم سړي يعني تاجر کپړې (چې هغه يې اخستل غواړي) په ورځ کې يا په شپه کې يوازې په لاس سره مسه کړي هغه کولاؤولو اړولو راړولو سره ونه ګوري ٥ او د هغه دا مس کول د بيع د پاره وي

**حل اللغات** - ① لِبْسَتَيْنِ: دوه قسمه اغوستل. ② الْمُلَامَسَةِ: لاس اينودلو سره د يو څيز د اخستلو يو ناجائز قسم. ③ الْمُنَابَذَةِ: په کپړه غورزولو سر دڅه څيز اخستلو يو بل ناجائز قسم.

١ وَالْمُنَابَذَةُ: ٢ أَنْ يَنْبِذَ الرَّجُلُ إِلَى الرَّجُلِ بِثَوْبِهِ وَيَنْبِذَ الْآخَرُ ثَوْبَهُ ٣ وَيَكُونُ ذٰلِكَ بَيْعَهُمَا عَنْ غَيْرِ نَظَرٍ وَلَا تَرَاضٍ ٤ وَاللِّبْسَتَيْنِ اشْتِمَالُ الصَّمَّاءِ ٥ وَالصَّمَّاءُ أَنْ يَجْعَلَ ثَوْبَهُ عَلَى أَحَدِ عَاتِقَيْهِ ٦ فَيَبْدُو أَحَدُ شِقَّيْهِ لَيْسَ عَلَيْهِ ثَوْبٌ ٧ وَاللِّبْسَةُ الْأُخْرَى احْتِبَاؤُهُ بِثَوْبِهِ وَهُوَ جَالِسٌ ٨ لَيْسَ عَلَى فَرْجِهِ مِنْهُ شَيْءٌ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ او منابذت دا دى ٢ چې په معامله کونکو کې هر يو خپله کپړه د دويم سړي طرف ته اوغورځوي ٣ او دغه شان بغير د کتلو او بغير د اظهار د رضامندئ بيع اوشي ٤ او د کوم دوه قسمه اغوستلو څخه چې يې منع فرمايلې ده په هغه کې يو خو د صماء په طور اغوستل دي ٥ او د صماء طريقه دا ده چې يو سړى په خپله يوه اوږه کپړه داسې واچوي ٦ چې د هغه دويم طرف چې په هغه کې کپړه نه وي ظاهر او بربنډ وي ٧ او دويمه

[١] اخرجه البخاري في كتاب اللباس/باب اشتمال الصماء (رقم-٥٨٢٠) ومسلم في كتاب البيوع/باب إبطال بيع الملامسة والمنابذة (رقم-٣ - (١٥١٢) وابوداود في كتاب البيوع/باب في بيع الغرر (رقم-٣٣٧٧) والنسائي في كتاب البيوع/باب تفسير ذلك (رقم-٤٥١٥) وابن ماجة في كتاب التجارات /باب ما جاء في النهي عن المنابذة والملامسة (رقم-٢١٧٠) واحمد في المسند: ٩٥/٣

غوستنه چې د هغه څخه منع شوي ده، دا دی چې یو سړی د خان څخه چاپیره کپړه داسې واچوي چې کله هغه کیني [٨] نو د هغه شرمگاه هغه کپړي څخه بالکل بربنډ وي چې دی ته احتباء ونيل کيږی. بخاري مسلم.

**حل اللغات** -④غَيْرِ نَظَرٍ: بغير د کتلو نه. ⑤لَاتَرَاضٍ: بغير د رضامندئ نه. ⑥اشْتِمَالُ الصَّمَّاءِ: چې یو سړی به خپله یوه اوږه کپړه داسې واچوي چې د هغه دويم طرف چې به هغه کې کپړه نه وي ظاهر او بربنډ وي ⑦عَاتِقِهِ: په اوږه باندې. ⑧شِقِّهِ: د کپړې اړخ. گوټ. ⑨احْتِبَاؤُهُ: په ناسته باندې کپړه دخان نه داسې تاوول چه عورت پکښې ښکاره ری.

**تسهيلات:**

**قوله: عَنِ الْمُلَامَسَةِ:**

**د بیع ملامسه تعریف:** -دَ جاهلیت په زمانه کښې دا رواج وو چه مثلاً دَدوو کسانو په مینځ کښې دَ یوې سودا خبره کیدله نو یوفریق به مبیع ته لاس لگولو اوس به په دې سره دا گنړلې شوچه بیع لازم شوه اوس به ئی بل فریق منی که هغه خوشحال وی اوك كه خوشحال نه وی دَدواړو دَطرف نه به غیراختیاری بلکه جبری بیع کیدله نوحضورپاك دې نه منع اوفرمائیله

**قوله: وَالْمُنَابَذَةِ:**

**د بیع منابذه تعریف او صورتونه:** -دَ منابذه خو به یوصورت هم دا وو کوم چه په دې حدیث کښې ذکر دې چه یوفریق به خپله کپړا دَبل فریق طرف ته غورزوله هغه به دَ ده طرف ته خپله کپړا ورغورزوله دې سره به بیع کیدله. مخکښې به دَ کتلو اولتولو اجازت نه وو دَ منابذه دويم صورت به دا وو چه یوسړی به دَ چا په سامان یا کپړا باندې کانړې غورزولو دې سره به بیع لازم کیدله په دې بیوعاتو کښې چونکه دَ طرفین دَ طرف نه رضامندی نه وه نه به دا بیع تعاطی وه نه به په دې کښې ایجاب او قبول وو نه په دې کښې خیار شرط نه خیار رؤیت په دې وجه رسول الله ﷺ دا منع اوگرځوله

**قوله: اشْتِمَالُ الصَّمَّاءِ:**

| **د اشتمال الصماء دوه تفسیرونه:** - |
|---|

① دَدې یوتفسیر خوپخپله په حدیث کښې ذکر دې اودَدې

② دويم تفسیردادې چه یوسړی به خپل خان په یوڅادر یا کمبل کښې داسې را اینغښتې ساتلو چه دَ هغه ټول خپې لاسونه به بندشوی وو اوسړې به بالکل شل پاتې کیدلو که دښمن راتلو سره راگیرولو نودې به بې وسه وو په دې وجه حضورپاك دَدې نه منع اوکړه دا تفسیر زیات واضح دې.

**قوله** اِحْتِيَـاؤُهُ:

**د احتباء صورت:**-دا داسې كيناستو ته وائي چه مثلاً چه يوسړي زنګونونه اودروی په كناتوباندې كيني او دَ پاسه حصه باندې څادر اچولوسره بنكته حصه كولاو پريږدی دغه شان ستر ښكاره وی په دې وجه نې منع اوكړه.

**[٢٨٥٣] دَبيع حصاة او بيع غرر ممانعت**

٢٨٥٣-[٢٠] (١) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ بَيْعِ الْحَصَاةِ وَعَنْ بَيْعِ الْغَرَرِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د بيع حصاة او بيع غرر څخه منع فرمايلي ده، (مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْحَصَاةِ: وړوکي کانړي، ② الْغَرَرِ: دهوكه،

**تسهيلات:**

**قوله:** بيع الْحَصَاةِ:

**د بيع الحصاة تعريف:**- حصاة وړوكی كانړی ته وائی دَ بيع حصاة صورت داوی چه مثلاً خريدار دوكاندار ته اووائی كله چه زه ستا په دغه مال باندې كانړي درګذاركړم نوته پوهه شه چه بيع اوشوه يا دوكاندار خريدار ته وائی چه ما په خپل مال كښې هغه څيز په تاباندې خرڅ كړوبه كوم چه ستا راګذاركړې كانړي راپريوځی. يا به زه دَ خپلې زمكې هغه حصه په تا باندې خرڅوم تركومې پورې چه ستا كانړې لاړشی پريوځی دادَ جاهليت بيع وه حضورپاك منع كړه بيع منابذه او بيع حصاة تقريباً يوڅيزدې

**قوله:** بَيْعِ الْغَرَرِ:

**د بيع الغرر تعريف:**-داهغه بيع وی په كوم كښې چه مبيع مجهول وی ياپه كوم كښې چه مبيع دَ بايع په قبضه كښې نه وی لكه په سمندركښې كبان خرڅول په هواكښې مرغئی خرڅول په اول قسم كښې جهالت دې او دويم قسم دَ قدرت نه بهر دې په دې بيع كښې دهوكه ده په دې وجه منع ده دَ غرر نه لويه دهوكه مراده ده دَ وړوكی او معمولی غرر نه خو څوك بچ كيدې نه شی بل لونی غرر مفضی الی النزاع دې او وړوكې نه دې

) اخرجه مسلم فی كتاب البيوع/باب بطلان بيع الحصاة، والبيع الذی فيه غرر (رقم-٤ - (١٥١٣) اخرجه ابو داود فی السنن كتاب البيوع/باب فی بيع الغرر (رقم-٣٣٧٦) والترمذی فی كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی كراهية بيع الغرر (رقم: ١٢٣٠) والنسائی فی كتاب البيوع/باب بيع الحصاة (رقم-٤٥١٨) وابن ماجة فی كتاب التجارات/باب النهی عن بيع الحصاة، وعن بيع الغرر(رقم-٢١٩٤) واحمد فی المسند: ٢/٢٥٠

**[٢٨٥٥] د بیع حبل الحبلة حکم**

٢٨٥٥ - [٣١] ( ) ١ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: ٢ «نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ بَيْعِ حَبَلِ الْحَبَلَةِ»، ٣ وَكَانَ بَيْعًا يَتَبَايَعُهُ أَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ، ٤ كَانَ الرَّجُلُ يَبْتَاعُ الْجَزُورَ إِلَى أَنْ تُنْتِجَ النَّاقَةُ ٥ ثُمَّ تُنْتِجَ الَّتِي فِي بَطْنِهِ. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه:** ١ او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي ٢ چې رسول الله ﷺ د بيع حبل الحبله (يعني د حيوان د حمل د حمل) د خرڅولو څخه منع فرمايلي ده ٣ ابن عمر رضي الله عنهما وايي چې بيع حبل الحبله په ايام جاهليت کې يوه رائج بيع وه ٤ د هغه صورت دا وو چې يو سړی به د هغه وخته پورې اوښه واخسته چې د هغه د خيټې څخه بچی پيدا شي ٥ او بيا د هغه بچي د خيټې څخه بچی پيدا شي (يعني هغه به په دې وعده او ښه خريد کوله چې کله د هغه اوښې د خيټې څخه د پيدا کيدونکی بچي د خيټې څخه بچی پيدا شي نو هلته به د دې قيمت اداء کوم) بخاري مسلم.

**حل اللغات:** - ① حَبَل: په خيټه کښې بچی ته وائی. ② الْجَزُورَ: اوښه. ③ تُنْتِجَ: بچې پيدا کيدل. ④ النَّاقَةُ: اوښه

**تسهیلات:**

**قوله:** حَبَلِ الْحَبَلَةِ: په حاء باندې زبر دې اوباء باندې هم زبردې سکون سره وئيل غلط. حبل اوحمل په خيټه کښې دننه علوق او بچی ته وائی. په لغوی توګه باندې لفظ حبل دَ ښځو دپاره استعمالولې شی اولفظ حمل ښځو اوحيواناتو دوارو دپاره استعماليږی

**قوله:** حَبَلِ الْحَبَلَةِ:

**د بيع حبل الحبلة دوه صورتونه:-** ① يو سړی خپل څه څيز خرڅولو اودَ پيسو وصول کولودپاره به نی نيټه داسې مقررکوله چه کله دَ اوښې بچې پيدا شی اودَهغه بچی بچې پيدا شی هغه وخت به پيسې اداکوې. امام مالك رحمه الله او امام شافعي رحمه الله دا تشريح خوښه کړې ده اودَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه دا تفسير نقل دې دا دَ جاهليت دَبيوعاتونه يوه بيع وه رسول الله ﷺ دا په دې وجه منع کړه چه په دې کښې اجل مجهول دې کوم چه مفضی الی النزاع دې

( ) اخرجه البخاری فی کتاب البيوع/باب بيع الغرر وحبل الحبلة (رقم-٢١٤٣) ومسلم فی کتاب البيوع/باب تحريم بيع حبل الحبلة (رقم-٥ - (١٥١٤) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب البيوع/باب فی بيع الغرر (رقم-٣٣٨٠) والترمذی فی کتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی النهی عن بيع حبل الحبلة (رقم: ١٢٢٩) والنسائی فی کتاب البيوع/باب تفسير ذلک (رقم-٤٦٢٥) وابن ماجة فی کتاب التجارات/باب النهی عن شراء ما فی بطون الأنعام وضروعها، وضربة الغائص (رقم-٢١٩٧) ومالک فی الموطا کتاب البيوع/باب ما لا يجوز من بيع الحيوان (رقم-٦٢) واحمد فی المسند: ١٥/٢

④ دَ "حبل الحبلة" دَ اوښې په خېټه چه کوم حمل دې یا دَدې په خېټه کښې چه کوم حمل وي هغه یوسرې خرخوي

**بيع حبل الحبلة د ممانعت وجه:** - دا بيع ناجائز ده ځکه چه په دې کښې مبيع مجهول ده څه معلومه چه بچې به راځي اوکه نه اودَ دې دَ خيټې نه بچې پيدا کيږي اوکه نه دا دَ جهالت دَپاسه جهالت دې په دې وجه منع کړې شو امام احمدبن حنبل رحمه الله هم دا تفسيرخوښ کړې دې اوامام ترمذی رحمه الله هم دا راجح ګرځولې دې او دَحديث ظاهري الفاظ هم دَدې تائيد کوي بهرحال دَ ممانعت وجه "باجهالة الاجل فى الثمن" ده "باجهالة المبيع" ده

**[٢٨٥٦] نر خاروي په نښې دَ پريښودو اجرت اخستلو ممانعت**

٢٨٥٦—[٢٢] (١) ①وَعَنْهُ قَالَ ②«نَهَى رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنْ عَسْبِ الْفَحْلِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①حضرت ابن عمر رضي الله عنهما وايي ②چې رسول الله ﷺ د نر په ماده د پريښودلو د اجرت څخه منع فرمايلې ده، (بخاري)

**حل اللغات:** - ①عَسْب: جفتی کول، مال کول، ②الْفَحْل: نر خاروي،

**تسهيلات:** **قوله:** عَسْبِ الْفَحْلِ:

**د عسب الفحل معنى او د ممانعت وجه:** - اوضراب الفحل هم يوڅيز دې فحل نر ته وائي نرکه اوښ وی که غوايه وی يا سنډا وی يا چيلې وی دا په ماده باندې وريريخودلو بدله کښې پيسې اخستل منع دی ځکه چه دلته په ډير مقام باندې معامله مجهول ده کله خاروې جفت کوی او کله نه کوی، کله دَ ماده حمل حصاريږي اوکله نه حصاريږي په دې وجه منع دی بل دا يوخسيس او ذليل بيوپارهم دې کوم چه دَمسلمان دَ شان خلاف دې نن صبا دَ نسل دَ زياتولو په غرض سره دامعامله کيږي. بهرحال که يوسرې خپل غوايه يا سنډا دَ رعايت په توګه ورکوی اوخلق دَا کرام په توګه هغه ته څه ورکوی نودا جائز دی لکه چه په حديث نمبر (٢٨٦٦) کښې راځي

**[٢٨٥٧] د اوبو او زمکې د خرڅولو ممانعت**

٢٨٥٧—[٢٣] (٢) ①وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: ②«نَهَى رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنْ بَيْعِ ضِرَابِ الْجَمَلِ ③وَعَنْ بَيْعِ الْمَاءِ وَالْأَرْضِ لِتُحْرَثَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

[1]) اخرجه البخارى فى كتاب الإجارة/باب عسب الفحل (رقم-٢٢٨٤) اخرجه ابو داود فى السنن أبواب الإجارة/باب فى عسب الفحل (رقم-٣٤٢٩) والترمذى فى كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية عسب الفحل (رقم: ١٢٧٣) واحمد فى المسند:١٤/٢

[2]) اخرجه مسلم فى كتاب المساقاة/باب تحريم بيع فضل الماء الذى يكون بالفلاة ويحتاج إليه لرعى الكلأ، وتحريم منع بذله، وتحريم بيع ضراب الفحل (رقم-٣٥ - (١٥٦٥) والنسائى فى كتاب البيوع/باب بيع ضراب الجمل (رقم-٤٦٧٠)

**ترجمه:** [١] او حضرت جابر رضي الله عنه وايي [٢] رسول الله ﷺ اوښ د جفتي (ختلو) د پاره په كرايه باندې وركولو [٣] او اوبه او زمكه د كاشت د پاره د خرڅولو څخه منع فرمايلي ده. (مسلم)

**حل اللغات** - ① ضِرَاب: جفتي كول، مال كول. ② الْجَمَل: نر اوښ.

**تسهيلات: قوله عَسْبِ الْفَحْلِ:**

**د بيع الماء والارض صورت:** - عسب الفحل او ضراب الجمل هم يو شيز دې او د بيع الماء والارض صورت دا دې چه يو سړې د زمكې مالك دې او اوبه هم په دغه زمكه كښې دى دا سړې اوبه او زمكه د محنت او كروندې په بدله كښې يو بل سړى ته وركوى او معامله د كروندې كوى چه دومره حصه زما او دومره ستا به وى دا په حقيقت كښې مزارعت او مخابرت دې د كوم تفصيل چه وړاندې راروان دې.

**[٢٨٥٨] د قدرتى اوبو د خرڅولو ممانعت**

٢٨٥٨—[٣٣] ( ) [١] وَعَنْهُ قَالَ: [٢] «نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنْ بَيْعِ فَضْلِ الْمَاءِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت جابر رضي الله عنه وايي [٢] چې رسول الله ﷺ د خپل ضرورت څخه د زياتو اوبو خرڅولو څخه منع فرمايلي ده. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① فَضْل: زياتي.

**تسهيلات: قوله: عَنْ بَيْعِ فَضْلِ الْمَاءِ:**

**د فضل الماء څخه مراد:** - يعنى كه د يو سړي په ملكيت كښې دومره اوبه وى چه د هغه د ضرورت نه زياتي وى او اوبه هم د قدرتى چينې نه وى او خلق د دې نه څكلو او څناورو ته وركولو كښې سخت محتاج هم وى نو په داسې صورت كښې دا اوبه منع كول او په خلقو باندې خرڅول منع دى. څكه چه اوبه داسې څيز دې چه په دې كښې ټول مخلوق برابر شريك دې او كه د هغه د كوهى اوبه څوك خپل پټي يا باغ كښې استعمالول غواړى نو د دې معاوضه اخستل صحيح دى بل په لوښو كښې جمع كړې شوې اوبه خرڅول جائز دى

**[٢٨٥٩] داوبه خور د پاره د اوبو خرڅولو ممانعت**

٢٨٥٩—[٣٥] ( ) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [٢] لَا يُبَاعُ فَضْلُ الْمَاءِ لِيُبَاعَ

---

[١] ) اخرجه مسلم فى كتاب المساقاة/باب تحريم بيع فضل الماء الذى يكون بالفلاة ويحتاج إليه لرعى الكلأ. وتحريم منع بذله. وتحريم بيع ضراب الفحل (رقم-٣٤ (١٥٦٥) وابن ماجة فى كتاب الرهون/باب النهى عن بيع الماء (رقم-٢٤٧٧)

[٢] ) اخرجه البخارى فى كتاب الإجارة/باب من قال: إن صاحب الماء أحق بالماء حتى يروى لقول النبى صلى الله عليه وسلم: «لا يمنع فضل الماء» (رقم-٢٣٥٣) ومسلم فى كتاب المساقاة/باب تحريم بيع فضل الماء الذى يكون بالفلاة ويحتاج إليه لرعى الكلأ. وتحريم منع بذله. وتحريم بيع ضراب الفحل (رقم-٣٨ - (١٥٦٦) والترمذى فى كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى بيع فضل الماء (رقم-١٢٧٢) وابن ماجة فى كتاب الرهون/باب النهى عن منع فضل الماء ليمنع به الكلأ (رقم-٢٤٧٨) ومالک فى الموطا كتاب الاقضية/باب القضاء فى المياه (رقم-٢٩)

بِهِ الْكَلَأُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] چې د خپل ضرورت څخه زياتي اوبه مه خرڅوئ چې د هغه په وجه واښه خرڅول لازم نشي. (بخاري، مسلم)

**حل اللغات** - ① الْكَلَأُ: واښه، گيا

**تسهيلات**: قوله: لِيُبَاعَ بِهِ الْكَلَأُ:

**دوېنوعو څولو حکم**: - الكلاء. وښوته وائي پخپله راټوکيدونکي واښه خرڅول منع دي ددې دپاره خلق حيلې کوي اوخرڅوي دلته هم د دغه حيلونه د يوحيلې ممانعت راغلي دې مثلاً يوسړي دې هغه خپل څاروي دبل سړي د کوهي خواته د وښود څرن دپاره راولي اوس بېکاره خبره ده چه د څرن نه پس به څناور اوبه څکي ليکن د اوبو مالك وائي ماله داوبو معوضه راکړه هغه مجبوره کيدوسره د اوبو قيمت ورکوي مګر په حقيقت کښې دغه هم ددې وښو قيمت دې دغه شان هغه زياتي اوبه خرڅولوسره په حقيقت کښې هم هغه واښه خرڅ کړل او د وښو خرڅول منع دي. علماؤ دا ممانعت په کراهت تنزيهي باندې حمل کړې دې

[٢٨٦٠] په تجارت کښې د دهوکې کولو حرمت

٢٨٦٠ - [٢٠] (١) [١] وَعَنْهُ «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَرَّ عَلَى صُبْرَةِ طَعَامٍ [٢] فَأَدْخَلَ يَدَهُ فِيهَا فَنَالَتْ أَصَابِعُهُ بَلَلًا [٣] فَقَالَ: " مَا هَذَا يَا صَاحِبَ الطَّعَامِ؟ [٤] قَالَ: أَصَابَتْهُ السَّمَاءُ يَا رَسُولَ اللَّهِ. [٥] قَالَ: أَفَلَا جَعَلْتَهُ فَوْقَ الطَّعَامِ حَتَّى يَرَاهُ النَّاسُ؟ [٦] مَنْ غَشَّ فَلَيْسَ مِنِّي» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي (يو ځل) رسول الله ﷺ د غنمو په يو ډهير تير شو [٢] او خپل لاس مبارك يې په هغه ډهير کې دا خل کړي نو ګوتو مبارکو ته يې لوندوالي محسوس شو [٣] رسول الله ﷺ وفرمايل چې اې د غلې مالکه! دا لوندوالي څنګه دی؟ يعنې د غلې ډهير ته دا لوندوالي څنګه راورسيدو؟ او تا غله ولې لونده کړه؟ [٤] هغه عرض اوکړو چې يا رسول الله! ﷺ دې ته د باران اوبه رسيدلي وي (چې د هغه په وجه: غلې څه حصه لونده شوې وه. ما قصداً نه ده لونده کړې) [٥] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې بيا تا لانده غنم برسيره ولې نه کېښودل چې خلقو هغه ليدلي وايې (او په څه دهوکه کې نه مبتلا کيدل.) [٦] ياد لرئ: کوم سړی چې دهوکه ورکړي هغه زما څخه نه دی (يعنې زما په طريقه نه دی) مسلم

**حل اللغات** - ① صُبْرَةِ طَعَامٍ: ډهيرې. ② بَلَلًا: لوندوالي. ③ السَّمَاءُ: آسمان، باران. ④ غَشَّ: ملاوټ کول.

---

(١) اخرجه مسلم فى كتاب الإيمان/باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: «من غشنا فليس منا» (رقم-(١٠٢)) والترمذى فى كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية الغش فى البيوع (رقم: ١٣١٥) وابن ماجة فى كتاب التجارات/ باب النهي عن الغش (رقم ٢٢٢٤)

**تسهيلات:**

**توله فَلَيْسَ مِنِّي:**

**د دهوکې ورکولو وعيد:-** يعنى کوم سړي چه په اخستلو خرڅولوکښې دهوکه کوی هغه مانه نه دي هرمسلمان اوهر سوداګرله سوچ پکاردي چه دلته په معمولی خبره باندي رسول الله ﷺ څومره لوئی وعيداورولي دي اومونږ څومره لوئی لوئی دهوکې خلقونه ورکوو مال لاندې کراچئی کښې جوړشوي وی اومونږ په هغې باندي د جاپان نوم ليکلې وی اويا په هريوڅيزکښې دونمبرمال د اول نمبر په مال باندي خرڅه وو په دې کښې توله خساره ده

**فليس منى کښې توجيهات:-** ① فليس منی مطلب دادي چه صرف دغه خاص کار اودغه خاص شعبه کښې هغه مانه نه دي او زما امت سره ئی هيڅ تعلق نشته دي ځکه چه هغه په دغه کارکښې د غيرو په لار روان دي دا مطلب نه دي چه هغه پوره په اسلام کښې زمونږ سره نه دي اوداسلام نه خارج شو

② حضورپاك کلام د اسلوب حکيم په اندازکښې ارشاد فرمائيلي دي ځکه چه د يوامتی دپاره حضورپاك د خان نه هم زيات محبوب دي کله چه حضورپاك دا اوفرمائيل چه د دغه سړی ماسره څه تعلق نشته نوهغه سړي به په ترقيدو شی اودا ګناه به بالکل پريږدی اوهم دغه مقصودوی

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [٢٨٦] د بيع ثنيا ممانعت

٢٨٦-[٢٠] (١) ① عَنْ جَابِرٍ قَالَ: ② «إِنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَهَى عَنِ الثُّنْيَا ③ إِلَّا أَنْ يُعْلَمَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت جابر رضي الله عنه وايي ② چې رسول الله ﷺ د بيع ثنيا يعنى د استثناء کولو څخه منع فرمايلي ده ③ خو دا چې مقدار متعين کړل شي، (ترمذي)

يا دومره سير دومره من ما د خان د پاره مستثنٰی کړي دی چې نه يې خرڅوم نو داجائز دی

**حل اللغات.-** ① الثُّنْيَا: استثنى كول، څه خاص حصه مستثنى كول

(١) اخرجه مسلم فى كتاب البيوع/باب النهى عن المحاقلة والمزابنة، وعن المخابرة، وبيع الثمرة قبل بدو صلاحها، وعن بيع المعاومة وهو بيع السنين (رقم -٨٥ - (١٥٣٦) اخرجه ابو داود فى السنن كتاب البيوع/باب فى المخابرة (رقم ٣٤٠٤) والترمذى فى كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى النهى عن الثنيا (رقم: ١٢٩٠) والنسائى فى كتاب البيوع/باب النهى عن بيع الثنيا حتى تعلم (رقم ٤٦٣٣) واحمد فى المسند: ٣/٣٦٤

**تسهيلات: قوله: الثُّنْيَا:**

**د ثنيا معنى او د ممانعت وجه:** د استثناء كولو په معنى كښې دې مثلاً يو سړې څه څيز خرڅوي او وائي چه ما داڅيز په تاباندې خرڅ كړو مګر يو حصه مې نه ده خرڅه كړې په مبيع كښې هم دغه استثناء ته ثنيا ونيلې شوې ده په دې سره په بيع كښې جهالت راځي كوم چه مفضى الى النزاع دې په دې وجه ممنوع دى اوكه چرې د مبيع نه بائع څه متعين څيز استثناء كړى او اووائى چه دا څيز زه په تاباندې خرڅوم ليكن لس كلوګرام درباندې نه خرڅوم يا يوګز درباندې نه خرڅوم نو داسې جائز دى

**[٢٨٣] ميوه او فصل دې د پخيدلو څخه وروسته خرڅ كړې شي**

٢٨٣ـ[٢٨] ()[١] وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ[٢] «نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ بَيْعِ الْعِنَبِ حَتَّى يَسْوَدَّ[٣] وَعَنْ بَيْعِ الْحَبِّ حَتَّى يَشْتَدَّ». [٤] هَكَذَا رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ عَنْ أَنَسٍ[٥] وَالزِّيَادَةُ الَّتِي فِي الْمَصَابِيحِ وَهِيَ قَوْلُهُ " «نَهَى عَنْ بَيْعِ التَّمْرِ حَتَّى تُزْهِرَ» " إِنَّمَا ثَبَتَتْ فِي رِوَايَتِهِمَا[٦] عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: «نَهَى عَنْ بَيْعِ النَّخْلِ حَتَّى تَزْهُوَ». [٧] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت انس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ دانګورو هغه وخته پورې د خرڅولو څخه منع فرمايلي ده[٢] د څو پورې چې هغه تورنشي (يعني پاخه نشي) [٣] دغه شان حضور ﷺ غله هم هغه وخته پورې د خرڅولو څخه منع فرمايلي ده د څو پورې چې هغه سخته نشي (يعني د فائدې اخستو قابله نشي)[٤] دا روايت ترمذي او ابوداود د حضرت انس ﷺ څخه داسې نقل كړي دى، [٥] او صاحب مصابيح په دې روايت كې دا الفاظ، حضور ﷺ كجورې هغه وخته پورې د خرڅولو څخه منع فرمايلى ده د څو پورې چې هغه خوش رنګه نشي. بې مزيد نقل كړي دى چې په ترمذي او ابوداود كې (د حضرت انس ﷺ څخه نقل نه دى[٦] بلكه، د حضرت ابن عمر ﷺ څخه منقول دى او هغه هم داسې دى چې حضرت ابن عمر ﷺ اوويل حضور ﷺ كجورې هغه وخته پورې دخرڅولو څخه منع فرمايلى ده د څو چې خوش رنګه نشي، [٧] امام ترمذي ﷺ ويلي دي چې دا حديث حسن غريب دى

**حل اللغات** - ① يَسْوَدَّ: چه تور شي، پوخ شي. ② الْحَبّ: غله. ③ يَشْتَدَّ: سخته شي. ④ تُزْهِرَ: چه خوش رنګه، ښانسته ښكاره شي. ⑤ تَزْهُوَ: ميوه زيړه يا سره كيدل.

**تسهيلات:**

**نوټ:** - د حديث تفصيل د حديث نمبر (٢٨٣٩) په تسهيل كښې تيرشوې دې.

[١] ) اخرجه ابوداود في السنن كتاب البيوع/باب في بيع الثمار قبل أن يبدو صلاحها(رقم: ٣٣٧١) والترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية بيع الثمرة حتى يبدو صلاحها(رقم: ١٢٢٨) وابن ماجة في كتاب التجارات/ باب النهي عن بيع الثمار قبل أن يبدو صلاحها (رقم-٢٢١٧) واحمد في المسند، ٢٢١/٣

**قوله وَالزِّيَادَةُ الَّتِي فِي الْمَصَابِيحِ**

**دصاحب مشكاة په امام بغوي دوه اعتراضونه :-**

① دا روايت چه په كومو الفاظو سره نقل شوې دې نو ددې ناقل ئې حضرت انس رضي الله عنه خودلې دې حالانكه داسې الفاظ د حضرت ابن عمر رضي الله نه منقول دى

② امام بغوي د بيع التمر الفاظ نقل كړى دى او په اصل روايت كښې بيع النخل الفاظ راغلى دى

**[٢٨٣٠] د بيع الكالئ بالكالئ ممانعت**

| ٢٨٣ــ[٢٩] (¹) ١ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ ٢ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَهَى عَنْ بَيْعِ الْكَالِئِ بِالْكَالِئِ». رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ. |
|---|

**ترجمه:** ١ او حضرت ابن عمر ﷻ وايي ٢ چې رسول الله ﷺ د قرض په قرض د خرڅولو څخه منع فرمايلي ده. (دار قطني)

**حل اللغات:** - ① بَيْعِ الْكَالِئِ: قرض په قرض باندې خرڅول

**تسهيلات:**

**قوله نَهَى عَنْ بَيْعِ الْكَالِئِ**

**د بيع الكالئ بالكالئ صورت:** -الكالئ همزه سره هم لوستلې كيږى او بغير همزه هم صحيح دې داد قرض په معنى كښې دې مطلب دادې قرض په قرض باندې خرڅول منع دى ددې صورت داوى مثلاً يوسړى د چانه قرض تويك واخستو سودا اوشو مگر تويك ئې قبضه نه كړو اود پيسو د پاره ئې يو تاريخ مقرر كړو خو په دغه تاريخ باندې پيسې ورنه كړې شوې او بايع اووئيل چه د يوې بلې مودې پورې داتويك بيا په ما خرڅ كړه زه به زياتى پيسې دركړم دابيع ناجائزده ځكه چه دې كښې نه د مبيع قبضه شوې ده اونه د ثمن قبضه شوې ده يود قرض معامله د قبضه وركولونه وړاندې بلې قرض معامله سره خرڅولې شى كوم چه ناجائزدى

**[٢٨٣] د بيع العربان ممانعت**

| ٢٨٣ــ[٣٠] (²) ١ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: ٢ «نَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ بَيْعِ الْعُرْبَانِ». رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ. |
|---|

**ترجمه:** ١ او حضرت عمرو ابن شعيب د خپل پلار او هغه د خپل نيكه څخه نقل كوي ٢ چې رسول الله ﷺ د بيع عربان څخه منع فرمايلي ده . (مالك ابوداود ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① الْعُرْبَانِ: بيعانه او سائى وركول.

¹) اخرجه الدار قطنى فى كتاب البيوع (رقم-٢٦٩)

²) اخرجه ابواود فى السنن أبواب الإجارة/باب فى العربان (رقم-٣٥٠٢) وابن ماجة فى كتاب التجارات/باب بيع العربان (رقم-٢١٩٢) ومالک فى الموطا كتاب البيوع/باب ما جاء فى بيع العربان (رقم-١)

**تسهيلات**

**قوله** العُرْبَان

**په بيع العربان کښې لغات او ددې تعريف:** -په عين پيش او را، ساکن ده دا لفظ عربون او اربون هم لوستلې شوې دې اوعربان او اربان هم لوستلې شوې دې دا د جاهليت په دورکښې د عربويوه بيع وه او نن صبا په جديد جاهليت کښې هم دا بيع روانه ده که قيمت ورکولوسره سودا مکمل شوه نودا رقم به په اصل قيمت کښې شميرلې شي اوکه سودا مکمل نه شوه نودارقم به په مفت کښې بايع سره پاتې شي دې ته د نن صبا په اصطلاح کښې سائي او بيعانه ونيلې شي

**د بيع العربان عدم جواز:** -د جمهور فقهاؤ په نيزدا بيع منع ده څکه چه په دې کښې فـاسـد شرط کيخودې شوې دې بل په دې کښې په باطله طريقه د بل مال خوړل دی او ﴿وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَالَكُم بَيْنَكُم بِالْبَاطِلِ﴾ [سورت بقره الايه:١٨٨] آيت دا منع کوی اوامام احمد رحمه الله د ابن عمر رضي الله عنه د يوروايت د وجې نه د دې بيع د جواز قول کړې دې

د احنافو په نيز هم دا بيع قطعًا منع ده لکه چه د جمهور فقهاؤ قول دې ليکن که د بايع او مشترى د طرف نه دا وضاحت اوشى چه سودا دنه مکمل کيدو په صورت کښې به سائى اوبيعانه واپس مشترى ته ملاويږى نوبيا معامله جائز ده

**[٢٨٦٥] د مجبوره کس د بيع حکم**

٢٨٦٥ - [٣] (١) وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: «نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ بَيْعِ الْمُضْطَرِّ [١] وَعَنْ بَيْعِ الْغَرَرِ [٢] وَعَنْ بَيْعِ الثَّمَرَةِ قَبْلَ أَنْ تُدْرِكَ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت علي کرم الله وجهه وايې چې رسول الله ﷺ د بيع مضطر بيع غرر [٢] او د راوتلو څخه مخکې د ميوو د بيع څخه منع فرمايلې ده. (ابوداؤد)

**حل اللغات** - ① الْمُضْطَرّ مجبور.

**تسهيلات**

**قوله** بَيْعِ الْمُضْطَرِّ

**د بيع المضطر دوه مطلبونه او حکم:** -يعنى د مجبور بيع ناجائزده د دې دوه مطلبونه دی

① رومبې مطلب دادې چه د چانه په زور د هغه څه څيز اخستل منع دی مثلاً هغه نې خرڅول نه غواړی او بل سړې په هغه باندې دباؤ اچولوسره په خرڅولو مجبور وی دې د پاره چه دې پخپله دغه څيزواخلى داحرام دی اودا بيع فاسد اونهى تحريمى ده

(١) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب البيوع باب فى بيع المضطر (رقم-٣٣٨٢) واحمد فى المسند: ١١٦/١

② دويم مطلب دا دې مثلاً يو سړې مجبور او مضطر دې په ده باندې د قرض او مصيبتونو بار لګيدلې دې او س هغه خپل قيمتي څيزونه په ډير ارزان قيمت باندې د مجبورۍ نه خرڅوي او دويم سړې د دغه مجبور د مجبورۍ نه ناجائزه فائده اوچته وي ددې نه حضور ﷺ منع فرمائيلې ده بلکه دا تعليم ورکول مقصود دی چه دې مجبوره سړی سره همدردی اوکړه اوده ته قرض ورکړه يا د هغه څيز په هغه قيمت واخله په کوم چه په مارکيټ کښې اخستلې شي په دې صورت کښې که چاد يو مجبور نه مال ارزان واخستلو نو سره ددې چه بيع صحيح ده ليکن علماؤ دا مکروه ګرځولې ده دلته نهی د حرمت د پاره نه بلکه کراهت د پاره ده

**[٢٨٦٦] نر څاروی په ماده د پريښودلو د پاره اُجرت اخستل ممنوع دی**

٢٨٦٦—[٣٢] (١) ① «وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَجُلًا مِنْ كِلَابٍ سَأَلَ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنْ عَسْبِ الْفَحْلِ ② فَنَهَاهُ ③ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا نُطْرِقُ الْفَحْلَ فَنُكْرَمُ، ④ فَرَخَّصَ لَهُ فِي الْكَرَامَةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت انس ﷺ وايي د قبيله کلاب څخه يو سړی د رسول الله ﷺ څخه نر په ماده د پريښودلو د پاره د اجرت اخستو په باره کې پوښتنه وکړه ② نو حضور ﷺ هغه منع کړې چې اجرت مه اخله، ③ بيا هغه عرض اوکړو چې يا رسول الله ﷺ مونږ نر عاريتاً ورکوو او مونږ ته په دې سلسله کې په طور د انعام څه راکول کيږي؟ يعنی مونږ د څه اجرت مقررولو سره خپل نر نه ورکوو بلکه عاريتاً يې ورکوو خو حيوان بوتلونکی بلا طلب مونږ ته په طور د انعام څه راکوي نو آيا مونږ هغه هم نه اخلو؟ ④ نو حضور ﷺ ورته د انعام اخستو اجازت ورکړو، ترمذی.

**حل اللغات:** - ① عَسْبِ: جفتی کول، مال کول. ② الْفَحْلِ: نر څاروی. ③ نُطْرِقُ: عاريه او مفت پريښودل. ④ الْفَحْلَ: نر څاروی. ⑤ فَنُكْرَمُ: په طور د انعام او اکرام څه راکولې شی

**تسهيلات:**

**نوټ:** —ددې حديث وضاحت دې نه مخکښې حديث نمبر ٢٨٥٦، کښې شوی دی

**[٢٨٦٧] کوم څيز چه خپله درسره نه وي د هغه بيع مه کوی**

٢٨٦٧—[٣٣] (٢) ① «وَعَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَ: ② نَهَانِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَبِيعَ مَا لَيْسَ عِنْدِي. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ ③ وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ وَلِأَبِي دَاوُدَ وَالنَّسَائِيِّ ④ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ يَأْتِينِي الرَّجُلُ فَيُرِيدُ مِنِّي الْبَيْعَ وَلَيْسَ عِنْدِي فَأَبْتَاعُ لَهُ مِنَ السُّوقِ. قَالَ: لَا تَبِعْ مَا لَيْسَ عِنْدَكَ».

[١] اخرجه الترمذی فی کتاب البيوع عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی کراهية عسب الفحل (رقم: ١٢٧٤)

[٢] اخرجه ابوداود فی السنن أبواب الإجارة/باب فی الرجل يبيع ما ليس عنده (رقم-٣٥٠٣) والترمذی فی کتاب البيوع عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی کراهية بيع ما ليس عندک (رقم: ١٢٣٣) والنسائی فی کتاب البيوع/باب بيع ما ليس عند البائع (رقم-٤٦١٣) وابن ماجة فی کتاب التجارات/باب النهی عن بيع ما ليس عندک. وعن ربح ما لم يضمن (رقم-٢١٨٧) واحمد فی المسند: ٤٠٢/٣

**ترجمه:** ١ او حکيم بن حزام ﷺ وايي ٢ چې رسول ﷺ زه د دې څخه منع کړم چې هغه څيز خرڅ نه کړم کوم چې زما سره نه وي، (ترمذي)

٣ د ترمذي ابوداود او د نسائي په يو روايت کې داسې دي ٤ چې حضرت حکيم ﷺ وايي ما عرض اوکړو چې يا رسول الله ﷺ يو سړی ماته راځي او زما څخه د يو داسې څيز د رانيولو اراده کوي کوم چې زما سره نه وي نو زه هغه څيز د بازار څخه اخلم (يعني زه د هغه شي معامله د هغه سره کوم بيا هغه څيز بازار څخه اخلم او هغه سړي ته يې حواله کوم) ٥ حضور ﷺ (د دې اوريدو سره) وفرمايل چې ته يو داسې څيز مه خرڅوه کوم چې ستا سره نه وي

**حل اللغات:** - ①السُّوق: بازار،

**تسهيلات:** **قوله:** مَالَيْسَ عِنْدَكَ:

**د ما ليس عندک مفهوم:**—دې نه هغه ټول بيوعات مراد دی دکوم په حواله کولوسره چه سړې قادر نه وی ځکه چه دَ صحت بيع دَپاره دا ضروری ده چه سړې کوم څيزخرڅوی هغه دا دَمشتری په حواله کولې هم شی. که چرې بائع دَمبيع دَ حواله کولونه قاصر دې نوهغه دَدې قيمت ځنکه اخستې شی لهذا داسې صورت ناجائز دې

**[٢٨٦٨] په يوه بيع کښې دوه بيعې کول منع دی**

> ٢٨٦٨—[٣٠] (١)١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: ٢«نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ بَيْعَتَيْنِ فِي صَفْقَةٍ وَاحِدَةٍ». رَوَاهُ مَالِكٌ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوهريره ﷺ وايي ٢ چې حضور ﷺ په يوه بيع کې د دوو بيعو کولو څخه منع فرمايلي ده . (مالك ، ترمذي ، ابوداود ، نسائي)

**حل اللغات:** - ①صَفْقَةٍ: يوعقد ي،ه معامله

**تسهيلات:**

**قوله:** عَنْ بَيْعَتَيْن:

**د بيعتين فى بيع دوه صورتونه:**—يعنی په يوه بيع کښې دَدوو بيع کولونه حضورپاك منع فرمائيلي ده

① دَدې بيع يو صورت دادې چه مثلاً يوسړې بل ته وائی چه زه خپله ميخه په زر روپيئ باندې ستا په لاس خرڅوم ليکن په دې کښې دا شرط دې چه ته به خپله غوا په ما باندې په پنځه سوا روپې عوض خرڅوې. دا بيع په دې وجه ناجائز ده چه په دې کښې دَعقد منافی.

---

(١) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الجنائز. باب فی الفسل من غسل الميت(رقم-٣٤٦١) والترمذی فی كتاب البيوع عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی النهی عن بيعتين فی بيعة(رقم: ١٢٢١)والنسائی فی كتاب البيوع/باب بيعتين فی بيعة. وهو أن يقول: أبيعک هذه السلعة بمائة درهم نقدا، وبمائتی درهم نسيئة (رقم-٤٦٣٢)

شرط کيخودې شوې دې نن صبا خلق دغه شان بيع اوشراء کنبې سودی کاروبارهم کوی هغه داسې چه يوغريب سړې دَ مالدار سړی نه قرض پيسې اخستل غواړی هغه ورته وائی چه زه به قرض پيسې درکړم ليکن دَهغې دَپاره دا شرط دې چه ته به زما غوا په لس زره روپيئی قيمت باندې اخلې حالانکه هغه غوا دَ پنځو زرو وی دا سود اوحرام دی

④ بيعتين فی بيعة: دويم صورت دادې چه مثلاً يو سړې بل ته وائی چه زه په تاباندې دا کپړا په لس درهم نقد روپو باندې خرڅوم او په قرض باندې په شل درهم باندې خرڅوم هغه سړې دَ يوې بيع تعيين نه کوی بلکه وائی زه ئی اخلم په دې معامله کښې په ثمن کښې جهالت راغلو او معلومه نه شوه چه دې مشتری کوم يو صورت قبول کړې دې لهذا دا هم ناجائز ده اوکه چرې يوه معامله فيصله شی اومعامله صفا شی چه مشتری دَ نقدو والا صورت اختيارکړې دې يا دَ قرض والا صورت ئی خپل کړې نوبيا دامعامله جائز ده دَ راتلونکی حديث تشريح هم دغه شان ده.

### [٢٨٧٩]په يوعقد کښې د دوو عقودو د معاهدې ممانعت

٢٨٧٩—[٥٠] (١) ① وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: ② «نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ بَيْعَتَيْنِ فِي صَفْقَةٍ وَاحِدَةٍ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** ① او حضرت عمرو بن شعيب رحمه الله دخپل پلار (شعيب) څخه او هغه د خپل نيکه حضرت عبد الله ابن عمرو رضی الله عنهما څخه نقل کوي② چې رسول الله ﷺ په يوه بيع کې د دوو بيعو کولو څخه منع فرمايلي ده. (شرح السنة)

### [٢٨٨٠]دبيع او سلف ممانعت

٢٨٨٠—[٥١] (٢) ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«لَا يَحِلُّ سَلَفٌ وَبَيْعٌ، ③ وَلَا شَرْطَانِ فِي بَيْعٍ، ④ وَلَا رِبْحُ مَا لَمْ يُضْمَنْ، ⑤ وَلَا بَيْعُ مَا لَيْسَ عِنْدَكَ» "⑥. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت عمرو ابن شعيب رحمه الله ناقل دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل قرض② او بيع (د يو بل سره متعلق کولو سره) حلال نه دی، ③ په بيع کې دوه شرطونه کول صحيح نه دي④ د هغه شي څخه نفع اخستل صحيح نه دي چې اوس لا په خپل ضمان (قبضه) کې نه وي راغلی ⑤ او هغه څيز خرڅول جائز نه دی چې ستا سره نه وي (يعني ستا په ملکيت

---

(١) اخرجه البغوی فی شرح السنة (رقم-٢١١٢)

(٢) اخرجه ابوداود فی السنن أبواب الإجارة/باب فی الرجل يبيع ما ليس عنده (رقم-٣٥٠٤) والترمذی فی كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی كراهية بيع ما ليس عندک (رقم: ١٢٣٤)والنسائی فی كتاب البيوع/باب بيع ما ليس عند البائع (رقم-٤٦١١)وابن ماجة فی كتاب التجارات/باب النهی عن بيع ما ليس عندک وعن ربح ما لم يضمن (رقم-٢١٨٨) واحمد فی المسند: ١٧٨/٢

کې نه وي.[٦] ترمذي ابوداود نسائي، او امام ترمذي رحمه الله فرمايي چې دا حديث صحيح دی
**حل اللغات** - ① سَلَفٌ: قرض باندې معامله کول، ② بَيْعٌ: ګټه اخستل.
**تسهیلات: قوله سَلَفٌ وَبَيْعٌ:**
**د سلف وبیع مطلب او صورت:** -یعنی قرض اوبیع حلال نه ده دَدې مطلب دادې چه قرض ورکول او بیع کول دوه جدا جدا معاملې دی دا یوبل سره منسلك کول جائز نه دی مثلاً یو سړې چاته قرض ورکوی اووائی چه ته به ماته خپله غوا په پنځه زره روپینی عوض باندې راکوې حالانکه هغه غوا دَ لسو زروده یا دا وائی چه ته به زما فلانکې کارکوې اوسل روپۍ دهیاړی به اخلې حالانکه دَ روزمره دهیاړی دوه سوا روپیئی ده یا داسې وائی چه ته به زما فلانکې غوا په لس زره روپیئی اخلې حالانکه هغه غوادَ پنځو زرو ده دا ټول صورتونه نن صبا پاکستان کښې رائج دی اودا خالص ربوا او سود دې ځکه چه داسې دَ قرض په بهانه کښې سوداګری کولوسره ګټه کوی او "کل قرض جرنفعاً فهوربوا" په زد کښې راځی یعنی چه کوم قرض کومه ګټه دَمالك طرف ته راښکله هغه سود او ربوا ده
**قوله: وَلَا شَرْطَانِ فِي بَيْعٍ:**
**په عقد کښې د شرط دوه قسمونه:** -① په عقد کښې شرط دوه قسمه وی یوهغه شرط چه عقد بیع سره هوار او مناسب وی دَ هغې علامت او پیژندګلو دا وی چه شرط لګول یا نه لګولوسره په عقدباندې هیڅ اثر نه پریوځی په عقدکښې که چرې دا قسم شرط که څوك اولګوی نومنع نه دې که هغه یوشرط وی اوکه لس وی
② دویم قسم شرط دادې چه دَ مقتضاء عقد منافی وی او په هغې کښې دَ بائع یا مشتری څه فائده نه وی داشان شرط عقد بیع فاسد کوی لیکن په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې
**په دویم صورت کښې مذاهب:** -
① دَ امام مالك رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نیز که چرې عقدکښې دوه شرطونه اولګوی نوعقدبه باطل وی لیکن که چرې یو شرط اولګوی نو جائز دې مثلاً که چا دَ دوکاندار نه دکپړې اخستو په وخت اووئیل چه کپړا راکړه مګر شرط دادې چه وینځلوسره به سلائی هم کوې دا باطل دې اوکه چرې دانی اووئیل چه کپړا راکړه او وینځلوسره ئی راؤړه نودا جائز دی ځکه چه یو شرط دې
② دَ احناف او شوافع په نیز په دوران عقد کښې دَعقد منافی یوشرط هم مفسد بیع دې او دوه یا زیات شرطونه هم مفسدبیع دی
**د اول فریق دلائل:** -① اول فریق دَ زیر بحث حدیث دَمفهوم مخالف نه استدلال کړې دې چه دوه شرطونه مفسد دی لهذا یو مفسد نه دې

④ حضرت جابر ﷺ دَ اوښ په خرخولو کښې مديني پورې دَ سورلئی کولو شرط لګولو او نبی کریم ﷺ پرې څه اعتراض نه وو کړي نو دا د صحت عقد دليل دې

**د دويم فريق دليل:** - دويم فريق د دې حديث نه استدلال کړې دې ان النبی صلی الله علیه وسلم نهى عن بيع وشرط، ,,اعلاء السنن،

**د اول فريق د دلائلو څخه جواب:** - دَ زيربحث حديث نه دا جواب دې چه دلته دَ شرط نَ قيد اتفاقی دې احترازی نه دې بل دَ مفهوم مخالف نه استدلال کول احناف قطعاً نه منی دَ حضرت جابر ﷺ دَ واقعه تفصيل او صورت حال بيان وړاندې راخی هلته به جواب کيږی

**قوله** وَلَا رِبْحَ مَا لَمْ يَضْمَنْ:

**د بيوعاتو متعلق يوه قاعده:** - يعنی چه کله يو څيز دَچاپه ضمان کښې نه راخی هغه دَ هغې نه نفع نه شی اوچتولې مثلاً يو سړی دَ ځانه ځاروې واخستلو ليکن تردغه وخته پورې ئې لا په خپله قبضه کښې نه دې راوستې اودَ بائع نه دَهغې دَ پيښو يا دَ سورلئی کرايه غواړی نودا جائز نه دې ځکه چه دغه وخته پورې دا ځاروې دَ دغه مشتری په ضمان کښې نه دې راغلې که چرې دا ځاروې مړ شو نودَ بائع نقصان به کيږی په مشتری بندې به څه نه راخی لهذا چه کله په ده باندې تاوان نشته نودَ هغې نفع به هم هغه ته نه ملاويږی

دَحديث دا جمله دَ ټولو بيوعاتودَپاره ضابطه اوقاعده کليه ده کوم چه احناف خپل کړې دې اودَدې خلاف په ټولو جزئيات کښې تاويل کړې دې دې دَپاره چه دَ ضابطه حفاظت اوشی په بيع مصراة کښې تاويل هم دَدې قاعده دَ وجې نه کړې شوې دې دغه شان دويمه قاعده "الغنم بالغرم" ده او "الخراج بالضمان" هم مضبوطه قاعده ده

### [٢٨٤٨]دَ قيمت په اداکولو کښې دَ پيسو دبدلولو جواز

٢٨٤٨-[٢٠] (١)[١] عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: [٢] كُنْتُ أَبِيعُ الْإِبِلَ بِالنَّقِيعِ بِالدَّنَانِيرِ [٣] فَآخُذُ مَكَانَهَا الدَّرَاهِمَ [٤] وَأَبِيعُ بِالدَّرَاهِمِ فَآخُذُ مَكَانَهَا الدَّنَانِيرَ [٥] فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ " [٦] قَالَ: «لَا بَأْسَ أَنْ تَأْخُذَهَا بِسِعْرِ يَوْمِهَا مَا لَمْ تَفْتَرِقَا وَبَيْنَكُمَا شَيْءٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:**[١] او حضرت ابن عمر ﷺ وايي [٢] چې ما به په نقيع ,چې مديني ته نږدې يو ځای دی ، کې اوښان د دينارونو په بدله کې خرڅول [٣] او د دينارونو په بدله کې به مې درهمونه اخستل [٤] دغه شان چې اوښان به مې د درهمونو په عوض کې خرڅول نو د درهمونو په بدله کې به مې دينارونه اخستل [٥] بيا چې زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم نو

(١) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب البيوع/باب فی اقتضاء الذهب من الورق (رقم-٣٣٥٤) والترمذی فی كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الصرف (رقم_ ١٢٤٢) والنسائی فی كتاب البيوع/باب بيع الفضة بالذهب وبيع الذهب بالفضة (رقم-٤٥٨٢) وابن ماجة فی كتاب التجارات/ باب اقتضاء الذهب من الورق. والورق من الذهب (رقم-٢٢٦٢)

ما ⑥ حضور ﷺ ته د دې ذکر وکړې حضور ﷺ وفرمايل چې په دې کې څه حرج نشته چې ته د دينارونو په بدله کې درهمونه او د درهمونو په بدله کې دينارونه واخلې هر کله چې نرخ د هغه ورځې مطابق وي او تاسو دواړه د يو بل څخه په داسې حال کې جدا شئ چې ستاسو په منځ کې هيڅ څيز نه وي. (ترمذي ، ابوداود ، نسائي)

**حل اللغات:** - ①بِالنَّقِيعِ: مديني منورې ته نژدې يو ځاى دې. ②بِسِعْرِ: قيمت، نرخ.

**تسهيلات: قوله:** بِالنَّقِيعِ:

**د لفظ نقيع مصداق:** -مديني منورې سره نيژدې يوځاى نوم نقيع دې دې ځاى کښې دَ ځاروو منډى لګيدله درهم دَ چاندئى يوه سکه ده او دينار دَ سرو زرو سکه ده نن صبا په کويت کښې دينار چليږى او په دوبئى کښې دَ درهم رواج دې

**د حديث مطلب:** دَحديث مطلب دادې چه که يوسړې مثلاً څه څيز دَ درهم په عوض واخلى او بيا په قيمت کښې دينار ورکړى يا دَ دې برعکس اوکړى نودا جائز دى

**قوله:** بِسِعْرِ يَوْمِهَا:

**د مذکوره حکم محمل:** -يعنى چه کله نرخ دَهغه ورځې مطابق وى، داحکم استحبابى دې کنى جائز داهم دى چه په کوم نرخ باندې اخستل غواړى اخستې شى

**قوله:** وَبَيْنَكُمَا شَيْءٌ:

**په مجلس کښې مبيعه په قبضه کښې راوستل:** - دا جمله دَمالم يتفرقا نه حال واقع ده يعنى چه په کوم مجلس کښې دَ اخستلو اوخرڅولومعامله شوې ده اودَ سکې دَ بدلون صورت پيښ شوې دې دَهغې دپاره دا شرط دې چه هم په دغه مجلس کښې دې فريقين په خپل خپل څيزباندې قبضه واچوى دې دَپاره چه دَ مجلس نه دَ جدا کيدو په صورت کښې دَنقد بيع دَ قرض سره لازم رانه شى کوم چه سود دې لهذا هم په مجلس کښې بيع اوقيمت باندې قبضه کول ضرورى دى. علامه ابن همام رحمه الله ليکلى دى چه درهم او دينارچونکه غيرمعين سکې دى په دې وجه يو درهم يا دينار يا روپيئى يا مثلاً دَ ريال په ځاى دويم درهم يا دينار يا روپيئى يا ريال ورکول جائز دى په دې شرط چه په خپل خپل مينځ کښې په ماليت کښې برابر وى.

**[٢٨٤٣] دَ حضوراکرم ﷺ دَيوې بيع تذکره**

٢٨٤٣—[٢٨] (١) ①وَعَنِ الْعَدَّاءِ بْنِ خَالِدِ بْنِ هَوْذَةَ أَخْرَجَ كِتَابًا: ②هَذَا مَا اشْتَرَى الْعَدَّاءُ بْنُ خَالِدِ بْنِ هَوْذَةَ مِنْ مُحَمَّدٍ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③اشْتَرَى مِنْهُ عَبْدًا وَأَمَةً لَا دَاءَ وَلَا غَائِلَةَ وَلَا خِبْثَةَ بَيْعَ ④الْمُسْلِمِ الْمُسْلِمَ. ⑤رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

(١) اخرجه البخارى فى كتاب البيوع/باب إذا بين البيعان ولم يكتما والترمذى فى كتاب الجهاد/باب فى الجلب على الخيل فى السباق (رقم-٢٥٨١) وابن ماجة فى كتاب التجارات/ باب شراء الرقيق (رقم-٢٢٥١)

**ترجمه:** [١] او د حضرت عداء بن خالد بن هوذه په باره کې منقول دی هغه یو تحریر راوخکلی [٢] چې په هغه کې دا لیکلي وو چې دا بیعنامه ده، چې د رسول الله ﷺ سره د عداء بن خالد بن هوذه رضی الله عنه د خریداری متعلق ده [٣] عداء د محمد ﷺ څخه یو غلام یا وینخه خرید کړه چې په هغه کې څه مریضي نشته څه بدي نشته او څه خرابي نشته [٤] عداء دا داسې خرید کړي دی څنګه چې یو مسلمان د یو مسلمان څخه خرید کوي. [٥] امام ترمذي رحمه الله دا روایت نقل کړي دی او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دی

**حل اللغات:** - ① غَائِلَةً: عیب، نقصان، ② خِبْثَةً: خباثت، پلیتی، اصل نسل نه خراب.

**تسهیلات:** **قوله:** الْعَدَّاءِ:

**د عداء تعارف:** -په عین باندې فتحه او دال باندې شد دی په آخره کښې همزه دی دا ډیر کم روایت کونکي صحابي وو. دَ بصره په اطراف کښې اوسیدونکي او دَ غزوه حنین نه پس ئې اسلام راوړلې وو.

**قوله:** لَا دَاءَ:

**د مرض څخه سلامتیا:** - یعني دَ څه لیوتتوب جذام یا برګي مرض وغیره څه بیماري په هغه کښې نه وی. مراد دا چه داسې عیب نشته کوم چه موجب للخیار وی.

**قوله:** وَلَا غَائِلَةً:

**د مال عدم ضیاع :-** -یعني څه داسې عیب نه وی چه دَ مشتری مال تباه کړی لکه غل کیدل، زناکار کیدل، شرابي کیدل، بهګوړا کیدله.

**قوله:** وَلَا خِبْثَةً:

**د عدم خباثت شرط:** - یعني دَ اصل نسل په اعتبارسره په هغې کښې څه خباثت نه وی دکوم نه چه دَ قبیح اعمالو دَ صادرکیدو احتمال وی. یعني فاسق فاجرنه دې، ولدالزنا نه دې، دروغژن نه دې او جوارګرنه دې.

دادَ مسلمان دَ بل مسلمان سره معامله ده په دې وجه به په دې کښې دَ شریعت دَتولو تقاضو خیال ساتلې شي. خلاصه دا چه غلام بنه دې په ده کښې هیڅ عیب نشته او فریقین دَ یو بل سره څه دهوکه نه ده کړې.

**[٢٨٤٣] دَ نیلام په توګه د بیع جواز**

٢٨٤٣-[٣٩] ([١]) [١] وَعَنْ أَنَسٍ «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَاعَ حِلْسًا وَقَدَحًا [٢] فَقَالَ مَنْ يَشْتَرِي هَذَا الْحِلْسَ وَالْقَدَحَ؟ [٣] فَقَالَ رَجُلٌ: آخُذُهُمَا بِدِرْهَمٍ [٤] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَنْ يَزِيدُ عَلَى

[١]) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الزکاة/باب ما تجوز فیه المسألة(رقم-١٦٤١) والترمذی فی کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی بیع من یزید (رقم: ١٢١٨) والنسائی فی کتاب البیوع/باب البیع فیمن یزید (رقم-٤٥٠٨) وابن ماجة فی کتاب التجارات/باب بیع المزایدة(رقم-٢١٩٨) واحمد فی المسند: ١١٤/٣

دِرْهَمٍ؟» فَأَعْطَاهُ رَجُلٌ دِرْهَمَيْنِ فَبَاعَهُمَا مِنْهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] او حضرت انس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ يو ټاټ او يوه پياله خرڅول. [٢] نو وې فرمايل چې د دې ټاټ او پيالې خريدار څوك دى؟ څوك چې خريد كول غواړي د دې قيمت دې ولګوي [٣] يو سړي عرض اوكړو چې زه دا دواړه څيزونه د يو درهم په عوض كې آخلم[٤] حضور ﷺ بيا وفرمايل چې د يو درهم څخه زيات قيمت وركونكى څوك دى؟ [٥] نو يو بل سړي حضور ﷺ ته دوه درهمه پيش كړل او حضور ﷺ هغه دواړه څيزونه په هغه سړي په دوه درهمه خرڅ كړل. (ترمذي ابوداود ابن ماجه)

**حل اللغات** - ① حِلْسًا: ټاټ، درى. ② قَدَحًا: پيالى.

**تسهيلات:**

**قوله** مَنْ يَزِيدُ عَلَى دِرْهَمٍ:

**د حديث پس منظر او شان ورود:-** يعني د يو درهم نه زيات قيمت څوك دركوى ددې حديث پس منظر دادې چه يوسړى تنګدستيا د وجې نه د حضورپاك نه سوال اوكړو حضورپاك اوفرمائيل چه تاسره څه سامان شته هغه ونيل يود بوجې ټكړه شته او يوه پيالئ ده رسول الله ﷺ اوفرمائيل دغه دواړه څيزونه خرڅ كړه اودې نه پس كه مجبوره شوې بيا سوال كوه هغه سړى دواړه څيزونه راوړل حضورپاك د نيلام كولوپه توګه هغه خرڅ كړل كوم ته چه د فقهاء په اصطلاح كښې بيع من يزيد وائي داحديث ددې خبرې دليل دې چه د نيلام په توګه څيزخرڅول جائز دى داد لاندې صورت نه دې نه انعامي بانډ دې هغه ناجائز دى

**د مذكوره صورت اصطلاحي نوم:** دلته د يوسړى په سودا باندې د بل سړى د سودا كولو صورت نشته دې بلكه دلته د شروع نه بائع په دې اراده سره مال وړاندې كوى چه كوم سړې زيات قيمت وركوى بيع به هم هغه ته وركوى دلته چرته يو سړى سره خبره نه ده بلكه د پوره دلې په مخكښې مبيع كيخودو سره زيات قيمت وركونكى سره معامله ده كوم ته چه "بيع بالمزايدة" او "بيع من يزيد" وائي ددې په جواز كښې څه شبه نشته دې بيع على سوم الشراء هغه وى چه بائع او مشترى راضي شوې وى اودريم سړې راشي اود سودا لګولو كوشش كوى دغه منع دى

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٢٨٨٣] دعيب دار څيز د خرڅولو وعيد**

٢٨٨٣-[٢٠] (١) عَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "[٢] «مَنْ بَاعَ عَيْبًا عَنْهُ لَمْ يُنَبِّهْ[٣] لَمْ يَزَلْ فِي مَقْتِ اللّٰهِ[٤] أَوْلَمْ تَزَلِ الْمَلَائِكَةُ تَلْعَنُهُ». " رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: [١] حضرت واثله ابن اسقع ﷺ وايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه دا واوريدل [٢] چې کوم سړی يو عيب دار څيز داسې خرڅ کړي چې د هغه د عيب څخه خريدار خبر نه کړي [٣] نو هغه هميشه د الله ﷻ په غضب کې وي [٤] يا دا يې وفرمايل چې فرښتې هميشه په هغه لعنت ليږي ، (ابن ماجه)

**حل اللغات**: - ①مَقْتِ اللّٰهِ: غضب د الله.

**تسهيلات**:

**قوله**: لَمْ يَزَلْ فِي مَقْتِ اللّٰهِ:

**په مبيع کښې د عيب پټولو وعيد**: - که چرته په يو څيز کښې عيب وی او څوک ئې خرڅول غواړی نو په هغه لازم ده چه دَهغې دَعيب ذکر دَمشتری په وړاندې اوکړی که چرې عيب خودلونه بغير بايع په مشتری باندې څه څيز خرڅ کړو نو دا بايع به هميشه دَالله تعالی په غضب او دَ فرښتو په لعنت کښې وی. مسلمانانو تجارت پيشه خلقو له په هوش کښې راتلل پکار دی په دوی کښې اکثر دَدې وعيد په زد کښې دی

[١] اخرجه ابن ماجة في السنن كتاب التجارات / باب من باع عيبا فليبينه (رقم-٢٢٤٧)

# باب (في البيع المشروط)

## دمشروطو بيوعاتو بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثمانية أحاديث مشتملة على خمس مسائل:**

① ما يجوز من الشروط: ١، ٢.
② النهي عن بعض الشروط: ٣، ٤. اورده طرداً للثالث: ٥.
③ الحكم عند اختلاف المتبايعين: ٦.
④ الترغيب في الإقالة: ٧.
⑤ مايدخل في البيع ولا يدخل: ١.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[٢٨٤٨] دَ ميوه داري ونې دَ بيع حكم**

٢٨٤٨-[ ] ( )[١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[٢] «مَنِ ابْتَاعَ نَخْلًا بَعْدَ أَنْ تُؤَبَّرَ فَثَمَرَتُهَا لِلْبَائِعِ إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ[٣] وَمَنِ ابْتَاعَ عَبْدًا وَلَهُ مَالٌ فَمَالُهُ لِلْبَائِعِ إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ[٤] وَرَوَى الْبُخَارِيُّ الْمَعْنَى الْأَوَّلَ وَحْدَهُ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] كه يو سړى تابير كړي د كجوري ونه رانيسي نو د هغه ميوه د خرخونكي ده خو دا چې خريد كونكى ميوه مشروط كړي[٣] او داسي كه يو سړى يو داسې غلام واخلي چې د هغه سره مال وي نو د هغه هغه مال د خرخونكي دى. مګر كه خرخونكي دهغه مال خپل خان دپاره شرط ولګوي چې مال به يې زما وي [٤] مسلم، بخاري د دې حديث يواځې مخكنى جز، (يعني مَنِ ابْتَاعَ نَخْلًا الخ) نقل كړي دى

**حل اللغات** - ① تُؤَبَّرَ اصلاح او پيوندكاري كول. په ونه كښې قلم لګول

**تسهيلات:** قوله أَنْ تُؤَبَّرَ

**د لفظ تابير تحقيق:**- د باب تفعيل نه مستعمل دي او په مجرد كښې دَ نصر ينصر نه هم راځي دَ اصلاح او پيوندكرنې په معنى كښې دي دعربو عادت وو چه دَ كهجورو په باغ

[١] اخرجه البخارى فى كتاب الإجارة/باب الرجل يكون له ممر أو شرب فى حائط أو فى نخل (رقم-٢٣٧٩) ومسلم فى كتاب البيوع/باب من باع نخلا عليها ثمر(رقم-٨٠ - (١٥٤٣) والترمذى فى كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى ابتياع النخل بعد التأبير والعبد وله مال (رقم: ١٢٤٤) والنسائى فى كتاب البيوع/باب العبد يباع ويستثنى المشترى ماله (رقم-٤٦٣٦) وابن ماجة فى كتاب التجارات/ باب ما جاء فيمن باع نخلا مؤبرا. أو عبدا له مال (رقم-٢٢١١) واحمد فى المسند: ٧٨/٢

کښې به نی د نر ونې گل د مادی ونې په گلونو او غوټو کښې پیوند لگولو سره یوځائی کول کوم سره چه به فصل زیات راتلو په کهجورو کښې د انسانانو په شان نر او ماده ونې وی که په پوره باغ کښې د نر کهجورې یوه ونه هم نه وی نو د باغ فصل خرابیږی

**د تابیر په مسئله کښې مذاهب:-**

که چا په ونو کښې قلم اولگولو او د قلم لگولو څخه روستو یا مخکښې نی ونې خرڅې کړې نو د دې نه پس پیدا کیدونکې میوه په دغه ونو کښې راتلونکې میوه د باغ د مالك بائع وی یا د اخستونکی مشتری به وی په دې کښې د فقهاؤ کرامو اختلاف دې

① د جمهورو په نیز که چرې نخل مؤبر خرڅه کړې شی نو په ونو کښې موجود میوه د بائع حق دې او که چرې مشتری شرط اولگوی چه ونو سره به میوه هم زما وی بیا به هم د هغه وی او که د باغ مالك نخل غیر مؤبر خرڅې کړې او میوه لگیدلې وی نو دا میوه د مشتری حق دې او که چرې بائع شرط اولگولو چه میوه به زما وی یاد ساتنی چه په کومه میوه کښې اختلاف دې دا هم هغه میوه ده چه په ونو باندې د بیع په وخت موجود ده د جمهورو په نیز که چرې دا موجوده میوه د تابیر په نتیجه کښې راغلې وی نو دا د بائع ده او که د تابیر نه بغیر راغلې ده نو دا د مشتری ده او که مشتری شرط اولگوی نو هغه جدا خبره ده

② احناف په دې کښې فرق نه کوی بلکه فرمائی چه که تابیر وی او که نه وی موجوده میوه د بائع حق دې او که مشتری شرط اولگوی نو هغه جدا خبره ده

**د اول فریق دلیل:**- اول فریق د زیر بحث حدیث نه استدلال کوی او استدلال د مفهوم مخالف په توګه باندې دې که چرې تابیر شوې نخل وی نو میوه د بائع ده د دې مفهوم مخالف دا دې که چرې تابیر شوې نخل نه دی نو بیا میوه د بائع نه بلکه د مشتری ده

**د فریق اول د دلیل څخه جوابونه:-** ① مونږ د یر خل ونیلی دی زمونږ په نیز مفهوم مخالف حجت نه دې نو د دې نه استدلال معتبر نه دې

② چه په ونو باندې کومه میوه لگیدلې ده په هغې کښې اتصال قرار نه دې بلکه دا د اتصال او جدا کیدو او د قطع د پاره دې

**د دویم فریق دلائل:**- دویم فریق د هغه حدیث نه استدلال کوی کوم چه موطا امام محمد کښې په دې الفاظو سره ذکر دې «عن النبی صلی الله علیه وسلم قال من اشتری ارضاً فیها نخل فالثمر للبائع الا ان یشترط المبتاع» په دې حدیث کښې د تابیر هیڅ قید نشته دې

**قوله وَلَهُ مَالٌ:**

**عبد ته د مال د نسبت وجه:**- د عبد طرف ته د مال نسبت د تملیك د پاره نه دې بلکه د قبضه په توګه مجاز دې څکه چه څوك غلام د مال مالك نه وی عبد سره چه کومې کپړې بوټان وغیره دی هغه په وخت د خرڅ د هغه د مالك دی او که چرې مبتاع یعنی مشتری د دې د اخستلو شرط اولگوی نو بیا به هم د هغه وی

[٢٨٤٦] د مشروط بيع حکم

٢٨٤٦-[٢] (١)(١) وَعَنْ جَابِرٍ «أَنَّهُ كَانَ يَسِيرُ عَلَى جَمَلٍ لَهُ قَدْ أَعْيَا (٢) فَمَرَّ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِهِ، فَضَرَبَهُ، (٣) فَسَارَ سَيْرًا لَيْسَ يَسِيرُ مِثْلَهُ (٤) ثُمَّ قَالَ: "بِعْنِيهِ بِوُقِيَّةٍ" (٥) قَالَ: فَبِعْتُهُ فَاسْتَثْنَيْتُ حُمْلَانَهُ إِلَى أَهْلِي (٦) فَلَمَّا قَدِمْتُ الْمَدِينَةَ أَتَيْتُهُ بِالْجَمَلِ وَنَقَدَنِي ثَمَنَهُ، (٧) وَفِي رِوَايَةٍ: فَأَعْطَانِي ثَمَنَهُ وَرَدَّهُ عَلَيَّ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

**ترجمه:** (١) او د حضرت جابر ﷺ په باره کې روايت دی چې هغه (د يوسفر په دوران کې چې مديني ته راتلی) په خپل اوښ سور روان وو او هغه اوښ دومره ستړی شوی وو (چې د تلو څخه هغه معذور شوی وو) (٢) رسول الله ﷺ چې د جابر ﷺ سره نزدې تير شو نو حضور ﷺ د هغه اوښ (په لرګي يا په هغه) چابك سره (چې د حضور ﷺ په لاس مبارك کې وو) او وهلی (٣) نو هغه (د حضور ﷺ د لاس مبارك په برکت سره) په دومره تيز رفتارۍ سره روان شو چې مخکې په دومره تيز رفتارۍ سره هيڅکله نه وو تللی، (٤) بيا د دې څخه وروسته حضور ﷺ حضرت جابر ﷺ ته وفرمايل چې ته دا اوښ په ما په يوه وقيه عوض کې خرڅ کړه (٥) حضرت جابر ﷺ اوويل چې ما دا اوښ په تا خرڅ کړي، ليکن زه د خپل کور پورې په دې سورلۍ مستثنی کوم (يعني زه يې په دې شرط خرڅوم چې د خپل کور پورې به په دې اوښ سور ځم) (٦) حضرت جابر ﷺ وايي چې کوم وخت زه مديني ته راغلم نو دهغه اوښ سره د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شوم او حضور ﷺ ماته د هغه قيمت اداء کړي. (٧) په يو روايت کې داسې دي چې حضور ﷺ ماته قيمت هم راکړي او اوښ يې هم واپس راکړي (يعني د هغه قيمت يې هم راکړي او اوښ يې هم راته راکړي) بخاري مسلم

**حل اللغات:** - ① أَعْيَا: ستړي شوه سورلی. ② وُقِيَّة: اوقيه د څلويښتو درهمو برابر وی. ③ فَاسْتَثْنَيْتُ: نو ما مستثنی کړل. ④ حُمْلَانَهُ: څوريدل ددې. ⑤ وَنَقَدَنِي: او نغد يې راکړو. ⑥ ثَمَنَهُ: قيمت ددې.

(١) وَفِي رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ أَنَّهُ قَالَ لِبِلَالٍ: "(٢) «اقْضِهِ وَزِدْهُ" فَأَعْطَاهُ، وَزَادَهُ قِيرَاطًا».

**ترجمه:** (١) د بخاري په يو روايت کې دا الفاظ دي چې کوم وخت حضرت جابر ﷺ حضور ﷺ ته اوښ ورکړي نو حضور ﷺ حضرت بلال ﷺ ته وفرمايل (٢) چې جابر ﷺ ته د اوښ قيمت ورکړه او څه زيات هم ورکړه نو حضرت بلال ﷺ هغه ته د اوښ قيمت هم ورکړي او يو قيراط (چې د درهم شپږمه حصه کېږي) زيات يې هم ورکړي.

---

(١) اخرجه البخاري في كتاب الشروط/باب إذا اشترط البائع ظهر الدابة إلى مكان مسمى جاز(رقم-٢٧١٨) ومسلم في كتاب المساقاة/باب بيع البعير واستثناء ركوبه (رقم-١٠٩ - (٧١٥)

**تسهيلات:**

**قوله فَاسْتَثْنَيْتُ حُمْلَانَهُ:**

**د مذکوره جملې مطلب:-** يعنى دَ مدينې پورې سوريدل او تلل ما دَ بيع نه مستثنى کړل يعنى اوښ ئې په دې شرط باندې خرڅ کړو چه دَمدينې پورې به حضرت جابر ﷺ په دې باندې سورخى.

**سورلی د څه وخته پورې د بائع په قبضه کښې د پاتې کيدود شرط په حکم کښې مذاهب:-**
که يوسړې خپله سورلی که هغه خناور وی اوکه ګاډې وی په دې شرط باندې خرڅوی چه دَ فلانکی وخته پورې به دا خرڅ شوې څيز زما په استعمال کښې وی نوپه دې شرط کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې

① دَ امام مالك رحمه الله په نيزکه فاصله کمه وی نوداسې مشروط بيع جائز ده لکه چه دلته دَ مدينې پورې مسافت کم وو اوکه چرې مسافت زيات وی نوبيا ناجائز ده

② امام احمدبن حنبل رحمه الله په نيز داسې مشروط بيع مطلقًا جائز ده

③ دَ امام ابوحنيفه رحمه الله او امام شافعی رحمه الله په نيزداسې مشرط بيع بالکل ناجائز ده

**داول فريق دليل:-** امام احمد بن حنبل رحمه الله دَ زير بحث حديث نه استدلال کړې دې چه په خپله مدعى باندې په واضح توګه دلالت کوی

**د دويم فريق دليل:-** ① دَ مالکيه هم دغه زير بحث حديث مستدل دې

**د زير بحث حديث څخه ځلور جوابونه:-** ① شرط په صلب عقد کښې نه وو بلکه دَعقد کيدونه پس حضرت جابر h دَمدينې پورې دَ سوريدو اجازت اوغوښتو نوحضورپاك ورکړو دَ حديث الفاظ هم په دې دلالت کوی ((فبعته فاستثنيت حملانه))

② دا شرط حضرت جابر ﷺ نه وو لګولې بلکه حضوراکرم ﷺ هغه ته دَخپل طرف نه يورعايت ورکړې وو. دَدې حديث په بعض طرق کښې دا الفاظ راغلی دی ((قد اعرتك ظهره الى المدينة))

③ حضرت جابر ﷺ مديون خسته حال وو نوې واده ئې هم شوې وو نوحضورپاك غوښتل چه دَهغه امداداوکړی ليکن دَهغه دَعزت نفس خيال ئې اوساته او صورةً ئې دَ بيع شکل جوړکړو اوبيائی اوښ او پيسې دواړه ورواپس کړې نودا دَحضرت جابر ﷺ دَ خصوصيت يو خصوصى جزئى واقعه ده په دې سره دَبيوعاتو قاعدې کليې متاثرکولې نه شى

④ دا واقعه په بيعه کښې دَ حرمت شرط نه دَ مخکښې زمانې ده

**د دريم فريق دليل:-** مشهور حديث د دريم فريق مستدل دې دکوم الفاظ چه دادی ((نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن بيع وشرط)).

### [۲۸۷۷] د ولاء حق آزادونکي مالك ته حاصل وي

۲۸۷۷ـ[۲] ( ) [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: [۲] «جَاءَتْ بَرِيرَةُ فَقَالَتْ: إِنِّي كَاتَبْتُ عَلَى تِسْعِ أَوَاقٍ فِي كُلِّ عَامٍ وُقِيَّةٌ فَأَعِينِينِي. [۳] فَقَالَتْ عَائِشَةُ: إِنْ أَحَبَّ أَهْلُكِ أَنْ أَعُدَّهَا لَهُمْ عَدَّةً وَاحِدَةً وَأُعْتِقَكِ فَعَلْتُ [۴] وَيَكُونُ وَلَاؤُكِ لِي. فَذَهَبَتْ إِلَى أَهْلِهَا فَأَبَوْا [۵] إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْوَلَاءُ لَهُمْ. [۶] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - " خُذِيهَا وَأَعْتِقِيهَا"

**ترجمه:** [۱] او بي بي عائشه ﷺ وايي چې يوه ورځ بريره ماته راغله، [۲] هغه ماته اوويل چې ما خو په نه (۹) اوقيه باندې شرط مكاتبت كړي دي چې هر كال به يوه اوقيه اداء كوم. نو تاسو څما مدد وكړي، [۳] بي بي عائشه ﷺ وايي (د دې اوريدو سره ما) اوويل كه ستا مالكان داخوښوي نو زه به ټولې اوقيې په يو ځل هغوئ ته وركړم او بيا به تا آزاده كړم، نو داسې كولى شم [۴] ليكن په دې صورت كې حق ولاء به زه اخلم (د دې اوريدو سره) بريره خپلو مالكانو ته ورغله (او د هغوئ مخې ته يې دا صورت حال پيش كړي) خو هغوئ داخبره نامنظوره كړه، [۵] او هغوئ اوويل چې مونږ په دې شرط تا خرڅولى شو چې حق ولاء به مونږ ته حاصل وي، [۶] حضور ﷺ (ته چې د دې علم وشو نو) بي بي عائشې ﷺ ته يې وفرمايل چې ته هغه واخله آزاده يې كړه (د هغې حق ولاء به تاته حاصليږي)

**حل اللغات:** - (۱) أَوَاقٍ: د اوقيه جمع ده، دڅلويښتو درهمو برابر وي (۲) فَأَعِينِينِي: (صيغه د امر) نو تاسو زما مدد اوكړئ.

[۱] ثُمَّ قَامَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي النَّاسِ [۲] فَحَمِدَ اللهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ " أَمَّا بَعْدُ [۳] فَمَا بَالُ رِجَالٍ " يَشْتَرِطُونَ شُرُوطًا لَيْسَتْ فِي كِتَابِ اللهِ [۴] مَا كَانَ مِنْ شَرْطٍ لَيْسَ فِي كِتَابِ اللهِ فَهُوَ بَاطِلٌ وَإِنْ كَانَ مِائَةَ شَرْطٍ [۵] فَقَضَاءُ اللهِ أَحَقُّ وَشَرْطُ اللهِ أَوْثَقُ [۶] وَإِنَّمَا الْوَلَاءُ لِمَنْ أَعْتَقَ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] بيا حضور ﷺ د خلقو مخكې خطبه وركړله [۲] او د الله عزوجل حمد وثناء څخه وروسته يې وفرمايل [۳] چې خلقو لره څه شوي دي چې داسې شرطونه كوي چې په كتاب الله كې نشته (يعني نامشروع دي) [۴] كوم شرط چې په كتاب الله كې نشته هغه باطل دي اګر چې هغه سل شرطونه وي (يعني كوم شرط چې ناجائز او نا مشروع دي، هغه څوك سل ځله عاند ولې نه كړي، هغه به باطل وي (او د هغه څه حيثيت نه پاتې كېږي) [۵] او د الله جل جلاله حكم د ټولو څخه زيات د دې لائق دي چې عمل ورباندې وشي او د الله جل جلاله شرط د ټولو څخه زيات مضبوط دى (يعني د بيع او شراء په معاملاتو كې الله جل جلاله چې كوم احكام

[1]) اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب إذا اشترط شروطا في البيع لا تحل (رقم-۲۱۶۸) ومسلم في كتاب العتق/باب إنما الولاء لمن أعتق (رقم) ۶ - (۱۵۰۴) واخرجه ابو داود في السنن كتاب العتق/ كتاب الطب/باب في بيع المكاتب إذا فسخت الكتابة (رقم-۳۹۲۹) وابن ماجة في كتاب العتق/باب المكاتب (رقم-۲۵۲۱) ومالك في الموطا كتاب العتق والولاء/باب مصير الولاء لمن أعتق (رقم-۱۷) واحمد في المسند: ۲۱۳/۶

ورکړي دی، په هر صورت د هغه تعمیل ضروري دی. او الله ﷻ چې کوم شرائط مقرر کړي دي، یواځې د هغه لحاظ ضروري دی، د خپل طرف څخه عائد کړده هیڅ شرط به هم قابلِ عمل نه وي، ⑤یوهه شی چې حقِ ولاء هغه چاته حاصلیږي چې څوك یې آزاد کړي

**حل اللغات** -②أَوَاقٍ: زیات مضبوط.

**تسهیلات: قوله: بَرِیرَةُ:**

**د بریره تعارف:** - دَحضرت عائشه رضی الله عنها دَ یوې وینځې نوم بریره وو دا د یوه یهودی وینځه وه دې نه حضرت بریره رضی الله عنها په ۹اوقیه بدله بدل کتابت حاصل کړې وو لیکن روستو بیا دَ بدل کتابت نه عاجزه راغله هم دَدې تذکره هغې حضرت عائشه رضی الله عنها ته اوکړه دې دَپاره چه هغه دَدې امداد اوکړی حضرت عائشه رضی الله عنها اوفرمائیل چه زه به ستا بدل کتاب یکمشت یعنی په یوځل ادا کړم اوتابه آزاده هم کړم که چرې ستا آقا خبره اومنله بریره رضی الله عنها خپل یهودی آقا ته دَدې تذکره اوکړه نویهودی دا شرط اولګولو چه دَ بریره رضی الله عنها دَمرګ نه پس به دَهغې دَ ولاء حق ماته ملاویږی. دا پوره قصه په مشکوة دویم جلد کتاب النکاح باب المباشرت کښې ذکرده.

**قوله: الْوَلَاءُ:**

**د ولاء تعریف:** - دَهغه حق نوم دې مثلاً یوغلام چا آزاد کړو هغې نه پس دغه غلام مړشو اودَ هغه څه مال پاتې شو دَهغه عصبه موجودنه وی نودَ هغه ټول مال به دَهغه آزادونکی ته ملاویږی هم دغه حق ولاء دې. مکاتب چه کله دَ بدل کتابت دَ اداکولونه عاجز راغلو نودَ هغه دَ آقادَپاره دَهغه خرڅول جائز کیږی

**[٢٨٢٨] د ولاء حق خرڅولو اوهبه کول ممانعت**

٢٨٢٨-[٠] ()①وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: ②«نَهَى رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنْ بَيْعِ الْوَلَاءِ وَعَنْ هِبَتِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ①و حضرت ابن عمر رضی الله عنهما ②وایي چې رسول الله ﷺ د ولاء د خرڅولو یا د هبه کولو څخه منع فرمایلي ده. (بخاري مسلم)

**تسهیلات: قوله بیع الْوَلَاءِ:**

**د بیع الولاء د ممانعت وجه:** - دَ ولاء خرڅول داسې دی چه مثلاً یوسړی خپل غلام آزاد کړو دکوم په وجه چه دَهغه حق ولاء دَ هغه دپاره ثابت شو اوس دا سړې دغه حق ولاء په چا باندې خرڅول غواړی چه ماته دومره پیسې راکړه اوکله چه دا آزاد کړې شوې غلام مړشی

---

) اخرجه البخاری فی صحیحه رقم الحدیث ٢٥٣٥ . ومسلم فی صحیحه رقم الحدیث ١٦/١٥٠٦ وابوداود فی السنن رقم الحدیث ٢٩١٩ . والترمذی فی السنن رقم الحدیث ١٢٣٦

نود ده حق ولاء هم نه واخله دا سودا ناجائز ده دغه شان د ولاء هبه کول هم ناجائز دي ځکه چه ولاء څه داسې مال نه دې د کوم چه په خارج کښې څه وجود وی کوم چه هبه یا خرڅ کړې شی

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۲۸۷۹] تاوان د ګټې په بدله کښې

۲۸۷۹-[٥] ()[١] عَنْ مَخْلَدِ بْنِ خُفَافٍ قَالَ: [٢] ابْتَعْتُ غُلَامًا فَاسْتَغْلَلْتُهُ [٣] ثُمَّ ظَهَرْتُ مِنْهُ عَلَى عَيْبٍ، فَخَاصَمْتُ فِيهِ إِلَى عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ [٤] فَقَضَى لِي بِرَدِّهِ، وَقَضَى عَلَيَّ بِرَدِّ غَلَّتِهِ، [٥] فَأَتَيْتُ عُرْوَةَ فَأَخْبَرْتُهُ [٦] فَقَالَ: أَرُوحُ إِلَيْهِ الْعَشِيَّةَ فَأُخْبِرُهُ [٧] «أَنَّ عَائِشَةَ أَخْبَرَتْنِي أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَضَى فِي مِثْلِ هٰذَا: "أَنَّ الْخَرَاجَ بِالضَّمَانِ» [٨] "فَرَاحَ إِلَيْهِ عُرْوَةُ [٩] فَقَضَى لِي أَنْ آخُذَ الْخَرَاجَ مِنَ الَّذِي قَضَى بِهِ عَلَيَّ لَهُ. رَوَاهُ فِي "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه:** [١] حضرت مخلد ابن خفاف وایې ما یو غلام واخستې چې د هغه ګټه ما وصولوله. [٢] بیا ماته د هغه د یو داسې عیب علم وشو (چې په هغه کې د خریداری څخه مخکې وو) او خرخونکي زه د هغه څخه خبر کړي نه وم. [٣] د هغه غلام معامله ما د حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله (خلیفه وخت) په خدمت کې پیش کړه، [٤] هغوئ ماته دا فیصله واوروله چې غلام دې واپس ورکول شي او د هغه سره د هغه ګټه دې هم واپس ورکړل شی. [٥] بیا زه د حضرت عروه ابن زبیر رحمه الله په خدمت کې حاضر شوم (چې یو جلیل القدر تابعي او د فقهاء څخه وو) او د حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله د فیصلې څخه مې هغه خبر کړي. [٦] حضرت عروه رحمه الله وفرمایل چې زه به مابنام ته د حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله په خدمت کې حاضریږم [٧] او هغه ته به وښایم چې بي بي عائشه رضي الله عنها ماته دا نقل کړي دی چې حضور ﷺ د دې قسم په یوه معامله کې دا فیصله ورکړي وه چې منفعت د ضمان (تاوان) سره دی. [٨] نو حضرت عروه رحمه الله حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله ته تشریف یووړی (او هغه یې د حضور ﷺ د دې ارشاد څخه خبر کړي) [٩] حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله (د ارشاد ګرامي اوریدو څخه وروسته) ماته دا حکم وکړي چې د دې غلام ګټه د هغه سړي څخه واخلم چې د هغه د ورکولو د پاره ماته مخکې حکم شوی وو. (شرح السنه)

**حل اللغات:** - ① فَاسْتَغْلَلْتُهُ: نو ما د هغه نه ګټه وصولول شروع کړل، ② فَخَاصَمْتُ: نو ما قضیه او فیصله یوړله. ③ بِرَدِّ غَلَّتِهِ: سره د واپس کولو د ګټې ددې، ④ أَرُوحُ: د رَاحَ يَرُوحُ نه، زه به مابنام ته ورشم ⑤ الْعَشِيَّةَ: مابنام. ⑥ الْخَرَاجَ: منفعت، ګټه ⑦ الضَّمَانِ: تاوان، نقصان.

**تسهیلات:**

**نوټ:** - په حدیث کښې چې کومه قاعده ذکر شوې ده د هغې وضاحت وړاندې شوې دې.

[١] ) اخرجه ابو داود في السنن أبواب الإجارة/باب فيمن اشترى عبدا فاستعمله ثم وجد به عيبا (رقم-٣٥٠٩) والترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فيمن يشترى العبد ويستغله ثم يجد به عيبا (رقم: ١٢٨٥) والنسائي في كتاب البيوع/باب الخراج بالضمان (رقم-٤٤٩٠) واحمد في المسند: ٤٩/٦

**[٢٨٨٠] د بائع او مشتري د نزاع په صورت کښې د بائع د قول اعتبار**

٢٨٨٠-[٠] (١) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "(٢) «إِذَا اخْتَلَفَ الْبَيِّعَانِ فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْبَائِعِ، (٣) وَالْمُبْتَاعُ بِالْخِيَارِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. (٤) وَفِي رِوَايَةِ ابْنِ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيِّ قَالَ: «الْبَيِّعَانِ إِذَا اخْتَلَفَا وَالْمَبِيعُ قَائِمٌ بِعَيْنِهِ وَلَيْسَ بَيْنَهُمَا بَيِّنَةٌ فَالْقَوْلُ مَا قَالَ الْبَائِعُ أَوْ يَتَرَادَّانِ الْبَيْعَ».

**ترجمه:** (١) او حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل (٢) هر کله چې د خريدار او خرڅونکي په منځ کې اختلاف پيدا شي نو په دې صورت کې به د خرڅونکي قول معتبر وي (٣) او خريدار ته به (د بيع فسخ کولو يا باقي ساتلو) اختيار حاصل وي. (ترمذي) (٤) د ابن ماجه او دارمي په روايت کې داسې دي چې حضور ﷺ وفرمايل هر کله چې د خريدار او خرڅونکي په منځ کې اختلاف پيدا شي او مبيع (خرڅ شوی مال) هم هغه شان باقي وي او د هغه دواړو په منځ کې يو شاهد نه وي. نو په دې صورت کې به د خرڅونکي قول معتبر وي، يا بيا هغه دواړه دې بيع فسخ کړي. (ترمذي)

**حل اللغات:** - (١) اَلْمُبْتَاعُ: خريدار، اخستونکي.

**تسهيلات:**

**قوله: إِذَا اخْتَلَفَ الْبَيِّعَانِ:**

**د بائع او مشتري په مينځ کښې د اختلاف صورت:** - بائع او مشتري په مينځ کښې جګړې کيږي مثلاً بائع وائي ما خپل مال د سلو روپو په عوض خرڅ کړې وو مشتري وائي چه تا په پنځوس روپيني باندې خرڅ کړې وو کله په خيار شرط کيخودلو اونه کيخودلو او کله په موده کښې جګړه پيدا کيږي

**د بائع او مشتري د نزاع دې صورت په حکم کښې مذاهب:** -

(١) امام شافعي رحمه الله فرمائي په دې صورت کښې د بائع قول معتبر دې په دې شرط چه هغه به قسم هم خوري بيا به مشتري ته اختيار حاصل وي چه هغه بيع نافذ اومني يا هغه هم په خپل حق کښې قسم خوري که چرې هغه قسم اوخوړلو نو قاضي به د دواړو عقد فسخ کړي که مبيع قائم وي او که نه وي قائم بهرحال امام شافعي رحمه الله د يوڅو قيودو سره د بائع قول معتبر ګنړلي دي

[١] ) اخرجه ابو داود في السنن أبواب الإجارة/باب إذا اختلف البيعان والمبيع قائم (رقم-٣٥١١) والنسائي في كتاب البيوع/باب إختلاف المتبايعين في الثمن (رقم-٤٦٤٨) وابن ماجة في كتاب التجارات/باب البيعان يختلفان (رقم-٢١٨٦) واحمد في المسند: ٤٦٦/١

② لیکن امام ابوحنیفه رحمه الله اوامام مالک رحمه الله په نیزکه چرې مبیع قائم نه وی نو بیابه د مشتری قول معتبر وی په دې شرط چه هغه قسم اوچت کړی په دې حدیث کښې دا مسئله اجمال سره ذکر ده صاحب د هدایه دا ښه په تفصیل سره بیان کړې ده. هدایه طرف ته رجوع ضروری ده

## [۴۸۸] د بیع اقاله کولو فضیلت

۲۸۸۲-[۲] (۱) ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- "②«مَنْ أَقَالَ مُسْلِمًا أَقَالَ اللهُ عَثْرَتَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ. وَفِي "شَرْحِ السُّنَّةِ" بِلَفْظِ الْمَصَابِيحِ "عَنْ شُرَيْحٍ الشَّامِيِّ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** ①او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ②کوم سړی چې د مسلمان بیع واپس کړی الله جل جلاله به د قیامت په ورځ د هغه ګناه وبخښي، (ابوداؤد ابن ماجه)

او په شرح السنه کې دا روایت په دې الفاظو کې ذکر شوی دی، کوم چې په مصابیح کې د شریح شامي څخه بطریق ارسال منقول دی.

**حل اللغات** - ①أَقَالَ: ای فسخ العقد، بیعه واپس کړی، ②عَثْرَتَهُ: ګناه د هغه.

**تسهیلات:**

**قوله مَنْ أَقَالَ مُسْلِمًا:**

**د اقاله تعریف:** -إقاله وئیلې کیږی چه د بیع واپسی اوشی یا بیع فسخ کړې شی. په شرح السنه کښې دی چه مطلق بیع او سلم کښې د قبضې نه مخکښې جائز ده او د قبضې نه پس دې فسخې ته هم بیع وائي.

**قوله وَفِي "شَرْحِ السُّنَّةِ" بِلَفْظِ الْمَصَابِيحِ:**

**د مذکوره عبارت مطلب:** - چه ابو داؤد او حاکم وغیره دا د ابو هریره رضي الله عنه نه متصل نقل کړې دې لیکن مصابیح کښې دا په طریق د ارسال نقل دې، ګویا چه د مشکاة مؤلف په مصنف د مصابیح علامه بغوی باندې اعتراض کړې دې چه هغوی خپل کتاب کښې اولی ترک کړې دې هغه داسې چې د ابو داؤد او ابن ماجه متصل روایت ئې نقل نه کړو بلکه حدیث مرسل ئې نقل کړو

(۱) اخرجه ابو داود فی السنن أبواب الإجارة/باب فی فضل الإقالة (رقم-۳۴۶۰) وابن ماجة فی کتاب التجارات/باب الإقالة (رقم-۲۱۹۹) واحمد فی المسند: ۲/۲۵۲

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٢٨٧] يوه عبرتناكه واقعه**

٢٨٧-[٨] ()[١] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[٢] «اشْتَرَى رَجُلٌ مِمَّنْ كَانَ قَبْلَكُمْ عَقَارًا مِنْ رَجُلٍ [٣] فَوَجَدَ الَّذِي اشْتَرَى الْعَقَارَ فِي عَقَارِهِ جَرَّةً فِيهَا ذَهَبٌ [٤] فَقَالَ لَهُ الَّذِي اشْتَرَى الْعَقَارَ: خُذْ ذَهَبَكَ عَنِّي [٥] إِنَّمَا اشْتَرَيْتُ الْعَقَارَ وَلَمْ أَبْتَعْ مِنْكَ الذَّهَبَ.

**ترجمه:** [١] و حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ دا واقعه بيان وفرمايله [٢] چې ستاسو څخه د مخکې زماني په خلقو کې يو سړی د بل سړي څخه د زمکې يوه ټکړه واخسته او هغه يې په خپل تصرف کې را وسته [٣] د اتفاق خبره ده چې کوم سړي زمکه واخستله هغه په هغه خپلي اخستي زمکه کې يو داسې منګې پيدا کړي چې د سرو زرو څخه ډك وو [٤] هغه زمکي خرڅونکي ته يې اوويل چې ته خپل دا سره زر واخله [٥] ځکه چې ما خو يواځې زمکه واخستې وه دا سره زر خو ما نه وه واخستي .

**حل اللغات:** - ①عَقَارًا: د زمکې يوه ټکړه، حصه. ②جَرَّةً: منګې. کټوی.

[١] فَقَالَ بَائِعُ الْأَرْضِ: إِنَّمَا بِعْتُكَ الْأَرْضَ وَمَا فِيهَا، [٢] فَتَحَاكَمَا إِلَى رَجُلٍ [٣] فَقَالَ الَّذِي تَحَاكَمَا إِلَيْهِ: أَلَكُمَا وَلَدٌ؟ [٤] قَالَ أَحَدُهُمَا لِي غُلَامٌ وَقَالَ الْآخَرُ لِي جَارِيَةٌ [٥] قَالَ: أَنْكِحُوا الْغُلَامَ الْجَارِيَةَ [٦] وَأَنْفِقُوا عَلَيْهِمَا مِنْهُ وَتَصَدَّقُوا» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] خرڅونکي ورته اوويل چې ما خو په تا يواځې زمکه نه وه خرڅه کړي بلکه هرهغه څيز مې خرڅ کړي وو کوم چې په دي زمکه کې دی (ځکه دا سره زر هم ستادی دا ته وساته خو اخستلو ته تيار نه شو) [٢] د دي پورې چې دواړو خپله معامله يو ثالث سړي ته يووړه [٣] هغه دريم (ثالث) د واقعې تفصيل اوريدو سره د هغه دواړو څخه يې پوښتنه وکړه چې ستاسو د دواړو څه اولاد شته؟ [٤] په هغوی کې يوه اوويل چې څما يو څوی شته او دويم اوويل چې څما يوه لور شته [٥] په دي اوريدو سره ثالث اوويل چې د دې هلك نکاح د دې جينۍ سره وکړئ، [٦] او دا سره زر په دي دواړو خرڅ کړئ او بيا څه چې پاتې شي هغه د الله ﷻ په لار کې صدقه کړئ، (بخاري مسلم)

**تسهيلات: قوله: قَبْلَكُمْ:**

**په انسانی معاشره کښې د ديانت وجوه د الله تعالی رحمت:** - يعنی د پخوانو قومونو د يو سړی قصه ده چه د عبرت او ديانت نه ډکه ده. وائی چه د دې فيصلې اورولو اختيار حضرت

---

[١] ) اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب حديث الغار (رقم-٣٤٧٢)ومسلم في باب استحباب إصلاح الحاكم بين الخصمين (رقم-٢١ - (١٧٢١) وابن ماجة في كتاب اللقطة/باب من أصاب ركازا (رقم-٢٥١١) واحمد في المسند: ٣١٦/٢

داؤد عليه السلام ته ورکړې شوې وو اوهغوی داسې حکیمانه اوناصحانه فیصله اوکړه چه په
دیراوچت ذ هانت باندې مبنی ده

**د متبايعينو په مينځ کښې د نزاع ختمولو فضيلت:** – علامه نووی رحمه الله فرمائی چه داحدیث د
بائع اومشتری په مینځ کښې د جګړې حل کولو په فضیلت باندې دلالت کوی. زه وایم چه
دیانت او شرافت کله په انسانانوکښې راځی نوهغوی د یو بل دپاره رحمت جوړیږی. دلته
اوګورئ چه هریو بل ته د سرو زرو خزانه ورکوی اودویم د اخستونه انکارکوی دادَ اسلام
او ایمان تعلیم اودَ الله تعالی نه د ویرې یوه کرشمه ده چه دآسمانی کتابونونه حاصلیږی
دکوم دپاره چه دې وخت کښې قرآن عظیم متعین دې اودَ دینی مدارس علماء اوطلباء
ددې ژوندې مثال دې.

## [٦]بَابُ السَّلَمِ وَالرَّهْنِ

### دبیع سلم اورهن(دګانړې )بیان

**خلاصة الباب:** –

**فيه ثمانية أحاديث مشتملة على خمس مسائل.**

① جواز السلم بتقرير النبي ﷺ : ١.

② جواز الرهن بعمل النبي ﷺ : ٢، ٣.

③ حكم منافع المرهونة، ٤، ٥.

④ تعين الكيل والوزن في السلم وما يتعلق بهما: ١، ٦، ٧.

⑤ عدم جواز تبديل المسلم فيه :٨.

**درهن ثبوت او قرآن کریم.** -

**د سلم لغوی معنی:** – سلم په لغت کښې د تسلیم نه د حواله کولوپه معنی کښې دې

**دبیع سلم اصطلاحی تعریف:** – په اصطلاح کښې د سلم تعریف دادې "السلم هو بيع الاجل
بالعاجل" اجل د قرض په معنی کښې دې دکوم نه چه مبیع مراددې اوعاجل د نقد په معنی
کښې دې د کوم نه چه ثمن مراددې سلم ته سلف هم وائی په اردوکښې دې ته بدهنی هم وائی

**د بیع سلم یو څو اصطلاحات:** –په دې بیع کښې خریداریعنی مشتری ته رب سلم وائی
اوبایع ته مسلم الیه وائی. مبیع ته مسلم فیه وائی اوثمن ته رأس المال وائی.

**د بیع سلم شرعی حیثیت:** – بیع سلم د قرآن اوحدیث نه ثابته ده او پورته ذکرشوې آیت د
قرآن پاك دټولونه اوږد آیت د بیع سلم باره کښې نازل شوې دې. په بیع سلم کښې چونکه
مبیع غائب وی په دې وجه د بیوعاتو د اصول اوقواعدو داخلاف ده لیکن د انسانانو د

سختي مجبورئي په وجه دا جائز گرخولي شوي ده

**• بيع سلم شرطونه :-** هم دغه وجه ده چه دَ مبيع جهالت كمولو دَپاره په سلم كښې څو شرطونه كيخودې شوى دى دې دَ پاره چه مبيع معدوم موجود شي ټول ۱۲ شرطونه دى په كوم كښې چه دَ شپږو تعلق رأس المال يعنى قيمت سره دې اودَ لسو تعلق مسلم فيه يعنى مبيع سره دې

**رأس المال يعنى دَ قيمت متعلق شپږ شرائط دا دى**

① په مجلس عقد كښې دَ بايع ثمن باندې قبضه كول

② دا شرط چه روپئى به نقدې اداكول وى قرض به نه وى

③ صفت بيانول چه آيا روپئى كهره دى كه كوټه دى.

④ مقدار بيانول يعنى دا واضح كول چه دا روپئى سل دى كه دوه سوه دى.

⑤ نوع بيانول يعنى دا بيانول چه دا روپئى دَ چاندئى دى كه دَ گلټ دى اوكه نوټ دى.

⑥ دَ ثمن جنس بيانول چه درهم دى كه دينار يا روپئى دى.

**د مسلم فيه يعنى مبيع شرائط:**

① دَ مبيع جنس بيانول مثلاً دا بيانول چه غنم دى وريژې دى يا جوار دى

② دَ مبيع مقدار بيانول چه لس منه غنم دى يا پنځه منه دى.

③ نوع بيانول يعنى دا خودل چه غنم دَ فلانكى قسم يا دَ فلانكى ځائى دى جوار دَ فلانكى قسم زيړ دوگر يا كاغانى دى.

④ دَ مبيع دَحواله كولو ځائى مقرر كول په دې شرط چه مبيع دَ وزن او بوج والا څيز وى

⑤ دَمودې بيانول چه دومره وخت بعدبه په فلانكى تاريخ باندې اداكولې شى مگر دَ يومياشت نه كم وخت مقرر كول جائز نه دى.

⑥ دَ عقد دَ وخت نه دَ اداكولو وخت اوچه هغه څيز په بازارونو كښې موجود وى معدوم نه وى.

**• رهن لغوى معنى :-** رهن په لغت كښې حبس الشئ ته وائى

**• رهن اصطلاحى تعريف :-** په اصطلاح كښې رهن "جعل الشئ محبوسا بحق يمكن استيفائه منه" رهن ته گانړه وائى دا دَ قرآن پاك نه ثابت دې. ﴿ فرهن مقبوضة ﴾

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [٢٨٨٣] ذ بيع سلم دري شرطونه

٢٨٨٣—[١] (١) ① (عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: «قَدِمَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْمَدِينَةَ ② وَهُمْ يُسْلِفُونَ فِي الثِّمَارِ السَّنَةَ وَالسَّنَتَيْنِ وَالثَّلَاثَ، ③ فَقَالَ: "مَنْ أَسْلَفَ فِي شَيْءٍ فَلْيُسْلِفْ فِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ وَوَزْنٍ مَعْلُومٍ إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي رسول الله ﷺ (د مكي څخه د هجرت كولو سره) مديني ته تشريف راوړو، ② نو اهل مدينه به په ميوو كې د يو كال، دوه كاله دري كاله بيع سلم كوله (يعني پيشكي رقم وركولو سره به يې وئيل چې يو كال، دوه كاله يا دري كاله وروسته ميوه راورسوه) ③ نو حضور ﷺ وفرمايل چې كوم سړی يو څيز بيع سلم كړي هغه ته پكار دی چې معينه پيمانه د معين وزن او معيني مودي سره يې سلم كړي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① يُسْلِفُونَ: بيع سلف به ئې كوله، يعنی په نغدو باندې بيع كول او تاخير سره مبيع وصولول

**تسهيلات:** **قوله:** إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ:

### د اجل معلوم په شرطيت كښي مذاهب: -

دَدي حديث نه معلوميږي چه بيع سلم كښې وزن او كيل او دَمودې تعين ضروری دي

① دَ جمهور علماؤ په نيز دَ سلم دَپاره دا شرطونه ضروری دی

② ليكن امام شافعی رحمه الله سلم كښې اجل يعنی دَ مودې دَ تعين په توګه شرط نه منی اسلف يسلف اسلاف بيع سلم ته وائی

## [٢٨٨٣] د كافرانو اوذميانو سره د تجارت حكم

٢٨٨٣—[٢] (٢) ① وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - قَالَتْ: «اشْتَرَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا مِنْ يَهُودِيٍّ إِلَى أَجَلٍ ② وَرَهَنَهُ دِرْعًا لَهُ مِنْ حَدِيدٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

١) اخرجه البخاری فی كتاب السلم/باب السلم فی كيل معلوم (رقم-٢٢٣٩) ومسلم فی كتاب المساقاة/باب السلم (رقم-١٢٧ - (١٦٠٤) واخرجه ابو داود فی السنن أبواب الإجارة/باب فی السلف (رقم-٣٤٦٣) والترمذی فی كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب ما جاء فی السلف فی الطعام والتمر(رقم: ١٣١١) والنسائی فی كتاب البيوع/باب السلف فی الثمار (رقم-٤٦١٦) وابن ماجة فی كتاب التجارات/ باب السلف فی كيل معلوم، ووزن معلوم إلى أجل معلوم (رقم-٢٢٨٠) واحمد فی المسند: ٢١٧/١

٢) اخرجه البخاری فی كتاب البيوع/باب شراء النبی صلى الله عليه وسلم بالنسيئة (رقم-٢٠٦٨) ومسلم فی كتاب المساقاة/باب الرهن وجوازه فی الحضر كالسفر (رقم-١٢٦ - (١٦٠٣) والنسائی فی كتاب البيوع/باب الرجل يشتری الطعام إلى أجل ويسترهن البائع منه بالثمن رهنا (رقم-٤٦٠٩) وابن ماجة فی كتاب الرهون/باب (رقم-٢٤٣٦) واحمد فی المسند: ١٦٠/٦

**ترجمه**: [۱] او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ د يو يهودي څخه څه غنم په يو معينه موده په قرض واخستل[۲] او د اوسپنې خپله زغره يې د هغه (يهودي) سره ګانړه کړه. (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: ① درْعًا: زغره، د اوسپنې جنګي لباس.

**تسهيلات**:

**قوله**: وَرَهَنَهُ دِرْعًا لَهُ:

**د حديث نه د يو څو مسائلو استنباط**:- ① دَ ګانړې معامله څنګه په سفر کښې مشروع شوه نو په حضر کښې هم جائز ده. قرآن کښې ﴿وَاِنْ كُنْتُمْ عَلٰى سَفَرٍ﴾ قيد اتفاقي دې
② دَ چانه څه څيز قرض اخستل اوبيا دَ دې په بدله کښې خپل څه څيز په توګه دَ ګانړې کيخودل جائز دی.

③ اهل ذمه سره لين دين معاملات جائزدي په دې شرط چه هغوی سره کوم مال دې هغه دَحلال وی اودَ اهل حرب سره دَ لين دين باره کښېْ دَ علماؤ اتفاق دې چه په هغوی باندې وسله خرڅول بلکه کچه اوسپنه خرڅول جائز نه دی علماؤ داهم ليکلی دی چه مطلقاً په يو کافرباندې داسې څه څيز خرڅول جائز نه دی په کوم سره چه دَهغوی دَمذهب تقويت کيږی.

**د نبی کريم صلی الله عليه وسلم د يهودی سره د معامله کولو وجه**:- رسول الله ﷺ يهودوسره معامله ياخودَدې دَپاره کوله چه مسلمانانوسره غله نه وه يهوديان دَمدينې په غله باندې قابض وو يا حضورپاك دَ جواز دَ بيانولو دَپاره هغه يهودی سره معامله اوکړه

**[۲۸۸۵] دنبی عليه السلام زهد في الدنيا**

۲۸۸۵ - [۲] (۱) [۱] وَعَنْهَا، قَالَتْ: «تُوُفِّيَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] وَدِرْعُهُ عِنْدَ يَهُودِيٍّ بِثَلَاثِينَ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او ام المؤمنين بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ په داسې حال کې وفات شوی دی [۲] چې زغره يې د يو يهودي سره د دېرش صاع کجورو په بدله کې ګروي اېښودل شوي وه. (بخاري)

**تسهيلات**:

**نوټ**:- د حديث مفهوم په تير شوي حديث کښې بيان شوې دي.

۱) اخرجه البخاري في كتاب المغازي/باب (رقم-۴۴۶۷)

**[۲۸۸۲] د مرهون څيز څخه د فائدې اخستلو حکم**

۲۸۸۲-[۶] (۱)[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «الظَّهْرُ يُرْكَبُ بِنَفَقَتِهِ إِذَا كَانَ مَرْهُونًا،[۳] وَلَبَنُ الدَّرِّ يُشْرَبُ بِنَفَقَتِهِ إِذَا كَانَ مَرْهُونًا، [۴] وَعَلَى الَّذِي يَرْكَبُ وَيَشْرَبُ النَّفَقَةُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] که د سوارلى حيوان گرو شوى وي، نو په هغه چې څه خرچ کول کيږي د هغه په بدله کې دي په هغه سورلى کول کيږي [۳] او که پينو والا حيوان گرو وي نو په هغه چې څه خرچ کولى شي د هغه په بدله کې د هغه پى دي څکل کيږي [۴] او کوم سړى چې سورلى کوي او پى څکي هغه د هغه د اخراجاتو ذمه وار دى. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① الظَّهْرُ: شاته واني مراد ترې د خناور شا ده ② يُرْكَبُ: څوريږى به. وَلَبَنُ الدَّرِّ: پئيو والا خاروي (د پئيو چيلي)

**تسهيلات: قوله: بِنَفَقَتِهِ:**

**د حديث په مطلب کښې درې اقوال:-** ① ملاعلي قاري رحمه الله د دې حديث دا مطلب بيان کړې دې او هم دغه د امام ابوحنيفه رحمه الله امام مالك رحمه الله او امام شافعي رحمه الله مسلك دې چې باء د سببيت د پاره ده مطلب دا دې که يو سړې خپل خناور چاسره د گانړې په توگه کيږدى نو د دغه خناور مصارف او خرچ چونکه هم د هغه راهن په ذمه وى په دې وجه هغه د خناور نه د بوج اوړلو او سورلئى کار اخستې شى

② که گانړه کيخودې شوې خناور باندې نفقه اوخرچه راهن کوى نو راهن د دې نه د سورلئى وغيره فائده اوچتولې شى دامطلب خو هم هغه دې کوم چه پورته جمهورو بيان کړې دې

③ که چرې مرتهن په دغه خناور باندې خرچ اونفقه کوى نو هغه هم د دې مرهون خناور نه فائده اوچتولې شى د زير بحث حديث نه دا مطلب هم اخذ کولې شى [اشعة اللمعات]

**په انتفاع بالمرهون کښې مذاهب:-**

① امام احمد بن حنبل رحمه الله او اسحاق بن راهويه په نيز د خاروى پيئى او په دې باندې سورلى د حده پورې مرتهن فائده اوچتولې شى دې نه علاوه عام فائده اوچتول جائز نه دى

② د امام ابوحنيفه رحمه الله امام مالك رحمه الله او امام شافعي رحمه الله په نيز د مرهون څيز نه مطلقًا نفع

---

١) اخرجه البخاري في كتاب الإجارة/باب الرهن مركوب ومحلوب (رقم-٢٥١٢) واخرجه ابو داود في السنن أبواب الإجارة/باب في الرهن (رقم-٣٥٢٦) والترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الانتفاع بالرهن(رقم: ١٢٥٤) وابن ماجة في كتاب الرهون/باب الرهن مركوب ومحلوب (رقم-٢٤٤٠) واحمد في المسند: ٤٧٢/٢

اوچتول دَمرتهن دپاره ناجائز دی

**داول فريق دليل:** - امام احمد بن حنبل رحمه الله دَ زير بحث حديث نه استدلال کړي دي سره دَدي چه دليل محتمل دي.

**داول فريق د مستدل څخه جوابونه:** - ① زير بحث حديث کښي مرتهن سره معامله کول مراد دی هغه داسي چه مرتهن څومره پيښی حاصلوی دَ هغي معاوضه به دَهغه نه اخستي شی اودَ هغه دَ قرض نه به کټ کولي شی دامعامله جائز ده.

② دادي زير بحث حديث په هغه وخت باندي محمول دي کوم وخت چه دَ ربا دَحرمت حکم نه وو راغلي. کله چه دَربا دَ حرمت حکم راغلو نوانتفاع مرهون هم حرام اوګرځولي شو لهذا دَ راتلونکی روايت سره او حرمت دَ ربوا سره حديث منسوخ شوي دي.

**د دويم فريق دلائل:** - دي حديث سره متصل راتلونکي حديث نمبر (٢٨٨٤) د دويم فريق مستدل دي دکوم مطلب چه دادي راهن دَ هغه مرهون څيز مالك دي هم هغه دَ دي نه دَنفع اونقصان ذمه وار دي. معلومه شوه چه دَ مرتهن داکار نه دي

② ((کل قرض جرنفعاً فهوربا)) دا حديث د دويم فريق مستدل دي څکه چي په دي کښي ښکاره خبره ده چه مرتهن راهن ته قرض ورکړي دي اوراهن په توګه دَ وثيقه خپل څه څيزمرتهن سره کيخودي دي. که چري مرتهن دَ هغي نه فائده اوچتوی نوداد خپل قرض نه فائده اوچتول شو کوم چه حرام دی

**اشکال:** - هدايه وغيره کښي ليکلی دی که چري راهن مرتهن ته دَ انتفاع بالمرهون اجازت ورکړی نوبيابه دا نفع جائز وی؟

**داشکال جواب:** - فقهاؤ دا اصل اوضابطه ليکلي ده چه "المعروف کالمشروط" لهذا په کومو ملکونو کښي چه دَ راهن معامله دَمرهون نه هم دَ انتفاع دپاره کولي شی نوهلته دَمرهون نه دَ انتفاع څه ګنجائش نشته دي. که څوك چاته اجازت ورکړی اوکه ورنه کړی ليکن چه په کومو ملکونو کښي چه دَ مرهون نه دَ انتفاع تصورهم نه وی که چري هلته راهن مرتهن ته اجازت ورکړی چه دَمرهون نه فائده اوچته کړه نو په دي صورت کښي جائز کيدي شی نواحتمال شته چي دَ هدايه دَ عبارت مقصد هم دغه وی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[٢٨٨٤] مرهون څيز او دَراهن ملکيت**

[٢٨٨٤] (١) [١] عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ " [٢] «لَا يَغْلَقُ الرَّهْنُ الرَّهْنَ مِنْ صَاحِبِهِ الَّذِي رَهَنَهُ، [٣] لَهُ غُنْمُهُ وَعَلَيْهِ غُرْمُهُ». رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ مُرْسَلًا.

١) اخرجه الدار قطني في السنن في كتاب البيوع (رقم-١٣٣)

**ترجمه:** [۱] حضرت سعيد ابن مسيب رحمه الله (تابعي) وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] پو ځيز گرو اينبودل، د مالك (چې هغه ځيز يې گرو اينبي دي) د ملكيت څخه نه منع كوي (يعني يو ځيز گرو اينبودلو سره د راهن ملكيت نه ختموي) [۳] ځكه چې د هغه گرو اينبودل شوي ځيز د هري نفع او زياتي حقدار راهن دى او هغه د دې د نقصان هم ذمه وار دى. دا روايت امام شافعي رحمه الله بطريقِ ارسال نقل كړي دى

**حل اللغات:** - ① يَغْلَقُ: منع كول، بندول. ② الرَّهْنُ: گروى، گانړه ③ غُنْمُهُ: گټه، فائده. ④ غُرْمُهُ: نقصان.

**تسهيلات:**

**قوله:** الرَّهْنَ

**د رهن اول او د رهن ثاني څخه مراد:** - رهن اول په مصدرى معنى كښې دې دې نه عقدِ رهن مراد دې او دا يغلق فاعل دې. او د رهن ثانى نه مرهون شئ مراد دې.

**قوله:** مِنْ صَاحِبِهِ:

**د صاحب څخه مراد:** - دې نه راهن مراد دې يعنى دَ رهن كيخودودَوجې نه دَ مرهون ځيزنه دَ راهن دَ ملكيت ازاله نه كيږي بلكه راهن اوس هم دَ مرهون نه نفع اوچتولې شي

٢٨٨٨ - (١) وَرُوِيَ مِثْلُهُ أَوْ مِثْلُ مَعْنَاهُ لَا يُخَالِفُهُ عَنْهُ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ مُتَّصِلًا.

**ترجمه:** او د دې قسم يو بل حديث (يعني هم معنى هم او هم لفظ هم) د حضرت سعيد ابن مسيب رحمه الله څخه روايت شوى دى چې سعيد ابن مسيب رحمه الله د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه بطريقِ اتصال نقل كړي دى يا هغه روايت هم معنى دى (او د هغه الفاظ مختلف دي) خو د الفاظو دا اختلاف داسې نه دى چې د هغه د هم معنى كيدو خلاف دې وي.

**[٢٨٨٩] په حقوق شرعيه كښې د مكې او مدينې د اوزانو اعتبار**

٢٨٨٩ - [١] (٢) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " «الْمِكْيَالُ مِكْيَالُ أَهْلِ الْمَدِينَةِ [۲] وَالْمِيزَانُ مِيزَانُ أَهْلِ مَكَّةَ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما راوي دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل پيمانه د اهلِ مدينه وو پيمانه معتبره ده [۲] او وزن د اهلِ مكه وو معتبر دى. (ابوداؤد نسائي)

**حل اللغات:** - ① مِكْيَالُ: پيمانه، ناپ كول ② مِيزَانُ: تله، د وزن كولو، او تللو آله.

---

١) اخرجه الحاكم في المستدرك: ٥١/٢

٢) اخرجه ابوداود في السنن كتاب البيوع/باب في قول النبي صلى الله عليه وسلم المكيال مكيال المدينة (رقم-٣٣٤٠) والنسائي في كتاب البيوع/باب الرجحان في الوزن (رقم-٤٥٩٤)

**تسهیلات**

**قوله اَلْمِكْيَالُ مِكْيَالُ أَهْلِ الْمَدِينَةِ. الخ:**

**په وزن کښې د اهل مکې اعتبار او په پیمانې کښې د اهل مدینې اعتبار:** - یعنې په پیمانه کښې د اهل مدینه د پیمانې اعتبار دې او په وزن کښې د اهل مکه د وزن اعتبار دې. د مکې او مدینې په پیمانه او وزن کښې څه تفاوت او اختلاف وو د کوم په وجه سره چه کیدې شي صدقت او فطرانه کښې څه ګړبړ پیدا کیدلو په دې وجه حضور پاک دا ارشاد جاری کړو چه په وزن کښې به د اهل مکه د وزن اعتبار وی ځکه چه اهل مکه اکثر تجران وو او د وزن زیات تر استعمال د تجارت په مال سرو زرو او سپینو زرو کښې کیږی او اهل مدینه اکثر زمیندارنی پیشې سره نړلي خلق وو او په زمیندارنی کښې د پیمانې استعمال زیات کیږی لهذا حضور اکرم په وزن کښې د اهل مکه اعتبار اوکړو او پیمانه کښې نی د اهل مدینه اعتبار اوکړو دې خلقو دا څیزونه پیژندل

**[٢٨١٠] په ناپ تول کښې د کمی کولو انجام**

٢٨١٠—[٤] (١) ⟨١⟩ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِأَصْحَابِ الْكَيْلِ وَالْمِيزَانِ: ⟨٢⟩ إِنَّكُمْ قَدْ وُلِّيتُمْ أَمْرَيْنِ هَلَكَتْ فِيهِمَا الْأُمَمُ السَّابِقَةُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ⟨١⟩ او حضرت ابن عباس رضي الله عنه راوي دی چې حضور ﷺ د ناپ تول کونکوته وفرمايل ⟨٢⟩ ستاسو په ذمه داسې دوه کارونه دي یعنې ناپ کول او تول کول چې د هغه په سبب ستاسو څخه مخکې امتونه هلاك شوي دي. (ترمذي)

**تسهیلات:**

**قوله إِنَّكُمْ قَدْ وُلِّيتُمْ أَمْرَيْنِ هَلَكَتْ فِيهِمَا الْأُمَمُ السَّابِقَةُ**

**په ناپ تول کښې د کمی په وجه د قومونو هلاکت:** - د امت محمدیه نه مخکښې بعضې داسې قومونه تیرشوی دی چه دهغې خلق په دې خراب عادت کښې مبتلا ووچه کله به هغوی څه څیز دخلقو نه اخستلو نو هغه به ئې پوره پوره ناپ کولو او تللو. خوکله چه به ئې چاته څه څیز ورکولو نو دهغې په ناپ تول کښې به ئې کمی کولو. دهغوی په دې عامې خرابۍ په وجه په هغوی باندې د الله تعالی عذاب نازل شو او تباه او برباد کړې شو په داسې قومونو کښې اول دحضرت شعیب علیه السلام د قوم نوم راځی په دې وجه نبی کریم ﷺ دخپل امت خلق خبردار کړل چه تاسو په ناپ تول کښې د کمی کولو نه پوره ځان ساتئ چه په دې لعنت کښې د مبتلا کیدو په وجه چرته په تاسو هم د الله تعالی قهر او غضب (یعنی عذاب) رانه شی

١) اخرجه الترمذي في السنن كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في المكيال والميزان (رقم: ١٢١٧)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٢٨٩] دَ سلم مبيعي لره قبل القبض د خرڅولو ممانعت**

٢٨٩—[١] (١) [١] عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[٢] «مَنْ أَسْلَفَ فِي شَيْءٍ [٣] فَلَا يَصْرِفْهُ إِلَى غَيْرِهِ قَبْلَ أَنْ يَقْبِضَهُ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابوسعيد خدري ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] كوم سړی چې د څه شي د پاره د بيع سلم معامله وكړي [٣] نو په هغه څيز د قبضه كولو څخه مخكې كوم دويم طرف ته دې نه منتقل كوي. (ابوداؤد ابن ماجه)

**تسهيلات: قوله:** فَلَا يَصْرِفْهُ:

**دعدم صرف مطلب:** - دَدې مطلب دادې چه په بيع سلم كښې تركومې مبيعه په لاس كښې قبضه كولو سره رانه شي په بل سړی باندې دَهغې خرڅول جائزنه دی نه هبه كول جائز دی يا چه په كوم څيز كښې بيع سلم شوې دې دغه څيز په بل څيز سره بدل نه كړی بلكه په كوم څيز كښې چه معامله شوې ده دَ معاملې مطابق هم هغه څيز اخستل وركول پكاردی دَ دواړو مطلب مراد كيدې شي.

## [٧] بَابُ الإِحْتِكَارِ

**دَ ذخيره اندوزئ كولو بيان**

**خلاصة الباب: -**

**فيه سبعة أحاديث مشتملة على مسئلتين:**

① اباحة الإحتكار: ١، ٢، ۴، ۵، ۶، ٧.

② حرمة الاحتكار: ٣.

**داحتكار لغوي معنى:** - په لغوی توګه احتكارَ حكرنه دې چه دَ منع كولو په معنى كښې دې

**د احتكار اصطلاحي تعريف:** - د احتكار چه په كوم حديث كښې ممانعت دې د هغې تعريف امام نووي ﷫ دا ليكلي دې چه غلې لره د ګرانئ په زمانه كښې د تجارت په نيت باندې اخستلو سره يږدل او فى الحال هغه نه خرڅول د نورې ګرانئ په انتظار چه پيسې زياتې حاصل شي.

**د احتكار د حرمت شرطونه:** - شريعت احتكار اوذخيره كول حرام ګرځولي دی ليكن داحرمت يو څو شرائطوسره مشروط دې

(١) اخرجه ابو داود فى السنن أبواب الإجارة/باب السلف لا يحول (رقم-٣٤۶٨) وابن ماجة فى كتاب التجارات/ باب من أسلم فى شيء فلا يصرفه إلى غيره (رقم-٢٢٨٣)

① ذخيره كړې شوې غله هم دَ دغه ښاروی که دَ بل ښارنه نی غله راوړلې ده نو په هغې كښې احتكار دَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز دې دَ امام ابويوسف رحمه الله په نيز مكروه دې او امام محمد رحمه الله فرمائی که دا غله عموماً هم دې ښار ته راخی خانی نيزدې دې نو بيا ناجائز ده اوكه چرې داسې نه وی نو بيا جائز ده

② په كوم مال كښې يوسړې ذخيره اندوزی كوی هغه مال هغه اخستې وی كه چرې هغه اخستې نه وی بلكه دَ خپلې زمكې غله ده يا دَباغونو ميوې دی نو په دې كښې احتكار منع نه دې

③ احتكار دَ خوراك په څيزونو كښې وی په نورو څيزونو كښې احتكار دَ جمهورو په نيز حرام نه دې اودَ څناورو په ګيا كښې احتكار مكروه دې اودَ امام مالك رحمه الله په نيزپه پانړو كښې احتكار منع دې.

④ دغه ذخيره كولوسره دَ ښار عواموته ضرر رسيږی تنګی راځی كه چرې داسې نه وی نو بيا جائزده.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [٢٨٣]احتكار كونكی ګنهګار دی

٢٨٣٠-[١] (١) ①عَنْ مَعْمَرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②«مَنِ احْتَكَرَ فَهُوَ خَاطِئٌ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. ③وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ " «كَانَتْ أَمْوَالُ بَنِي النَّضِيرِ فِي بَابِ الْفَيْءِ» " إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى.

**ترجمه:** ①حضرت معمر رضی الله عنه وايې چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل ②كوم سړی چې احتكار وكړي هغه ګنهګار دی، (مسلم)③او د حضرت عمر رضی الله عنه روايت كانت اموال بني النضير الخ به مونږ انشاء الله تعالی په باب الفيئ كې نقل كړو

**حل اللغات:** - ①اِحْتَكَرَ: زخيره كولوني، جمع كولو نې

**تسهيلات:** **قوله:** مَنِ احْتَكَرَ فَهُوَ خَاطِئٌ:

**د احتكار د حرمت د طعام سره تخصيص:-** دَ خوراك په څيزونو كښې احتكار دَ ګناه سبب دې دَ جمهورو علماؤ په نيز دَ احتكار حكم طعام سره خاص دې امام مالك رحمه الله فرمائی چه څنګه دَ انسان په غذائی څيزونواحتكار منع دې دغه شان دَ څناورو په وښو او پانړو كښې هم دَ احتكار حكم جاري كيږی

١) اخرجه مسلم في كتاب المساقاة/باب تحريم الاحتكار في الأقوات (رقم-١٢٩ - (١٦٠٥) اخرجه ابو داود في السنن أبواب الإجارة/باب في النهي عن الحكرة (رقم-٣٤٤٧) وابن ماجة في كتاب التجارات /باب الحكرة والجلب (رقم-٢١٥٤) واحمد في المسند: ٦/٤٠٠

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[ ٢٨٠٣ ] ذخيره كونكي لعنتي كيدل**

٢٨٠٣ — [ ٥ ] ( ١ ) [١] عَنْ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - ، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [٢] «الْجَالِبُ مَرْزُوقٌ وَالْمُحْتَكِرُ مَلْعُونٌ» " . رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت عمر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] تاجر ته رزق ورکول کيږي احتکار کونکي ملعون دی. (ابن ماجه دارمي)

**حل اللغات** - ① الْجَالِبُ: غله راغوبنتونکي، تاجر ② مَرْزُوقٌ: رزق ورکولي شي. ③ الْمُحْتَكِرُ: زخيره کونکي. جمع کونکي

**تسهيلات:**

**قوله الْجَالِبُ:**

**د جالب په رزق کښې برکت:** —يعنې يوسړې دَ تجارت په غرض سره اودَ خلقو دَ خدمت او سهولت په نيت سره دَ بهر نه غله راوړی او په مروج قيمت باندې خرڅه وی اودَ خلقو دَ مجبورئي نه ئې ناجائزه فائده نه اوچته وی نو الله تعالی دَ هغه په رزق کښې برکت اچوی او دغه سړي ته رزق ورکوی خو که يوسړې دَخلقو دَ مجبورئي نه غلطه او ناجائزه فائده اوچته وی مثلاً په ښارکښې چه څومره مال دې هغه اخلی او ذخيره کولوسره دَ ګرانئي په نيت هغه ذخيره کوی اوايږدی دا سړې ملعون دې دَ قيامت په ورځ به دَ الله تعالی دَ رحمت نه لرې وی او په دنيا کښې به هم خلق په هغه باندې لعنتونه وائي

**[ ٢٨٠٤ ] د حکومت د طرفه د څيزونو نرخ مقرر کولو حکم**

٢٨٠٤ — [ ٦ ] ( ٢ ) [١] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «غَلَا السِّعْرُ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! سَعِّرْ لَنَا، [٣] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - : [٤] " إِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمُسَعِّرُ الْقَابِضُ الْبَاسِطُ الرَّازِقُ، [٥] وَإِنِّي لَأَرْجُو أَنْ أَلْقَى رَبِّي وَلَيْسَ أَحَدٌ مِنْكُمْ يَطْلُبُنِي بِمَظْلِمَةٍ، بِدَمٍ وَلَا مَالٍ» " . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَه، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت انس ﷺ وايي چې (يو ځل) د رسول الله ﷺ په زمانه کې نرخ ګران شو . [٢] نو صحابه وو ﷺ عرض اوکړو چې يارسول الله ﷺ زمونږ د پاره نرخ مقرر کړه يعنې تاجرانو ته حکم ورکړه چې هغه په دې نرخ غله خرڅوي. [٣] رسول الله ﷺ ورته

---

١ ) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب التجارات /باب الحكرة والجلب (رقم - ٢١٥٣)

٢ ) اخرجه ابو داود في السنن أبواب الإجارة /باب في التسعير (رقم - ٣٤٥١) والترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في التسعير (رقم: ١٣١٤) وابن ماجة في كتاب التجارات /باب من كره أن يسعر (رقم - ٢٢٠٠) واحمد في المسند: ١٥٦/٣

وفرمايل [۲] چې الله ﷻ نرخ مقرر کونکی دی، الله ﷻ تنګي پيدا کونکی دی، الله ﷻ فراخي ورکونکی دی او الله ﷻ رزق ورکونکی دی [۵] زه د دې خبرې اميد وار او خواهشمند يم چې زه د الله تعالی ﷻ سره په داسې حال کې يو ځای شم چې په ما په تاسو کې د هيچا د وينې او مال څه مطالبه نه وي. (ترمذي ابوداود ابن ماجه.

**حل اللغات** - ①غَلاَ: ګران شو. ②السِّعْرُ: نرخ، قيمت. ③الْمُسَعِّرُ: نرخ مقررونکې. ④الْقَابِضُ: تنګی پيدا کونکې. ⑤الْبَاسِطُ: فراخی راوستونکې.

**تسهيلات:**

**قوله إِنَّ اللهَ هُوَ الْمُسَعِّرُ:**

**د حديث شان ورود او پس منظر:** - د دې حديث حاصل دا دې چه يوځل د مدينې منورې په بازارونو کښې نرخ زيات شو نو صحابه کرامو رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه تاسو نرخ مقرر کړئی حضور پاک اوفرمائيل چه قيمتونه کمونکې اوزياتونکې الله تعالی دې هغه کله په خلقو باندې تنګی مسلط کوی اوکله پرې وسعت راولی لهذا په دې معملاتو کښې الله تعالی ته رجوع کول پکار ده زه غواړم چه د خلقو په معاملاتو کښې مداخلت اونه کړم دې د پاره چه د قيامت په ورځ د خپل رب سره داسې ملاقات اوکړم چه د خلقو د مال اوځان باره کښې مانه د چا څه ګيله نه وی.

**د قيمتونو (نرخونو) د تعين ضرورت:** - بهرحال علماء ليکی چه تسعير يعنی قيمتونه په مارکيټ کښې مقرر کول مناسب نه دی چه په کولاؤ بازارونو کښې د طبعی نظام لاندې يو دستور قائم شی اوخلق د دغه نظام لاندې اوسيږی او آزادانه تجارت کوی اوکه چرې خلقو په دغه طبعی نظام کښې ګړبړ شروع کړو او په مارکيټ کښې د هرسړی د خپلې خوښې کار شروع شو نو بيا به د مجبورئی د وجې نه او په اندازه د ضرورت حکومت له پکار دی چه قيمتونه مقرر کړی په سعودی عرب کښې د قيمتونو يو مثالی نظام په کوم کښې چه استحکام دې او په پاکستان کښې مثالی بدنظمی ده

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۸۹۵] ذخيره اندوزئی سزا**

٢٨٩٥ - [٣] (١) [١] عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "[٢] «مَنِ احْتَكَرَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ طَعَامَهُمْ [٣] ضَرَبَهُ اللّٰهُ بِالْجُذَامِ وَالْإِفْلَاسِ» . " رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي " شُعَبِ الْإِيمَانِ " . وَرَزِينٌ فِي كِتَابِهِ.

١ ) اخرجه ابن ما جه في السنن كتاب التجارات /باب الحكرة والجلب (رقم-٢١٥٥) واحمد في المسند: ٢١/١

**ترجمه**: [١] حضرت عمر ابن خطاب ﷺ وایي چې ما واوریدل چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] کوم سړی چې غله انتظار کولو سره په ګران نرخ په مسلمانانو خرخوي [٣] الله ﷻ به هغه په جذام او افلاس کې مبتلا کوي. (ابن ماجه بیهقي رزین)

**حل اللغات**: - ① الْجُذَامِ: داء يصيب الجسم ولد تتساقط منه الأطراف، مرض تأكل أعضاء الجسم، جذم، ذضرب يضرب نه په تیزئ سره پرې کیدل. جذام یو خطرناکه بیماری چه د بدن اندامونه چاقیدو سره پرسیږی او بیا ټکرې ټکرې کیږی ② الإِفْلَاسِ: ذهاب المال والعجز عن أداء القرض، غریبي، محتاجي.

**تسهیلات**:

**قوله**: ضَرَبَهُ اللهُ بِالْجُذَامِ وَالْإِفْلَاسِ

**دحدیث مفهوم**: - چه کوم مسلمان مخلوقِ خدا ته تکلیف او نقصان رسوی نو الله تعالی به دې جسمانی و مالی مصیبتونو کښې مبتلا کوی چه کوم کس مخلوق ته نفع ورکوی نو الله تعالی د ده په جسم او مال کښې خیر و برکت ورکوی لکه چه حدیث کښې راغلی دی ارحموا من في الارض يرحمكم من في السماء چه زمکې والو باندې تاسو رحم اوکړئ الله به په تاسو مهربانه شی

[٢٨٣] **د طعام ذخیره کونکی د څلویښت ورځو د مونځ نه قبلیدل**

٢٨٩٣ - [د] ( ) [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " [٢] «مَنِ احْتَكَرَ طَعَامًا أَرْبَعِينَ يَوْمًا يُرِيدُ بِهِ الْغَلَاءَ [٣] فَقَدْ بَرِءَ مِنَ اللهِ وَبَرِءَ اللهُ مِنْهُ» ". رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابن عمر ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] کوم سړی چې تر څلویښتو ورځو د ګرانی په خیال غله بنده کړه [٣] ګویا هغه د الله ﷻ څخه بیزاره شو او الله ﷻ د هغه څخه بیزاره شو. (رزین)

**حل اللغات**: - ① احْتَكَرَ: زخیره کوی، جمع کوی. ② الْغَلَاءَ: ګرانیدل، قیمته کیدل.

**تسهیلات**:

**قوله** فَقَدْ بَرِءَ مِنَ اللهِ

**دالله تعالی څخه د بیزاره کیدو مفهوم**: - د الله تعالی نه د بیزاره کیدو مطلب دا دې چه دهٔ د الله تعالی هغه عهد مات کړو کوم چه ده د احکاماتو منلو او د مخلوق خدا سره د همدردي عهد کړې وو

**قوله**: وَبَرِءَ اللهُ مِنْهُ

**دمذکوره جملې مطلب**: - یعنی الله د ده نه خپل حفاظت اوچت کړو او د نظر او کرم نه ئې لرې کړو

---

[١]) لم أظفر على تخريجه. شاه فيصل

[۲۰۰۷] د څيزونو په ګرانيدو د خوشحالۍ مذمت

۲۸۹۷ -[۱](۱) وَعَنْ مُعَاذٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُوْلُ: "«بِئْسَ الْعَبْدُ الْمُحْتَكِرُ: [۲] إِنْ أَرْخَصَ اللّٰهُ الْأَسْعَارَ حَزِنَ، [۳] وَإِنْ أَغْلَاهَا فَرِحَ» ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي " شُعَبِ الْإِيْمَانِ ". وَرَزِيْنٌ فِي كِتَابِهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت معاذ رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل د غله وغيره ناجائز ذخيره اندوزي کونکی ډير خراب بنده دی [۲] که الله ﷻ په نرخونو کې ارزاني کوي نو هغه غمجن کېږي [۳] او که په نرخونو کې ګراني کوي نو خوشحاله کيږی. (بيهقي، رزين)

**حل اللغات:** - ① الْمُحْتَكِرُ: زخيره کونکې، جمع کونکې. ② الْأَسْعَارَ: نرخونه، قيمتونه. ③ أَغْلَاهَا: ګرانيدل، قيتمونه زياتيدل.

**تسهيلات:**

**قوله:** بِئْسَ الْعَبْدُ الْمُحْتَكِرُ:

**د محتکر د بديت وجه:** - د محتکر دا عمل ځکه الله تعالی ته ناخوښه دې چې د څيزونو په ارزانيدو کښې اجتماعي فائده ده ډيرو خلقو ته فائده ملاويږی او دالله تعالی مخلوق ته په فائده ملاويدو باندې خوشحاله کيدل پکار دی او په ګرانوالی کښې صرف د محتکر فائده ده او الله تعالی هغه کس نه خوښوی د چا نظرچې صرف په خپله فائده کښې وی اګرچې خلق خدا په تکليف کښې مبتلا کيږی

[۲۸۹۸] ځلويښت ورځې د ذخيره اندوزۍ کولو وعيد

۲۸۹۸ -[۲](۲) [۱] عَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [۲] «مَنِ احْتَكَرَ طَعَامًا أَرْبَعِيْنَ يَوْمًا [۳] ثُمَّ تَصَدَّقَ بِهِ، لَمْ يَكُنْ لَهُ كَفَّارَةً» ". رَوَاهُ رَزِيْنٌ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابو امامه رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړی چې د ګران فروشی په نيت سره غله تر ځلويښتو ورځو وساتله [۳] او بيا هغه يې د الله ﷻ په لار کې خيرات کړه نو هم به د هغه د پاره کفاره نه وي. (رزين) (اخرجه رزين)

**قوله:** لَمْ يَكُنْ لَهُ كَفَّارَةً

**د ذخيره اندوزۍ وعيد:** - ذخيره اندوزی دومره لويه ګناه ده چه که دې دا ټول مال هم صدقه کړی نو کفاره به ادا نه نشی په دې حديث کښې د ذخيره اندوزۍ قباحت طرف ته اشاره ده

---

(۱) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان (رقم-۱۱۱۵۰)

(۲) لم أظفر علی تخريجه. شاه فيصل.

# [٨] بَابُ الْإِفْلَاسِ وَالْإِنْظَارِ

دافلاس او مهلت ورکولو بيان

**خلاصة الباب: -**

**فيه ثلاثون حديثاً مشتملة على أربع مسائل:**

① طريق استيفاء الحق من المفلس والمديون: ١، ٢، ١٦، ١٩، ٢٤، ٢٩-

② فضيلة الانظار و العفو عن بعض دين المعسر: ٣، ٤، ٥، ٦، ١٠، ٢٨-

③ فضيلة حسن القضاء: ٧، ٨، ١٢، ٢٥، ٢٦، ٢٧-

④ قباحة الدين والمطل ف أدائه: ٩، ١١، ١٢، ١٣، ١٤، ١٥، ١٧، ١٨، ٢٠، ٢١، ٢٢، ٢٣، ٣٠-

**په قرآن کښې د افلاس حکم:** - قال الله تعالى ﴿ وَإِنْ كَانَ ذُوْعُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَى مَيْسَرَةٍ ﴾ [سورت بقره الايه: ٢٨٠]

**د لفظ افلاس او تفليس تشريح او تفسير:** - افلاس دَ باب افعال نه دې چه دَ سلب ماخذ پاره استعماليږی دَ کوم معنی چه سلب الفلوس ده يعنی دَ پيسې اومال نشتوالي تفليس دَ مفلس گرځولو په معنی کښې دې

**د افلاس صورتونه:** - ① په محکمه قضا کښې قاضی دَ يو سړی باره کښې دا فيصله اوکړی چه دا سړې مفلس اوديواليه دې ده سره مال نشته دې په ده درنې قرضې دی او دَ اداکولو څه صورت نشته دې لهذا قرض خواه دې دَ هغه وخته پورې نه تنګوی ترکومې چه ده سره مال رانه شی لکه چه قاضی ده ته دَ مال ګټلو مهلت ورکوی

② يو سړی مشتری مثلاً سودا اوکړه مګر دَ قيمت اداکولونه وړاندې هغه ديواليه شو اوس مبيع دَده په لاس کښې ده او پيسې نشته دې دې مفلس شو

③ يو سړی سودا وغيره واخسته اوهغه ئی په خپله قبضه کښې کړه ليکن دَ قيمت اداکولونه وړاندې پخپله هغه مړشو اوس سامان هغه سره دې خو پيسه نشته بلکه مفلس دې بهر حال مال دَ ديوالونو دَ سورو اودَ لاس دَ خيری په شان ختميدونکې دې لهذا دَ قدرت دَ طرف نه کله چه په يوانسان باندې داسې حالت راشی نو اسلام نورو انسانانوته دَهغه دَ امداد کولو او هغه ته دَ تسلئی ورکولو حکم ورکړې دې دَ باب په احاديثو کښې هم دغه حقيقت بيان کړې شوې دې

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۸۹۹] دَ مفلس باره کښې يو حکم**

۲۸۹۹—[۱] (۱) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «أَيُّمَا رَجُلٍ أَفْلَسَ فَأَدْرَكَ رَجُلٌ مَالَهُ بِعَيْنِهِ [۳] فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ مِنْ غَيْرِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] که يو سړی مفلس شي او هغه سړی، چې هغه د هغه په لاس مال خرڅ کړي وو د هغه سره، خپل مال بعينه پيدا کړي [۳] نو هغه د بل په مقابله کې د هغه مال زيات حقدار دی. (بخاري مسلم)

**تسهيلات:** **قوله:** فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ:

**صورت د مسئلې:** — يو سړی دَچانه څه سودا قرض واخسته اوس هغه لا پيسې ادا کړې نه وې چه هغه قاضي ديواليه اوګرځولو. اوس هغه سودا دغه مفلس سره څنګه چه وه موجود ده په دې کښې دَ دغه مفلس قرض خواه راؤرسيده او په دې کښې هغه سړې هم راغلو چه دې مفلس ته ئې دَ سودا مال ورکړې وو

**د مشتری د افلاس په صورت کښې د بائع د خپل مال په ملکيت کښې اغستلو باره کښې مذاهب:** -

مذکوره صورت کښې چې عقد فسخ شي نو په دې کښې دَ فقهاؤ اختلاف دې

① ائمه ثلاثه وائي چه دا سړې خپل مال اخستې شي عقد دې فسخ کړی او خپل مال دې اوچت کړی څي دې دَ باقي کسانو په دغه مال کښې هيڅ حق نشته دې دا سړې احق بماله دې

② امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي دا سړې خپل مبيع واپس نه شي اخستې بلکه اوس دا غريم باقي غرماء سره په مطالبه کښې برابر شريك دې اوس به دا مال خرڅولې شي او پيسې راؤړوسره به په ټولو قرض خواهانو تقسيم کولې شي دَ صاحبين، امام زهری، حسن بصری او عمر بن عبدالعزيز رحمهم الله مسلك هم دغه دې

**د اول فريق دلائل:** — زيربحث حديث د اول فريق مستدل دې چه په خپله مدعا باندې واضح دليل دې

---

۱) اخرجه البخاری فی كتاب الإجارة/باب إذا وجد ماله عند مفلس فی البيع، والقرض والوديعة، فهو أحق به (رقم-٢٤٠٢) ومسلم فی كتاب المساقاة/باب من أدرك ما باعه عند المشتری وقد أفلس فله الرجوع فيه (رقم-٢٢ - (١٥٥٩) اخرجه ابو داود فی السنن أبواب الإجارة/باب فی الرجل يفلس فيجد الرجل متاعه بعينه عنده (رقم-٣٥٢٠) والترمذی فی كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء إذا أفلس للرجل غريم فيجد عنده متاعه (رقم: ١٢٦٢) والنسائی فی كتاب البيوع/باب الرجل يبتاع البيع فيفلس، ويوجد المتاع بعينه (رقم-٤٦٧٦) وابن ماجة فی كتاب الحدود/باب العبد يسرق (رقم-٢٥٩٠) ومالك فی الموطا كتاب البيوع/باب ما جاء فی إفلاس الغريم (رقم-٨٨) واحمد فی المسند: ٤٦٨/٢

**د اول فريق د دليل ځواب:** - اول فريق مستدل په عاريت يا مال مرهون يا مال مغصوب يا مال مسروق باندې حمل کوی ددې وجې استدلال صحيح نه دې
② دا حديث بيع الخيار باندې محمول دې چه دخيار دوران کښې بائع ته پته اولګيدله چه مشتری مفلس شوې دې نوهغه خپل خرڅ شوې مال واپس کولې شی لکه چه دا حديث دبيع فسخ کولو دخيار سره متعلق دې بهرحال دا يوتاويل دې
**د دويم فريق دلائل:** - دويم فريق فرمائی چه هم ددې حديث د الفاظونه معلوميږی چه دلته د بيع اوشراء مسئله نه ده بلکه مسئله خوځه بل څه ده ځکه چه دبيع اوشراء نه پس دا مال د مالک د لاس نه اووتلو اوس ددې مالک مشتری دې کوم چه مفلس دې اوس په دې مال کښې د دې مخکينی مالک او غريم نورو غرماء سره برابرشريک وی په دې سلسله کښې
① امام طحاوی رحمه الله د يو روايت څخه استدلال کړې دې الفاظ ئې دادی «عن سمرة قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من سرق له متاع اوضاع له متاع فوجده في يدرجل بعينه فهواحق به ويرجع المشتري على البائع بالثمن» [طحاوی: ۲/۲۴۴]
هم دغه روايت په ابن ماجه کښې په دې الفاظوسره نقل دې «اذاضاع للرجل متاع أوسرق له متاع فوجده في يدرجل يبيعه فهوأحق به فيرجع المشتري على البائع بالثمن»
② د حضرت علی رضی الله عنه قول دې دکوم الفاظ چه دادی "هواسوة للغرماء اذاوجدهابعينها" ددې روايتونومطلب هم دغه دې که يوغل د چا نه څه مال پټ کړو او خرڅ ئې کړو اومالک د مشتری په لاس کښې خپل مال اوليدلو نود دغه مشتری نه دا مالک خپل مال اخستې شی په دې کښې د تولو نه زيات حقدار دې چه خپل مال واپس کړی او نور قرضخوا ده سره شريک نه وی بيا به مشتری خپلې پيسې د بائع نه واپس کوی چاچه مال پټ کړې وو او په ده باندې خرڅ کړې وو

## [۲۹۰۰] د مفلس د امداد حکم

٢٩٠٠-[٥](١) [١] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «أُصِيبَ رَجُلٌ فِي عَهْدِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي ثِمَارٍ ابْتَاعَهَا، [٢] فَكَثُرَ دَيْنُهُ، [٣] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - تَصَدَّقُوا عَلَيْهِ، [٤] فَتَصَدَّقَ النَّاسُ عَلَيْهِ فَلَمْ يَبْلُغْ ذَلِكَ وَفَاءَ دَيْنِهِ، [٥] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِغُرَمَائِهِ: " خُذُوا مَا وَجَدْتُمْ [٦] وَلَيْسَ لَكُمْ إِلَّا ذَلِكَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

١) اخرجه مسلم في كتاب المساقاة/باب استحباب الوضع من الدين (رقم-١٨ - (١٥٥٦) والترمذي في كتاب الزكاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب من تحل له الصدقة من الغارمين وغيرهم (رقم: ٦٥٥) والنسائي في كتاب البيوع/باب الرجل يبتاع البيع فيفلس. ويوجد المتاع بعينه (رقم-٤٦٧٨) وابن ماجة في كتاب الأحكام/باب تفليس المعدم والبيع عليه لغرمائه (رقم-٢٣٥٦)

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوسعيد رضي الله عنه وايي چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې يو سړی د ميوو په سخت نقصان کې مبتلا شو چې هغه واخستې وه [٢] او د هغه په وجه هغه ډير زيات قرضدار شو (د هغه حالت ليدو سره) [٣] رسول الله ﷺ خلقو ته وفرمايل چې د صدقې په ذريعه د ده مدد وکړئ (چې د ده څخه د قرض بوج سپک شي) [٤] خلقو د صدقې په ذريعه د هغه مدد وکړي خو د خلقو دا مدد هم د هغه قرض پوره کولو د پاره کافي نه شو ، [٥] د دې څخه وروسته حضور ﷺ د هغه قرض خواهانو ته وفرمايل چې د ده څخه چې درته څه حاصل شي بس هغه ترې نه واخلئ، [٦] د دې څخه علاوه به درته نور څه نه حاصليږي . مسلم

**حل اللغات** - ① أُصِيبَ: مبتلا شو . نقصان اورسيدو . ② غُرَمَائِهِ: قرض خواهان. قرض غوښتونکي.

**تسهيلات:**

**قوله** وَلَيْسَ لَكُمْ إِلَّا ذَلِكَ:

**د مذکوره جملې مطلب:** – په حديث پاک کښې د دې جملې دا مطلب نه دې چه د قرض خواه باقي قرض ختم شو بلکه مطلب دا دې چه کله تا د ده موجوده مال واغستو نو اوس ت له د دې مفلس او محتاج کس ته قيد کولو وغيره هيڅ اختيار نشته لهذا باقي قرضه به د مفلس د حالاتو د خه کيدو نه پس وصول کولې شي فهو أحق به رجل نه مراد حضرت معاذ بن جبل رضي الله دې

**[٢٩٠١] د قرض په وصولولو کښې د نرمئ ثواب**

[٣] (١) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [٢] «كَانَ رَجُلٌ يُدَايِنُ النَّاسَ [٣] فَكَانَ يَقُولُ لِفَتَاهُ: إِذَا أَتَيْتَ مُعْسِرًا تَجَاوَزْ عَنْهُ، لَعَلَّ اللَّهَ يَتَجَاوَزُ عَنَّا. [٤] قَالَ: فَلَقِيَ اللَّهَ فَتَجَاوَزَ عَنْهُ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] يو سړی وو چې د خلقو سره به يې د قرض راکړه ورکړه کوله (يعني خلقو ته به يې قرض ورکولو) [٣] او هغه خپل کارنده ته دا ويلي وو چې کله يو تنګ دست ته (د قرض د وصولولو د پاره) ورشئ نو هغه ته درګذر (معافي) کوه شايد الله تعالى مونږ ته هم معافي وکړي [٤] (نو حضور ﷺ وفرمايل) هر کله چې هغه سړی د الله تعالى سره ملاقات وکړي (يعني هغه وفات شو) نو الله تعالى هغه ته معافي وکړه (او د هغه په ګناهونو يې څنې مواخذه ونه کړه) مسلم

**حل اللغات:** - ① يُدَايِنُ: د قرض لين دين. ② مُعْسِرًا: تنګ دسته، غريب

١) اخرجه البخاري في كتاب البيوع/باب من أنظر معسرا (رقم-٢٠٧٨) ومسلم في كتاب المساقاة/باب فضل إنظار المعسر (رقم-٣١ - (١٥٦٢) واحمد في المسند: ٢/٢٦٣

**قوله** لَعَلَّ اللّٰهَ يَتَجَاوَزُ:

**اعتراض:** - په حديث کښې ئ اول اوفرمائيل چه مفلس ته درگزر اوکړئ ښکه کيدې شي چه الله تعالى زمونږ ته درگزر اوکړی فتجاوزعنا دا الفاظ ئې نقل کړی دی او د حديث په آخر کښې ئې اوفرمائيل چه فتجاوز عنه د مفرد صيغه ده چه الله تعالى ده ته درگزر اوکړو حالانکه په ماقبل کښې ئې د جمع صيغه ذکر کړې وه نو دلته هم د جمع صيغه ذکر کول پکار دی؟

**داعتراض جواب:** - هغه ويونکی خپل ځان شامل کړو د جمع ضمير ئې ښکه راوړو چه کوم کس داسې کار اوکړی نو الله تعالى به ده ته درگزر کوی او دې به په جنت کښې د دخول اولی مصداق وی.

**[٢٩٠٢] تنګدسته باندې د آسانی کولو فضيلت**

٢٩٠٢ - [٣] (١) ١ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " ٢ «مَنْ سَرَّهُ أَنْ يُنْجِيَهُ اللّٰهُ مِنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ ٣ فَلْيُنَفِّسْ عَنْ مُعْسِرٍ أَوْ يَضَعْ عَنْهُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوقتاده ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ کوم سړي ته چې دا خبره خوښه وی چې الله تعالى ﷻ دې د قيامت د سختيو ښخه وساتی ٣ نو هغه دې تنګ دست ته مهلت ورکړي يا دې خپله قرضه ورته معاف کړي (يعنی خپل قرض پوره يا چې څومره ممکن وی ورته معاف دې کړی) مسلم

**حل اللغات:** - ① كُرَب: سختئ، تکاليف. ② فَلْيُنَفِّسْ: مهلت دې ورکړی. ③ يَضَعْ عَنْهُ: کيدې ږدی دهغه نه. يعنی دهغه قرض دې معاف کړی.

**قوله:** فَلْيُنَفِّسْ عَنْ مُعْسِرٍ أَوْ يَضَعْ عَنْهُ:

**د نفل په فرضو باندې افضليت:** - د دې حديث لاندې ملا علی قاری رحمه الله فرمائی چه فرض د نفل نه اويه (٧٠) درجې افضل دې ليکن بعضو مسائلو کښې نفل اعمال د فرائضو نه زيات فضيلت لری په هغې کښې ښې دردې

① مفلس ته قرض معاف کول اگرچه دا مستحب دی خو دا فضل دی د دينه چه مفلس ته مهلت ورکړې شی او مهلت ورکول واجب دی (نو اوس دلته مستحب د واجب نه افضل دې)

② بل ته سلام کولو کښې ابتدا کول سنت دی او د سلام جواب ورکول واجب دی نو دا سنت د واجبو نه افضل شو

③ د وخت نه مخکښې اودس کول مستحب دی خو دا افضل دی د دينه چه وقت نه پس اودس اوکړې شی کوم چه فرض وی

١) اخرجه مسلم في كتاب المساقاة/باب فضل إنظار المعسر (رقم-٣٢ - (١٥٦٣)

[٢٩٠٣] د قيامت د سختئ آسانولو يوه طريقه

٢٩٠٣-[د] [١] وَعَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: "[٢] «مَنْ أَنْظَرَ مُعْسِرًا أَوْ وَضَعَ عَنْهُ [٣] أَنْجَاهُ اللهُ مِنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوقتاده رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړی چې په خپله مطالبه وصولولو کې مفلس ته مهلت ورکړي يا هغه ته (خپله پوره مطالبه يا څه حصه معاف کړي [٣] نو الله ﷻ به هغه ته د قيامت د ورځې د سختيو څخه خلاصون ورکړي. (مسلم)

**حل اللغات** - ① أَنْظَرَ: اوګوري، مهلت ورکړي، ② مُعْسِرًا: تن ګدست، ③ كُرَب: سختي، تکليف

**تسهيلات:**

**نوټ:** - ددې حديث تشريح د حديث نمبر (٢٩٠٢) په تسهيل کښې شوې ده

[٢٩٠٤] د قيامت په ورځ د الله تعالى د سيورې حاصلولو يوه ذريعه

٢٩٠٤-[٧] (١) [١] وَعَنْ أَبِي الْيَسَرِ قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: "[٢] «مَنْ أَنْظَرَ مُعْسِرًا أَوْ وَضَعَ عَنْهُ [٣] أَظَلَّهُ اللهُ فِي ظِلِّهِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابواليسر رضي الله عنه وايي چې ما واوريدل چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړی چې تنګدست ته مهلت ورکړي يا هغه معاف کړي [٣] نو الله ﷻ به هغه ته د خپل رحمت په سورې کې ځای ورکړي (يعني د قيامت په ورځ به هغه د ګرمي د تاؤ او د هغه ورځې د سختيو څخه محفوظ کړي) مسلم

**حل اللغات** - ① أَنْظَرَ: اوګوري، مهلت ورکړي، ② مُعْسِرًا: تنګ دست، ③ أَظَلَّهُ: سيورې به ورکړي. د سختو نه به ئې اوساتي.

**قوله أَظَلَّهُ اللهُ فِي ظِلِّهِ:**

**دمذکوره قول په توجيه کښې درې اقوال: -**

① د قيامت د ګرمۍ د تپش نه به محفوظ وي

② د عرش د سورې لاندې به دې اودرولې شي

③ ددې نه مراد عزت و اکرام دې

[٢٩٠٥] په ښه طريقه د قرض اداکولو فضيلت

٢٩٠٥-[-] (٢) [١] وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: "[٢] «اسْتَسْلَفَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بَكْرًا [٣] فَجَاءَتْهُ إِبِلٌ مِنَ الصَّدَقَةِ. [٤] قَالَ أَبُو رَافِعٍ: فَأَمَرَنِي أَنْ أَقْضِيَ الرَّجُلَ بَكْرَهُ. [٥] فَقُلْتُ: لَا أَجِدُ إِلَّا جَمَلًا خِيَارًا

١) اخرجه مسلم في كتاب الزهد والرقائق/باب حديث جابر الطويل وقصة أبي اليسر (رقم-٧٤ - (٣٠٠٦)

٢) اخرجه مسلم في كتاب المساقاة/باب من استسلف شيئا فقضى خيرا منه. وخيركم أحسنكم قضاء(رقم-١١٨ - (١٦٠٠)

رَبَاعِيًا. [٦] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَعْطِهِ إِيَّاهُ فَإِنَّ خَيْرَ النَّاسِ أَحْسَنُهُمْ قَضَاءً" . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابو رافع رضي الله عنه وايي [٢] (يو ځل) رسول الله ﷺ د يو خوان اوښ قرض واخستلو [٣] بيا چې حضور ﷺ ته د زکوة اوښان راغلل [٤] نو ابو رافع رضي الله عنه وايي حضور ﷺ ماته حکم راکړې چې زه هغه سړي ته، د چا څخه چې حضور ﷺ اوښ قرض آخستلو وو. هغه شان يو اوښ ورکړم. [٥] ما عرض اوکړو چې ماته خو هغه شان هيڅ اوښ په نظر نه راځي، البته يواوښ دی چې د هغه د اوښ څخه ښه دی، او اووم کال يې شروع دی (نو زه هغه ته د هغه د اوښ څخه ښه اوښ څنګه ورکړم) [٦] حضور ﷺ وفرمايل چې هغه ته ښه اوښ ورکړه، ځکه چې په خلقو کې بهترين سړی هغه دی چې د قرض په ادانيګی کې د ټولو څخه ښه وي. (مسلم)

**حل اللغات**: - ① اِسْتَسْلَفَ: بيع سلف ئې اوکړه، يعنی تاخير سره د مبيع وصولولو په نغدو باندې بيع کول. ② بَكْرًا: خوان اوښ. ③ جَمَلًا: اوښ. ④ خِيَارًا: غوره. ⑤ رَبَاعِيًا: اوښ چه اووم کال ئې روان وی.

**نوټ**: - ددې حديث شرح د حديث نمبر (٢٨٢١) په تسهيل کښې تيره شوې دې

## [٢٩٠٦] قرض ورکونکي دپاره د سختئ کولو جواز

٢٩٠٦ - [١] (١) [١] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ «أَنَّ رَجُلًا تَقَاضَى رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَغْلَظَ لَهُ، [٢] فَهَمَّ أَصْحَابُهُ، فَقَالَ: " دَعُوهُ، فَإِنَّ لِصَاحِبِ الْحَقِّ مَقَالًا، [٣] وَاشْتَرُوا لَهُ بَعِيرًا، فَأَعْطُوهُ إِيَّاهُ، [٤] قَالُوا: لَا نَجِدُ إِلَّا أَفْضَلَ مِنْ سِنِّهِ. [٥] قَالَ: " اشْتَرُوهُ فَأَعْطُوهُ إِيَّاهُ [٦] فَإِنَّ خَيْرَكُمْ أَحْسَنُكُمْ قَضَاءً» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [١] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې يو سړی د رسول الله ﷺ څخه د هغه اوښ مطالبه وکړه (چې حضور ﷺ د هغه څخه په طور د قرض آخستلو وو) او مطالبه يې په ډير سخت کلام سره وکړه [٢] د حضور ﷺ صحابه وو رضي الله عنهم چې هغه (د دې سخت کلامي او د آداب نبوت خلاف د هغه په حرکت) سزا ورکول وغوښتل نو حضور ﷺ وفرمايل چې ده ته هيڅ مه وايئ ځکه چې د چا حق دی هغه ته د ويلو اختيار دی [٣] البته داسې وکړئ چې يو اوښ رانيولو سره ده ته ورکړئ چې د ده مطالبه اداء شي او بيا د څه ويلو حق به يې پاتې نشي. [٤] صحابه وو رضي الله عنهم عرض اوکړو چې (هغه تا ته کوم اوښ په طور د قرض درکړي وو) د هغه د عمر څه اوښ خو نشته. بلکه د هغه څخه د زيات عمروالا شته (يعني د هغه اوښ وړوکی او کمتر وو او زمونږ سره چې کوم اوښ دی د هغه د اوښ څخه لوی اوښ دی)

[١] اخرجه البخاري في كتاب الإجارة/باب الوكالة في قضاء الديون (رقم-٢٣٠٦) ومسلم في كتاب المساقاة/باب من استسلف شيئا فقضى خيرا منه. وخيركم احسنكم قضاء (رقم-١٢٠ - (١٦٠١)) واخرجه ابو داود في السنن كتاب البيوع/باب في حسن القضاء (رقم-٣٣٤٦) والترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في استقراض البعير أو الشيء من الحيوان أو السن (رقم: ١٣١٨) والنسائي في كتاب البيوع/باب استسلاف الحيوان واستقراضه (رقم-٤٦١٧) وابن ماجة في كتاب التجارات/باب السلم في الحيوان (رقم-٢٢٨٥)

[۵] حضور ﷺ وفرمايل (کوم اوښ چې نه حاصليږي) هغه واخلئ (اګر چې د هغه د اوښ په نسبت لوی اوښ دی) او هغه ته يې ورکړی[۶] يادلرئ په تاسو کې بهترين سړی هغه دی چې د قرض په اداء کولو کې ښه وی. (بخاري مسلم)

**حل اللغات** - ①أَغْلَظَ: سختی ئې اوکړه. ②هَمَّ: قصد، اراده کول. ③دَعُوهُ: پريږدئ. ④مَقَالًا: دخبرو کولو. ⑤سِنِّهِ: زيات عمر والا.

**تسهيلات:**

**قوله: دَعُوهُ، فَإِنَّ لِصَاحِبِ الْحَقِّ مَقَالًا**

**د قرض غوښتونکی سختی اود نبی عليه السلام صبر:** - د نبی کريم ﷺ نه دخپل قرض مطالبه کونکې اوبيا په قرض غوښتلوکښې سختې خبرې کونکې به څوک کافروو. که هغه يهودی وو اوکه بل څوک وو. بعضې حضرات وائی چه شايد څوک شاړياړ کلی وال او د باندې اوسيدونکې به وو، چه هغه د نبوی مجلس اود مقام نبوت د آدابو نه بالکل ناخبره وو، چه هغه کښې دومره ادب هم نه وو چه دچا سره څنګه خبره کولې شی. ددې په عکس چه نبی کريم ﷺ دهغه خبرې کوم صبر اواستقامت سره اوپه خوش اخلاقئ سره برداشت کړې هغه صرف د نبوت خاصه کيدې شی.

**قوله: فَإِنَّ لِصَاحِبِ الْحَقِّ مَقَالًا:**

**د قرض په وصولئ کښې دسختئ جواز:** - چه دچا حق وی هغه ته دخبرو کولو اختيار وی، ددې په باره کښې ابن ملک رحمه الله فرمائی چه دلته د حق نه مراد قرض دې، يعنی که ديوکس په چا باندې څه قرض وی اوهغه قرضدار په قرض اداکولو کښې تاخير اوکړی نوقرض خواه ته داحق حاصليږی چه دهغه نه سختئ سره تقاضا اوکړی، دهغه نه د خفګان اظهار اوکړی اوکه هغه بيا هم قرض ادا نه کړی نوحاکم او عدالت طرف ته دې رجوع اوکړی

**[۲۹۰۷] دقدرت باوجود قرض نه واپس کولو باندې د ظلم اطلاق**

۲۹۰۷—[۹] (۱)[۱] وَعَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "[۲]«مَطْلُ الْغَنِيِّ ظُلْمٌ[۳] فَإِذَا أُتْبِعَ أَحَدُكُمْ عَلَى مَلِيءٍ فَلْيَتْبَعْ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د صاحب استطاعت (د قرض په آدائيګۍ کې) تاخير کول ظلم دی [۳] او هر کله چې په تاسو کې څوک صاحبِ استطاعت ته حواله کړی شي نو هغه حواله قبلول پکار دی. (بخاري مسلم)

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب الحوالة. وهل يرجع فی الحوالة؟ (رقم-۲۲۸۷) ومسلم فی کتاب المساقاة/باب تحريم مطل الغنی. وصحة الحوالة. واستحباب قبولها إذا أحيل علی ملی (رقم-۳۳ - (۱۵۶۴) والترمذی فی کتاب البيوع عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی استقراض البعير أو الشیء من الحيوان أو السن (رقم: ۱۳۱۷) واحمد فی المسند: ۲/۴۱۶

**حل اللغات** - ①مَطْلُ: ټال متول کول، چل ول کول. ②اَلْغَنِيّ: مالدار. ③مَلِيء: په وزن د کریم، صاحب استطاعت، مالدار. ④تَبْعَ: په سکون د ت او ع سره، حواله دې کړی.

**تسهیلات:**

**قوله مَطْلُ الْغَنِيّ ظُلْمٌ:**

**د لفظ مطل معنی او شرعی حکم:**- مطل یمطل مطلاً نصر ینصر نه د قرض واپس کولوکښې ټیل ټال ته وائی مطلب دا چه یوسړې د چا قرض داری دې او په قرض اداکولو باندې قادرهم دې د قدرت نه باوجود قرض نه اداکوی دا ظلم دې ددې په وجه دې قیدکولې شی علماؤ لیکلی دی چه کوم سړې د طاقت نه باوجود بار بار د قرض په اداکونوکښې ټیل ټال نه کار اخلی هغه فاسق جوړیږی اود هغه گواهی رد کولې شی

**قوله فَإِذَا أُتْبِعَ:**

**د اتبع څخه مراد:**- اتباع د حواله کولوپه معنی کښې ده مطلب دادې چه مدیون قرض خواه ته د چ حواله ورکړه چه کوم قرض په ماباندې دې هغه د فلانکی نه وصول کړه څکه چه زما قرض په هغه باندې دې نودې قرض خواه له پکاردی چه دغه حواله قبوله کړی اود هغه مالدارنه خپل قرض وصول کړی

**د حواله د قبلولو حکم:**- مګر په دې کښې د علماؤ کلام دې چه آیا حواله قبلول واجب دی که مستحب دی بعض واجب وئیلی دی او بعض داحدیث په استحباب باندې حمل کوی تفصیل د فقه کتابونوکښې کتل پکاردی.

**[٢٩٠٨] د دائن اومدیون جګړه ختمول**

٢٩٠٨-[١٠] (١) ①وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - ②«أَنَّهُ تَقَاضَى ابْنَ أَبِي حَدْرَدٍ دَيْنًا لَهُ عَلَيْهِ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي الْمَسْجِدِ ③فَارْتَفَعَتْ أَصْوَاتُهُمَا حَتَّى سَمِعَهَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ فِي بَيْتِهِ ④فَخَرَجَ إِلَيْهِمَا رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَتَّى كَشَفَ سِجْفَ حُجْرَتِهِ،

**ترجمه**: او د حضرت کعب ابن مالك رضی الله عنه په باره کې منقول دی چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې یوه ورځ هغه په مسجد نبوي کې د ابن ابي حدرد څخه د خپل قرض د واپسی مطالبه وکړه تردې چې د دواړو آوازونه اوچت شول او رسول الله ﷺ چې هغه وخت په خپله حجره مبارکه کې تشریف فرما وو د هغه دواړو آوازونه یې واوریدل نو د حجري څخه د بهر

١) اخرجه البخاری فی کتاب الصلاة باب التقاضی [ص:٩٩] والملازمة فی المسجد (رقم-٤٥٧) ومسلم فی کتاب المساقاة/باب استحباب الوضع من الدین (رقم-٢٠ (١٥٥٨)و اخرجه ابو داود فی السنن کتاب البیوع/باب فی المطل (رقم-٣٣٤٥)والترمذی فی کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی مطل الغنی أنه ظلم (رقم-١٣٠٨)والنسائی فی کتاب البیوع/باب الحوالة (رقم ٤٦٩١) وابن ماجه فی کتاب الصدقات/باب الحوالة (رقم-٢٤٠٣) ومالک فی الموطا کتاب البیوع/باب جامع الدین والحول (رقم ٨٤ واحمد فی المسند: ٧١/٢

راوتلو اراده يې وکړه حضور ﷺ د خپلې حجرې پرده پورته کړه

**حل اللغات** - ①تَقَاضَى: تقاضا او مطالبه کول. ②كَشَفَ: پرده لرې کول. ③سِجْف: د دروازې پرده. ④حُجْرَتِهِ: کوټه. کوړ.

| |
|---|
| [١]وَنَادَى كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ، قَالَ: "يَا كَعْبُ" [٢]قَالَ: لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللهِ![٣]فَأَشَارَ بِيَدِهِ أَنْ ضَعِ الشَّطْرَ مِنْ دَيْنِكَ،[٤]قَالَ كَعْبٌ: قَدْ فَعَلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ،[٥]قَالَ "قُمْ فَاقْضِهِ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |

**ترجمه**: [١]او کعب ابن مالک رضي الله عنه ته مخاطب کولو سره يې وفرمايل چې اې کعب [٢]کعب ابن مالک رضي الله عنه عرض اوکړو چې يا رسول الله ﷺ حاضر يم. [٣]حضور ﷺ د خپل لاس مبارک په ذريعه هغه طرف ته اشاره وکړه چې د خپل قرض نيمه حصه ورته معاف کړه [٤]کعب رضي الله عنه عرض اوکړو چې يا رسول الله ﷺ ما ورته معاف کړه. [٥]د دې ځخه وروسته حضور ﷺ ابن ابي حدرد رضي الله عنه ته وفرمايل چې اوس لاړ شه او باقي قرض اداء کړه. بخاري

**حل اللغات** - ⑤ضَعِ: پريږده، معاف کړه. ⑥الشَّطْرَ: نيمه حصه.

**تسهيلات**: **قوله**: تَقَاضَى:

**د تقاضى مطلب**:- دا د طلب کولو په معنى کښې دې معلومه شوه چه په جمت کښې د قرض مطالبه کول جائز دى. مطالبه کونکې حضرت کعب رضي الله عنه وو او مديون ابن ابى حدرد رضي الله عنه وو

**قوله**: فَاقْضِهِ:

**د مذکوره جملې مفهوم**:- حضرت کعب رضي الله عنه چه کله نيم قرض معاف کړو نوحضورپاک ابوحدرد رضي الله عنه ته اوفرمائيل چه اوس اودريږه او باقى حصه فوراً اداکړه. د دې حديث نه معلومه شوه چه د تنازعه په صورت کښې مشرانوله فيصله کول پکاردى او يوطرف ته سفارش کول هم جائز دې او د اصلاح هر کوشش د ثواب سبب دې

**[٢٩٠٩] رسول الله صلى الله عليه وسلم د قرضدار جنازه نه کول**

| |
|---|
| ٢٩٠٩-[٨] (١)[١]وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: «كُنَّا جُلُوسًا عِنْدَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [٢]إِذْ أُتِيَ بِجِنَازَةٍ،[٣]فَقَالُوا: صَلِّ عَلَيْهَا.[٤]فَقَالَ: هَلْ عَلَيْهِ دَيْنٌ؟ قَالُوا: لَا فَصَلَّى عَلَيْهَا،[٥]ثُمَّ أُتِيَ بِجِنَازَةٍ أُخْرَى، فَقَالَ: هَلْ عَلَيْهِ دَيْنٌ؟[٦]قَالُوا: نَعَمْ،[٧]قَالَ: "فَهَلْ تَرَكَ شَيْئًا؟"[٨] قَالُوا: ثَلَاثَةَ دَنَانِيرَ فَصَلَّى عَلَيْهَا ثُمَّ أُتِيَ بِثَالِثَةٍ. |

**ترجمه**: [١]او حضرت سلمه بن اکوع رضي الله عنه وايي چې مونږ خلق د رسول الله ﷺ په مجلس کې

١) اخرجه البخاري في كتاب الإجارة/باب إن أحال دين الميت على رجل جاز (رقم -٢٢٨٩) وابوداود في السنن كتاب البيوع/باب في التشديد في الدين (رقم -٣٣٤٣)

حاضر وو[٢] چې يوه جنازه راوړل شوه[٢] صحابه ﷺ حضور ﷺ ته عرض اوکړو چې د جنازې مونځ ورکړي[٣] حضور ﷺ وفرمايل چې په ده خو قرض نشته؟ صحابه وو ﷺ اوويل چې نا . نو حضور ﷺ د هغه د جنازې مونځ وکړي. [٥]بيا بله جنازه راوړل شوه حضور ﷺ وفرمايل چې په ده خو څه قرض نشته؟ [٦]عرض وشو چې هو، قرض ورباندې شته، [٧]حضور ﷺ پوښتنه وکړه ده څه پريښي دي که نه؟ [٨] صحابه وو ﷺ عرض اوکړو چې درې ديناره يې پريښي دي (د دي اوريدو سره، حضور ﷺ په هغه د جنازې مونځ وکړي بيا يوه دريمه جنازه راوړل شوه،

[١] فَقَالَ هَلْ عَلَيْهِ دَيْنٌ؟ قَالُوا: ثَلَاثَةُ دَنَانِيرَ. [٢] قَالَ: هَلْ تَرَكَ شَيْئًا؟ قَالُوا: لَا، [٣] قَالَ: " صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ " [٤] قَالَ أَبُو قَتَادَةَ: صَلِّ عَلَيْهِ يَا رَسُولَ اللهِ وَعَلَيَّ دَيْنُهُ فَصَلَّى عَلَيْهِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: [١]حضور ﷺ پوښتنه وکړه چې په ده څه قرض خو نشته؟ صحابه وو ﷺ عرض اوکړو چې هو. درې ديناره ورباندې قرض دی.[٢] حضور ﷺ وفرمايل دی د څه پريښودلو سره مړشوی دی که نه؟ عرض وشو چې هيڅ يې نه دي پريښي. [٣]نو حضور ﷺ وفرمايل چې بيا تاسو په خپل ملګري جنازه وکړي

[٤]ابوقتاده ﷺ (چې دا واوريدل نو هغه) اوويل چې يا رسول الله ﷺ ته په ده د جنازې مونځ وکړه دده قرض به زه اداء کړم. بيا حضور ﷺ د هغه د جنازې مونځ وکړي. بخاري

**تسهيلات**:

**قوله**: جِنَازَةٍ:

**په مديون باندې د جنازې مونځ کولو نه د انکار کولو وجوهات**:- ممکن دی چه درېواړه جنازې هم په يوه ورځ هم په يومجلس کښې حاضرې کړې شوی وی اودا هم ممکن ده چه جدا جدا ورځو کښې او په جدا جدا وختونو کښې راوړلې شوی وی حضورپاك دَ مديون دَ جنازې نه کولو څخه انکار اوکړو

① عاموخلقوته د عبرت حاصلولو په غرض نبی کريم ﷺ انکار کړې وو چې امت دَ قرض اخستلو نه خان اوساتی اوکه دَ مجبورئی دَ وجې نه قرض اخستل هم وی نوچه دَهغې په اداکولوکښې کوتاهی اونه کړی

② رسول الله ﷺ دَ جنازې نه کولونه په دې وجه معذرت اوکړو چه يوطرف ته به حضورپاك دَ مړی دَپاره دعاکوی شفاعت به وی اوبل طرف ته به دَحقوق العباد دَ وجې نه دعا نه قبليږی

**حديث نه د جمهورو استدلال**:- ددې حديث نه داخبره واضحه شوه چه دَمړی دَ طرف نه ضامن جوړيدل جائز دی اودَ جمهورو اوصاحبين هم دغه مسلك دې

**د امام ابو حنيفه رحمه الله جواب**:- امام ابوحنيفه ﷺ فرمائی چه دَ مړی دَ طرف نه ضامن کيدل جائز نه دی هغوی دَ زيربحث حديث مطلب دا اخلی چه حضرت ابوقتاده ﷺ

ضمانت او کفالت نه وو کړې بلکه د احسان په توګه ئې د مړي د قرض اداکولو وعده کړې وه لکه چه په حديث نمبر (٢٨٩) کښې ذکر دی

**د حديث محمل او محل:** - بهرحال دا د هغه وخت خبره وه کوم وخت چه حضور پاك سره د غنيمت مالونه نه وو راغلی کله چه غنيمتونه راغله او حضور پاك ته مالی فراخوالي حاصل شو نو حضور پاك اعلان اوکړو چه کوم مړی ميراث پريخودې وی هغه د هغه د وارثانو دې او چاچه د څه مال بوج پريخودو هغه ذمه واری په ما باندې ده

**[٢٩٠] د قرض د ادا کولو نيت کونکي سره نصرت خداوندی**

٢٩٠- [٢] (١) ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "②«مَنْ أَخَذَ أَمْوَالَ النَّاسِ يُرِيدُ أَدَاءَهَا أَدَّى اللَّهُ عَنْهُ، ③وَمَنْ أَخَذَ يُرِيدُ إِتْلَافَهَا أَتْلَفَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوهريره ﷺ د رسول الله ﷺ نه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② کوم سړی چې د خلقو مال واخلي او د هغه د اداء کولو اراده لري (يعني د څه ضرورت په بناء قرض واخلي او د قرض د آدائيګۍ اراده هم لري او د هغه د اداء کولو کوشش هم کوي) نو الله ﷻ به د هغه، هغه مال اداء کوي (يعني د قرض د اداء کولو د نيت کونکی سره الله ﷻ مدد کوي په دې طور چې يا خو په دنيا کې د قرض د اداء کولو استطاعت ورکوي يا په آخرت کې حقدار راضي کوي)③ او کوم سړی چې د خلقو مال واخلي او د هغه د ضائع کولو اراده لري (يعني د څه ضرورت څخه بغير د چا څخه قرض واخلي او بيا د هغه د قرض د ادائيګۍ نيت هم نه لري) نو الله ﷻ د هغه مال ضائع کوي يعني کوم سړی چې قرض واخلي او هغه قرض اداء نه کړي او نه يې د اداء کولو نيت لري (نو الله ﷻ نه يواځې دا چې په قرض اداء کولو د هغه مدد نه کوي. او د هغه په رزق کې وسعت او فراخي نه ورکوي. بلکه د هغه مال ضائع کوي هم څکه چې هغه د يو مسلمان د مال ضائع کولو نيت لري)، (بخاري)

**حل اللغات** - ① إِتْلَافَهَا: ضائع کول.

**تسهيلات:**

**قوله** يُرِيدُ أَدَاءَهَا أَدَّى اللَّهُ عَنْهُ:

**د قرض اداء کولو ترغيب:** - د تجربه نه هم ثابته ده او مشاهده هم ده چه کوم خلق قرض په دې نيت باندې اخلی چه نه به ئې اداکوی نو واقعی هغه ته د اداکولو توفيق نه ملاويږی اوکوم خلق چه د مجبورئی د وجې نه قرض اخلی او شپه ورځ د هغې د اداکولو په فکر کښې راګير وی نو الله تعالی يقيناً د هغوی امداد کوی اوقرض نه خلاصيږی. مسلمان له پکار دی

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب من أخذ أموال الناس يريد أداءها أو إتلافها (رقم-٢٣٨٧)واحمد فی المسند: ٣٦١/١

چه د قرض اخستلو نه خان اوساتي او که مجبوره کیدو سره ئې واخلي نو دهغې د اداکولو فکر کول پکار دي دې دپاره چه د حدیث د دې وعید نه بچ شي

**[۲۰] د حقوق العباد عدم معافی**

۲۰-[۲] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «قَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ! ۲ أَرَأَيْتَ إِنْ قُتِلْتُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ صَابِرًا مُحْتَسِبًا مُقْبِلًا غَيْرَ مُدْبِرٍ - يُكَفِّرُ اللّٰهُ عَنْ خَطَايَايَ؟ ۳ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَعَمْ" ، فَلَمَّا أَدْبَرَ نَادَاهُ ۴ فَقَالَ: "نَعَمْ إِلَّا الدَّيْنَ كَذٰلِكَ قَالَ جِبْرِيلُ"». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ او حضرت ابوقتاده ﷺ وایې چې یو سړي عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ ۲ ماته وښایه که زه د الله ﷻ په لار کې ووژل شم په داسې حال کې چې صبر کونکی او د ثواب خواهشمند یم (یعني زه د ښودني او آوروني په غرض نه بلکه خاص د الله ﷻ د رضا او خوشنودی لـه خاطره او د ثواب په طلب کې جهاد وکړم) او داسې جهاد وکړم چې په میدان جنګ کې د ښمن ته شا ونه ګرځوم، بلکه د هغوی په مخکې شینه سپر (سینه مې وړاندې کړې وي) ترديي چې په جنګ کولو کې ووژل شم، نو آیا الله ﷻ به ځما ګناه معاف کړي؟ ۳ رسول الله ﷺ جواب ورکړي چې هو، بیا چې هغه سړي د خپل سوال جواب موندلو سره واپس لاړلو ۴ نو حضور ﷺ هغه ته ور غږ کړو، او وې فرمایل چې هو. الله ﷻ به ستا ګناه یقیناً معاف کړي، خو قرض نه معاف کوي. ماته جبرائیل دا ویلي دي. (مسلم)

**حل اللغات** - ① مُحْتَسِبًا: د ثواب خواهش مند، ثواب غوښتونکې. ② مُقْبِلًا: مخ کونکې یم. ③ غَيْرَ مُدْبِرٍ: شا ګرځونکې نه یم

**تسهیلات:**

**قوله نَعَمْ إِلَّا الدَّيْنَ كَذٰلِكَ قَالَ جِبْرِيلُ:**

**شهید ته هم د قرض نه معاف کیدل:** - دَ شهیدلو مقام دې خو د قرض او دین معامله دومره سخته ده چه دَ شهیدتول ګناهونه کوم چه حقوق الله سره متعلق وی معاف کیږی مګر کوم حقوق چه د بندیګانووی هغه الله تعالی نه معاف کوی په یوبل حدیث کښې هم راغلی دی چه الله تعالی دَ شهیدتول ګناهونه معاف کوی سواد قرض نه او داحکم په خاص توګه جبرائیل آمین راوړلې راغلې وو دَ کوم نه چه معلومه شوه چه وحی متلوکومه چه دَ قرآن په صورت کښې راتلله دې نه علاوه وحی غیرمتلو به هم جبرائیل آمین راوړله

**قرض دار شهید دپاره د خلاصی طریقه:** -په یوبل حدیث کښې راغلی دی چه الله تعالی به

١) اخرجه مسلم فی کتاب الإمارة/باب من قتل فی سبیل الله کفرت خطایاه إلا الدین (رقم-۱۱۷ - (۱۸۸۵)) والترمذی فی کتاب الجهاد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فیمن یستشهد وعلیه دین (رقم-۱۷۱۲) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب من قاتل فی سبیل الله تعالی وعلیه دین (رقم-۳۱۵۶) ومالک فی الموطا کتاب الجهاد/باب الشهداء فی سبیل الله(رقم-۳۱) واحمد فی المسند: ۲۹۷/۵

شهيد سره د قيامت په ورځ دا نرمي اوفرمائي چه قرض خواهانونه به د خپل طرف نه بدله ورکړي اود شهيد مغفرت به اوفرمائي بهرحال د قرض په حواله چه کله د شهيد داحال دې نودعمو خلقو معامله به څومره سخته وي د شهداء باره کښې د ابن ماجه يوروايت دا سې هم دې چه کوم شهيدان په سمندري جنګ کښې شهيدان شوي د هغوي هرقسم ګناهونه معاف کيږي که د حقوق الله متعلق وي اوکه د حقوق العباد متعلق وي

[٢٠٣] د قرض څخه سوا د شهيد ټول ګناهونه معاف کيدل

[٢٩١٤] (١) ١ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ٢ «يُغْفَرُ لِلشَّهِيدِ كُلُّ ذَنْبٍ إِلَّا الدَّيْنَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ او حضرت عبد الله ابن عمرو ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ د شهيد ټوله صغيره او کبيره ګناهونه معاف کول کيږي. خو قرض يعني حقوق العباد نه معاف کيږي. مسلم

**تسهيلات:**

**نوټ:-** د دې حديث وضاحت د حديث نمبر ٢٩١١ په تسهيل کښې تيرشوي دي

[٢٠٣] په امت باندې د نبی عليه السلام شفقت

[٢٩١٥] (٢) ١ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُؤْتَى بِالرَّجُلِ الْمُتَوَفَّى عَلَيْهِ الدَّيْنُ ٢ فَيَسْأَلُ: هَلْ تَرَكَ لِدَيْنِهِ قَضَاءً؟ ٣ فَإِنْ حُدِّثَ أَنَّهُ تَرَكَ وَفَاءً صَلَّى ٤ وَإِلَّا قَالَ لِلْمُسْلِمِينَ: "صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ" ٥ فَلَمَّا فَتَحَ اللهُ عَلَيْهِ الْفُتُوحَ قَامَ

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوهريره ﷺ وايي کله چې به د حضور ﷺ مخې ته د داسې سړي جنازه راوړل شوه چې په هغه به قرض وو ٢ نو مخکې به يې پوښتنه کوله چې آيا دې سړي د خپل قرض د اداء کولو د پاره څه مال پريښې دی؟ ٣ که به وښودل شو چې دومره مال يې پريښې دی چې د هغه سره به د ده قرض اداء کيدی شي. نو حضور ﷺ به د هغه د جنازې مونځ کوی. ٤ او که معلومه به شوه چې هيڅ يې نه دي پريښې. نو بيا به يې نورو مسلمانانو ته فرمايل چې تاسو د خپل ملګري د جنازې مونځ وکړيئ. ٥ بيا چې الله ﷻ د فتوحاتو دروازې خلاصې کړې او د مشرکانو او کفارو د جنګ څخه وروسته د غنيمت په

١) اخرجه مسلم في كتاب الإمارة/باب من قتل في سبيل الله كفرت خطاياه إلا الدين (رقم ١١٩ - (١٨٨٦)

٢) اخرجه البخاري في كتاب الإجارة/باب من تكفل عن ميت دينا. فليس له أن يرجع (رقم ٢٢٩٨)ومسلم في كتاب الفرائض/باب من ترك مالا فلورثته (رقم ١٤ - (١٦١٩) كتاب البيوع/باب في التشديد في الدين (رقم ٣٣٤٣) والترمذي في كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء في الصلاة على المديون (رقم ١٠٧٠) والنسائي في كتاب الجنائز/باب الصلاة على من عليه دين (رقم ١٩٦٣)وابن ماجه في كتاب الصدقات/باب من ترك دينا أو ضياعا فعلى الله وعلى رسوله (رقم ٢٤١٥)واحمد في المسند: ٤٥٣/٢

صورت کې په مال او زرو کې وسعت او کشادګي نصيب شوه، نو حضور ﷺ يوه ورځ د خطبې د پاره ودريدلو

**حل اللغات** - ①وَفَاءً: پوره، برابر، (قرض پوره کونکي مال)

> ①فَقَالَ: أَنَا أَوْلَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ، ②فَمَنْ تُوُفِّيَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ فَتَرَكَ دَيْنًا فَعَلَيَّ قَضَاؤُهُ، ③وَمَنْ تَرَكَ مَالًا فَهُوَ لِوَرَثَتِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او مسلمانان مخاطب کولو سره يې وفرمايل چې زه (د دين او دنيا) په ټولو امورو کې په مسلمانانو د هغوی د ځانونو څخه زيات حق لرم ② کوم مسلمان چې داسې حالت کې مړ شي چې په هغه قرض وي (او هغه دومره مال نه وي پريښې چې د هغه قرض ورباندې اداء شي) نو د هغه د قرض اداء کولو زه ذمه وار يم ③ او کوم مسلمان چې مال پريښودلو سره مړ شي (نو د هغه د مال څخه د هغه د قرض اداء کولو څخه وروسته چې څه پاتې شي) هغه د هغه د وارثانو حق دی. (بخاري مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** أَوْلَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ:

**نبی علیه السلام څخه د ځان څخه زیات محبت ساتل:** - په دې جمله سره دَ قرآن کريم دَدې آيت طرف ته اشاره ده. ﴿النَّبِيُّ أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ وَأَزْوَاجُهُ أُمَّهَاتُهُمْ﴾ [سورت احزاب: ۶]. په دې آيت کښې په واضحه توګه باندې مسلمانانوته حکم ورکړې شوې دې چه دَنبی کريم ذات سره محبت دَخپلو ځانونو نه زيات پکاردې. په هرمسلمان باندې واجب دی چه هغوی دې دَ خپل ځان نه زيات دَ حضورپاك ذات سره محبت ساتی او په خپلو ټولو خواهشاتو اوتقاضو باندې دَ حضورپاك حکم او اطاعت مقدم اوساتی. دَدې تفصيل په کتاب الايمان کښې تيرشوې دې

**د نبی علیه السلام په خپل امت باندې شفقت:** - زيربحث حديث کښې دَ حضورپاك دَ هغه بې پناه شفقت ذکر دې کوم چه دَ حضورپاك دَ طرف نه په خپل امت باندې وو. چنانچه حضورپاك اعلان کړې ووچه که څوك سړې مړشی اوهغه غريب وی نودَهغه دَ کفن دفن اودَ هغه ټولې خرچې په ماباندې دی اوکه چرې هغه مالدار دې اوميراث پريږدی نوهغه دَ هغه دَ وارثانودې. علماؤ ليکلی دی چه حضورپاك به په خپل ذاتی مالونوسره دَدې انتظام کولو بعض علماؤ ليکلی دی چه بيت المال نه به دَ دې انتظام کيدلو. دَمړی دَطرف نه دَ قرض دا ادانيګی په حضورپاك باندې خويا واجب وه او يا حضورپاك دَ احسان په توګه په خپله ذمه باندې اخستې وو

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [٣٠] د ديواليه كس حكم

٣٠— [٤] (١) [١] عَنْ أَبِي خَلْدَةَ الزُّرَقِيِّ قَالَ: «جِئْنَا أَبَا هُرَيْرَةَ فِي صَاحِبٍ لَنَا قَدْ أَفْلَسَ [٢] فَقَالَ: هَذَا الَّذِي قَضَى فِيهِ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٣] أَيُّمَا رَجُلٍ مَاتَ أَوْ أَفْلَسَ [٤] فَصَاحِبُ الْمَتَاعِ أَحَقُّ بِمَتَاعِهِ إِذَا وَجَدَهُ بِعَيْنِهِ». رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] حضرت ابي خلده زرقي وايي چې مونږ حضرت ابوهريره ﷺ ته د يو ملګري معامله راوړه چې مفلس شوی وو (خو د هغه سره د خلقو هغه سامان موجود وو چې د هغه قيمت هغه اداء کړي نه وو) مونږ د ابوهريره څخه پوښتنه وکړه چې په دې باره کې څه حکم دی؟ [٢] هغه وفرمايل چې د دې سړي معامله بالکل د هغه سړي په شان ده چې د هغه په باره کې رسول الله ﷺ دا فيصله کړې وه [٣] چې کوم سړی مړ شي يا مفلس شي (او د هغه په ذمه د خلقو مطالبات وی) [٤] نو د کوم سړي مال چې د هغه سره دی هغه سړی د هغه مال زيات حقدار دی په شرط د دې چې هغه مال هغه شان موجود وي شافعي ابن ماجه (د دې د وضاحت د پاره د دې باب په مخکني فصل کې حديث ١ ملاحظه کړي)

**حل اللغات:** - ① أَفْلَسَ: غريب. محتاج، ② الْمَتَاعِ: سامان.

**تسهيلات:** د دې حديث تشريح حديث نمبر (٢٨٩٩) په شرح کښې شوې ده

## [٢٩٥] دَمديون د روح دَقرض په وجه معلق کيدل

٢٩٥— [-] (٢) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - [٢] «نَفْسُ الْمُؤْمِنِ مُعَلَّقَةٌ بِدَيْنِهِ حَتَّى يُقْضَى عَنْهُ». رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د مومن روح د خپل قرض په وجه د هغه وخته معلق وي د څو پورې چې د هغه قرض اداء نشي (يعني هر کله چې يو سړی قرضدار مري، نو د هغه روح هغه وخته پورې د صالح بنده ګانو په جماعت کې نه داخليږي د څو پورې چې د هغه قرض اداء نشي) شافعي احمد ترمذي ابن ماجه دارمي

**حل اللغات:** - ① نَفْسُ: روح. ساه، ② مُعَلَّقَةٌ: رازورنده وی.

**تسهيلات:** قوله: بِدَيْنِهِ:

**د قرض اخستونکو دوه قسمونه اودهر قسم حکم:** - ① کوم خلق چه دَ قرض اخستو شوقين وی اودَ قرض مالونه په خپلو فضولياتو او واهياتو کښې بې دريغه خرچ کوی اودَ قرض

١) اخرجه ابو داود في السنن أبواب الإجارة/باب في الرجل يفلس فيجد الرجل متاعه بعينه عنده (رقم-٣٥٢٣)

٢) اخرجه الترمذ ى في كتاب الجنائز عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء عن النبى صلى الله عليه وسلم أنه قال: «نفس المؤمن معلقة بدينه حتى يقضى عنه» (رقم-١٠٧٨) واحمد في المسند:٢/٤٤٠

ورکونکو څه خیال نه ساتي او هم دغه شان قرضداري مړه شي نو دهغوی روحونه به د جنت نعمتونو او مؤمنانو روحونو سره دملاویدونه زوړند ساتلي شي داد هغوی سزا ده

② که چیرې دخیښتي په خاطر په درجه د مجبورتيا قرض واخستلو اود اداکولو نه عاجز شو اوبیا مړشو نوکیدې شي چه د دوی په شان مجبوره خلقو سره دنرمئ معامله اوشي بیا هم د وخت په حاکم باندې او مالدارانو خلقو باندې لازم ده چه هغوی دې د هغه د قرض انتظام اوکړي

## [۲۰۳] قرضداري د جنت داخلیدو څخه روسته کیدل

۲۰۳-[۸] (۱) ① وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ② «صَاحِبُ الدَّيْنِ مَأْسُورٌ بِدَيْنِهِ يَشْكُو إِلَى رَبِّهِ الْوَحْدَةَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه**: ① و حضرت براء بن عازب ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② قرض دار به د خپل قرض په وجه محبوس کړل شي (يعني په جنت کې د داخليدو او د صالحو بنده ګانو صحبت ته د رسيدو څخه به منع شي) نو هغه به د قيامت په ورځ خپل پروردګار ته د خپلې تنهايي شکايت وکړي. (شرح السنه)

**حل للغت** - ① مَأْسُورٌ: راګير به وي، محبوس به وي

## [۲۰۴] د قرض دپاره د مديون ټول مال خرڅول

۲۰۴-[۹] (۲) ① وَعَنْ... ① عَنْهُ (؟) «أَنَّ مُعَاذًا كَانَ يَدَّانُ ② فَأَتَى غُرَمَاؤُهُ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③ فَبَاعَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَالَهُ كُلَّهُ فِي دَيْنِهِ ④ حَتَّى قَامَ مُعَاذٌ بِغَيْرِ شَيْءٍ» ⑤ مُرْسَلٌ هٰذَا لَفْظُ الْمَصَابِيحِ، وَلَمْ أَجِدْهُ فِي الْأُصُولِ إِلَّا فِي الْمُنْتَقَى.

**ترجمه**: ① منقول دی چې حضرت معاذ ابن جبل ﷺ به قرض اخستلو. ② بيا خلق د هغه قرض خواه د خپل قرض د وصولي په سلسله کې حضور ﷺ ته راغلل. ③ نو حضور ﷺ د معاذ ﷺ ټول مال او اسباب د هغه د قرض د اداء کولو د پاره خرڅ کړل. ④ د هغه نتيجه دا شوه چې معاذ ﷺ مفلسه شو. ⑤ دا حديث مرسل دی او دا الفاظ د مصابيح نقل شوي دي د مشکوة مؤلف وايي چې ما دا روايت په اصولو يعني صحاح سته وغيره کې نه دی پيدا کړی. البته دا روايت مې په منتقى کې پيدا کړی دی

## [۲۰۵] د سخاوت په وجه قرضداري کيدل

۲۰۵-[۱۰] (۳) ① وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: ② «كَانَ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ شَابًّا سَخِيًّا وَكَانَ لَا يُمْسِكُ شَيْئًا فَلَمْ يَزَلْ يَدَّانُ حَتَّى أَغْرَقَ مَالَهُ كُلَّهُ فِي الدَّيْنِ فَأَتَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَكَلَّمَهُ لِيُكَلِّمَ غُرَمَاءَهُ فَلَوْ

[۱] اخرجه البغوي في شرح السنة رقم الحديث ۲۱۴۸

[۲] المراسيل لأبي داؤد باب في المفلس رقم (۱۶۲)

[۳] اخرجه الدارقطني في السنن رقم الحديث ۹۵ من باب المرأة تقتل اذا ارتدت

تَرَكُوا لِأَحَدٍ لَتَرَكُوا لِمُعَاذٍ لِأَجْلِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَبَاعَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَهُمْ مَالَهُ حَتَّى قَامَ مُعَاذٌ بِغَيْرِ شَيْءٍ». رَوَاهُ سَعِيدٌ فِي سُنَنِهِ مُرْسَلًا.

**ترجمه:** [۱] او هغه هم داسې دی چې حضرت عبد الرحمن ابن مالك رضي الله عنه وايي [۲] چې حضرت معاذ ابن جبل رضي الله عنه يوسخي خوان وو، او (د خپل سخاوت په وجه) هيڅ مال او اسباب يې دخان سره نه پرينښودل (ځکه چې څه به ورسره وو هغه ټول به يې نورو ته ورکول په دي وجه هغه به هميشه قرض آخستلو ، ددي پورې چې هغه خپل مال واسباب د قرض نذر کړل، بيا (يوه ورځ) د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو (او د دې خبرې خواهش يې ښکاره کړي) چې حضور ﷺ د هغه قرض خواهانو ته سفارش وکړي (چې هغوئ ورته ټول قرض يا څه حصه معاف کړي) حضور ﷺ په دې باره کې د هغه قرض خواهانو سره خبري وکړي. خو هغوئ هيڅ معاف نه کړل، او که هغوئ د چا قرض معاف کولی، نو د حضور ﷺ په وجه به يې د معاذ رضي الله عنه قرض ضرور معاف کړي وو (هغو چې د معاف کولو څخه انکار وکړي نو) حضور ﷺ د هغه قرض خواهانو مطالبات د پوره کولو د پاره د معاذ رضي الله عنه ټول مال واسباب خرڅ کړل ددې پورې چې (په دې وجه) معاذ رضي الله عنه مفلس شو . سعيد رحمه الله دا روايت په خپل سنن کې بطريق ارسال نقل کړي دی، (شرح السنه)

**حل اللغات:** - ①شَابًّا: خوان، ②يَدَّانُ: قرض به ئې اخستلو، ③أُغْرِقَ: غرق ئې کړو، (مال ئې ختم کړو) ④غُرَمَاءَ: قرض خواهان، قرض غوښتونکی،

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَمْ أَجِدْهُ فِي الْأُصُولِ إِلَّا فِي الْمُنْتَقَى:

**د اصول څخه مراد:**- يعنی دَ راوی نه وړاندې دَمرسل پورې چه کوم الفاظ دی صاحب مشکوة فرمائی چه ماته دا روايت دَ اصول په کتابونوکښې ملاؤنه شو دَ اصول کتابونه هغه دی کوم کښې چه حديث سره دَ سند بيان وی صاحب مشکوة وړاندې فرمائی اودَ حديث کتاب مشفی کښې ماته داحديث ملاؤشوې دې دَ کوم نه چه معلوميږی چه مشفی دَ اصول دکتابونونه دا روايت نقل کړې وی که هلته نه وې نوهغه به په مشفی کښې نه نقل کولو مشفی دَ علامه تيمی رحمه الله کتاب دې

**قوله:** كَانَ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ شَابًّا سَخِيًّا:

**د معاذ دپاره د نبی عليه السلام سفارش:**- دَ قرض اخستلو په معنی کښې دې حضرت معاذ رضي الله عنه يو فياض نوجوان وو دَخپلو نيکو مقاصدودَپاره به ئې قرض اخستلو تردې چه په قرضونوکښې راګيرشو قرض خواهانو به خپل قرضونه غوښتل هغه حضورپاك سره خبره اوکړه چه زما باره کښې دې قرض خواهانوته سفارش اوکړه چه څه قرض راته معاف کړی ليکن مال خو عجيبه څيز دې چا ورته هيڅ هم معاف نه کړل. بيا حضورپاك دَهغه

تول مال خرڅ کړو اوحضرت معاذ رضي الله عنه خپل قرض خلاص کړو اوخالي لاس پاتې شو لاړو دې نه معلومه شوه چه د قرض معامله ډيره حساس ده خکه چه حضورپاک د حضرت معاذ رضي الله عنه ټوله اثاثه د قرض دَاداکولوپه غرض سره خرڅه کړه رسول الله ﷺ قرض خواهانو ته صرف سفارش کړې وو که حکم ئې کړې وې نو منل به لازم وو

**[٢٠٢] بغير د عذرد قرض نه اداکونکي کس سزا**

٢٠٣ -[٩] (١) ① عَنِ الشَّرِيدِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②«لَيُّ الْوَاجِدِ يُحِلُّ عِرْضَهُ وَعُقُوبَتَهُ» "قَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ: يُحِلُّ عِرْضَهُ يُغَلَّظُ لَهُ، وَعُقُوبَتَهُ يُحْبَسُ لَهُ. رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت شريد رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د صاحب استطاعت سړي د قرض په ادائيګۍ کې، تاخير کول د هغه بې آبرويي او هغه ته سزا ورکول حلالوي. ابن مبارک رحمه الله وايي چې د داسې سړي بې ابروئي حلال کيدل دا دي چې هغه ملامت کړل شي. او هغه ته سزا ورکول دا دي چې هغه قيد شي. (ابوداؤد نسائي)

**د راوي مختصر تعارف:**

**شريد بن سويد:-** د راوی نوم حضرت شريد بن سويد رضي الله عنه دې د پلار نوم ئې سود دې او د ثقيف قبيلې سره ئې تعلق ساتلو دبعضو وينا ده چه د دوی تعلق د، حضرموت، مقام سره وو بعضو دوی په اهل طائف کښې شمار کړي دي په بيعت رضوان کښې هم شريک شوي وو

**روايات:-** د دوی دوه روايات په مسلم کښې دی دغه شان په ابوداود او نسائی کښې هم د دوی روايت ملاويږی خو د احاديثو صحيح شمار د اسماء الرجال په کتابونو کښې نشته د دوی روايات په اهل حجاز کښې زيات دی

**حل اللغات** - ① لَيُّ: ټال متول، چل ول کول. ② الْوَاجِدِ: صاحب استطاعت، مالدار. ③ يُحِلُّ: حلال دی. حق حاصل دې. ④ عِرْضَهُ: عزت دهغه. ⑤ عُقُوبَتَهُ: سزا دهغه. ⑥ يُغَلَّظُ: سختی اوکړې شی. ملامت کړې شی. ⑦ يُحْبَسُ: قيد کړې شی

**تسهيلات: قوله وَعُقُوبَتَهُ:**

**د قرضداری د قيد کولو حکم:-** يعنی د شرعی عدالت په ذريعه هغه په قيد بامشقت کښې ساتل هم جائز دی خکه چه د طاقت لرلو باوجود قرض نه اداکول يوقسم ظلم دې اوظالم د تعزير مستحق دې

١) اخرجه ابو داود فی السنن كتاب الأقضية/باب فی الحبس فی الدين وغيره (رقم-٣٦٢٨) والنسائی فی كتاب البيوع/باب مطل الغنی (رقم-٤٦٩٠) وابن ماجه فی كتاب الصدقات/باب الحبس فی الدين والملازمة (رقم-٢٤٢٧) واحمد فی المسند: ٣٨٩/٤

[٣٠٠] قرض داری سره د مدد کولو ثواب

٣٠٠-[٢٠] (١) ١ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: ٢ «أُتِيَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِجِنَازَةٍ ٣ لِيُصَلِّيَ عَلَيْهَا ٤ قَالَ: "هَلْ عَلَى صَاحِبِكُمْ دَيْنٌ؟" ٥ قَالُوا: "نَعَمْ"، ٦ قَالَ: "هَلْ تَرَكَ لَهُ مِنْ وَفَاءٍ؟" ٧ قَالُوا: "لَا" ٨ قَالَ: "صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ." ٩ قَالَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ: عَلَيَّ دَيْنُهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ. ١٠ فَتَقَدَّمَ فَصَلَّى عَلَيْهِ».

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوسعید خدري ﷺ وايي ٢ چې (یوه ورځ) د حضور ﷺ په مخکې یوه جنازه راوړل شوه، ٣ چې حضور ﷺ ورباندې مونځ وکړي، ٤ حضور ﷺ د جنازي والاوو (خلکو) پوښتنه وکړه چې آیا ستاسو په دې ملګري قرض شته؟ ٥ خلقو جواب ورکړي چې هو، ٦ بیا حضور ﷺ پوښتنه وکړه چې آیا دې سړي د قرض د اداء کولو په قدر څه مال پریښی دی؟ ٧ جواب ورکول شو چې نا، ٨ نو حضور ﷺ وفرمایل چې بیا تاسو خلق د ده د جنازي مونځ وکړئ (زه يې نه کوم) ٩ حضرت علي ﷺ (د دې اوریدو سره) اوویل چې یا رسول الله! ﷺ د ده د قرض ادائیګي زه په خپله ذمه اخلم ١٠ د دې څخه وروسته حضور ﷺ مخکې شو او د هغه د جنازي مونځ يې وکړي.

**حل اللغات:** - ① وَفَاءٍ: پوره، برابر، (قرض پوره کونکی مال)

١ وَفِي رِوَايَةٍ مَعْنَاهُ، ٢ وَقَالَ: «فَكَّ اللَّهُ رِهَانَكَ مِنَ النَّارِ كَمَا فَكَكْتَ رِهَانَ أَخِيكَ الْمُسْلِمِ، ٣ لَيْسَ مِنْ عَبْدٍ مُسْلِمٍ يَقْضِي عَنْ أَخِيهِ دَيْنَهُ إِلَّا فَكَّ اللَّهُ رِهَانَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** ١ په یو بل روایت کې چې د دې مضمون منقول دی (خو د هغه الفاظ دې څخه مختلف دي) دا الفاظ هم نقل شوي دي، ٢ چې حضور ﷺ حضرت علي ﷺ ته وفرمایل چې الله ﷻ دې تا د دوزخ د اور څخه داسې خلاص کړي څنګه چې تا خپل یو مسلمان ورور (د قرض دبوج څخه) خلاص کړئ ٣ (یاد لرئ) کوم مسلمان چې د خپل مسلمان ورور قرض اداء کړي الله ﷻ به د قیامت په ورځ هغه ته نجات (خلاصون) ورکړي. (شرح السنه)

**حل اللغات:** - ② فَكَّ: د نصر ینصرنه، خلاصول. ③ رِهَانَكَ: څټ ستا، دَ انسان بدن اوسټ.

**تسهیلات:** قوله: فَكَّ اللَّهُ رِهَانَه:

**د فک الله رهانه مطلب:** - رهان رهین ومرهون دَ مقیده اومحبوس په معنی کښې دي مطلب دا چه تا دَخپل رورېدن دَ خلقو دَ قرض نه خلاص کړو دغه شان په الله تعالی ستا خان دَ دوزخ دَ اور نه خلاص کړی دا جزاءمثل ماعمل دَ قبیل نه دعاء ده.

١) اخرجه الدارقطني في السنن رقم الحديث ٢٩١ من كتاب البيوع، والبغوي في شرح السنة رقم الحديث ٢١٥٥

[٣٠٠] د درې صفتونو څخه برائت جنت ته د داخلیدو ذریعه

٣٠٠–[٢] (١) ١ وَعَنْ ثَوْبَانَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "٢ «مَنْ مَاتَ وَهُوَ بَرِيءٌ مِنَ الْكِبْرِ وَالْغُلُولِ وَالدَّيْنِ، ٣ دَخَلَ الْجَنَّةَ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ثوبان ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ کوم سړی چې په داسې حالت کې مړ شي چې هغه د تکبر و خيانت او قرض څخه پاك وي، ٣ نو هغه به (د مقبول بنده ګانو سره) په جنت کې داخل شي، (ترمذي ابن ماجه دارمي)

**حل اللغات:** - ① الْغُلُولِ: خيانت

**تسهیلات: قوله:** مِنَ الْكِبْرِ:

**د کبر په مفهوم کښې دوه اقوال:** -- ① بعضو ونيلي دي چه د چا حق تلف کول مراد دی ② خلقو ته سپک و حقير کتل مراد دی

[٣٠٢] د قرض نه ادا کولو په حالت کښې د قرضدار مړکیدل یوه لویه ګناه ده

٣٠٢–[٢٢] (٢) ١ وَعَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "٢ «إِنَّ أَعْظَمَ الذُّنُوبِ عِنْدَ اللّٰهِ أَنْ يَلْقَاهُ بِهَا عَبْدٌ بَعْدَ الْكَبَائِرِ الَّتِي نَهَى اللّٰهُ عَنْهَا، ٣ أَنْ يَمُوتَ رَجُلٌ وَعَلَيْهِ دَيْنٌ لَا يَدَعُ لَهُ قَضَاءً» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابو موسی ﷺ د رسول الله ﷺ څخه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمايل ٢ کبيره ګناه چې د هغه څخه الله ﷻ منع فرمايلي ده د الله ﷻ په نزد د دې څخه وروسته عظيم ترينه ګناه چې د هغه مرتکب کيدو سره بنده الله ﷻ سره يو ځای شي دا ده ٣ چې يو سړی په داسې حالت کې مړ شي چې په هغه د قرض بوج وي او هغه خان پسې دومره مال نه وي پرېښی چې د هغه قرضه ورباندې اداء شي، (احمد ابوداود)

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنْ يَمُوتَ رَجُلٌ وَعَلَيْهِ دَيْنٌ لَا يَدَعُ لَهُ قَضَاءً:

**په کبائرو کښې د قرض درجه:** - دَ فضولیات اوخواهشات دَ تکمیل دَپاره چه کوم سړي قرض اخلی اوبیا دَهغې دَ اداکولو خیال نه ساتی اومړ شی اودَ قرض خلاصولودَپاره څه مال هم نه پرېږدی نو په داسې صورت کښې به داسړې لوئی ګناه ګار وی څکه چه ده دَ خلقو مال ضایع کړو یادَ مجبورئی په حالت کښې چه کوم قرض اخستې شی دَهغې جدا صورت دې بل دَ بعدالکبائر نه مراد هغه لوئی ګناهونه دی کوم چه په لوئی والی کښې

١ ) اخرجه الترمذی فی كتاب السير عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الغلول (رقم-١٥٧٢) وابن ماجه فی كتاب الصدقات/باب التشديد فی الدين(رقم-٢٤١٢) واحمد فی المسند: ٢٧٦/٥

٢ ) اخرجه ابو داود فی السنن كتاب البيوع/باب فی التشديد فی الدين (رقم-٣٣٤٢) واحمد فی المسند: ٣٩٢/٤

مشهوردی یعنی شرك اوزنا وغیره نوداسې مشهورو گناهونونه پس چه کومه گناه وی په هغه گناهونوکښې به د قرض لویه گناه شمیرلې کیږی مطلقا لونی نه

**[۲۰۲] په حراموخیزونو د صلح عدم جواز**

[۲۰] (۱) ⑴ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ الْمُزَنِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ⑵ قَالَ: "«الصُّلْحُ جَائِزٌ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ إِلَّا صُلْحًا حَرَّمَ حَلَالًا، أَوْ أَحَلَّ حَرَامًا ⑶ وَالْمُسْلِمُونَ عَلَى شُرُوطِهِمْ إِلَّا شَرْطًا حَرَّمَ حَلَالًا أَوْ أَحَلَّ حَرَامًا»". ⑷ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَانْتَهَتْ رِوَايَتُهُ عِنْدَ قَوْلِهِ "شُرُوطِهِمْ".

**ترجمه:** ⑴ او حضرت عمرو ابن عوف مزني ﷺ د رسول الله ﷺ څخه نقل کوي. ⑵ چې حضور ﷺ وفرمایل د مسلمانانو په منځ کې صلح جائز ده، خو هغه صلح جائز نه ده چې حلال شی حرام یا حرام شی حلا کړي ⑶ او مسلمانان په خپلو شرطونو وي (یعني مسلمانان چې د صلح او جنګ یا د دې څخه علاوه په نورو معاملاتو کې په خپلو کې چې کوم شرطونه یعنی عهد وپیمان کوي د هغه پابندي جائز ده) هو د دی شرط پابندی جائز نه ده چې حلال حرام یا حرام حلال کړي، ⑷ ترمذي ابن ماجه ابوداود (ابوداود دا روایت د لفظ علی شروطهم پورې نقل کړي دی

**تسهیلات: قوله: إِلَّا صُلْحًا:**

**د ممنوع صلح صورتونه:** -یعنی هره صلح په اسلام کښې جائز ده مګر هغه صلح ناجائزده

① دحرام څیز په تحلیل باندې صلح مثلاً یوسړې په دې خبره باندې صلح اوکړی چه زه به شراب څکم یا د خنزیر غوښه به خورم دا صلح ناجائز ده

② د حلال څیز تحریم باندې صلح مثلاً په دووښځوکښې جګړه ده اوخاوند په دې خبره باندې صلح اوکړی چه یوې ښځې سره به جماع نه کوی

**قوله إِلَّا شَرْطًا:**

**د ممنوع شرط صورتونه:** -① د حلال څیز د تحریم شرط لګول یعنی د مسلمانانو په خپل مینځ کښې داسې شرط لګول منع دی په کوم سره چه د یوحلال څیز حرام کیدل لازم راځی لکه چه خاوند خپلې ښځې سره دا شرط اولګوی چه ته راضی اوسیږه په دې شرط باندې چه زه به خپل رور سره خبرې نه کوم

② دحرام څیز د تحلیل شرط لګول مثلاً خاوندخپلې ښځې ته وائی شراب به څکم، زیره به خروم، دګډا ګانې او سندرو انتظام به کوم

---

١ ) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الأقضية /باب في الصلح (رقم-٣٥٩٤) والترمذی فی كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما ذكر عن رسول الله صلى الله عليه وسلم في الصلح بين الناس (رقم-١٣٥٢) وابن ماجه فی كتاب الأحكام /باب الصلح (رقم-٢٣٥٣)

**اشکال:** - افلاس او ابواب بیوع سره ددې حدیث څه تعلق دې که چرې تعلق نې نشته نو دا دلته ولې ذکرشو؟

**دا شکال جواب:** - کله چه سرې په بیوعات کښې اخته کیږی نو په دې کښې جګړې جوړیږی او د جګړو په وخت د صلح ضرورت پیښیږی کیدې شی په دې وجه چه ددې ذکر دلته راغلو بل سرې چه کله مفلس او دیوالیه جوړیږی نو اکثر د صلح او شرائطو نوبت راځی نهذا ددې حدیث تعلق هم دې صلح سره دې

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٣٠٣] د رسول الله صلی الله علیه وسلم د پرتوګ خوښول**

—[--] ( )[١]عَنْ سُوَيْدِ بْنِ قَيْسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢]«جَلَبْتُ أَنَا وَمَخْرَفَةُ الْعَبْدِيُّ بَزًّا مِنْ هَجَرٍ، فَأَتَيْنَا بِهِ مَكَّةَ، [٣]فَجَاءَنَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَمْشِي، [٤]فَسَاوَمَنَا بِسَرَاوِيلَ، فَبِعْنَاهُ، [٥]وَثَمَّ رَجُلٌ يَزِنُ بِالْأَجْرِ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "زِنْ وَأَرْجِحْ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** [١]حضرت سوید ابن قیس ﷺ وایې [٢]چې زه او مخرفه عبدي مقام هجر څخه چې مدینې ته نژدې واقع دی، د خرڅولو د پاره کپړه واخسته او د هغه آخستو سره مکې ته راغلو. [٣]حضور ﷺ ته چې معلومه شوه چې مونږ د خرڅولو د پاره کپړه اخستو سره مکې ته راغلي یو نو حضور ﷺ بنفس نفیس (پخپله بغیر سوارلی) مونږ ته تشریف راوړو [٤]او مونږ څخه یې یوه پاجامه (پرتوګ) اخسته کوم وخت چې مونږ ورباندې هغه پجامه خرڅه کړه. [٥]نو حضور ﷺ هغه سړي ته چې په هغه ځای په اجرت باندې د خلقو اسباب تلل. وفرمایل چې ته (څما د سپینو زرو دا تکړي) وتله (چې زه دا تکړي د دې پجامې د قیمت په طور ورکړم) او (د خومره تکړو خبره چې شوې ده) د هغه څخه څه زیات اوتله. احمد ابوداود ترمذي ابن ماجه دارمي، او امام ترمذي ﷺ فرمایلي دي چې دا حدیث حسن صحیح دی

**د راوي مختصر تعارف:**

**سوید بن قیس:** نوم سوید د پلار نوم قیس کنیت ابوصفوان په آخری زمانه کښې کوفې ته منتقل شوې وو

**مرویات:** - ده نه څلور احادیث مروی دی

---

١) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب البیوع/باب فی الرجحان فی الوزن والوزن بالأجر(رقم-٣٣٣٦) والترمذی فی کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الرجحان فی الوزن (رقم-١٣٠٥)والنسائی فی کتاب البیوع/باب الرجحان فی الوزن (رقم- ٤٥٩٢) واحمد فی المسند: ٣٥٢/٤

حل لغات - ① حَلَبَتْ: ما تجارت دپاره واخستله، د تاجر ګټې دپاره سامان اخستل. ② فَسَاوَمَنَا: نو نرخ او قیمت ئې اوکړو مونږسره. ③ سَرَاوِيلَ: پاجامه پرتوګ (لنګ). ④ يَزِنُ: چه وزن ئې کولو. ⑤ زِنْ: اوتله، وزن کړه. ⑥ أَرْجِحْ: زیات اوتله. ⑦ هجر: مدینې منورې سره نیزدې د یوځائی نوم دې ⑧ ددې معنی ثیاب اوکپړې ده حالانکه بز ریښم ته هم وائی امام محمد رحمه الله فرمائی چه د کوفه والو په لغت کښې بزد سوت او کتان کپړې ته وائی

تسهیلات: قوله سَرَاوِيلَ:

**د نبی کریم صلی الله علیه وسلم تواضع او عاجزی:**- پرتوګ او پانجامه ته سراویل وائی د حضورپاك تواضع وه چه پخپله پیدل بازارته راغلو اود پرتوګ سودا ئی اوکړه بیا د حضور پاك فیاضی وه چه د اصل قیمت نه ئی څه زیات ورکړو ځکه چه حضورپاك د چاندئی وزن کونکی ته اوفرمائیل چه راجح یعنی په تول کښې د تلې هغه چابړې ښکته کړه په کوم کښې چه د قیمت چاندی کیخودې شوې ده دې دپاره چه په قیمت کښې اضافه اوشی

**د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د پرتوګ په استعمال کښې اقوال:** -① علامه ابن حجر رحمه الله فرمائی د نبی کریم صلى الله عليه وسلم سراویل اچول اونه اچولو کښې د علماؤ اختلاف دې بعض وئیلی دی چه د حضورپاك پرتوګ اچول ثابت نه دی البته اخستل ثابت دی

② ابن قیم رحمه الله فرمائی چه ښکاره خبره داده چه حضورپاك پرتوګ اغوستې دې اوهغه وخت به خلقو اغوستلو بهرحال پرتوګ اوقمیص د موجوده زمانې د ټولو د حیاء لباس هم دې او په استعمال کښې آسان هم دې او د انسان ټولو احوالو سره موافق هم دې که هغه کیناستل پاسیدل وی یا ختل وی یا منډه وهل وی.

### [٢٣٥] د قرض په ادا کولو کښې غیر مشروط زیات کول جائز دی

| ٢٩٠٣-[٥٠] (١) ① وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «كَانَ لِي عَلَى النَّبِيِّ - دَيْنٌ ② فَقَضَانِي، وَزَادَنِي». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. |
|---|

**ترجمه:** ① او حضرت جابر رضي الله عنه وایی چې په رسول الله صلى الله عليه وسلم خما څه قرض وو ② کوم وخت چې حضور صلى الله عليه وسلم هغه قرض واپس راکوی، نو ماته یې څه زیات راکړي، (ابوداؤد)

تسهیلات: قوله: وَزَادَنِي:

**قرض اداء کولو کښې د څه اضافې کولو حکم:**-که یوسړې د چاقرض اداکوی اوڅه زیات ورکوی نودا جائزدی دا د سود په ضمن کښې نه راځی ځکه چه دا صرف احسان دې چا څه شرط نه دې لګولې سود هغه وخت جوړیږی چه دائن د مدیون د زیاتی اخستلو شرط ولګوی اوفیصله اوکړی چه دومره زیات به راکوې هغه "کل قرض جر نفعا فهو ربا" کښې راځی

---

(١) حرجه ابو داود في السنن كتاب البيوع/باب في حسن القضاء (رقم-٣٣٤٧)والنسائي في كتاب البيوع/باب الزيادة في الوزن (رقم-٤٥٩١)

[۳۰۲] ذ احسان بدله احسان وي

۳۰۲۰–[۲۰] (۱) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي رَبِيعَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: «اسْتَقْرَضَ مِنِّي النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَرْبَعِينَ أَلْفًا، [۲] فَجَاءَهُ مَالٌ، فَدَفَعَهُ إِلَيَّ، [۳] وَقَالَ" بَارَكَ اللهُ تَعَالَى فِي أَهْلِكَ وَمَالِكَ، [۴] إِنَّمَا جَزَاءُ السَّلَفِ الْحَمْدُ وَالْأَدَاءُ» " رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت عبد الله ابن ابي ربيعه رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ زما څخه په يوه موقع څلويښت زره (درهم) قرض کړي وو. [۲] بيا چې حضور ﷺ ته په يو لوی مقدار کې مال راغلو نو حضور ﷺ ما ته (هغه ټول مال يا د هغه مال څخه څما د قرض په قدر) راکړی [۳] او وې فرمايل چې الله جل جلاله دې ستا په اهل وعيال او ستا په اموالو کې برکت ورکړي [۴] د قرض بدله دې څخه علاوه نور څه نشي کيدی (چې هر کله قرض حاصل شي نو) شکر و ث (دې وکړی شي او (د زر څخه زر) د هغه د آدائيگۍ انتظام دې وکړی شي. نسائي

**حل اللغات** - ① اِسْتَقْرَضَ: قرض اخستي وو. ② السَّلَفِ: قرض بانديې معامله کول. ③ الحَمْدُ شکر کول. ث ونيل

[۳۰۷] د حق روستوکولو په بدله کښې د صدقې ثواب ملاويدل

۳۰۲۱–[۲۱] (۲) [۱] وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] " «مَنْ كَانَ لَهُ عَلَى رَجُلٍ حَقٌّ فَمَنْ أَخَّرَهُ كَانَ لَهُ بِكُلِّ يَوْمٍ صَدَقَةٌ» ). رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه**: [۱] او حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د کوم سړي چې په چا څه حق (يعني قرض وغيره) وي، او هغه (د هغه په وصولولو کې) تاخير کوي يعني قرضدار ته مهلت ورکوي، نو هغه ته (د ورکړي مهلت، د هري ورځې په بدله کې د صدقې ثواب حاصليږي. (احمد)

**تسهيلات**:

**نوټ**: - قرضدار ته د مهلت ورکولو فضيلت وړاندې هم تيرشوي دي هغې ته رجوع اوکړئ

[۳۰۸] د ميراث په تقسيم کښې د قرض تقديم

۳۰۲۲–[۲۲] (۳) [۱] وَعَنْ سَعْدِ بْنِ الْأَطْوَلِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: «مَاتَ أَخِي وَتَرَكَ ثَلَاثَمِائَةِ دِينَارٍ، وَتَرَكَ وَلَدًا صِغَارًا، [۲] فَأَرَدْتُ أَنْ أُنْفِقَ عَلَيْهِمْ، [۳] فَقَالَ لِي رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: " إِنَّ أَخَاكَ مَحْبُوسٌ بِدَيْنِهِ فَاقْضِ عَنْهُ " [۴] قَالَ. فَذَهَبْتُ فَقَضَيْتُ عَنْهُ ثُمَّ جِئْتُ فَقُلْتُ: [۵] يَا رَسُولَ اللهِ قَدْ قَضَيْتُ عَنْهُ وَلَمْ يَبْقَ إِلَّا امْرَأَةٌ تَدَّعِي دِينَارَيْنِ وَلَيْسَتْ لَهَا بَيِّنَةٌ. [۶] قَالَ: أَعْطِهَا فَإِنَّهَا صَادِقَةٌ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

---

۱ ) اخرجه النسائي في السنن كتاب البيوع باب الاستقراض (رقم-۴۶۸۳) وابن ماجه في كتاب الصدقات/باب حسن القضاء (رقم-۲۴۲۴)

۲ ) واحمد في المسند: ۴۴۲/۴

۳ ) واحمد في المسند: ۱۳۶/۴

**ترجمه:** [١] او حضرت سعد ابن اطول ﷺ وايي كوم وخت چې خما ورور مړ شو . نو هغه دري سوه ديناره او كوشني كوشني هلكان پريښي وو .[٢] ما وغوښتل چې هغه دري سوه دينار د هغه په ورو بچيانو خرڅ كړم ، او د هغه قرض اداء نه كړم .[٣] ليكن رسول الله ﷺ ماته وفرمايل چې ستا ورور د خپل قرض په وجه ، په عالم برزخ كې، قيد شوى دى ، چې د هغه په سبب هغه د هغه ځاى د نعمتونو او صلحاوو د صحبت څخه محروم دى. نو ته د هغه قرض اداء كړه ، [۴] حضرت سعد ﷺ وايي چې ، د دي اوريدو سره ، زه كور ته راغلم او د خپل ورور قرض مې اداء كړي، بيا زه د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضر شوم او عرض مې اوكړو [٥] چې يا رسول الله ﷺ ما د خپل ورور قرض اداء كړي. اوس د هيڅ څه مطالبه باقي نه ده. هو يوه ښځه پاتې شوي ده چې د دوو دينارو دعوى كوي. ليكن د هغه څوك ګواه نشته . [٦] حضور ﷺ وفرمايل چې هغه ته هم دوه دينار ه وركړه هغه رښتيا وايي. احمد ،

**حل اللغات** - ① مَحْبُوسٌ : راګير دي، قيد دي،

**تسهيلات: قوله:** فَإِنَّهَا صَادِقَةٌ:

**د قاضي د خپلو معلوماتو په بنياد فيصله كول:** - ضابطه هم دغه ده چه هرسړي به په خپل حق ثبتولوګواه قائموي څوكه قاضي اوحاكم د خپلو معلوماتو په بنيد باندې فيصله اوكړي نوداهم جائزدى دلته حضورپاك په حضرت سعد ﷺ باندې دعوى كونكې ښځي ددوو دينارو وركولوفيصله هم په دې بنياد باندې كړې وه يا حضورپاك ته به د وحى په ذريعه معلومه شوې وى چه دا ښځه رښتياوائي ددې حديث نه داخبره هم معلومه شوه چه د خلقو قرض مقدم دې او دميراث تقسيم روستو دې كه څه مال باقي پاتې شو نوتقسيم دې كړى ګنى د وارثانوحق نشته دې

**[٢٠٣٩] باربار شهادت هم د قرض كفاره نشي كيدى**

٢٠٣٩—[٢٠] (١) [١] وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَحْشٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: [٢] «كُنَّا جُلُوسًا بِفِنَاءِ الْمَسْجِدِ حَيْثُ يُوضَعُ الْجَنَائِزُ، [٣] وَرَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - جَالِسٌ بَيْنَ ظَهْرَيْنَا، [۴] فَرَفَعَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَصَرَهُ قِبَلَ السَّمَاءِ فَنَظَرَ، [٥] ثُمَّ طَأْطَأَ بَصَرَهُ، وَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى جَبْهَتِهِ، [٦] قَالَ: "سُبْحَانَ اللهِ! سُبْحَانَ اللهِ! مَاذَا أُنْزِلَ مِنَ التَّشْدِيدِ؟"

**ترجمه:** [١] او حضرت محمد ابن عبد الله ابن حجش ﷺ وايي [٢] چې ، يوه ورځ مونږ مسجد نبوي ﷺ ته نزدې په هغه صحن كې ناست وو . كوم ځاى چې جنازى راوړلو سره ايښودل كيدي . [٣] زمونږ په منځ كې رسول الله ﷺ هم تشريف فرماوو . [۴] اچانك حضور

١ ) واحمد في المسند: ٥/٢٨٩

ﷺ خپل نظر د آسمان طرف ته پورته کړي او هلته يې وکتل ⑤بيا خپل نظر يې کوز کړې او خپل لاس يې په تندی ايښودلو سره (د انتهايي تعجب په حالت کې يې) ⑥او فرمايل چې سبحان الله څومره سختي نازله شوي ده.

**حل اللغات** - ①فِنَاءِ صحن. ②بَيْنَ ظَهْرَانَيْنَا: زمونږ په منځ کښې. ③طَأْطَأَ بَصَرَهُ: ښکته ئې کړو نظر خپل. ④جَبْهَتِهِ: په خپل تندی. ⑤التَّشْدِيدِ: سختی.

| |
|---|
| ①قَالَ: فَسَكَتْنَا يَوْمَنَا وَلَيْلَتَنَا، فَلَمْ نَرَ إِلَّا خَيْرًا حَتَّى أَصْبَحْنَا. ②قَالَ مُحَمَّدٌ: فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا التَّشْدِيدُ الَّذِي نَزَلَ؟ قَالَ: "فِي الدَّيْنِ، ③وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ، لَوْ أَنَّ رَجُلًا قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللهِ، ثُمَّ عَاشَ، ④ثُمَّ قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللهِ، ثُمَّ عَاشَ، ثُمَّ قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللهِ ثُمَّ عَاشَ، ⑤وَعَلَيْهِ دَيْنٌ، مَا دَخَلَ الْجَنَّةَ حَتَّى يُقْضَى دَيْنُهُ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَفِي "شَرْحِ السُّنَّةِ" نَحْوَهُ. |

**ترجمه**: ①راوي وايي چې مونږ خاموش شو (يعني مونږ د حضور ﷺ څخه څه پوښتنه ونه کړه) ددي پورې چې هغه پوره ورځ تيره شوه، پوره شپه تيره شوه او مونږ ته د خير څخه علاوه څه سخته خبره په نظر رانغله (يعني صحابه وو ﷺ د حضور ﷺ د دي ارشاد څخه دا وګڼله چې شايد هغه وخت څه عذاب نازليدونکی دی يا څه سخت مصيبت راتلونکی دی خو هغه پوره ورځ تيره شوه، پوره شپه تيره شوه خو نه څه عذاب نازل شو او نه څه مصيبت پيښ شو) ددي پورې چې سحر شو ②د حديث راوي محمد ابن عبد الله ﷺ وايي چې د دې څخه وروسته ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې هغه کومه سختي ده چې نازله شويده؟ (او د هغه اظهار تاسو په دومره تعجب سره پرون فرمايلی وو؟) حضور ﷺ وفرمايل چې دين (يعني د قرض وغيره) په باره کې هغه سختي نازله شويده ③قسم دی په هغه پاك ذات چې د هغه په قبضه کې د محمد (ﷺ) ساه ده که يو سړی د الله ﷻ په لار کې (يعني جهاد کولو سره) قتل شي او بيا ژوندی شي بيا د الله ﷻ په لار کې ووژل شي او بيا ژوندی شي ④بيا د الله ﷻ په لار کې ووژل شي او بيا ژوندی شي بيا د الله ﷻ په لار کې ووژل شي او بيا ژوندی شي ⑤نو د هغه وخته هغه په جنت کې نشي داخليدی د څو پورې چې د هغه قرض اداء نشي (يعني که يو قرض دار بار بار هم د الله ﷻ په لار کې ووژل شي نو دا بار بار شهادت هم د هغه د قرض کفاره کيدی نشي) دا روايت امام احمد رحمه الله نقل کړي دي او په شرح السنه کې هم دغه شان حديث منقول دی (چې د هغه مضمون خو دا دی خو الفاظ يې نور دي)

**حل اللغات**: - ⑥عَاشَ: ژوندې شی

**تسهيلات**: **قوله**: قَالَ مُحَمَّدٌ:

**محمدمصداق**: -يعنی دَدې راوی محمدبن عبدالله ﷺ صحابی دَ حضورپاك نه پوښتنه اوکړه

**قوله** ثُمَّ عَاشَ:

**شهید ته د قرض نه معاف کیدل:** - یعنی چه یوسړي که بار بار شهید شي بیائي هم قرض نه معاف کیږي د قرض د معاف کولو د پاره قرض ادا کولې کیږي سره د دې چه شهادت ډیره اوچته درجه ده

## [۹] بَابُ الشِّرْكَةِ وَالْوَكَالَةِ]

### د شرکت او وکالت بیان

| **خلاصة الباب:** - |
|---|
| **فیه ثمانية أحاديث مشتملة على ثلاث مسائل:** |
| ① جواز الشركة بعمل الصحابة رضي الله عنهم أجمعين في زمن النبي ﷺ: ۱، ۲، ۷- وفيه شركة الربح- |
| ② جواز الوكالة: ۳، ۶، ۸- |
| ③ طريق المعاملة بين الشريكين: ۴، ۵- |

**د قرآن څخه د شرکت او وکالت ثبوت:** - ① ﴿وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْخُلَطَاءِ لَيَبْغِي بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ﴾ [سورت ص الایه: ۲۴]

② ﴿فَابْعَثُوا أَحَدَكُم بِوَرِقِكُمْ هَٰذِهِ إِلَى الْمَدِينَةِ﴾ [سورت الکهف الایه: ۱۹]

③ ﴿فَهُمْ شُرَكَاءُ فِي الثُّلُثِ﴾ [سورت النساء الایه: ۱۱]

**د شرکت لغوی معنی:** - شرکت په لغت کښې ملاوولو ته وائی

**د شرکت اصطلاحی تعریف:** - په اصطلاح کښې د دوو کسانو په مینځ کښې عقد او معامله ته شرکت وائی په کوم کښې چه دواړه په اصل او نفع کښې شریك وی

**د شرکت دوه قسمونه:** - ① شرکت ملك ② شرکت عقد

**د شرکت ملک تعریف:** - شرکت ملك هغه دې چه دوه یا زیات کسان په ذریعه د اخستلو اوخرخولو یا په ذریعه د هبه یا میراث د یو مال مالکان شي یا په شریکه دوه کسان یو ښکار حاصل کړی او هغوی د ښکار مالکان شي یا د دوو کسانو هم د یو جنس جدا جدا مال یو بل سره داسې ګډوډ کیدو سره ملاؤ شي چه په دواړو کښې فرق کول ممکن نه وی مثلاً د یو سړی پنی د بل سړی پنیو سره ملاؤ شي دا ټول د شرکت ملك صورتونه دی

**د شرکت ملک شرعی حکم:** - اوس د دې شرکت شرعی حکم دا دې که د دواړو په مالونو کښې فرق شته نو دا دواړه شریکوال د یو بل د پاره اجنبی دی یعنی د یو بل د اجازت نه بغیر په خپل ملکیت کښې تصرف کولې شی خو چه کوم ځائی امتیاز نه وی لکه چه د ذکر شوی پنیو والا صورت دې نو په دې صورت کښې هیڅ یو ملګری د بل د اجازت نه بغیر تصرف نه شی کولې د دواړو اجازت ضروری دي

**د شرکت عقد تعریف ،مثال اوحکم:-** شرکت عقد هغه دې چه شریکوال دَ ایجاب اوقبول په ذریعه خپل مال اوخپل حقوق یوبل سره یوځائی کړی مثلاً یوکس اووائی چه ما خپل فلانکې فلانکې مال فلانکی فلانکی حقوق تاسره شریك کړل بل ملګرې اووائی چه ما قبول کړل اوما هم خپل مال اوحقوق تاسره شریك کړل په دې شریکوالئی کښې دَ شرکت دَ منافی هیڅ یوشرط هم عائدکول دا عقد فاسدکوی لهذا داقسم شرط لګول دَ چادپاره هم جائزنه دې

**د شرکت عقد څلور قسمونه:-** ① شرکت مفاوضه ② شرکت عنان ③ شرکت صنائع والتقبل ④ شرکة الوجوه دَهر یو تعریف اوحکم دَ فقه کتابونوکښې اوګورئی

**قوله** وَالْوَكَالَةِ:

**د وکالت تعریف:-** دَخپلو حقوقواومالونو په تصرف کښې بل یوکس په خپل ځائی اودرولو نوم وکالت دې دَ وکالة تفصیلی مسائل دَ فقه په کتابونوکښې اوګورئی

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[٢٩٣٠]دَ نبی علیه السلام د دعا اثر**

٢٩٣٠-[ ](١) عَنْ زُهْرَةَ بْنِ مَعْبَدٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-: «[٢] أَنَّهُ كَانَ يَخْرُجُ بِهِ جَدُّهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ هِشَامٍ إِلَى السُّوقِ، فَيَشْتَرِي الطَّعَامَ، [٣] فَيَلْقَاهُ ابْنُ عُمَرَ وَابْنُ الزُّبَيْرِ، فَيَقُولَانِ لَهُ: أَشْرِكْنَا، [٤] فَإِنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَدْ دَعَا لَكَ بِالْبَرَكَةِ، فَيَشْرِكُهُمْ [٥] فَرُبَّمَا أَصَابَ الرَّاحِلَةَ كَمَا هِيَ، فَيَبْعَثُ بِهَا إِلَى الْمَنْزِلِ،

**ترجمه:** [١] دَ حضرت زهره ابن معبد عَلَیْهِ (تابعي) په باره کې منقول دی[٢] چې د هغه نیکه حضرت عبد الله ابن هشام ﷺ به هغه بازار ته بوتلو چې هلته به یې غله واخسته، هغه [٣] چې به غله خرید کوله نو هلته به ورسره ابن عمر ﷺ او ابن زبیر ﷺ یو ځای کیدل او هغه دواړو به ورته ونیل چې مونږ خپل شریك جوړ کړه.[٤] ځکه چې رسول الله ﷺ ستا د پاره د برکت دعا غوښتې ده (حضرت زهره عَلَیْهِ وایي) ځما نیکه به هغه شریکول [٥] او د حضور ﷺ د دعا له برکته، هغوی ته به بلا څه نقصان او خساره د یو اوښ د بوج برابر د غلې فائده کیدله چې هغوی به خپل کور ته لیږله

**حل اللغات** - ① الرَّاحِلَةَ: د اوښ بار ، بوج. ② الْمَنْزِلِ: کور بیت.

وَكَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ هِشَامٍ ذَهَبَتْ بِهِ أُمُّهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَسَحَ رَأْسَهُ وَدَعَا لَهُ بِالْبَرَكَةِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** او د (هغه په حق کې د حضور ﷺ د دعا واقعه دا ده چې د حضرت عبد الله ابن هشام ﷺ مور هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر کړي، نو حضور ﷺ د هغه په سر خپل لاس مبارك راتیر کړي او د هغه د پاره یې د برکت دعا وکړه. (بخاري)

[١]) اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ٢٥٠١

**تسهیلات:**

**قوله** أَصَابَ الرَّاحِلَةَ:

**د نبی علیه السلام د دعا په برکت په تجارت کښې گټه کیدل:** - یعنی دَ حضوریاك دَ دعا په برکت سره دَ زهره بن معبد نیکه عبدالله بن هشام ته به په اکثر وختونو کښې په گټه کښې دَ یواوښ پوره بوج برابر غله ملاویدله هغه حاصلولو سره به نی کور ته لیګله دادَ حضوریاك دَ دعا برکت وو ځکه چه دَهغوی مور په وړوکوالی کښې عبدالله بن هشام حضوریاك له راوړلي وو هغه وخت حضوریاك دَ هغه په سرلاس راښکلو اودَ برکت دعا نی ورته اوکړه دَدې حدیث نه معلومه شوه چه په عقود او اموال تجارت کښې شرکت جائز دې

**[۲۳۱] دَ انصارو په مالونو کښې دَ مهاجرینو شرکت**

۲۹۶۳-[۲] (۱) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: «② قَالَتِ الْأَنْصَارُ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اقْسِمْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ إِخْوَانِنَا النَّخِيلَ. ③ قَالَ: (لَا، تَكْفُونَنَا الْمَئُونَةَ، وَنُشْرِكُكُمْ فِي الثَّمَرَةِ، ④ قَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا» . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایې هر کله چې د مکې څخه مهاجرین مدینې ته راغلل. ② نو انصارو (یعني د مدینې خلقو) رسول الله ﷺ ته درخواست وکړي چې زمونږ د کجورو ونې زمونږ او د مهاجرینو په منځ کې تقسیم کړي، ③ حضور ﷺ وفرمایل چې زه ونې نه تقسیموم تاسو خلق زمونږ (مهاجرینو) د طرف څخه هم محنت کوی مونږ به پیداوار کې ستاسو شریك یو ④ انصارو اوویل چې مونږ ستا داخبره په سر سترګو قبلوو (بخاري)

**حل اللغات:** - ① تَكْفُونَنَا: تاسو کافی یئ مونږ دپاره ② الْمَئُونَةَ: محنت او مشقت.

**تسهیلات:**

**قوله:** الْأَنْصَارُ:

**د مهاجرینو او انصارو اصطلاح او رشته د مواخاة قائمول:** - دَمکې مکرمې نه چه کومو صحابه کرامو هجرت کړې وو هغوی ته مهاجرین ونیلی شی او په مدینه کښې چه کومو مسلمانانودَهغوی امدادکړې وو هغوی ته انصار ونیلی شی حضوریاك مهاجرینو او انصارو کښې مواخات رور ولی قائم کړې وه دغه شان مهاجرین دَ انصار په اموال کښې شریك شوې وو انصارو په ډیره قربانئی سره دَ مهاجرینو استقبال اوکړو هم په دې موقع باندې انصارو دا پیشکش اوکړو چه زمونږ زمکې دې دَ ملکیت په توګه باندې په مهاجرینو کښې تقسیم کړې شی دې دَپاره چه مونږ خپله حصه اومهاجرین خپله حصه سنباله کړی

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة /باب إذا قال: اکفنی مئونة النخل وغیره، وتشرکنی فی الثمر (رقم-۲۳۲۵)

**د رشتہ مواخاۃ قائمولو حکمتونه:-** نبی کریم ﷺ اوفرمائیل داسې نه بلکه تاسو محنت اومشقت کوئی اوکله چه غله تیاره شی نومونږ له تیاره غله راکوئی په دې فیصله کښې دوه حکمتونه وو

① مهاجرینو مکه مکرمه دَدې دَپاره نه وه پریخودې چه هغوی دې لاړشی او په مدینه کښې دې زمینداری شروع کړی بلکه هغوی دَ جهاد کولودپاره هجرت کړې وو او هجرت دَتیختې نوم نه دې بلکه په راتاویدو سره په دښمن باندې دَ حملې کولو نوم دې دَ حضورپاك مخې ته دا نظریه وه چه مهاجرین دې په مکمل توګه باندې دَ جهاد دَپاره تیار وی که په هغوی باندې زمکې تقسیم کیدلې نوهغوی به دَ جهاد نه پاتې کیدل

② نبی کریم ﷺ صرف دَمنافع تقسیم اوکړو دې دَپاره چه اصل جائیداد او اصل باغونه دَ انصارو دَ ملکیت نه خارج نه شی. که چرې تقسیم شوې وې نودَ انصارو زمکې او ونې به دَمهاجرینو ملکیت کښې راتلل. سبحان الله دَ نبوت نور څومره تیز وی.

**قوله: لَا، تَكْفُونَنَا الْمُؤْنَةَ:**

**د ,,لا،، د کلمې نحوی حیثیت:--** دا جدا کلمه ده اوتکفوننا جدا صیغه چه خبر په معنی دَ امر دې یعنی ته زمونږ دَپاره کافی شه.

**[٢٣٢] په تجارتی معاملاتو کښې د وکالت جواز**

٢٣٢-[٠](١) ①وَعَنْ عُرْوَةَ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ الْبَارِقِيِّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-: «②أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ أَعْطَاهُ دِينَارًا لِيَشْتَرِيَ بِهِ شَاةً③ فَاشْتَرَى لَهُ شَاتَيْنِ، فَبَاعَ إِحْدَاهُمَا بِدِينَارٍ، وَأَتَاهُ بِشَاةٍ وَدِينَارٍ④ فَدَعَا لَهُ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي بَيْعِهِ بِالْبَرَكَةِ⑤ فَكَانَ لَوِ اشْتَرَى تُرَابًا لَرَبِحَ فِيهِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①او د حضرت عروه ابن ابي الجعد بارقي رضي الله عنه په باره کې منقول دی ②چې رسول الله ﷺ هغه ته يو دينار ورکړي، چې د حضور ﷺ د پاره يوه بزه واخلي ③هغه په يو دينار دوه بزي (چيلي) رانيولي بيا په هغه کې يوه بزه يې په يو دينار (په چا) خرڅه کړه، دغه شان يې حضور ﷺ ته يوه بزه هم ورکړه او يو دينار يې هم ورکړي. ④رسول الله ﷺ د هغه د دې ذهانت څخه خوشحاليدو سره د هغه دخرڅولورانيولو په معاملاتو کې د برکت دعا وکړه ⑤د هغه دا اثر وشو که هغه به خاوره هم اخستله نو په هغه کې به هم ورته فائده کيدله. (بخاري)

١ ) اخرجه البخاری فی کتاب المناقب/باب (رقم-٣٦٤٢) والترمذی فی کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-١٢٥٨) وابن ماجه فی کتاب الصدقات/باب الأمین یتجر فیه فیربح (رقم-٢٤٠٢) واحمد فی المسند: ٣٧٥/٤

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت عروه البارقي:** نوم عروة د پلار نوم ابوجهد اسدی دي. د ده تعلق د قبيله بارق سره وو کوم چه په يمن کښې ده حضرت عمر دي د کوفي قاضي مقرر کړي وو. دغه شمير په کوفيانو کښې کيږي دهغه روايتونه زيات تر اهل کوفه کښې موندلي شي ابن مدنی ﷺ فرماني بعضې خلقو ونيلی دی چه عروة او ابوجهد هم يوسړي دي داب نکل غلطه ده خکه چه عروة خوني دي او ابوجهد نی دپلار نوم دي (تقريب. تهذيب التهذيب)

**مرويات:-** دهغه نه ديارلس روايتونه نقل دی په کوم کښې چه په يو بندي د بخاری اومسلم اتفاق دي. دَ نورو حالاتودَ پاره اوګورئی (فتح الباری وغيره)

**حل اللغات:-** ① شَاةً: بزه. چيلی.

**تسهيلات:** قوله: فَاشْتَرَى لَهُ شَاتَيْنِ

**دحديث دوه فوائد:-** ① په تجارتی معاملاتو کښې وکالت جائز دي دغه شان هره هغه معامله په کومه کښې چه نيابت چليږی هلته وکالت هم جائز دي

② که يوسړي دَ چا مال دَ کتې په غرض سره خرڅ کړی نو بيع به منعقد کيږی يعنی دَ فضولی بيع جائز ده البته دَ مالك دَ اجازت پوري به دَ فضولی بيع موقوف پاتې وی دا دَ احناف مسلك دي اومذکوره حديث دَهغوی دليل دي دَ شوافع حضراتو په نيز دا سې تصرف کولوسره او بيع کولوسره بيع صحيح کيږی نه اګرچه روستو مالك اجازت هم ورکړی بهرحال حضورپاك دَ دغه صحابی په حق کښې دَ برکت دعا اوکړه نوهغه ته به خاوره کښې هم فائده ملاويدله

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[٣٣٢] ديانتدار شريکوال د الله تعالى په حفاظت کښې**

٢٩٣٣-[٣] (١) ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- رَفَعَهُ، قَالَ: "② «إِنَّ اللَّهَ عَزَّوَجَلَّ يَقُولُ: أَنَا ثَالِثُ الشَّرِيكَيْنِ مَالَمْ يَخُنْ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ، ③ فَإِذَا خَانَهُ خَرَجْتُ مِنْ بَيْنِهِمَا»". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَزَادَ رَزِينٌ: "وَجَاءَ الشَّيْطَانُ".

**ترجمه:** ① او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② الله ﷻ فرمايي چې زه د دوو شريکانو په منځ کې دريم (نګهبان) يم د څو پورې چې په هغوی کې يو شريك خپل دويم شريك سره خيانت ونه کړي. ③ او هر کله چې هغه خيانت او بد دياتني شروع کړه نو زه د هغوی د منځ څخه لري شم (ابوداؤد)، او رزين د دې روايت په آخر کې دا الفاظ هم نقل کړيدي، چې بيا د هغوی په منځ کې شيطان راشي

**حل اللغات:-** ① لَمْ يَخُنْ: چه خيانت اونه کړی.

---

١) اخرجه ابو داود في السنن كتاب البيوع/باب في الشركة (رقم-٣٣٨٣)

**تسهيلات: قوله أنا ثالث:**

**په شراکت کښې د خيانت نقصان:-** يعنې په تجارت کښې چه ترکومې شريکوال په ايمندارئ سره کارکوی دالله تعالى دطرف نه د دغه شريکوالو مالونه اودهغوی منافع محفوظ وی هيڅ آفت او تباهی په هغې باندې نه راځی اوالله تعالى په دغه مال کښې برکت اچوی خوچه په شريکوالو کښې کله خيانت دهوکه او بې ايمانی شروع کيږی نودالله تعالى د حفاظت سوری اخواکيږی او په مينځ کښې شيطان راځی اوبيا په مالونو کښې نقصان اوتباهی شروع کيږی په دې وجه چه کله يو شريکوال د بل شريکوال په بنيګړه کښې نګ وی نود الله تعالى امداد ورسره شامل حال وی لکه چه حديث کښې دی بنده چه تر کومې پورې د خپل رور په امداد کښې لګياوی ترهغې پورې الله تعالى دهغه امداد کوی

**[٣٠] په هرحالت کښې د خيانت څخه ځان بچ کول**

٣٠٣ـ[د] (١) [١] وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ "[٢] «أَدِّ الْأَمَانَةَ إِلَى مَنِ ائْتَمَنَكَ، وَلَا تَخُنْ مَنْ خَانَكَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [٢] کوم سړی چې ته امين جوړ کړې يې د هغه امانت هغه ته ورسوه او کوم سړی چې ستا سره خيانت وکړي ته د هغه سره خيانت مه کوه. (ترمذي ابوداود دارمي)

**خيانتګر سره هم د خيانت کولو ممانعت:-** کوم کس تاسره خيانت اوکړی نو ته د هغه سره خيانت مه کوه ګنی ته به هم دغه شان خائن جوړ شې بلکه د خپل حق په اندازه د ده مال واخله او د ده حق نه زيات اغستلو سره په ده ظلم مه کوه

**د مالدار قرضدارقرض نه ادا کولو په صورت کښې مذاهب:-**

چه په چا قرض دې هغه سره قرض موجود هم وی بيا هم انکار اوکړی نو د ده په باره کښې درې اقوال دی

① امام شافعي رحمه الله فرمائی چه حقدار د هغه د مال نه مطلقا اغستلې شی خواه که د قرض د جنس نه وی او که نه وی

② د امام مالک رحمه الله په نزد په هيڅ صورت کښې هم د هغه د مال نه نشی اغستلې امام مالک هم د دې حديث نه استدلال کوی ليکن مونږ جواب ورکو چه دا خيانت نه دې بلکه خپل حق وصولول دی او دا حديث د حق نه زيات وصولولو باندې محمول دې

③ د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد که د يو کس په بل باندې حق وی او حقدار لره د هغه په مال

١) اخرجه ابو داود فى السنن رقم الحديث ٣٥٣٥ والترمذی فی السنن رقم الحديث ١٢٦٤ والدارمی فی السنن رقم الحديث ٢٥٩٧

باندي قدرت هم وي نو هغه د خپل مال په اندازه د هغه د مال نه اغستلي شی خو په دي شرط چه هغه مال هم د قرض د جنس څخه وي

**[٢٣٥] په خيبر کښې د نبی عليه السلام وکالت کول**

٢٩٣٥-[٦] (١) [١] وَعَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: «أَرَدْتُ الْخُرُوجَ إِلَى خَيْبَرَ فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ [٢] وَقُلْتُ: إِنِّي أَرَدْتُ الْخُرُوجَ إِلَى خَيْبَرَ [٣] فَقَالَ: " إِذَا أَتَيْتَ وَكِيلِي فَخُذْ مِنْهُ خَمْسَةَ عَشَرَ وَسْقًا [٤] فَإِنِ ابْتَغَى مِنْكَ آيَةً فَضَعْ يَدَكَ عَلَى تَرْقُوَتِهِ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت جابر ﷜ وايي چې ما خيبر ته د تلو اراده وکړه نو (د رخصت کيدو په اراده سره، د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شوم او حضور ﷺ ته ما سلام وکړي [٢] او عرض مې اوکړو چې ما خيبر ته د تلو اراده کړيده. [٣] حضور ﷺ وفرمايل هر کله چې ته خيبر ته ځما وکيل لره ورشې نو د هغه څخه پنځلس وسق کجورې واخله [٤] که هغه ستا څخه څه نښه وغواړي نو خپل لاس د هغه په حلق کيږده. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① تَرْقُوَتِهِ: ترقوت د مرئ او حلق هډوکی ته وائي

**تسهيلات: قوله:** تَرْقُوَتِهِ:

**د نبی کريم صلی الله عليه وسلم او د وکيل په مينځ کښې نښه (کوډ):** - يعنې خپل لاس دَهغه په حلق اودَ مرئی په هډوکی باندې کيږده هغه به پوهه شی چه ته واقعی دَ هغه مؤکل يعنی دَحضورپاك دَ طرف ه راغلې ئی. پخوا زمانه کښې به دَ قاصد دَتصديق دَپاره خپل خاص څيز مثلاً څادر ګوتمه ټوپئی يا تسبيح وغيره ورکولې شو دې دَپاره چه دَ دغه قاصد تصديق اوشی حضورپاك خپل وکيل ته اول وئيلی وو چه ستا اوزما په مينځ کښې دا نښه ده کوم قاصد چه ستا دَ مرئی په هډوکی لاس کيخودو هغه به زما دَ طرف نه درليګلې شوی وی په دې حديث کښې حضورپاك دغه قاصد ته هم دَ دا شان معاملې ترتيب خودلې وو

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٢٣٦] دَ شرکت مضاربت ثبوت او برکت**

٢٩٣٦-[-] (٢) [١] عَنْ صُهَيْبٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: " «ثَلَاثٌ فِيهِنَّ الْبَرَكَةُ: [٢] الْبَيْعُ إِلَى أَجَلٍ، وَالْمُقَارَضَةُ، وَاخْتِلَاطُ الْبُرِّ بِالشَّعِيرِ لِلْبَيْتِ لَا لِلْبَيْعِ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] حضرت صهيب ﷜ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل درې څيزونه داسې دي چې په هغه کې برکت (يعني ډير زيات خير او نيکي) حاصليږي [٢] ① په نيته باندې خرڅول يعنی خريدار ته د قيمت په ادائيګۍ کې مهلت ورکول ② مضاربت ③ په غنمو

---

١) اخرجه ابو داود فی السنن كتاب الأقضية/باب فی الوكالة (رقم-٣٦٣٢)

٢) اخرجه ابن ماجة فی السنن كتاب التجارات/ باب الشركة والمضاربة (رقم-٢٢٨٩)

کې وربشي ګډول د کور د خرڅ د پاره نه دخرڅولو د پاره . «ابن ماجه»

**حل اللغات** - ① أَجَلٍ نیټه، معلومه موده، ② الْمُقَارَضَةُ: مضاربت یعنی چې د یوطرف څخه مال او دبل طرفه عمل وی ③ الْخِلَاطُ: ګډوډول، یوځاې کول

**تسهيلات**: **قوله ثَلَاثٌ**: اى خصال ثلاث،

**په درې څیزونو کښې برکت:** - ① یعنی مشتری ته دَ ثمن په اداکولو کښې مهلت ورکول دې دپاره چه هغه په آسانئ سره پیسې اداکړې شي

② "المقارضه" مضاربت ته مقارضه اوونیلې شو په دې حدیث سره دَ مضاربت شرکت ثابت شو اودَ دې دَ برکت ثبوت هم ملاؤشو په مضاربت کښې مال دَ یوسړی وی او محنت دَ بل سړی وی او دواړه په منافع کښې شریکوال وی نن صبا پاکستانی بینکونوکښې سودی کاروبار شروع دې چه دَ ملك دپاره تباهی ده که ددې په ځائی مضاربت وې چه په نفع اونقصان کښې دواړه شریك وی نو په دې کښې به ثواب اوبرکت هم وو اودَ سود دَ لعنت نه به ملك هم آزاد وې

③ غنموسره چه کوم ملاوولی شی په دې کښې برکت دې کوم دَ غنمو اوړه چه ارزان وی دغه شان به تر ډیره وخته پورې چلیږی اودا صورت په کورونوکښې دَ استعمال دپاره دې په اخستلو خرڅولوکښې دا ګډون کول دَ لعنت سبب دې ځکه چه په دې کښې خیانت دې

### [٢٣٤] په تجارت کښې د برکت دعا

۲۹۳۰ - (١) [٨] ⓵ وَعَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَعَثَ مَعَهُ بِدِينَارٍ لِيَشْتَرِيَ لَهُ بِهِ أُضْحِيَّةً، ⓶ فَاشْتَرَى كَبْشًا بِدِينَارٍ، وَبَاعَهُ بِدِينَارَيْنِ، ⓷ فَرَجَعَ فَاشْتَرَى أُضْحِيَّةً بِدِينَارٍ فَجَاءَ بِهَا وَبِالدِّينَارِ الَّذِي اسْتَفْضَلَ مِنَ الْأُخْرَى، ⓸ فَتَصَدَّقَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِالدِّينَارِ فَدَعَا لَهُ أَنْ يُبَارَكَ لَهُ فِي تِجَارَتِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: ⓵ او د حضرت حکیم بن حزام ﷺ په باره کې منقول دی چې رسول الله ﷺ هغه د یو دینار سره ولیږلو چې د حضور ﷺ د پاره د قربانۍ څاروی واخلي ⓶ هغه د هغه دینار په عوض کې یو ګډه واخستې او بیا یې هغه په دوه دیناره خرڅ کړي، ⓷ د دې څخه فارغیدو سره هغه د قربانۍ یو بل پسه واخستې او د هغه حیوان سره یې هغه دینار هم حضور ﷺ ته راوړو. ⓸ حضور ﷺ هغه دینار صدقه کړي، او د حکیم ابن حزام ﷺ په حق کې یې دادعا وکړه چې الله ﷻ دې د هغه په تجارت کې برکت ورکړي. ترمذي ابوداود»

**حل اللغات** - ① كَبْشًا: ګډ ② اسْتَفْضَلَ چې د یو دینار څخه زیاتې شوې

(١) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب البیوع/باب فی المضارب یخالف (رقم-٣٣٨٦) والترمذی فی کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-١٢٥٧)

**تسهیلات:**

**قوله بِدِينَارٍ:**

**د یو صحابی هوښیارتوب او عقلمندی:**-دَدې صحابی هوښیارتوب اوعقلمندنی ته گوره اودَهغه تجارتی مهارت اوگوره چه حضورپاك هغه ته دَ قربانئی دَ څاروی دَاخستلودَپاره هغه ته یودینارورکړونوهغه دَ یودینا په بدله کښې گډ واخستلو اوبیائی هم په دغه منډئی کښې په دوه دیناره خرڅ کړو اوبیائی په یودینار باندې بل گډواخستلو اویودینار بېرته کولوسره راغلو حضورپاك دَهغه دَپاره په تجارت کښې دَبرکت دعا اوکړه اودَ دغه دینار دَصدقه کولوحکم ئی ورکړو څکه چه دا گټه دَ یوداسې څاروی په واسطه سره شوې وه چه دَ قربانئی دَپاره اخستې شوې وو اودَ قربانئی دَ څاروی ټوله گټه هم په صدقه کښې شامل وی

**د یو تعارض دفعه:**- دَدې برعکس دې نه مخکښې حدیث نمبر(٢٩٣٢) کښې هم دغه شان واقعه پیښه شوې ده هلته نبی کریم ﷺ دینا پخپله واخستو څکه چه هلته دَ قربانئی صورت نه وو

**په حدیث کښې یوه فقهی مسئله:**- دَدې نه فقهاؤ دا مسئله راویستې ده چه دَ قربانئی دَ څاروی منافع به صدقه کولې شی دَدې حدیث نه داخبره بالکل واضحه شوه چه په تجارت کښې برکت وی دَدې حدیث نه داخبره هم معلومه شوه چه دَ فضولی عقد صحیح کیږی اودَ مالك په اجازت باندې موقوف ده شوافع دَ فضولی بیع ته ناجائز وائی تفصیل تیرشوې دې

# [ ١٠ ]بَابُ الْغَصْبِ وَالْعَـارِيَّةِ]

## دَ غصب او عاريت بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه اثنان وعشرون حديثاً مشتملة على أربع مسائل:**

① عقوبة التصرف في ملك الغير بغير إذنه والنهي عنه: ١، ٢، ٣، ٥، ٧، ٨، ٩، ١٠، ٢٠، ٢١، ٢٢

② ضمان بعض الأموال وعدم ضمان بعضها: ٣، ١١، ١٢، ١٣، ١٤۔

③ جواز الاستعارة وحكمها: ٦، ١٧، ١٨۔

④ وقت جواز أكل مال الغير: ٥، ١٦، ١٩۔

**قوله:** الْغَصْبُ:

**د غصب لغوی او اصطلاحی معنی :-** غصب په لغت کښې په زور اخستوته وائی او په اصطلاح کښې دَ ظلم په توګه دَ چا مال اخستلو نوم غصب دې په دې کښې په زور اخستونکې غاصب وی دَ چانه چه اخستې شوې وی هغه مغصوب منه وی او غصب شوی مال ته مغصوب وائی.

**قوله:** وَالْعَـارِيَّةِ:

**د عاریت لغوی معنی:-** د عاریت لغوی معنی غوښتلې شوې څیز

**دعاریت اصطلاحی تعریف:-** په اصطلاح کښې دَعاریت تعریف داسې دې چه یوسړی ته دَ عوض نه بغیر دَ خپل مال دَمنافع مالك جوړولوته عاریت وائی علامه توریشتی رحمه الله فرمائی چه دالفظ دَعار طرف ته منسوب دې ځکه چه دغه شان غوښتلوکښې عار یعنی شرم محسوس کیږی

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [٢٣٨]دَ غاصب سزا

٢٣٨-[١](١)① عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-② «مَنْ أَخَذَ شِبْرًا مِنَ الْأَرْضِ ظُلْمًا ③ فَإِنَّهُ يُطَوَّقُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ سَبْعِ أَرَضِينَ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت سعید ابن زید رضی الله عنه وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② کوم سړی چې د یوه لیشت برابر زمکه هم په ظلم واخلي، ③ نو د قیامت په ورځ به د اوو زمکو څخه هغومره

---

١) اخرجه البخاري في كتاب بدء الخلق/باب ما جاء في سبع أرضين (رقم-٣١٩٨) ومسلم في كتاب المساقاة/باب تحريم الظلم وغصب الأرض وغيرها (رقم-١٤٠ - (١٦١٠) والترمذي في كتاب الديات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فيمن قتل دون ماله فهو شهيد (رقم-١٤١٨) واحمد في المسند:١٨٧/١

زمکه د هغه په څټ کې د طوق په طور واچول شي. (بخاري مسلم)

**حل لغات:** - ①شِبرًا: یوه لویشت، ②یُطَوَّقُهُ: طوق به ورته واچولې شی. (په غاړه کښې تیزندئ اچولو ته طوق وانی)

**تسهیلات:**

**قوله: مِنْ سَبْعِ أَرَضِينَ:**

**د حدیث په مفهوم کښې درې اقوال:** - یعنی دَ اووه زمکونه دومره حصه دَ دغه غاصب په غاړه کښې په توګه دَ طوق اچولې شی

① دَ اووه زمکونه په اندازه دَ غصب پرې کولوسره دَ غاصب په غاړه کښې طوق کولې شی

② غاصب به دَ غصب کړې زمکې لاندې ورخښولې شی. نوغصب کړې حصه به دَ دغه سړی دَ غاړې طوق جوړیږی اودې به راګیر کړی.

③ غاصب به په دغه زمکه اوچتولو سره مجبورولې شی. په دې حدیث سره مسلمانانوته داتعلیم ورکولې شی چه غصب یوسخت جرم دې. اسلام دَ امن او رورولئ مذهب دې. په دې کښې دَ هرسړی دَ خان اومال حفاظت دې لهذا په دې کښې دَغصب تصور نه شی کیدې.

**[۲۳۹]د حیواناتو د تینو په پیو کښې د مالک استحقاق**

۲۳۹—[۲] (۱) ①وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ②«لَا يَحْلُبَنَّ أَحَدٌ مَاشِيَةَ امْرِءٍ بِغَيْرِ إِذْنِهِ، ③أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَنْ يُؤْتَى مَشْرُبَتُهُ فَتُكْسَرَ خِزَانَتُهُ فَيُنْتَقَلَ طَعَامُهُ؟ ④وَإِنَّمَا يَخْزُنُ لَهُمْ ضُرُوعُ مَوَاشِيهِمْ أَطْعِمَاتِهِمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① و حضرت ابن عمر ﷺ وایې چې رسول الله ﷺ وفرمایل ②یو سړی دې د بل سړي د حیوان پئ د هغه د اجازت څخه بغیر نه لوشي. ③آیا په تاسو کې یو سړی دا خبره خوښوي چې یو سړی د هغه خزانه (یعني د هغه د غلې ګودام) ته راشي او د هغه خزانه (ګودام) دی مات کړي ددې پورې چې د هغه څخه غله پورته شي. ④دغه شان (پوهه شي چه) د نورو د څارویو غولانځي د هغوئ د غذائي ضرورت (پیئو) حفاظت کوي. (مسلم)

**حل لغات:** - ①لَا يَحْلُبَنَّ: نه دې لوشی، ②مَاشِيَةَ: څاروې، حیوان، ③مَشْرُبَتُهُ: دغلې ګودام (دپیو)، ④خِزَانَتُهُ: ګودام، ⑤فَيُنْتَقَلَ: نو پورته کړې شی، یوړلې شی، ⑥يَخْزُنُ: خزانه کوی، حفاظت کوی، ⑦ضُرُوعُ: غولانځې،

۱ ) اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب لا تحتلب ماشية أحد بغير إذنه (رقم-۲۴۳۵) ومسلم فی کتاب اللقطة/باب تحريم حلب الماشية بغير إذن مالكها (رقم-۱۳ - (۱۷۲۶))واخرجه ابو داود فی السنن کتاب الجهاد/باب فيمن قال: لا يحلب (رقم-۲۶۲۳) وابن ماجه فی کتاب التجارات/ باب النهی أن يصيب منها شيئا إلا بإذن صاحبها (رقم-۲۳۰۲) ومالک فی الموطا کتاب الاستئذان/باب ما جاء فی أمر الغنم (رقم-۱۷)

**تسهيلات:**

**قوله مَشْرُبَتُهُ:**

**د لفظ مشربة تشريح:** - په ميم فتحه ده په راء باندې ضمه هم ده او فتحه هم جائز ده دَ ستور اوګودام کمرې ته وئيلې شي ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي اي غرفته وهي بيت فوقاني يوضع فيه المتاع مطلب دادې چه دَ څاروو په تينوکښې چه کوم پئى دى دادَمالك ملکيت دې لکه چه تينه په منزله دَ ستور ګودام يا خزانې دى دَ مالك دَاجازت نه بغيرڅه اخستل منع دى که يو سړې په خپل ذاتي ستور ګودام يا خزانه کښې څوك داخلول ناخوښه ګڼړي نودغه شان دَ څاروو دَ تينونه دَهغې مالك پئى ويستل نه خوښه وى اوکه چرې يوسړې دَ مخمصه په حالت کښې وى نودَ ځان بچ کولو ترحده پورې پئى اخستې شى اوبيا دې دَهغې قيمت ورکړى

**بغير د اجازت نه د نورو خلقو د څناورو پئى څښکل:** - علماؤ ليکلى دى چه که اذن دلالةً وى نوبيا جائزدى لکه دَ بعض رمو مالکان په لارکښې تيريدونکې چيلو پئى دَخلقو دَپاره عام کوى اوخلق پئى راؤباسى اوکه اجازت نه دلالةً وى اونه صراحةً اوسړې په اضطرارى حالت کښې وى نو بيا هم دَ سړى دَپاره دَ ځان بچ کولودَ حد پورې صرف څکل جائز دى کورته اوړل جائزنه دى اوکوم ئى چه اوڅکل دَهغې قيمت به اداکوى

**ترکيب** يخزن فعل دې ضروع دَدې فاعل دې اواطعماتهم مفعول به دې

[۲۷۳۰] دَکاسې بدله کښې کاسه

۲۷۳۰-[۲] (۱) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عِنْدَ بَعْضِ نِسَائِهِ، [۳] فَأَرْسَلَتْ إِحْدَى أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ بِصَحْفَةٍ فِيهَا طَعَامٌ [۴] فَضَرَبَتِ الَّتِي النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي بَيْتِهَا يَدَ الْخَادِمِ، فَسَقَطَتِ الصَّحْفَةُ، فَانْفَلَقَتْ، [۵] فَجَمَعَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِلَقَ الصَّحْفَةِ،

**ترجمه:** [۱] او حضرت انس رضي الله عنه وايي [۲] چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ خپلې بي بي (يعني بي بي عائشه رضي الله عنها) سره قيام فرماوو. [۳] په بيبيانو مبارکو کې يوې (يعني بي بي زينب رضي الله عنها يا بي بي صفيې رضي الله عنها يا بي بي ام سلمه رضي الله عنها) يو رکاب راوليږلى چې په هغه کې د خوراك څه څيز وو (د هغه په ليدو سره) [۴] کومې بي بي سره چې حضور ﷺ تشريف فرماوو (يعني بي بي عائشه رضي الله عنها) خادم په لاس (داسې) ووهلى چې هغه پيالى وغورځيده او ماته شوه. [۵] رسول الله ﷺ د هغه رکاب ټکړى يو ځاى کړې

**حل اللغات** - ① صَحْفَةٍ: د خاورو کاسه. پيالى. ② فَانْفَلَقَتْ: نو ماته شوه. ③ فِلَقَ: ماتې ټکړې.

۱) اخرجه البخاري في كتاب النكاح/باب الغيرة (رقم-۵۲۲۵) والنسائي في كتاب عشرة النساء/باب الغيرة (رقم-۳۹۵۵) واحمد في المسند: ۲۶۳/۳

① ثُمَّ جَعَلَ يَجْمَعُ فِيهَا الطَّعَامَ الَّذِي كَانَ فِي الصَّحْفَةِ ② وَيَقُولُ (غَارَتْ أُمُّكُمْ) ثُمَّ حَبَسَ الْخَادِمَ حَتَّى أُتِيَ بِصَحْفَةٍ مِنْ عِنْدِ الَّتِي هُوَ بَيْتِهَا، ③ فَدَفَعَ الصَّحْفَةَ الصَّحِيحَةَ إِلَى الَّتِي كُسِرَتْ صَحْفَتُهَا، ④ وَأَمْسَكَ الْمَكْسُورَةَ فِي بَيْتِ الَّتِي كَسَرَتْ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**: ① او بیا په هغه ټکړو کې د خوراك هغه څيز راجمع کړې، کوم چې په رکاب کې وو، ② حضور ﷺ وفرمایل چې ستاسو مور ته غیرت ورغلو، بهرحال رسول الله ﷺ (تر څه وخته، خادم په انتظار کړې، ددې پورې چې د کومې زوجې مطهرې په کور کې حضور ﷺ قیام فرما وو (یعنې بي بي عائشه ؓ) د هغې څخه دویم رکاب راوړل شو ③ او بیا حضور ﷺ (د هغه خادم په ذریعه) هغه بي بي ته چې د هغه رکاب مات شوې وو، هغه صحیح او سالم رکاب ولیږلی ④ او هغه مات رکاب یې د هغه بي بي په کور کې کېښودلې کومې چې هغه رکاب مات کړې وو، (بخاري)

**حل اللغات**: - ④غَارَتْ: غیرت ورغې، ⑤الْمَكْسُورَةَ: ماته کړې شوې.

**تسهیلات**: **قوله**: بَعْضِ نِسَائِهِ:

**دبعض مصداق**: - دې نه مراد ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه ؓ ده

**قوله**: يَدَ الْخَادِمِ:

**د خادم مصداق**: - دَخادم لفظ دَ غلام او وینځې دواړو دَپاره ونیلې شي دلته دَخادم نه مراد وینځه ده

**قوله**: غَارَتْ أُمُّكُمْ:

**د امکم په مخاطبینو کښې احتمالات**: -

① دا خطاب دهغه دور موجودو حاضرینو ته دې

② پوره امت ته خطاب دې

**پوره امت ته د خطاب په صورت کښې حکمت**: - دې دَپاره چه دَ امت دَ خلقونه دَچا په زړه اوماغو کښې دَ حضرت عائشه صدیقه ؓ دَپاره څه بغض وغیره پیدا نه شي په دې وجه حضور پاك دَحضرت عائشه ؓ دَ طرف نه عذر بیان کړو چه په بنوکښې داسې کیږی دا بشری تقاضا ده عائشه صدیقه ؓ په دې کښې معذوره ده

**اول اشکال**: - دَدې حدیث غصب یا عاریت سره هیڅ تعلق نشته دې بیا دادلته ولې راوړلې شو؟

**د اشکال جواب**: - قاضی عیاض ؒ فرمائی چه دَ بل مال ضائع کولوسره تباه کول یوقسم غصب دې یا چه دا اوونیلې شي چه په رکیبئی کښې خوراك تحفه وه مګر پخپله رکیبئی په توګه دَعاریت وه

**دويم اشكال:** - حضور پاك د ماتې پيالنې په بدله كښې ثابته پيالنى واپس كړه حالانكه دا پيالنى د ذوات القيم نه ده قيمت واپس كول پكار وو د ذوات الامثال نه نه ده؟

**د دويم اشكال دوه جوابونه:** - ① په حقيقت كښې دا دواړه لوښى د حضور پاك ملكيت وو حضور پاك د مروت په توګه داسې اوكړه د ضمان په توګه نه وو

② بعض لوښى د ذوات الامثال د قبيل نه وى لكه څنګه چه بعض عدديات ذوات الامثال وى لكه چه هګۍ ده

**[۲۳۱] د مسلمان د مال لوټ كولو حرمت**

۲۹۳۱—[۳] (۱) ①وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ يَزِيدَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②أَنَّهُ «نَهَى عَنِ النُّهْبَةِ وَالْمُثْلَةِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ①او حضرت عبد الله ابن يزيد ﷺ د رسول الله ﷺ څخه نقل كوي② چې رسول الله ﷺ د لوټ ماركولو او مثله كولو څخه منع فرمايلي ده، (بخاري)

**حل اللغات** - ①النُّهْبَةِ: لوټ مار، ②الْمُثْلَةِ: د مړى نه اندامونه پريكول.

**تسهيلات: قوله:** وَالْمُثْلَةِ:

**د مثله تعريف او حرمت:** - لاس خپې غوږ پوزه پرې كول بدن ورانولو ته مثله وائى دا هم په اسلام كښې منع دى. د اسلام په شروع كښې څه داسې واقعات شوي وو بيا د هميشه د پاره دا حرام اوګرځولې شو دې نه معلومه شوه چه د ميډيكل طلبه چه مړى په پټه باندې د قبرونو نه راوباسى اوبيا په هغې باندې تجربې كوى ټول حرام دى انسان الله تعالى قابل احترام جوړ كړې دې

**[۲۳۲] د حاجيانو د سامان پټونكى حشر**

۲۹۳۲—[د] (۲) ①وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ②«انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ مَاتَ إِبْرَاهِيمُ ابْنُ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③فَصَلَّى بِالنَّاسِ سِتَّ رَكَعَاتٍ بِأَرْبَعِ سَجَدَاتٍ، فَانْصَرَفَ وَقَدْ آضَتِ الشَّمْسُ» ④وَقَالَ: "مَا مِنْ شَيْءٍ تُوعَدُونَهُ إِلَّا قَدْ رَأَيْتُهُ فِي صَلَاتِي هَذِهِ، ⑤لَقَدْ جِيءَ بِالنَّارِ، وَذَلِكَ حِينَ رَأَيْتُمُونِي تَأَخَّرْتُ مَخَافَةَ أَنْ يُصِيبَنِي مِنْ لَفْحِهَا،

**ترجمه:** ①او حضرت جابر ﷺ وايي② چې د رسول الله ﷺ د خوى حضرت ابراهيم د وفات په ورځ نمر تندر ونيولى.③نو حضور ﷺ خلقو ته د نمر تندر نيولو مونځ په شپږ ركوع او څلور سجدو سره وركړي، يعنې دوه ركعاته يې وكړل او په هر ركعت كې يې درې درې

---

۱) اخرجه البخاري في كتاب الإجارة/باب النهى بغير إذن صاحبه (رقم - ۲٤۷٤)

۲) اخرجه مسلم في كتاب الكسوف/باب ما عرض على النبي صلى الله عليه وسلم في صلاة الكسوف من أمر الجنة والنار(رقم) ۱۰ - (۹۰٤)واحمد في المسند: ۳۱۸/۳

ركوع او دوه دوه سجدې وکړې، او کوم وخت چې حضور ﷺ د مونځ څخه فارغه شو نو نمر د مخکې په شان روښانه شوی وو. [٤] بيا حضور ﷺ وفرمايل د کوم ځيز (يعنې د جنت او دوزخ) چې د تاسو سره يې وعده کېږي، هغه مانن په خپل دې مونځ کې وليدل. [٥] دوزخ ما مخې ته پيش کړل شو، او دا هغه وخت وو، هر کله چې د مونځ په دوران کې تاسو زه په وروسته کيدو ليدلی وم او زه د دې خوف څخه وروسته شوم، چې چرته د هغه ګرمي ماته راونه رسيږي.

**حل اللغات:** - ①انْكَسَفَتْ: نمر تندر اونيولو (سورج ګرهن). ②آضَتْ: خپل حالت ته واپس شو، روښانه شو. ③تُوعَدُونَهُ: چه تاسو سره ئې وعده کيږي. ④لَفْحِهَا: ګرمی دهغې.

[١] وَحَتَّى رَأَيْتُ فِيهَا صَاحِبَ الْمِحْجَنِ يَجُرُّ قُصْبَهُ فِي النَّارِ [٢] وَكَانَ يَسْرِقُ الْحَاجَّ بِمِحْجَنِهِ، فَإِنْ فُطِنَ لَهُ قَالَ: إِنَّمَا تَعَلَّقَ بِمِحْجَنِي، وَإِنْ غُفِلَ عَنْهُ ذَهَبَ بِهِ [٣] وَحَتَّى رَأَيْتُ فِيهَا صَاحِبَةَ الْهِرَّةِ الَّتِي رَبَطَتْهَا، فَلَمْ تُطْعِمْهَا وَلَمْ تَدَعْهَا تَأْكُلُ مِنْ خَشَاشِ الْأَرْضِ حَتَّى مَاتَتْ جُوعًا [٤] ثُمَّ جِيءَ بِالْجَنَّةِ وَذٰلِكَ حِينَ رَأَيْتُمُونِي تَقَدَّمْتُ حَتَّى قُمْتُ فِي مَقَامِي [٥] وَلَقَدْ مَدَدْتُ يَدِي وَأَنَا أُرِيدُ أَنْ أَتَنَاوَلَ مِنْ ثَمَرَتِهَا لِتَنْظُرُوا إِلَيْهِ [٦] ثُمَّ بَدَا لِي أَنْ لَا أَفْعَلَ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] ما هغه وخت په دوزخ کې خمدار لرګي واله (يعنې عمرو ابن الحی) په داسې حال کې وليدلو چې هغه به هغه کې خپلې کولمې راښکلې، [٢] دې سړي به د خپل خمدار لرګي په ذريعه د حاجيانو سامان غلا کوی (د هغه طريقه دا وه چې هغه به تللو تللو کې د چا څه ځيز په خپل خمدار لرګي کې ونخلولی) که چا به يې دا حرکت وليدلو نو هغه به وئيل چې دا شی (په خپله) خما په لرګي کې نختي دی او که چا به ونه ليدی، نو هغه ځيز به يې غائب کړي (غلا به يې کړي) [٣] او ما هغه وخت په دوزخ کې هغه د پيشو والا ښځه هم وليدله چې هغه يوه پيشو تړلې وه چې نه به يې څه ورباندې خوړل او نه به يې هغه پريښودله، چې هغه حشرات الارض (يعنې مږې، منږك وغيره) وخوري ددې پورې چې هغه پيشو د لوږې څخه مړه شوه. [٤] بيا (خما په مخکې جنت پيش کړل شو او دا هغه وخت وو چې کوم وخت زه تاسو په مخکې کيدو وليدم خو بيا زه په خپل ځای ودريدم [٥] او ماخپل لاس اوږد کړي چې زه د هغه ميوه وشکوم چې تاسو يې هم ووينئ، [٦] ليکن ماسوچ وکړي چې ما ته داسې کول نه دي پکار (چې ستاسو په ايمان بالغيب کې ګډوډي راشي) مسلم

**حل اللغات:** - ⑤صَاحِبَ الْمِحْجَنِ: خمدار لرګی والا، ازغن، غوتن لرګی والا. ⑥قُصْبَهُ: کولمې خپلې. ⑦يَسْرِقُ: غلا به ئې کوله. ⑧فَإِنْ فُطِنَ: که خبربه شو. ⑨صَاحِبَةَ الْهِرَّةِ: پيشو والا ښځه. ⑩خَشَاشِ الْأَرْضِ: د زمکې حشرات (يعنې مږې، چندخان وغيره) ⑪مَدَدْتُ: ما اوږد کړې وو.

**تسهيلات: قوله: صَاحِبَ الْمِحْجَنِ:**

**د مذکوره جملې وضاحت- محجن** خمدار چوکې ته وائي يا هغه همسا دَ کومې په سرکښې چه راتاؤ شوې اوسپنه يوځائې کړې شوې وی. دَ صاحب نه مراد عمرو بن لحی دې ليکن د

ده خساست ته گوره چه دې په تنګه لاړکښې ناست په خمداره چوکه سره د خلقو څادرې وغيره اينخلولو پټولوبه نې که چا ته به معلومه شوه چه څادرنې رابنکلو نو ده به وئيل چه په غلطئى سره داسې اوشو اوکه چاته به پته اونه لګيدله نو ده ترې څادر وغيره اووهل

**د حديث فوائد:-** ① ددې حديث نه معلومه شوه چه دوزخ اوجنت دې وخت کښې موجود دى ② او په مونځ کښې قليل عمل جائز دې

③ او په خناور باندې رحم خوړلوسره الله تعالى خوشحاليږى او په دې باندې ظلم کولوسره ناراضه کيږى

**[٢٣٣] د سورلئى خناور عارية غوښتلو جواز**

**٢٣٣—[١] (١) [١] وَعَنْ قَتَادَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسًا يَقُولُ: [٢] «كَانَ فَزَعٌ بِالْمَدِينَةِ فَاسْتَعَارَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَرَسًا مِنْ أَبِي طَلْحَةَ يُقَالُ لَهُ: الْمَنْدُوبُ، فَرَكِبَ [٣] فَلَمَّا رَجَعَ قَالَ: "مَا رَأَيْنَا مِنْ شَيْءٍ [٤] وَإِنْ وَجَدْنَاهُ لَبَحْرًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

**ترجمه:** [١] او حضرت قتاده ﷺ وايې چې حضرت انس ﷺ فرمايل (يوه ورځ په دې خيال چې د کفارو لښکر مدينې ته نزدې راغلى دى) [٢] په مدينه کې د خوف او ويرې يو حالت پيدا شوي وو (د دې ليدو سره) رسول الله ﷺ د حضرت طلحه ﷺ آس چې مندوب يعنى سست ورته وئيل کيدلى، عارية اوغوښتلو او په هغه سوريدو سره (د تحقيق حال د پاره د مدينې څخه بهر) ووتلو [٣] بيا چې حضور ﷺ واپس راغلو نو وې فرمايل چې ما د خوف او ويرې هيڅ څيز ونه ليدلو [٤] او ما دا آس کشاده قدم يعنى تيز رفتار د سمندر پشان و موندلو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات** - ① فَزَعٌ: خوف، ويره، ② اسْتَعَارَ: په عاريت نې اوغوښتلو، ③ الْمَنْدُوبُ: سست، (د حضرت طلحه د اس نوم دې) ④ بَحْرًا: سمندر، (د سمندر په شان چټک وهونکې)

**تسهيلات:**

**قوله فَاسْتَعَارَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَرَسًا:**

**د حديث فوائد:-** ① ددې حديث نه معلومه شوه چه د سورلئى د پاره عارية خناور غوښتل جائز دى

② اودا هم معلومه شوه چه د خناور نوم کيخودل هم جائز دى لکه د اس نوم نى مندوب کيخودې دې

---

١) اخرجه البخارى فى كتاب الهبة وفضلها والتحريض عليها/باب من استعار من الناس الفرس والدابة وغيرها (رقم ٢٦٢٧) ومسلم فى كتاب الفضائل/باب فى شجاعة النبى عليه السلام وتقدمه للحرب (رقم ٤٩ - (٢٣٠٧) اخرجه ابو داود فى السنن كتاب الأدب/باب ما روى فى الرخصة فى ذلك (رقم-٤٩٨٨) والترمذى فى كتاب الجهاد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الخروج عند الفزع (رقم ١٦٨٦) واحمد فى المسند:١٧١/٣

③ د دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چه څوکنی کول مسنون حکم دې

④ دا هم معلومه شوه چه دَ یو څیز په ښه کارکردګئی باندې دَ هغه تعریف کولې شی او په تعریف کښې مبالغه هم جائز ده لکه څنګه چه دَ اس تیزتلو ته سمندر اوونیلې شو

⑤ او دَ دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چه مسلمانانو ته دَامن او امان زیرې اورول مستحب دی

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [٢٣٣] د شاړې زمکې دَ آبادولو حکم

٣٣—[٧] (١) ١ عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنَّهُ قَالَ: "٢ «مَنْ أَحْيَا أَرْضًا مَيْتَةً فَهِيَ لَهُ، وَلَيْسَ لِعِرْقٍ ظَالِمٍ حَقٌّ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ حضرت سعید ابن زید ﷛ د رسول الله ﷺ څخه نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمایل ٢ کوم سړی چې مړه زمکه ژوندی کړي یعنی بنجر او ویرانه زمکه آباده کړي هغه د هغه ده او د ظالم د رګ هیڅ استحقاق نشته، دا روایت احمد ترمذي ابوداود بطریق ارسال کړي دی

٣٣—(٢) ١ وَرَوَاهُ مَالِكٌ، عَنْ عُرْوَةَ مُرْسَلًا، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ١ او امام ترمذي ﷫ ویلي دي چې دا حدیث حسن غریب دی

**حل اللغات:** - ① أَحْيَا: ژوندی کړه، رازرغونه کړه، ② أَرْضًا مَيْتَةً: مړه زمکه یعنی بنجر او شاړه زمکه، ③ عِرْقٍ: رګ،

**تسهیلات: قوله:** فَهِيَ لَهُ:

### د احیاء الموات د ملکیت شرطونه: -

① د احیاء الموات یو شرط دا دې چې هغه زمکه دَ یو مسلمان ملکیت نه وی

② دَ کلی یا ښاریښی دَ ضروریات څخه نه وی

③ هغې سره څه عوامی فائده تړلې نه وی داسې شاملات زمکه چه چا آباده کړه هغه هم دده کیږی

### د احیاء الموات په ملکیت کښې مذاهب: -

① امام ابوحنیفه ﷫ فرمائی چه دا ملکیت به هغه وخت حاصلیږی چه دَوخت دَ حکومت دطرف نه صراحةً یا دلالةً اجازت وی

---

١) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الخراج والإمارة والفیء/ باب فی إحیاء الموات(رقم-٣٠٧٣) والترمذی فی کتاب الأحکام عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما ذکر فی إحیاء أرض الموات(رقم-١٣٧٨)

٢) اخرجه مالک فی الموطا کتاب الأقضیة/باب القضاء فی عمارة الموات(رقم-٢٦)

② امام شافعی ﷺ اوصاحبین فرمائی چه آبادول شرط دې دَحکومت دَ څه اجازت ضرورت نشته دې

**قوله لِعِرْقٍ ظَالِمٍ:**

**د بل په زمکه کښې د تصرف کولو حرمت:** - دَ ظالم دَ رګ مطلب دادې که يوسړې دَ بل سړی آبادې زمکې ته لاړشي ونې اولګوی يا نې اوکری نودَدغه ظالمانه قبضې او غصب نه هغه سړې دَدغه زمکې مالك کيدې نه شی بلکه هغه ته به ونيلی شی چه خپل فصل راوباسه او يوسه او زمکه خالی کړه

**[٢٣٦]د چا مال بغير اجازته حلال نه دی**

| ٢٩٤٦—[٨] (١) ①وَعَنْ أَبِي حُرَّةَ الرَّقَاشِيِّ، عَنْ عَمِّهِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- "②«أَلَا لَا تَظْلِمُوا، أَلَا لَا يَحِلُّ مَالُ امْرِءٍ إِلَّا بِطِيبِ نَفْسٍ مِنْهُ». ③رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي " شُعَبِ الْإِيمَانِ "، وَالدَّارَقُطْنِيُّ فِي "الْمُجْتَبَى". |
|---|

**ترجمه:**①او حضرت ابو حره رقاشي (تابعي) ﷺ د خپل تره څخه نقل کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل②خبردار په چا ظلم مه کوئ د بل چا مال (اخستل يا استعمالول) د هغه د مرضی او خوښی څخه بغير حلال نه دی،③ دا روايت بيهقي په شعب الايمان کې او دار قطني په مجتبی کې نقل کړي دی

**تسهيلات:**

**قوله أَلَا لَا يَحِلُّ مَالُ امْرِءٍ إِلَّا بِطِيبِ نَفْسٍ مِنْهُ:**

**د رضامندۍ څخه بغير د چا دمال خوړولو حرمت:** - ددې حديث مبارک څخه معلومه شوه چې د چا رضا نه وی نوهغه مال خوړل حرام دی په دې باره کښې يوه طريقه رائجه ده چې په چ باندې څه خوشحالی راشی نو د هغه ملګری دهغه څخه ددعوت مطالبه کوی نواوس دوه صورتونه دی

① چې په چا خوشحالی راغلی وی هغه د خپل زړه څخه ملګرو ته دعوت طعام ورکوی نودا جائز ده

② که هغه د زړه څخه د طعام دعوت نه ورکوی خو د شرم د چې يا د ملګرو څخه د مجبوره کيدو په وجه دعوت اوکړی نو په داسې صورت کښې دهغه دعوت خوړل جائز نه دی

١) اخرجه احمد فی المسند ٧٢/٥ والبيهقی فی شعب الايمان.

**[٢٣٧] د ډاکه اچولو حرمت**

٢٣٧—[١] (١) ١ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: أَنَّهُ قَالَ: " ٢ «لَا جَلَبَ، وَلَا جَنَبَ، وَلَا شِغَارَ فِي الْإِسْلَامِ ٣ وَمَنِ انْتَهَبَ نُهْبَةً فَلَيْسَ مِنَّا» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ١ او حضرت عمران ابن حصين ﷺ د رسول الله ﷺ څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ نه جلب (جائز) دی نه جنب او نه شغار په اسلام کې (جائز) دی (جلب د بل په آس پسې د دی د پاره آس زغلول دی چې هغه زيات تيز کړل شی او د مسابقی صورت اختيار کړی او جنب په خپل آس پسې بل آس خالی ترلو او زغلولو ته وايي او شغار هغه بدل چې مهر پکی نه وي بلکه د يو خور او لور د بل د خور او يا لور مهر وی دا نه روا دی ٣ او ياد لری) کوم څوك چې دچامال چل کوي هغه زمونږ څخه نه دی (يعني هغه زمونږ) د جماعت څخه نه دی يا زمونږ په طريقه نه دی حاصل دا چې داسې سړی د دې قابل نه دی چې هغه د اسلامي برادری يو فرد وګڼل شي. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① جَلَبَ: د بل اس پسې تيزولو دپاره اس زغلول، ② جَنَبَ: خپل اس پسې بل اس ترل. ③ شِغَارَ: په نکاح کښې بدل کول چه مهر ختم شی يا کم شی. ④ نُهْبَةً: ډاکه اچول،

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا جَلَبَ، وَلَا جَنَبَ:

**د جلب او جنب د استعمال مواقع:** — دا دوه اصطلاحی الفاظ دی په زکوة کښې دَدې يوجدا مطلب دې کوم چه هلته ليکلې شوې دې او دَ اسونو په زغلولوکښې دَدې جدا مطلب دې کوم ته چه سباق وائی. داهم ليکلې شوی دی او بيوعاتو کښې دَ دې جدا مطلب دې کوم چه دَدې نه مخکښې ليکلې شوی دی

فائده بيوعات کښې صرف جلب وی جنب نه وی.

**[٢٣٨] په ټوقو کښې دَ چا د څيز اوچتولو ممانعت**

٢٣٨—[١٠] (٢) ١ وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِيهِ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: " ٢ «لَا يَأْخُذْ أَحَدُكُمْ عَصَا أَخِيهِ لَاعِبًا جَادًّا، ٣ فَمَنْ أَخَذَ عَصَا أَخِيهِ فَلْيَرُدَّهَا إِلَيْهِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَرِوَايَتُهُ إِلَى قَوْلِهِ: "جَادًّا".

**ترجمه:** ١ او حضرت سائب ابن يزيد د خپل پلار بزرگوار څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ

---

١) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الجهاد/باب فی الجلب علی الخيل فی السباق (رقم-٢٥٨١) والترمذی فی کتاب النکاح عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/ ما جاء فی النهی عن نکاح الشغار (رقم-١١٢٣) والنسائی فی کتاب الجهاد/باب: الشغار (رقم-٣٣٣٤) واحمد فی المسند: ٤٣٩/٤

٢) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الأدب/باب من يأخذ الشیء علی المزاح (رقم-٥٠٠٣) والترمذی فی کتاب الفتن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء لا يحل لمسلم أن يروع مسلما (رقم-٢١٦٠) واحمد فی المسند: ٢٢١/٤

ورمه بل[۲] په تاسو کې دې هېڅوك د خپل ورور امسا اکړه په خندا او مذاق کې د دې مقصد سره نه اخلي چې ځان سره يې وساتي[۳] کوم سړی چې د خپل ورور امسا واخلي نو هغه لره واپس ورکول پکار دی، (ترمذي ابوداود، ليکن د ابوداود روايت د لفظ جاداً پورې دی

**حل اللغات** - ① لاعباً په لوبو ټوقو کښې. ② جاداً قصد کوونکی

**تسهيلات:**

**قوله** عَصَا أَخِيهِ:

**د مذکوره جملې مفهوم:-** د امسا ذکر بطورمبالغه دې ورنه مراد ترينه معمولي څيز دې يعنی د خپل مسلمان رور همسا وغيره څه څيز په رښتيا سره غلا کولوسره پټ کړی او په خندا او ټوقو کښې څه څيز اوچت کړی پټ نی کړی اوبيا نی نه کړی د دې صورت دا وی چه د يوبل دوست نه څه څيز مثلاً همسا يا قلم يا چپل يا څادر وغيره په ټوقو اوخندا کښې د تنګولو د پاره پټوی اوبيا هغه ښه پريشانه کولوسره واپس ورکوی په دې کښې په ظاهره سره د دې چه مذاق دې مګر په دې کښې يو لوئی تکليف رسول هم دی يو مسلمان دا سې تنګول جنز نه دی اوکه رښتيا غلا کوی نوښکاره خبره ده چه حرام دی

**[۲۹۳۹] د غل سره خپل مال ليدو باندې د هغې اخستل**

٢٩٣٩-[۱](۱) ①وَعَنْ سَمُرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "②«مَنْ وَجَدَ عَيْنَ مَالِهِ عِنْدَ رَجُلٍ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ، ③وَيَتَّبِعُ الْبَيِّعُ مَنْ بَاعَهُ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ①او حضرت سمره ﷺ د رسول الله ﷺ څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② کوم سړی چې خپل مال بعينه د چا سره ويني نو هغه د هغه اخستلو حقدار دی ③او د هغه آخستونکي دي په هغه سړی پسي شي چا چې هغه خرڅ کړي دی، (احمد ابوداود نسائي)

**تسهيلات:**

**قوله** الْبَيِّعُ:

**ددې لفظ لغوي تحقيق:-** په دې کښې باء باندې فتحه ده او په ياء باندې شداوکسره ده دې نه مشتری مراددې اود من باعه نه بائع مراددې

**د حديث مطلب او توجيه:** د حديث مطلب دادې چه مثلاً چه يوسړی د چامال غصب کړو پټ نی کړو ياچرته ورك شوي څيزچاته ملاؤ شو اوهغه دا څيزيه بل چاباندې خرڅ کړو بيا مالك خپل مال مشتری سره اوليدلو نواصل مالك د دغه مشتری نه خپل مال واپس کړی

---

۱ ) اخرجه ابو داود في السنن أبواب الإجارة/باب في الرجل يجد عين ماله عند رجل (رقم ٣٥٣١) واحمد في المسند: ١٣/٥

بیا مشتری خپل قیمت دَ دغه سړی نه وصول کړی چاچه په ده باندې مال خرڅ کړې دې هغه پسې شی دَحدیث هم دغه مطلب دې دې نه وړاندې باب الافلاس حدیث نمبر(٢٠٣٨) مضمون هم دغه شان دې هلته دَ فقهاء اختلاف بیان کړې شوې دې زیر بحث حدیث دَ احنافودَ دلیل وضاحت دې دَکوم حواله چه وړاندې ورکړې شوې ده

[٢٩٥٠] مالك ته دهغه دَ څیز واپس کولو حکم

٢٩٥٠-[٣] (١) ١ وَعَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "٢ «عَلَى الْيَدِ مَا أَخَذَتْ حَتَّى تُؤَدِّيَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ١ او حضرت سمره ﷺ د رسول الله ﷺ څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ دچا څخه اخستل شوی څیز (د اخستونکي) د لاس دپاسه دی یعني ګناه یې پرده ده) د څو پورې چې هغه واپس ورنکړي. (ترمذي ابوداود ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① عَلَى الْيَدِ: دلاس دپاسه. (یعنی ګناه او وبال ئې په ده دې)

**تسهیلات: قوله: حَتَّى تُؤَدِّيَ:**

**د دیانت او امانت اهمیت:** - مطلب دادې چه که چرې چا دَ چانه څه مال غصب کړویانی پټ کړویاپه توګه دَ عاریت ئی واخستو یا هغه سره چاامانت کیخودونوهغه اخستونکی لاس اوسړی باندې لازم دی چه هغه واپس کړی دغه څیزدَ هغه په ذمه باندې واجب الادا دې سره دَدې چه مالك مطالبه نه وی کړې دَ امانت معامله جداده هغه دَ مالك دَ مطالبه نه پس واپس کول ضروری وی الغرض دَ حدیث تعلیم دادې چه هرمسلمان له دَ دیانت او امانت مظاهره کول پکاردی

[٢٩٥١] پټی او فصل ته دَ څناورو دَ نقصان رسولو مسئله

٢٩٥١-[٣] (٢) ١ وَعَنْ حَرَامِ بْنِ سَعْدِ بْنِ مُحَيِّصَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -: "٢ «أَنَّ نَاقَةً لِلْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ دَخَلَتْ حَائِطًا، فَأَفْسَدَتْ، ٣ فَقَضَى رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّ عَلَى أَهْلِ الْحَوَائِطِ حِفْظَهَا بِالنَّهَارِ، ٤ وَأَنَّ مَا أَفْسَدَتِ الْمَوَاشِي بِاللَّيْلِ ضَامِنٌ عَلَى أَهْلِهَا»". رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ١ او حضرت حرام ابن سعد ابن محیصه ﷺ وایي (یوه ورځ) ٢ د حضرت براء ابن عازب ﷺ اوښه په یو باغ کې ورننوته او باغ یې خراب کړي (هر کله چې دا معامله) ٣

---

١) اخرجه ابو داود فی السنن أبواب الإجارة/باب فی تضمین العور (رقم-٣٥٦١) والترمذی فی کتاب البیوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی أن العاریة مؤداة (رقم-١٢٦٦) وابن ماجه فی کتاب الصدقات/باب العاریة (رقم-٢٤٠٠) واحمد فی المسند: ٨/٥

٢) اخرجه ابو داود فی السنن أبواب الإجارة/باب المواشی تفسد زرع قوم (رقم-٣٥٦٩) وابن ماجه فی کتاب الأحکام/باب الحکم فیما أفسدت المواشی (رقم-٢٣٣٢) کتاب الاقضیة/باب القضاء فی الضواری والحریسة (رقم-٣٧) واحمد فی المسند: ٤٣٦/٥

رسول الله ﷺ ته راورسيده نو حضور ﷺ دافيصله وكړه چې د ورځې د باغات حفاظت د باغ والاوو په ذمه دى[٤] او كوم حيوان چې د شپې باغات خراب كړي، نو د هغه ضمان يعنې تاوان د څارويو په مالكانو دى، (مالك ابوداود ابن ماجه)

**حل اللغات** - ①نَاقَةٌ: اوښه. ②حَائِطًا: باغ. ③ذَأَفْسَدَتْ: نوهغه ني خراب كړو. ④أَهْلِ الْحَوَائِطِ: باغونو والا. ⑤الْمَوَاشِي: څاروى.

**تسهيلات: قوله: حَائِطًا:**

**دچا فصل يا پټى ته د نقصان رسولو درې صورتونه:-** ① دَ باغ اوپټې دَتولو مسئله يوشان ده صرف دَ يونوم اخستې شوې دې مطلب دادې چه كه چرې څناوروډ چافصل ته نقصان اورسولو نوكتلې به شى چه دا نقصان ئى دَ ورځې رسولې دې كه دَ شپې نو په دې حديث كښې دى چه كه څناوردَ ورځې نقصان رسولې دې نوددې تاوان به دَ څناورو په مالك نه راځى ځكه چه دَ ورځ دَ باغ اوپټى دَ مالك ذمه وارى ده چه هغه دې دَخپل باغ حفاظت اوكړى داكوتاهى دَهغه خپله ده لهذا دَ څناورو په مالك باندې څه تاوان نشته دې

② كه څناورو دَ شپې وخت كښې فصل ته نقصان اورسولو نو دَ څناورو په مالك به تاوان راځى ځكه چه دَ شپې دَ څناوروډحفاظت ذمه وارى دَ مالك ده هغه دَ غفلت نه كار اخستې دې نوتاوان به هم وركوى دا ټول تفصيل هغه وخت دې چه څناوروسره مالك نه وى

③ كه څناوروسره مالك وى نو بيا به په هرصورت كښې په هغه تاوان راځى

**په مذكوره مسئله كښې داماماتو اختلاف:-** شوافع اومالكيه دَ ورځې اوشپې فرق كوى ځكه چه په دې حديث كښې دى ليكن احناف دَ ورځې اوشپې فرق نه كوى بلكه څناوروسره دَ قائد او سائق اعتباركوى كه سائق اوقائدنه وى نوتاوان به نه راځى ځكه چه يومشهورحديث دې "العجماء جرحها جبار" كوم چه ورسره روايت دې دَدې دوارو روايتونونه احناف استدلال كوى اودَ دوارو مطلب دادې چه دَ څناور نقصان معاف دې كه شپه وى اوكه ورځ وى اوكه راكب وى نوبيابه ضمان راځى بهرحال دَجمهورو موقف مضبوط دې

**[٢٨٣] دَغيراختيارى اورپه وجه د نقصان رسيدو حكم**

٢٨٣—[٣] (١) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " [٢] «الرِّجْلُ جُبَارٌ» " [٣] وَقَالَ: " «النَّارُ جُبَارٌ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د پښو (ميده شوي) معاف دى [٣] دغه شان حضور ﷺ وفرمايل د اور (سوزيدلى) معاف دى، (ابوداؤد)

١) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الديات/باب في الدابة تنفح برجلها (رقم-٤٥٩٢) وابن ماجه في كتاب الديات/باب الجبار (رقم-٢٦٧٦)

**حل اللغات** - ① الرِّجْلُ: خپې (یعنی په خپو کښې اغړلی پامال کړې شوی) ② جُبَارٌ: معاف دي (تاوان پرې نشته)

**تسهیلات:**

**قوله الرِّجْلُ جُبَارٌ:**

**د دابه په خپه باندې د هلاک شوي څيز د تاوان حکم:** - رجل خپې ته وائی اوجبار د جیم ضمه سره د معاف او بې خایه په معنی کښې دې مطلب دادې مثلاً یوخناور دې هغې سره څوك مالك نشته دې هغه په خپو څوك چقنړی کړو نودې تاوان په هیچانشته دې ځکه چه داد حیوان غیر مکلف فعل دې

**قوله النَّارُ جُبَارٌ:**

**د اور د نقصان رسولو د تاوان حکم:** - یعنی یوسړی د نیك مقصد دپاره په یومحفوظ مقام کښې اورلګولې وو هغه هم په مزه وو خوبیاهم یو بخرې لاړو او نقصان اوشو نو په دې صورت کښې به د اور بلونکی باندې تاوان راځی

**[٢٩٠٣] په اضطراری حالت کښې دبل د څاروی د پئی څکلو جواز**

٢٩٠٣ - [د] (١) ① وَعَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: " ② «إِذَا أَتَى أَحَدُكُمْ عَلَى مَاشِيَةٍ، ③ فَإِنْ كَانَ فِيهَا صَاحِبُهَا فَلْيَسْتَأْذِنْهُ، ④ فَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِيهَا فَلْيُصَوِّتْ ثَلَاثًا. ⑤ فَإِنْ أَجَابَهُ أَحَدٌ فَلْيَسْتَأْذِنْهُ، ⑥ وَإِنْ لَمْ يُجِبْهُ أَحَدٌ فَلْيَحْتَلِبْ وَلْيَشْرَبْ وَلَا يَحْمِلْ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① او حضرت حسن رحمه الله د حضرت سمره رضي الله عنه څخه نقل کوي، چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر کله چې په تاسو کې څوك د پینو څارویو ته راشي ③ که هلته د څارویو مالك موجود وي، نو د هغه څخه د پینو د څکلو اجازت وغواړي ④ او که هلته مالك موجود نه وي، نو هغه سړي ته پکار دی چې هغه دري ځله آواز وکړي (د هغه آواز اوریدو سره) ⑤ که څوك جواب ورکړي، نو د هغه څخه دي پوښتنه وکړي ⑥ او که څوك جواب ورنه کړي، نو هغه دي بقدر ضرورت پئ لوشلو سره وڅکي خو پئ دي دخان سره بالکل نه وړي. (ابوداؤد)

**حل اللغات** - ① مَاشِيَةٍ: د څارو رمه. ② فَلْيُصَوِّتْ: نو آواز دي اوکړی. ③ فَلْيَحْتَلِبْ: نو پئ (شودې) دي اولوشی. ④ لَا يَحْمِلْ: بار کوی دې نه. خان سره دې نه اوړی

١ ) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الجهاد /باب في ابن السبيل يأكل من التمر. ويشرب من اللبن إذا مر به (رقم-٢٦١٩) والترمذي في كتاب العلم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الأخذ بالسنة واجتناب البدع (رقم-٢٦٧٦)

**تسهیلات قوله فَلْيَصَوِّتْ**

**د پیولوشلو اجازت لوښتلو پاره مرې ځل آواز کول:-** یعنی چه داسې آواز ورکړی چه دا خاوره چه‌دی ددې خاوره مالك څوك دی اې ګډ به نه چرته نی؟ که ددې آواز په بدله کښې څوك سرې ملاؤ شی نو دهغه نه اجازت اخستوسره دې پنی اوڅکی او که ددریو آوازونونه پس هم څوك ملاؤنه شو نو بیاد ضرورت په اندازه پنی ویستلوسره دې اوڅکی خوکوزته دې نه اوړی

**دحدیث په محمل کښې دوه اقوال:-** ①ددې حدیث تعلق داسې اضطراری صورت سره دې په کوم کښې چه د سړی د مرګ خطره وی په داسې حالت کښې پنی څکلوسره دې خان بچ کړی اوروستو دهغې قیمت اداکول پکاردی

②ددې حدیث تعلق داسې مقاماتوسره دې چرته چه په عام توګه دمسافرو تیریدونکو خاورو نه پنی ویستل اود څکلو اجازت وی هلته داسې عمل کولوسره پنی حاصلول پکاردی

**[۳۰۷] په اضطراری حالت کښې د بل د باغ نه د میوې شوکولو جواز**

| ۲۹۴۰—[۱۰] (۱) ①وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "②«مَنْ دَخَلَ حَائِطًا ③فَلْيَأْكُلْ وَلَا يَتَّخِذْ خُبْنَةً»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. |
|---|

**ترجمه:**①او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما د رسول الله ﷺ څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل② کوم سړی چې د بل سړي باغ ته ولاړشي،③ نو هغه ته پکار دی چې هلته د هغه میوه وخوري. خو دجیب او جولۍ ډکولو سره دې نه خي. ترمذي ابن ماجه، امام ترمذي رحمه الله فرمایي چې دا حدیث غریب دی

**حل اللغات** - ①خُبْنَة: جولۍ یا جیب ډکول

**تسهیلات: قوله فَلْيَأْكُلْ**

**دحدیث په مفهوم کښې دوه احتمالات:-**

① ددې حدیث مطلب دانه دې چه هرسړي دې راځی او د چاباغ کښې دې ورننوځی اود هغې میوه دې خوری بلکه ددې مطلب هم هغه دې کوم چه ددې نه مخکښې د حدیث توضیح کښې بیان کړې شوې دې چه په حالت د اضطرار کښې په اندازه د ضرورت د ځان بچ کولو دپاره اوکې سړي د بل د باغ نه میوه خوړلې شی

② ددې حدیث محمل داسې مقام اوداسې علاقه ده چرته چه د باغونو د میوو د خوړلو عام اجازت وی

۱) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الرخصة فی أکل الثمرة للمار بها (رقم-۱۲۸۷)وابن ماجه فی کتاب التجارات/ باب من مر علی ماشیة قوم. أو حائط هل یصیب منه(رقم-۲۳۰۱)

**قوله** وَلَا يَتَّخِذْ خُبْنَةً:

**د مذكوره جملي مطلب:** - د داد فتحه ده با، ساكن ده نون باندي فتحه ده جهولنى او جيب ته وانى مطلب دادي چه جيب او جهولنى د كولو سره كوزته يونه سي صرف د ضرورت به اندازه دي خورى

**[٢٩٥٥] په استعاره د اخستى شوى څيز امانتى حكم**

٢٩٥٥ - [٤٠] (١) [١] وَعَنْ أُمَيَّةَ بْنِ صَفْوَانَ، عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -: [٢] أَنَّ «النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - اسْتَعَارَ مِنْهُ أَدْرَاعَهُ يَوْمَ حُنَيْنٍ، [٣] فَقَالَ: أَغَصْبًا يَا مُحَمَّدُ؟ [٤] قَالَ "بَلْ عَارِيَةٌ مَضْمُونَةٌ"». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] او حضرت اميه ابن صفوان خپل پلار (صفوان) څخه نقل كوي [٢] چې رسول الله ﷺ د حنين د جنګ په ورځ صفوان څخه څو زغري عاريةً واخستى. [٣] هغه پوښتنه وكړه چې اي محمد! ﷺ ته دا زغري د غصب په طريقه اخلى؟ [٤] حضور ﷺ وفرمايل چې نا، بلكه عاريةً يې اخلم، چې واپس به دركول شي. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① اسْتَعَارَ: په عاريت ئې واخستلو. ② أَدْرَاعَ: د درع جمع ده، زغري. ③ أَغَصْبًا: آيا په غصب (په زور) ئې اخلې؟. ④ مَضْمُونَةً: چه ضمان به ئې دركولې شي، واپس كولې به شي درته

**تسهيلات:**

**قوله:** أَغَصْبًا يَا مُحَمَّدُ:

**دمذكوره جملي پس منظر:** - كله چه مكه مكرمه فتح شوه اودَ جنګ حنين شروع اوشوه نوحضورپاك مناسب اوګنړل چه دهغه خاني دَ جنګيالودَ مقابله دَ پاره دَ نوې وسلې ضرورت دي دَدې مقصد دپاره حضورپاك دَ صفوان بن اميه نه دَ عاريت په توګه يوڅو زغرې اوغوښتلې صفوان وركړې خودا سوال ئې اوكړو چه اې محمد! ايا دا وسله دَغصب او په زور اخستلوسره تامانه واخستله؟حضورپاك جواب وركړو چه غصب نه بلكه عاريت دي واپس كولې به شي صفوان هغه وخت مسلمان نه وو روستو مسلمان شو

**د عاريت د امانت او ضمانت ګرځيدو باره كښې مذاهب:** -

دلته دا مسئله زير بحث ده چې چا سره يو څيز عاريتاً كيخودې شي او هغه هلاک شي نو په دې صورت كښې په چا سره عاريتاً كيخودې شوى وى په هغه ضمان شته كه نه په دې باره كښې

① دَ امام شافعي رحمه الله اوامام احمد رحمه الله مسلك دادې كه چرې عاريت تلف شي نو په مستعيرباندې به دَ دې بدل اوضمان راځي دې حضراتو دَ مضمونة ترجمه تاوان اوضمان سره كړې ده

١ ) اخرجه ابو داود في السنن ابواب الإجارة/باب في تضمين العور (رقم- ٣٥٦٢) واحمد في المسند: ٦٨٤٦٥

② د احناف په نیز مستعار څیز د مستعیر په لاس کښې امانت وی پخپله تلف کیدو او هلاك کیدو په صورت کښې هیڅ ضمان اوتاوان نشته دې البته که قصداً دا مستعیر ضائع کړی نوتاوان به راځی

**[٢٩٥٢] د مستعار څیز د واپس کولو وجوب**

٢٩٥٢—[٨] (١) ١ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " «٢ الْعَارِيَةُ مُؤَدَّاةٌ، ٣ وَالْمِنْحَةُ مَرْدُودَةٌ، ٤ وَالدَّيْنُ مَقْضِيٌّ، ٥ وَالزَّعِيمُ غَارِمٌ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابو امامه ﷺ وایې چې ما د رسول الله ﷺ څخه واوریدل فرمایل یې ٢ چې مستعار شی دې واپس ورکول شي (یعنې یو څیز د چا څخه مستعار واخلی په اخستونکي واجب دی چې هغه څیز د هغه مالك ته واپس ورسوي) ٣ د منحة واپس ورکول ضروري دی ٤ او قرض دې اداء کړل شي (یعنې قرض ادا کول واجب دی) او ضامن په ضمانت پوره کولو مجبوره دی (یعنې که یو سړی د چا د قرض وغیره ضامن شي ٥ نو د هغه ادا کول واجب دی. (ترمذي ابوداود)

**حل اللغات** - ① الْعَارِيَةُ: په عاریت سره اخستلې شوې څیز، عارضی استعمال دپاره اخستلې شوې څیز. ② مُؤَدَّاةٌ: واپس کولې به شی، ③ الْمِنْحَةُ: عطیه، پئیو دضرورت دپاره ورکړې شوې خاروي. ④ مَقْضِيٌّ: قرض اداکول. ⑤ الزَّعِيمُ: ضامن، وکیل، ⑥ غَارِمٌ: مجبور، مقروض

**تسهیلات:**

**قوله: العاریة مُؤَدَّاةٌ:**

په عاریت سره د اغستې شوي څیز په حکم کښې اختلاف - ① عاریت والا څیز که چرې عین موجود وی نو هغه به واپس کولې شی ګنی د هلاکت په صورت کښې به د هغې قیمت واپس کولې شی دا د شوافع د ذوق تشریح ده

② احناف وائی دا امانت دې واپس کولې به شی

**قوله: وَالْمِنْحَةُ:**

**دمنحة مفهوم:** - د عربو خلقو به د پینوورکونکی خاروی داسې سړی ته په توګه د عاریت ورکولو چاسره چه به د پینودپاره خاروې نه وو هم دې ته منحه په معنی د عطیه ونیلې شوې دې کله چه به د پینو زمانه ختمیدله نو هغه به ئې مالك ته واپس کولو هم دااوخودلې شو چه منحه به واپس کولې شی

---

١) اخرجه ابو داود فی السنن أبواب الإجارة/باب فی تضمین العور (رقم-٣٥٦٥) والترمذی فی کتاب البیوع عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی أن العاریة مؤداة (رقم-١٢٦٥)وابن ماجه فی کتاب الصدقات/باب العاریة (رقم-٢٣٩٨) واحمد فی المسند: ٢٦٧/٥

[٢٩٥٧] د ونې څخه د راپرېوتې کجورو د خوړلو اجازت

٢٩٥٧—[٩] (١) ١ وَعَنْ رَافِعِ بْنِ عَمْرٍو الْغِفَارِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: "٢ «كُنْتُ غُلَامًا أَرْمِي نَخْلَ الْأَنْصَارِ ٣ فَأُتِيَ بِيَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٤ فَقَالَ: "يَا غُلَامُ! لِمَ تَرْمِي النَّخْلَ؟" قُلْتُ: آكُلُ. ٥ قَالَ: "فَلَا تَرْمِ، وَكُلْ مِمَّا سَقَطَ فِي أَسْفَلِهَا" ٦ ثُمَّ مَسَحَ رَأْسَهُ فَقَالَ "اللَّهُمَّ أَشْبِعْ بَطْنَهُ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ. وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ فِي "بَابِ اللُّقَطَةِ" إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى

**ترجمه:** ١ او حضرت رافع ابن عمرو غفاري ﷺ وايي ٢ زه چې ماشوم وم. نو د انصارو د کجورو ونې به مې په کاڼو ويشتلې (يوه ورځ) ٣ انصارو زه ونيولم، د رسول الله ﷺ په خدمت کې يې پيش کړم، ٤ حضور ﷺ ماته وفرمايل چې اې هلکه: کجورې په کاڼو ولې ولې؟ ما عرض اوکړو چې کجورې وخورم (يعنې د کجورو د خوړلو د پاره هغه په کاڼو ولم د څه بل مقصد د پاره يې په کاڼو نه ولم) ٥ حضور ﷺ راته وفرمايل چې په کاڼو يې مه وله هلته چې کومې کجورې د ونې لاندې غورځيدلې پرتې وي هغه خوره ٦ بيا حضور ﷺ خپل لاس مبارک څما په سر راتير کړي او وې فرمايل چې اې الله ته د ده خيټه ډکه کړي، (ترمذي ابوداود ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① أَشْبِعْ: صيغه د امر ده، موړ ئې کړې، ② بَطْنَ: خيټه

**تسهيلات:**

**قوله:** فَلَا تَرْمِ، وَكُلْ مِمَّا سَقَطَ فِي أَسْفَلِهَا:

**د ونو څخه د راغورزيدلې ميوو حکم:** - يعنې پورته دَ ونونه ميوې مه اوله بلکه چه کومې پخپله راپريوځي هغه اوچته وه او خوره معلومه شوه چه دَونونه کومه ميوه پخپله راپريوځي اوڅوك هغه اوچته کړي نوداجائز دی عام عادت هم دغه دې چه دغه شان که څوك پريوتلې ميوه نه منع کوی اوخاص کر ماشومان دَ داسې ميوو دَ اوچتولو په لټون کښې وی دا ماشوم په حالت دَمخمصه کښې نه وو کنی حضورپاك به دَ ونو نه دَميووخوړلو اجازت ورکولو

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

[٢٩٥٨] دزمکې د غصب کولو مختلف سزاګانې

٢٩٥٨—[٢٠] (٢) ١ عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "٢ «مَنْ أَخَذَ مِنَ الْأَرْضِ شَيْئًا بِغَيْرِ حَقِّهِ ٣ خُسِفَ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَى سَبْعِ أَرَضِينَ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

١) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الجهاد، باب من قال إنه يأكل مما سقط (رقم-٢٦٢٢) والترمذي في كتاب البيوع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ماجاء في الرخصة في أكل الثمرة للمار بها (رقم-١٢٨٨) واحمد في المسند: ٣١/٥

٢) اخرجه البخاري في كتاب الإجارة/باب إثم من ظلم شيئا من الأرض (رقم-٢٤٥٤) واحمد في المسند: ٩٩/٢

**ترجمه:** [١] حضرت سالم رضي الله عنه د خپل پلار بزرګوار څخه نقل کوي هغه د رسول الله ﷺ دا ارشاد ګرامي بيان کړي [٢] کوم سړی چې د زمکې څه حصه هم په ناحقه واخلي (يعنې د چا د زمکې څه حصه هم په ظلم او زبردستۍ واخلي) [٣] نو د قيامت په ورځ به هغه د زمکې تر اوومې طبقې پورې غرق کول کېږي. (بخاري)

**حل اللغات** - ① خُسِفَ غرق به کړې شي، ښخ به کړې شي

**تسهيلات.** -

**نوټ:** -د دې حديث تشريح په راروان حديث نمبر (٢٩٥٩) کښې راروانه ده

**[٢٩٥٩] د زمکې د غصب سزا**

٢٩٥٩-[٥] (١) [١] وَعَنْ يَعْلَى بْنِ مُرَّةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " [٢] «مَنْ أَخَذَ أَرْضًا بِغَيْرِ حَقِّهَا [٣] كُلِّفَ أَنْ يَحْمِلَ تُرَابَهَا الْمَحْشَرَ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [١] او حضرت يعلى ابن مره رضي الله عنه وايې چې ما د رسول الله ﷺ څخه واوريدل فرمايل چې [٢] کوم سړی چې د زمکې څه حصه هم په ناحقه (يعنې په ظلم او زور) واخلي [٣] هغه به د حشر په ورځ په دې مجبوره شي چې هغه د هغه زمکې ټوله خاوره په خپل سر پورته کړي. (احمد)

**حل اللغات** - ① كُلِّفَ: مکلف او مجبوره به کړې شي.

**تشريحات:**

**قوله كُلِّفَ أَنْ يَحْمِلَ تُرَابَهَا الْمَحْشَرَ**

**تسهيلات:**

**قوله مَنْ أَخَذَ أَرْضًا بِغَيْرِ حَقِّهَا...الخ:**

**په زبردستۍ دچا د زمکې ګيرولو څلور قسمه عذابونه:-** په ظلم سره دچا د زمکې ګيرونکي مختلف سزاګانې ذکر کړې شوې دي

① په رومبي فصل کښې خو دا فرمائيلې شوې وو چه دقيامت په ورځ به د زمکې د دغه حصې نه اميل جوړ کړې شي او هغه سړي ته به په غاړه کښې واچولې شي چاچه دا زمکه په زبردستۍ ګيره کړې وه

② په پورته حديث کښې دا بيان کړې شو چه دچا په زمکه باندې په ناحقه قبضه کونکې به دقيامت په ورځ د زمکې اوومې حصې پورې ښخ کړې شي

③ دلته په دې حديث کښې دا سزا ذکر کړې شوې ده چه دچا په زمکه باندې په ناجائزه طريقې سره قبضه کونکې به د قيامت په ورځ په دې خبره باندې مکلف کړې شي چه ددې

١) اخرجه احمد في المسند: ٤/١٧٢

زمکې تو له خاوره په خپل سر باندې اوچته کړی
④ په راتلونکی حدیث کښې د سزا یو بل قسم هم ذکر دې چه په قبر کښې به دغه سړی په دې خبره باندې مکلف کړې شی چه په زور قبضه کړې شوې زمکه کنستل شروع کړی او ترقیامته پورې به ئې کنی

**[٢٩٢٠] د قیامت په ورځ د زمکې غصب کولو سزا**

٢٩٢٠-[٢٣] (١) ⓵ وَعَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: "⓶ «أَيُّمَا رَجُلٍ ظَلَمَ شِبْرًا مِنَ الْأَرْضِ ⓷ كَلَّفَهُ اللهُ - عَزَّ وَجَلَّ - أَنْ يَحْفِرَهُ حَتَّى يَبْلُغَ آخِرَ سَبْعِ أَرَضِينَ، ⓸ ثُمَّ يُطَوَّقَهُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ حَتَّى يُقْضَى بَيْنَ النَّاسِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه**: ⓵ او حضرت یعلی ابن مره رضی الله عنه وایې چې ما د رسول الله ﷺ څخه واوریدل ⓶ چې کوم سړی د چا یوه لیشت برابر زمکه هم په ظلم زور واخلي ⓷ هغه به (د هغه په قبر کې) الله جل جلاله په دې خبره مجبوره کړي چې هغه هغه زمکه د اوومې طبقې تر زمکې پوره کیندي، ⓸ بیا به هغه زمکه د هغه په غټې کې طوق جوړولو سره واچول شي، او هغه به تر قیامته په دې حال کې وي. ددې پورې چې (د قیامت په ورځ) د خلقو حساب کتاب اوشي. (احمد)

**حل اللغات**: - ①شِبْرًا: لویشت، ②أَنْ يَحْفِرَهُ: چه اوئې کنی، اوکنی دا (زمکه)

**تسهیلات**:

**قوله**: حَتَّى يَبْلُغَ آخِرَ سَبْعِ أَرَضِينَ:

**غاصب ته د سزا په طور د اوومې زمکې پورې د کنستلو حکم**: - په زیربحث حدیث کښې دغه شان دَسزا بیان دې چه غاصب به دَ غصب کړې شوې زمکې دَ اوومې زمکې پورې په کنستلو باندې مجبورولې شی او دَ کنستلونه پس به هغه زمکه دَغاصب په غاړه کښې لکه دَ طوق اچولې شی معلومه شوه چه غصب کونکی ته به په قیامت کښې مختلف قسم سزاګانې ورکولې شی

١) اخرجه احمد فی المسند: ٤/ ١٧٣

# [١١] بَابُ الشُّفْعَةِ

## دَ شفعه بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه عشرة أحاديث مشتملة على خمس مسائل:**

① ما فيه شفعة وما ليس فيه: ١، ٢، ٣، ٧، ٨، ١٠.

② حق الجوار: ٤.

③ كيفية رفع الاختلاف في بعض المنافع المشتركة أي الطريق: ٥.

④ الترغيب في شراء العقار: ٦.

⑤ الزجر بقطع بعض المنافع: ٩.

**د شفعه لغوى معنى:-** شفعه په لغت کښې ملاوولو او جفت جوړولو ته وائی

**دشفعې اصطلاحی تعریف:-** په اصطلاح دَ فقه کښې دَ ګاونډ او شراکت په بنیاد دَ بل زمکه یا مکان خپلې زمکې یا مکان سره ملاوولو حق ته شفعه وائی. کوم سړی ته چه دا حق حاصل وی هغه ته شفیع وائی او دَ دغه حق نوم شفعه ده.

**په غیر منقوله څیزونو کښې د شفعې په حق کښې مذاهب:-**

① دَ بعضې عالمانو په نیز په منقوله څیزونو کښې هم دَ شفعه حق حاصل دې

② دَ احنافو شوافع او جمهورعلماؤ په دې باندې اتفاق دې چه دَ شفعه حق صرف په غیرمنقوله څیزونو کښې دې په منقوله څیزونو کښې دَ شفعه حق نشته دې.

**داول فریق دلیل:-** دې حضراتو راتلونکې دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دَ روایت نه استدلال کړې دې په کوم کښې چه داالفاظ راغلی دی "الشفعة في كل شيئ"

**داول فریق د دلیل څخه جواب:-** دویم فریق دَدې هم دغه جواب ورکوی چه دا کل حقیقی افرادی نه دی بلکه کل مجموعی اضافی دی دَ کوم نه مراد چه غیرمنقوله څیزونه زمکه وغیره دی

**د دویم فریق دلیل:-** هغه ټول احادیث د دویم فریق مستدلالت دی په کومو کښې چه دار عقار او حائط په شان الفاظ راغلی دی چه غیرمنقول څیزونه دی بلکه په بعض روایاتوکښې دَدغه څیزونه علاوه نورڅیزونه دَنفی موجود دی لکه ((لاشفعة الا في دار او عقار)) د دې څخه ښکاره ثابته ده چې شفعه صرف په غیر منقول څیزونو کښې ده.

**د شفیع درې اقسام:** -دَ احناف په نیز دَ شفیع درې درجې دی یعنی درې قسم خلقوته دَ شفعه حق ملاویږی

① شریك فی نفس المبیع ته دَ شفعه حق حاصل دې یعنی خرڅه شوې زمکه یا مکان کښې چه دواړه شریك وی

② شریك فی مرافق المبیع ته دَ شفعه حق حاصل دې یعنی خرڅېدونکې زمکه اومکان کښې خوشریك نه وی لیکن دَزمکې اومکان لاره اوبه وغیره حقوق اومنافع کښې دواړه شریك وی

③ دریم حق الجار دې چه دَ ګاونډ دَ وجې نه ورته دَ شفعه حق حاصل دې

**د شفعې ترتیب:** -په دې دریو درجوکښې دَ شفعه ترتیب دادې چه دَ ټولونه اول دَ شفعه حق نفس مبیع کښې شریك ته ملاویږی که چرې هغه شفعه اونه کړی نو بیا منافع مبیع کښې چه څوك شریك دې هغه ته دَ شفعه حق ملاویږی اوکه هغه هم لاس واخلی نوبیابه ګاونډی ته دَ شفعه حق ملاویږی.

**د دریم قسم شفیع دپاره په حق الشفعه کښې مذاهب:** -

① دَ امام مالك رحمه الله امام شافعی رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نیزحق شفعه صرف شریك فی نفس المبیع ته وی ګاونډی ته داحق حاصل نه دې.

② احناف ګاونډی ته دَ شفعه دَحق ورکولو قائل دی جمهوردَدې نه انکارکوی

**داول فریق دلیل:** -دَ حضرت جابر رضی الله عنه روایت د اول فریق چې جمهور دی د دوی مستدل دی په هغې کښې دی کله چه شراکت ختم شی مشترك څیز تقسیم شی لارې جدا جدا شی نوبیا شفعه نشته دې یعنی دګاونډ هیڅ اعتبارنشته دې دَملکیت اعتباردې

**اول فریق د دلیل مختصر جواب:** -په دې حدیث کښې په حق الجار کښې دَ شفعه نفی نه ده مطلب دادې چه دَتقسیم نه پس نفس المبیع کښې دَ شفعه حق ختمیږی دَحق الجاردَ شفعه دَحق نفی نه ده یعنی محدود نفی ده عام نفی نه ده وړاندې حدیث اولولئی اوګورئی

**د دویم فریق دلائل:** -① حضرت جابر رضی الله عنه حدیث نمبر(٢٩٦٧) د دویم فریق مستدل دې

② په ترمذی شریف کښې یوحدیث دې جارالدار احق بالدار (ج١ص ٢٥٣).

داسې نور واضحه احادیث دی د کومو په وجه چې دَ جمهورو دَپاره ګنجائش نشته دې چې هغه پریږدی.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[٢٩٠٠] دَ شفعه استحقاق صرف په زمکه کښې**

٢٩٠٠ — [١] (١) ① عَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «قَضَى النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِالشُّفْعَةِ فِي كُلِّ مَا لَمْ يُقْسَمْ، ③ فَإِذَا وَقَعَتِ الْحُدُودُ وَصُرِفَتِ الطُّرُقُ فَلَا شُفْعَةَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت جابر ﷜ وايي ② چې رسول الله ﷺ په هر هغه (غير منقول) شي کې د حق شفعه ثابت کيدو فيصله کړيده، کوم چې په شراکت کې وي، او د شرکاء په منځ کې تقسيم شوی نه وي هر ③ کله چې حدود مقرر شي (يعني د مشترك ملکيت زمکي يا مکان په خپلو کې تقسيم اوشي او (د هري حصي) لاري جدا جدا کړل شي، نو بيا شفعه باقي نه پاتې کيږي (يعني په دې صورت کې شرکت باقي نه پاتې کيږي ځکه چې چاته به هم حق شفعه حاصل نه وي) بخاري.

**حل اللغات:** - ① صُرِفَتِ: جدا جدا شي. ② الطُّرُقُ: لارې.

**تسهيلات: قوله:** فَلَا شُفْعَةَ:

**حديث نه د جمهورو د مذهب تائيد:** - يعني مثلاً دَ يو زمکه يا مکان ډيرمالکان وی نودَ دغه شريکوالو نه يوشريك خپله حصه خرڅول غواړی نو نورو شريکوالوته به دَ شفعه حق ترهغه وخته پورې حاصل وی ترکومې چه دا مشترکه زمکه تقسيم شوې نه وی کله چه ددې تقسيم اوشو اوحدود اولارې مقرر شوې نواوس به دَ دغه شريکوالوته دَشفعه حق حاصل نه وی معلومه شوه چه دَ ګاونډيتوب اعتبار نشته دې دغه شان دا حديث دَ جمهورو دليل دې احنافو دَدې جواب ورکړې دې کوم چه ليکلې شوې دې.

**[٢٩٠١] په مشترکه زمکه کښې د شفعې ثبوت**

٢٩٠١ — [٢] (٢) ① وَعَنْهُ قَالَ: ② «قَضَى رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِالشُّفْعَةِ فِي كُلِّ شَرِكَةٍ لَمْ تُقْسَمْ: ③ رَبْعَةٍ أَوْ حَائِطٍ: "④ لَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَبِيعَ حَتَّى يُؤْذِنَ شَرِيكَهُ، إِنْ شَاءَ أَخَذَ، وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ، ⑤ فَإِذَا بَاعَ وَلَمْ يُؤْذِنْهُ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① او حضرت جابر ﷜ وايي ② چې رسول الله ﷺ دا حکم وکړي چې په هر داسې مشترکه زمکه کې شفعه ثابت ده چې تقسيم شوی نه وي، ③ که هغه کور وي يا باغ وي، ④ او د داسې مشترکې زمکې هيڅ شريك ته خپله حصه خرڅول حلال نه دي د څو پورې چې

١ ) اخرجه البخاری فی کتاب البيوع/باب بيع الشريک من شريکه (رقم-٢٢١٣) اخرجه ابو داود فی السنن أبواب الإجارة/باب فی الشفعة (رقم-٣٥١٤) والترمذی فی کتاب الأحکام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء إذا حدت الحدود ووقعت السهام فلا شفعة (رقم-١٣٧٠) وابن ماجه فی کتاب الشفعة/باب إذا وقعت الحدود فلا شفعة (رقم-٢٤٩٩)واحمد فی المسند: ٢٨٣٩٩

٢ ) اخرجه مسلم فی کتاب المساقاة/باب الشفعة (رقم-١٣٤ - (١٦٠٨)

هغه خپل دویم شریك خبر نه کړي (د اطلاع ورکولو څخه وروسته) هغه دویم شریك که غواړي نو هغه حصه واخلي که یې پریږدي (یعني یو دویم ته د خرڅولو اجازت ورکړي)[٥] او که یو شریك خپل دویم شریك ته د اطلاع ورکولو بغیر خپله حصه خرڅه کړی نو هغه دویم شریک (د دې خبرې) حقدار دی (چې هغه، هغه خرڅه شوې حصه واخلي) مسلم

**حل اللغات:-** ①رَبْعَةٍ: زمکه، کور. ②حَائِطٍ: باغ.

**تسهيلات: قوله** : رَبْعَةٍ أَوْحَائِطٍ:

دواړه الفاظ شرکة نه بدل دی په دې وجه مجرور دی یا دَمبتداء محذوف خبر دې ای هی ربعة الخ

**قوله**: يُؤْذِنَ:

**دايذان څخه مراد:-** دَ ایذان نه دې دَ اطلاع اواعلان په معنی کښې دې یعنی چه یوملګرې خپله حصه خرڅول غواړي نوهغه له پکاردی چه خپل شریك ملګری ته دَخرڅولو خبرورکړی که اطلاع نی اونه کړه نودَهغه شریك دَ شفعه حق لري

**د حق الشفعه د سقوط وخت:-** اوکه دَ اطلاع په وخت ملګری دَ فوری شفعه دعوی اونه کړه یاانکارئی اوکړو نوحق شفعه به ساقط شي دَ حکومت پاکستان په قانون کښې شپږ میاشتې مهلت دې بیادَ شفعه حق نه پاتې کیږی.

**په غیر منقوله څیزونو کښې د شفعې عدم جواز:-** دَدې حدیث نه داخبره هم معلومه شوه چه په منقوله څیزونو کښې شفعه نه کیږی اوپه غیرمنقوله زمکواومکاناتو کښې کیږی

**[٢٩١٣] ګاونډی دپاره دَشفعه استحقاق**

٢٩١٣-[٣] (١)[١] وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[٢]«الْجَارُ أَحَقُّ بِسَقَبِهِ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:**[١] او حضرت ابو رافع ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[٢] ګاونډي د خپل نزدې کیدو په وجه زیات حقدار دي. (بخاري)

**حل اللغات:-** ①الْجَارُ: ګاونډی. ②سَقَبِهِ: نزدې، قریب.

**تسهيلات: قوله**: الْجَارُ أَحَقُّ بِسَقَبِهِ:

**د حديث مفهوم:-** دَحدیث مطلب دادې چه ګاونډی دَ شفعه زیات حق لري. دَ ګاونډی نه مراد هغه ګاونډی دې چه دَټولو نه زیات نیزدې وی. داحدیث په صراحت سره بنائی چه دَ ګاونډی توب دَ وجې نه هم دَ شفعه حق حاصل دې اوهم دغه دَ احناف مسلك دې او دا حدیث هم دَ احنافو دلیل دې.

---

١) اخرجه البخاري في كتاب الشفعة/باب عرض الشفعة على صاحبها قبل البيع (رقم-٢٢٥٨)

### [٢٩٩٤] د ګاونډي په دیوال باندې د تیر کیخودو حکم

٢٩٩٤—[٥] (١) ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "٢ «لَا يَمْنَعْ جَارٌ جَارَهُ أَنْ يَغْرِزَ خَشَبَةً فِي جِدَارِهِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ هیڅ ګاونډي دې خپل دویم ګاونډي په خپل دیوار کې د لرګي (میخ وغیره) ښخولو څخه نه منع کوي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ١ يَغْرِزَ: چه اوتومبی، ښخ کړی، ٢ خَشَبَةً: لرګی، میخ

**تسهیلات: قوله:** لَا يَمْنَعْ جَارٌ جَارَهُ أَنْ يَغْرِزَ خَشَبَةً فِي جِدَارِهِ:

**د بل په دیوال د تیر کیخودو شرعي حیثیت:** - بعض مکانات کښې یو دیوال سره د دوو ګاونډیانو کورونه وی. کله د مینځ دیوال په دواړو کښې مشترك وی او کله د یو ګاونډی ملکیت وی په دې صورت کښې که دویم ګاونډی په دې باندې د خپل چت لرګی کیخودل غواړی نو په دې حدیث کښې حکم دې چه د دغه دیوال مالك دې منع نه کړی. علماؤ لیکلی دی چه دا حکم هغه وخت دې کله چه دیوال وغیره ته نقصان نه رسیږی که چرې نقصان رسیږی نو بیائی منع کولې شی.

**دبل چا په دیوال د تیرکیخودو په حکم کښې مذاهب:** -

١ د فقهاء کرامو نه امام احمدبن حنبل رحمه الله اوعام محدثین فرمائی چه د حدیث دا حکم د وجوب دپاره دې چه منع کول منع دی.

٢ امام ابوحنیفه رحمه الله امام شافعی رحمه الله

٣ امام مالك رحمه الله فرمائی چه دا حکم د استحباب په توګه دې.

### [٢٩٩٥] په محلوکښې د لاروکوڅو دپاره هدایات

٢٩٩٥—[د] (٢) ١ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "٢ «إِذَا اخْتَلَفْتُمْ فِي الطَّرِيقِ جُعِلَ

١) اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب: لا یمنع جار جاره أن یغرز خشبه فی جداره (رقم-٢٤٦٣)ومسلم فی کتاب المساقاة باب غرز الخشب فی جدار الجار (رقم-١٣٦ - (١٦٠٩)اخرجه ابو داود فی السنن أبواب الإجارة/باب فی الرجل یاخذ حقه من تحت یده (رقم-٣٥٣٤) والترمذی فی کتاب الأحکام عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الرجل یضع علی حائط جاره خشبا (رقم-١٣٥٣) وابن ماجه فی کتاب الأحکام/ باب الرجل یضع خشبة علی جدار جاره (رقم-٢٣٣٥) ومالک فی الموطا کتاب الاقضیة/باب القضاء فی المرفق (رقم-٣٢) واحمد فی المسند: ٢/٤٦٣

٢) اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب إذا اختلفوا فی الطریق المیتاء: وهی الرحبة تکون بین الطریق، ثم یرید أهلها البنیان، فترک منها الطریق سبعة أذرع (رقم-٢٤٧٣)ومسلم فی کتاب المساقاة/باب قدر الطریق إذا اختلفوا فیه (رقم-١٤٣ - (١٦١٣)اخرجه ابو داود فی السنن کتاب الأقضیة/باب من القضاء (رقم-٣٦٣٣) والترمذی فی کتاب الأحکام عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الطریق إذا اختلف فیه کم یجعل؟ (رقم-١٣٥٦) وابن ماجه فی کتاب الأحکام/باب إذا تشاجروا فی قدر الطریق (رقم-٢٣٣٨)

عَرْضُهُ سَبْعَةَ أَذْرُعٍ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[١]او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢]هر كله چې د لارې په باره كې په تاسو كې اختلاف پيداشي، نو د هغه پلنوالى اووه لاسه مقرر كړي (يعنى درى نيم گزه) مسلم

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا اخْتَلَفْتُمْ:

**د ښارونو نقشې او د بلدياتى ضابطو دپاره بنياد:** -مطلب داچه كه په يوه محله كښې يا خالى علاقه كښې دَ تعميراتو سلسله شروع شى نو په مينځ كښې لاره اوسړك پريخودو دَپاره په خپل مينځ كښې مشوره او اتحادكولوسره لارپريخودل پكاردى. خوكه دَ خلقو په خپل مينځ كښې په مشوره كښې اختلاف پيداشى نو بيابه د ضابطې لاندې هم هغه حكم نافذ كولې شى كوم چه په دې حديث كښې دې اوهغه حكم دادې چه اووه ذراع لار پريخودل پكاردى. شرعى ذراع دَ يولاس برابر دې چه دَ څنگلې نه دَ گوتوپورې دې شرعى ذراع دَ يوفټ نه لږشان زيات وى.

**د پى ډى اې د قوانينو جواز:** - دَاحديث نه دَښارونو نقشې اودَ بلدياتى ضابطودَپاره بنياد فراهم كوى. دَ اووه ذراع حديوه ضابطه ده دَدې مطلب دانه دې چه كه لاره دَدې نه زياته وى نوچه څوك راشى دا قبضه كړى داسې قبضه كول جائزنه دى

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[٢٩٦٦]دبې ضرورته كور جوړولو ممانعت**

٢٩٦٦—[٦] (١) [١]وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ حُرَيْثٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: " [٢]«مَنْ بَاعَ مِنْكُمْ دَارًا أَوْ عَقَارًا[٣] قَمِنٌ أَنْ لَا يُبَارَكُ لَهُ إِلَّا أَنْ يَجْعَلَهُ فِي مِثْلِهِ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:**[١]حضرت سعيد ابن حُريث رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي [٢]چې په تاسو كې كوم سرى خپل مكان يا زمكه خرځوي[٣] نو لايق دى چې د هغه په قيمت كې بركت نه وي خو دا چې هغه دا (قيمت) د دې په شان د جائيداد په خريدارى كې صرف كړي، (ابن ماجه دارمي)

**حل اللغات:** - ①عَقَارًا: زمكه، ②قَمِنٌ: لائق ، مناسب دى،

١) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الرهون/باب من باع عقارا ولم يجعل ثمنه في مثله (رقم-٢٤٩٠)وابن ماجه في ٣٠٧/٤

**تسهيلات: قوله: أَمِنْ:**

**د زمکې او کور پیسه هم په زمکه او کور لګول:** - د حدیث مفهوم - دَحدیث مطلب دا دې چه که یوسړې خپله زمکه یا کورخرڅه وی نوهغه له پکاردی چه په دغه قیمت باندې نوره زمکه یا بل کور واخلی ځکه چه که ده دا رقم په منقوله څیزونو کښې خرچ کړو نودَ ضائع کیدوخطره اوامکان دې او لائق دی چه هلاك شی ځکه چه منقوله څیزونه زر ضائع کیږی په خلاف دَ غیرمنقوله جائیداد چه په دې کښې دَ هلاکت زیات امکان نه وی دَ تجربه نه ثابته ده چه کوموخلقو زمکه یا کورخرڅ کړې دې نودَهغه نه هغه پیسې هم تلی دی الاان یشاء الله مطلب دا که چرې په دغه قیمت اورقم باندې څه مکان واخستو یائی زمکه واخسته نوبیا په دغه بچ کیدو کښې مضائقه نشته دې.

**[٢٩٦٧] ګاونډی ته د شفعه د حق حصول**

٢٩٦٧—[٧] (١) [١] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[٢] «الْجَارُ أَحَقُّ بِشُفْعَتِهِ، يُنْتَظَرُ بِهَا وَإِنْ كَانَ غَائِبًا [٣] إِذَا كَانَ طَرِيقُهُمَا وَاحِدًا» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [١] او حضرت جابر ﷺ وايې چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] ګاونډي د خپلي شفعي زيات حقدار دی که هغه موجود نه وي نو د هغه د شفعي په وجه دي د هغه انتظار اوشي (او ګاونډي د شفعي په هغه صورت کې حقدار دی) [٣] هر کله چې د دواړو لار يوه وي. (احمد ترمذي ابوداود ابن ماجه)

**تسهيلات:** -

**قوله: الْجَارُ أَحَقُّ بِشُفْعَتِهِ**

**دامام ابو حنيفه مستدل:** - دا حديث هم د امام ابو حنيفه رحمه الله مستدل دې چه ګاونډی ته د شفعي حق حاصل دې.

**[٢٩٦٨] په هر څيز کښې د شفعي استحقاق**

٢٩٦٨—[٨] (٢) [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "[٢] «الشَّرِيكُ شَفِيعٌ [٣] وَالشُّفْعَةُ فِي كُلِّ شَيْءٍ» " [٤] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ قَالَ:

---

١) اخرجه ابو داود فى السنن أبواب الإجارة/باب فى الشفعة (رقم-٣٥١٨) والترمذى فى كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الشفعة للغائب (رقم-١٣٦٩) وابن ماجه فى كتاب الشفعة/باب الشفعة بالجوار (رقم-٢٤٩٤) واحمد فى المسند: ٣٠٣/٣

٢) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن الشريک شفيع (رقم-١٣٧١)

**ترجمه:** [١] او حضرت ابن عباس ﷺ د رسول الله ﷺ څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړی چې په خرڅيدونکې جائيداد کې شريك وي د شفعي حق لري، [٣] او د شفعي تعلق د هر هغه شي سره دی (چې غير منقوله جائيداد وي لکه زمکه او باغ وغيره) [٤] دا روايت امام ترمذي ﷫ نقل کړي دی او ويلي يې دي

٢٩٦٩-(١) [٥] وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مُرْسَلًا، وَهُوَ أَصَحُّ.

**ترجمه:** [٥] چې دا حديث حضرت ابن ابي مليکه ﷫ هم د رسول الله ﷺ څخه بطريق ارسال نقل کړي دی او دا زيات صحيح دی

**تسهيلات: قوله:** فِي كُلِّ شَيْءٍ:

**د مذکوره جملې مطلب:** - دې نه مراد هرهغه څيزدې کوم چه منقولی نه وی بلکه غيرمنقولی وی لکه زمکه او کورچه وی.

### [٢٩٧٠] دَبيرې ونې دپرې کولو وعيد

٢٩٧٠-[٥] (٢) [١] عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ حُبَيْشٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: " [٢] «مَنْ قَطَعَ سِدْرَةً صَوَّبَ اللهُ رَأْسَهُ فِي النَّارِ» " [٣]. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَقَالَ: " هَذَا الْحَدِيثُ مُخْتَصَرٌ [٤] يَعْنِي: «مَنْ قَطَعَ سِدْرَةً فِي فَلَاةٍ يَسْتَظِلُّ بِهَا ابْنُ السَّبِيلِ وَالْبَهَائِمُ غَشْمًا وَظُلْمًا بِغَيْرِ حَقٍّ يَكُونُ لَهُ فِيهَا ; صَوَّبَ اللهُ رَأْسَهُ فِي النَّارِ» ".

**ترجمه:** [١] او حضرت عبد الله ابن حبيش ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړی چې د ويرې ونه وهي الله ﷻ به هغه پرمخې په دوزخ کې وغورځوي، [٣] امام ابوداود ﷫ دا روايت نقل کړي دی او ويلي يې دي چې دا حديث مختصر دی [٤] د دې پوره مفهوم دادی چې کوم سړی په ځنګل کې د بيرې داسې ونه چې د هغه په سوري کې مسافر او حيوان پناه حاصلوي د زور ظلم له مخه او بغير د حق څخه وهي نو الله ﷻ به هغه پرمخې په دوزخ کې واچوي

**حل اللغات:** - (١) سِدْرَةً: د بيرې ونه، (٢) صَوَّبَ: ألټه ، اړولې به ئې اوغورزوی، (٣) فَلَاةٍ: شاړه، ځنګل، (٤) غَشْمًا: په زبردستئ، په ظلم،

**تسهيلات: قوله:** مَنْ قَطَعَ سِدْرَةً:

**د بيرې د ونې په کټ کولو د سخت وعيد وجوهات:** - (١) په صحراکښې دَ دغه بيرې په پرې کولو باندې وعيد دې چه کومه ډيره ښکلې سوری والاوی دَدې په سوری کښې انسان او ځناور آرام کوی اوچه څوك ظالم راشی بغيرد څه فائدې په ظالمانه توګه باندې هغه پرې کړی دَهغه سړی دَپاره وعيد دې

١) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن الشريك شفيع (رقم-١٣٧١)
٢) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الأدب/باب في قطع السدر (رقم-٥٢٣٩)

④ دې نه مراد دَمکې مکرمې دَ بيرې ونه ده په وجه دَ حرم دَدې په پرې کولوب ندې وعيد دې بيره په دې وجه خاص کړې شوې ده چه دَدې سورې زيات هم وی او يخ هم وی کنی دَ حرم دَهرې ونې دَ پرې کولوهم دغه حکم دې

④ دې نه دَمدينې منورې ښانسه دَ سوری والاونه مراد ده چه دَ مدينې دَ پاره به دَ ښائست سبب وو دَهغې دَ پرې کولوباره کښې فرمانيلې دی يا دَدې نه دَ بيرې هغه ونه مراد ده چه دَ چا په ذاتی ملکيت کښې وی او يوسړې راشی اوخالص دَ ظلم په بنيادباندې دَ طاقت په زور پرې کړی يوسی دَ دغه سړی دپاره دا وعيد دې دَ ابوداؤد په تشريح کښې هم دَ غشمًا لفظ دې کوم چه دَ ظلم په معنی کښې دې دَ کوم تفسيرچه وظلمًا سره کړې دې چه يا عطف تفسيردې يا تاکيددې او"بغيردَ حق" نه مراد بغيرنفع ده يعنی نه دغه سړی ته دَ شفعه حق حاصل دې اونه دَهغه په پرې کولو کښې څه نفع شته دا دَ نوز تقبيح دپاره دې چه بغيرفائدې هيڅ بې هيڅه دغه ونه پرې کړه بغيردَ حق نه په دې لفظ سره دَدې حديث مناسبت باب شفعه سره واضح کيږی چه په دغه ونه کښې دَدې سړی هيڅ حق نشته نه حق شفعه حاصل دې اونه څه بل څه فائده ده بل دا سړې خپل حق دَ بل سړی حق سره دَ ظلم په توګه ملاووی اودَ شفعه په تعريف کښې هم تملك البقعة جبرًا الفاظ موجوددی

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [٢٩٧]په ناقابل تقسيم څيزونوکښې عدم شفعه

٢٩٧٠-[١٠] (١) ١عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: ٢«إِذَا وَقَعَتِ الْحُدُودُ فِي الْأَرْضِ فَلَا شُفْعَةَ فِيهَا ٣ وَلَا شُفْعَةَ فِي بِئْرٍ وَلَا فَحْلِ النَّخْلِ». رَوَاهُ مَالِكٌ.

**ترجمه**: ١حضرت عثمان ابن عفان رضي الله عنه فرمايې ٢هر کله چې په زمکه کې حدونه قائم شي (يعني مشترکه زمکه په شرکاء کې په خپلو کې تقسيم شي او د هر يوه حصه جدا جدا شي) نو (د شرکت) شفعه باقي نه پاتې کيږي، ٣او نه په کوهی کې د شفعي حق حاصليږي او نه د نر کجورو په ونه کې، (مالك)

**حل اللغات**: - ①فَحْلِ: نر. ②النَّخْلِ: کجوره

**تسهيلات**: **قوله**: فِي بِئْرٍ:

### په کوهی کښې د شفعي په حکم کښې مذاهب: -

① شوافع فرمائی چه په کوهی کښې شفعه ځکه نشته چه دا قابل تقسيم نه دې. شفعه په قابل تقسيم څيزونو کښې کيږی

---

١) اخرجه مالک في الموطا رقم الحديث ۴ من کتاب الشفعة

② دَاحنافو په نیزشفعه په هرغیرمنقوله څیزکښې ده که هغه قابل تقسیم وی لکه زمکه کورونه اوباغونه چه دی یاکه هغه قابل تقسیم نه وی لکه میچن، حمام اوکوهې شوافع دَزیربحث حدیث نه استدلال کړي دي اواحنافودَالشفعة في کل شئ نه استدلال کړي دي

**قوله:** وَلَافِي النَّخْلِ:

**د ولا فی النخل مطلب او مفهوم:**-دَدي لفظ ترجمه داده چه دَ کهجور په نر ونه او مذکرکښې شفعه نشته دي مطلب دادې چه څه خلقو ته په میراث کښې دَ کهجورو باغ وغیره ورغلو په هغې کښې یوه ونه دَ نرکهجورې هم وه دکومې نه چه به خلقو ګلونه اوړل او په خپلو ونوکښې به ئې پیوندلګولو بیا دغه ټولوخلقو دا باغ خپل مینځ کښې تقسیم کړو اونرکهجوره مشترکه پاتې شوه دکومې نه چه به خلقو ګلونه اوړل او خپلو ونوکښې به ئې اچول اوس یوسړی دَخپلو کهجورو ټولې ونې خرڅې کړې او دې سره سره ئې خپل داحق هم خرڅ کړو چه په نرکهجورکښې دَ شراکت په وجه وو نو په دې حق کښې دَ شریکوالونه دَ چا شفعه هم صحیح نه ده ځکه چه دَ ونې داحق نه زمکه ده اونه قابل تقسیم څیزدي

## [١٢] بَابُ الْمُسَاقَاةِ وَالْمُزَارَعَةِ

دَمزارعت بیان

| خلاصة الباب:- |
|---|
| فيه تسعة أحاديث مشتملة على ثلاث مسائل: |
| ① جواز المساقات والمزارعة: ١، ٥، ٩. |
| ② عدم جواز المزارعة: ٢، ٣، ۴، ۶، ٨. |
| ③ كون التشاغل بالمزارعة ذلة: ٧. |

**د مساقات لغوی معنی:**- مساقات دَ باب مفاعله مصدردي دَدې مجردسقی دې خروب کولوته وائی

**دمساقات اصطلاحی تعریف:**- په اصطلاح کښې مساقات دې ته وائی چه څوك سړي دَخپل باغ خصمانه کولو دَپاره څوك دَ دغه باغ دَمجموعی میوو څلورمه یا دریمه حصه ورکوی

**د مزارعت تعریف:**- اوهم دغه شان خپله زمکه چاته په زمیندارئی باندې ورکولونوم مزارعت دي

**په مزارعت او مساقات کښې فرق:**- مساقات او مزارعت یوڅیزدې دَ دواړو فقهی حکم تقریبًا هم یودې فرق صرف دومره دې چه دَ مساقات معامله په باغونوکښې وی او دَ

مزارعت معامله په پټو کښې وی مزارعت په پنځه قسمه باندې دې د دوو صورتونو په جوازباندې اتفاق دې او د دوو صورتونو په عدم جواز باندې اتفاق دې او په یو صورت کښې د فقهاؤ اختلاف دې

**د مزارعت پنځه صورتونه:** - ① رومبې صورت دادې که د مزارعت اجرت نقود یعنی نقدې روپئی وی نودا تفاقًا جائزدې

② دویم صورت دادې چه په اجرت اومعاوضه کښې طعام مضمون وی یعنی د کور نه د غله ورکولو وعده وی نوداهم اتفاقًا جائز دې

③ دریم صورت دادې که چرې ماخرج متعین نه اجرت مقرر کړې شی یعنی د پټی د پیداوار نه مثلاً پنځه منه په معاوضه کښې مقررشو نودا اتفاقًا ناجائزدې

④ څلورم صورت دادې چه که چرې په معاوضه کښې د مزارعت والا د زمکې متعین حصه مقرر کړې شی نودا صورت هم اتفاقًا ناجائزدې

⑤ پنځم صورت دادې چه که چرې اجرت ماخرج جزء مشاع وی یعنی د پیداوار دریمه یا څلورمه حصه مقرر کړې شوه نو په دې کښې د فقهاء کرامو اختلاف دې

**د جزء مشاع په اجرت کښې مذاهب:** -

① د امام ابوحنیفه رحمه الله امام شافعی رحمه الله اوامام مالك رحمه الله په نیز د مزارعت دا صورت هم ناجائزدې

② امام احمدبن حنبل رحمه الله امام ابویوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نیز د مزارعت دا صورت جائز دې

**داول فریق دلائل:** - ① اول فریق د هغه ټولو روایاتونه استدلال کړې دې په کوم کښې چه په مزارعت باندې د زمکې ورکولو ممانعت راغلې دې خصوصًا د حضرت رافع بن خدیج رضي الله عنه د دوی مستدل دی الفاظ نې دا دی عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: «كُنَّا نُخَابِرُ وَلَا نَرَى بِذَلِكَ بَأْسًا حَتَّى زَعَمَ رَافِعُ بْنُ خَدِيجٍ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَهَى عَنْهَا فَتَرَكْنَاهَا مِنْ أَجْلِ ذَلِكَ». (١)

② اول فریق مزارعت په قفیزالطحان باندې هم قیاس کوی چه هغه منع دې نومزارعت هم منع دې قفیزالطحان په میچن کښې غله اوړه کولو باندې هم د دغه غلې نه اجرت ته وائی.

**داول فریق د دلائلو هغه جوابونه:** - ①په کوموروایاتوکښې چه مخابره او د مزارعت ممانعت ذکر دې د دغه ممانعت تعلق هغه صورتونوسره دې کوم صورتونه چه په اتفاق سره ناجائزدی یعنی پورته ذکرشوې دریم اوڅلورم صورت مراددې لکه څنګه چې د خنظله بن قیس عن رافع بن خدیج روایت په دې دلالت کوی الفاظ دا دی عَنْ حَنْظَلَةَ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ:

(١) اخرجه مسلم فی کتاب البیوع/باب کراء الأرض (رقم-١٠٦ - (١٥٤٧) وابن ماجه فی کتاب الرهون/باب المزارعة بالثلث والربع (رقم-٢٤٥٠)

"«أَخْبَرَنِي عَمَّايَ أَنَّهُمْ كَانُوا يُكْرُونَ الْأَرْضَ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِمَا يَنْبُتُ عَلَى الْأَرْبِعَاءِ أَوْ شَيْءٍ يَسْتَثْنِيهِ صَاحِبُ الْأَرْضِ. فَنَهَانَا النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَنْ ذَلِكَ فَقُلْتُ لِرَافِعٍ. فَكَيْفَ هِيَ بِالدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ؟ فَقَالَ: لَيْسَ بِهَا بَأْسٌ، وَكَأَنَّ الَّذِي نُهِيَ عَنْ ذَلِكَ مَا لَوْ نَظَرَ فِيهِ ذَوُو الْفَهْمِ بِالْحَلَالِ وَالْحَرَامِ لَمْ يُجِيزُوهُ لِمَا فِيهِ مِنَ الْمُخَاطَرَةِ» (١) گورئ په دې کښې د دې واضح فرق موجود دې

② جمهور د مساقات د جواز قائل دی نو مزارعت هم د مساقات په شان دې

③ د اسلام په شروع کښې حضورپاك د مزارعت ممانعت خکه فرمائیلې وو چه انصارو د مروت او اخلاقو لاندې خپلې زمکې د مزارعت په ځائې د عطیه او منحه په توګه مهاجرینوته ورکړې دې د پاره چه مهاجرین د انصارو دهقانان جوړ شي او د هغوی حوصلې بسکته نه شي لهذا د دغه ممانعت تعلق حسن اخلاق او مروت سره دې په قانوني توګه ممانعت نه دې د ابن عباس رضی الله عنه روایت کښې د دې وضاحت موجود دې الفاظ ئې دا دی عَنْ عَمْرٍو قَالَ: قُلْتُ لِطَاوُسٍ، لَوْ تَرَكْتَ الْمُخَابَرَةَ فَإِنَّهُمْ يَزْعُمُونَ أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- نَهَى عَنْهُ قَالَ أَيْ: عَمْرُو: إِنِّي أُعْطِيهِمْ وَأُعِينُهُمْ وَإِنَّ أَعْلَمَهُمْ أَخْبَرَنِي -يَعْنِي ابْنَ عَبَّاسٍ- "أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- لَمْ يَنْهَ عَنْهُ وَقَالَ: «إِنْ يَمْنَحْ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَأْخُذَ عَلَيْهِ خَرْجًا مَعْلُومًا» (٢)

دغه شان دجابر رضی الله عنه حدیث په دې حقیقت باندې واضح دلالت کوی د حدیث الفاظ دا دی عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: «مَنْ كَانَتْ لَهُ أَرْضٌ فَلْيَزْرَعْهَا أَوْ لِيَمْنَحْهَا أَخَاهُ فَإِنْ أَبَى فَلْيُمْسِكْ أَرْضَهُ» (٣)

**د دویم فریق دلائل:** - ① دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما حدیث د دویم فریق دلیل دې الفاظ ئې دا دی. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «دَفَعَ إِلَى يَهُودِ خَيْبَرَ نَخْلَ خَيْبَرَ وَأَرْضَهَا عَلَى أَنْ يَعْتَمِلُوهَا مِنْ أَمْوَالِهِمْ، وَلِرَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- شَطْرُ ثَمَرِهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَفِي رِوَايَةِ الْبُخَارِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «أَعْطَى خَيْبَرَ الْيَهُودَ أَنْ يَعْمَلُوهَا وَيَزْرَعُوهَا وَلَهُمْ شَطْرُ مَا يَخْرُجُ مِنْهَا». (٤)

---

(١) اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب کراء الأرض بالذهب والفضة (رقم-٢٣٤٦) واحمد فی المسند: ١٤٢/٤

(٢) اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب إذا لم یشترط السنین فی المزارعة (رقم-٢٣٣٠) ومسلم فی کتاب البیوع/باب الأرض تمنح (رقم-١٢٠ - (١٥٥٠) واخرجه ابو داود فی السنن کتاب البیوع/باب فی المزارعة (رقم-٣٣٨٩) والنسائی فی کتاب المزارعة/باب ذکر الأحادیث المختلفة فی النهی عن کراء الأرض بالثلث والربع. وإختلاف ألفاظ الناقلین للخبر (رقم-٣٨٧٣) واحمد فی المسند: ٢٣٤/١

(٣) اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب ما کان من أصحاب النبی صلی الله علیه وسلم یواسی بعضهم بعضا فی الزراعة والثمرة (رقم-٢٣٤٠) ومسلم فی کتاب البیوع/باب کراء الأرض (رقم-٨٩ - (١٥٣٦) والنسائی فی کتاب المزارعة/باب ذکر الأحادیث المختلفة فی النهی عن کراء الأرض بالثلث والربع. وإختلاف ألفاظ الناقلین للخبر (رقم-٣٨٧٤) وابن ماجه فی کتاب الرهون/باب المزارعة بالثلث والربع (رقم-٢٤٥١) واحمد فی المسند: ٣٧٣/٣

(٤) اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب إذا استأجر أرضا. فمات أحدهما (رقم-٢٢٨٥) ومسلم فی کتاب المساقاة/باب المساقاة. والمعاملة بجزء من الثمر والزرع (رقم-٥ - (١٥٥١) اخرجه ابو داود فی السنن کتاب البیوع/باب فی المساقاة (رقم-٣٤٠٩) والترمذی فی کتاب الأحکام عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما ذکر فی المزارعة (رقم-١٣٨٣) وابن ماجه فی کتاب الرهون/باب معاملة النخیل والکرم (رقم-٢٤٦٧) واحمد فی المسند: ١٧/٢

ددې تفصيل دا دې چې حضورپاك چه دَ خيبريهودوسره كومه معامله كړې وه هغه دَ مزارعت معامله وه هم دغه وجه ده چه مزارعت ته مخابره هم وائی دَ كوم ماده چه خيبر ده

② د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما حديث هم د دويم فريق مستدل دې الفاظ ئې دا دی عَنْ عَمْرٍو قَالَ: قُلْتُ لِطَاوُسٍ، لَوْ تَرَكْتَ الْمُخَابَرَةَ فَإِنَّهُمْ يَزْعُمُونَ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَهَى عَنْهُ قَالَ أَيْ عَمْرُو: إِنِّي أُعْطِيهِمْ وَأُعِينُهُمْ وَإِنَّ أَعْلَمَهُمْ أَخْبَرَنِي - يَعْنِي ابْنَ عَبَّاسٍ - "أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَمْ يَنْهَ عَنْهُ وَقَالَ: «إِنْ يَمْنَحْ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَأْخُذَ عَلَيْهِ خَرْجًا مَعْلُومًا»(١) دا فريق مستدل دې چه دَ مزارعت په جواز باندې قطعی دليل دې.

③ دَ حضرت قيس بن مسلم رحمه الله حديث هم د دويم فريق مستدل دې الفاظ ئې دا دی عَنْ قَيْسِ بْنِ مُسْلِمٍ عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ قَالَ: مَا بِالْمَدِينَةِ أَهْلُ بَيْتِ هِجْرَةٍ إِلَّا يَزْرَعُونَ عَلَى الثُّلُثِ وَالرُّبُعِ، وَزَارَعَ عَلِيٌّ وَسَعْدُ بْنُ مَالِكٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ وَعُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، وَالْقَاسِمُ، وَعُرْوَةُ، وَآلُ أَبِي بَكْرٍ، وَآلُ عُمَرَ، وَآلُ عَلِيٍّ، وَابْنُ سِيرِينَ.(٢)

④ دَ امام بخاری رحمه الله تعليقات هم دَ اول فريق مستدل دی الفاظ ئې دا دی. قَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الأَسْوَدِ: كُنْتُ أُشَارِكُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ يَزِيدَ فِي الزَّرْعِ، وَعَامَلَ عُمَرُ النَّاسَ عَلَى: إِنْ جَاءَ عُمَرُ بِالْبَذْرِ مِنْ عِنْدِهِ فَلَهُ الشَّطْرُ، وَإِنْ جَاءُوا بِالْبَذْرِ فَلَهُمْ.(٣)

⑤ ددويم فريق قياسی دليل هم شته هغه دا چې دوی د مزارعت دا معامله په مضاربت باندې هم قياس كړې ده چه په مضاربت كښې هم مال دَ يوسړی وی اومحنت دبل سړی وی شريعت دَ خلقو دَ مجبورئی دَ وجې نه دا جائزگرځولې ده لهذا په مزارعت كښې هم دَخلقو مجبوری نظرانداز كولې نه شی.

⑥ امت سلفًا خلفًا دَ مزارعت معامله قبول كړې ده داهم دَ جوازيوقسم دليل دې. ځكه چه "مارأه المؤمنون حسنًا فهو عندالله حسن".

**مفتی به مذهب:-** بهرحال دَ دلائلو په اعتبارسره د اول فريق دلائل مضبوط دی. ليكن دَامت دَ ضرورت دَ وجې فتوئ دَ صاحبينو اوامام احمد رحمه الله په قول ده اوس دَ جمهورو دَدلائلو جواب اوهغه په صحيح محمل باندې حمل كول باقی دی.

**اعتراض:-** فقه حنفی كښې مذكوردی چه دَ مزارعت معامله دَ صاحبينو په نيزجائزده اودَ امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزناجائز ده. كه چرې حقيقت هم دغه دې نوبيا دَ فقه په كتابونو كښې فقهی جزئيات كښې ولې ليكلې كيږی چه دَ امام صاحب په نيزدَ مزارعت

---

(١) اخرجه البخاری فی كتاب الإجارة/باب إذا لم يشترط السنين فی المزارعة (رقم-٢٣٣٠) ومسلم فی كتاب البيوع/باب الأرض تمنح (رقم-١٢٠ - (١٥٥٠) واخرجه ابو داود فی السنن كتاب البيوع/باب فی المزارعة (رقم-٣٣٨٩) والنسائی فی كتاب المزارعة/باب ذكر الأحاديث المختلفة فی النهی عن كراء الأرض بالثلث والربع. وإختلاف ألفاظ الناقلين للخبر (رقم-٣٨٧٣)واحمد فی السند: ٢٣٤/١

(٢) اخرجه البخاری فی كتاب الإجارة/باب المزارعة بالشطر ونحوه

(٣) اخرجه البخاری فی كتاب الإجارة/باب المزارعة بالشطر ونحوه

فلانکي مسئله داسې ده او فلانکي داسې نه ده کله چه دَ امام صاحب په نيز په اصولی توګه مزارعت ناجائز دې نو بيا دَ دغه فقهي تفصيلاتو څه ضرورت دې؟

**جواب:** - علامه حاوی مقدسی ﷫ ليکلی دی چه دَامام صاحب په نيز مزارعت بالکل منع نه دې بلکه جائزمع الكراهة دې "وكرهها ابوحنيفة ولم ينه عنه اشد النهي" لهذا امام صاحب دَ نفس جواز دَوجې نه دَ مزارعت جزئيات بيان کړی دی خلاصه داده چه دَامام صاحب په نيز مزارعت جائزمع الكراهة دې او دَ صاحبينو په نيز مطلقًا جائز دې فتوىٰ دَ صاحبينو په نيز ده

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [٢٩٤٧] دَخيبر دَمعاملې دَوجې نه دَ مزارعت جواز

٢٩٤٧-[١] (١) ١ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا: ٢ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «دَفَعَ إِلَى يَهُودِ خَيْبَرَ نَخْلَ خَيْبَرَ وَأَرْضَهَا ٣ عَلَى أَنْ يَعْتَمِلُوهَا مِنْ أَمْوَالِهِمْ ٤ وَلِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَطْرُ ثَمَرِهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَفِي رِوَايَةِ الْبُخَارِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «أَعْطَى خَيْبَرَ الْيَهُودَ أَنْ يَعْمَلُوهَا وَيَزْرَعُوهَا وَلَهُمْ شَطْرُ مَا يَخْرُجُ مِنْهَا».

**ترجمه:** ١ حضرت عبدالله ابن عمر ﷠ وايي ٢ چي رسول الله ﷺ د خيبر د کجورو ونې او د هغه ځاى زمکه په دې شرط د خيبر يهوديانو ته حواله کړه ٣ چې هغه به په دې کې خپل خان او مال لګوي ٤ او د هغه نيمه ميوه به د رسول الله ﷺ د پاره وي (مسلم) او د بخاري په روايت کې دا دی چې رسول الله ﷺ خيبر (يعني د هغه ځاى ونې او زمکه) په دې شرط يهوديانو ته حواله کړې وه چې په هغه کې محنت او کاشتکاري کوي او د هغه د پيداوار نيمه حصه به د يهوديانو حق وي او نيمه به حضور ﷺ اخلي

**حل اللغات:** - ① أَنْ يَعْتَمِلُوهَا: چه محنت او مشقت (زميندارى) به کوى په دې کښې، ②- شَطْرٌ: نيمه حصه.

**تسهيلات:**

**قوله:** دَفَعَ إِلَى يَهُودِ خَيْبَرَ نَخْلَ خَيْبَرَ وَأَرْضَهَا:

**د خيبر تعارف:** - خيبر دَ يوعلاقې نوم دې چه دَمدينې نه ٦٠ ميله شمال کښې واقع دې. اول دا ځائی دَ مدينې دَ يهوديانو مرکزی مقام وو اوس يوځوکلی دی په کوم کښې چه زيات تر دَيهودو جانشين شيعه رافضي اوسيږى دَ کهجورو دَ باغونو دَپاره دا مشهوره علاقه ده

١) اخرجه البخاري في كتاب الإجارة/باب إذا استأجر أرضا. فمات أحدهما (رقم-٢٢٨٥) ومسلم في كتاب المساقاة/باب المساقاة والمعاملة بجزء من الثمر والزرع (رقم-٥ - (١٥٥١) اخرجه ابو داود في السنن كتاب البيوع/باب في المساقاة (رقم-٣٤٠٩) والترمذي في كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما ذكر في المزارعة (رقم-١٣٨٣) وابن ماجه في كتاب الرهون/باب معاملة النخيل والكرم (رقم-٢٤٦٧) واحمد في المسند: ١٧/٢

**د خيبر د فتحې پس منظر :**-په ۷ هجري کښې خيبر فتح شوې وو اکثر علاقې د جنګ په زور خستې شوې وې د څه اط افو علاقې د صلح لاندې په لاس راغلې وې امام ابوحنيفه ﷫ د حضورپاک ﷺ دا معامله په خراج مقاسمه باندې حمل کوی او د خيبر فتح د صلح په توګه باندې منی په دې وجه مزارعت جائز نه دې صاحبين وائی چه خيبر د جنګ او جهاد په نتيجه کښې فتح شوې وو د حضورپاک يهوديانوسره معامله د خراج مقاسمه په توګه نه وه بلکه د تقسيم او مزارعت معامله وه. د دې د پاره داجائز او د صاحبين رائې واضح ده خيبر اکثر د توري په زور باندې فتح شوې وو بيا يهوديانو حضورپاک ته هلته د اوسيدو درخواست اوکړو حضورپاک اوفرمائيل چه زمکه اوس د مسلمانانو ده البته تاسو په توګه د مزارعت دلته اوسيږئی کله چه الله تعالى اوغواړی بيابه تاسو اوځنی چنانچه حضرت عمر ﷜ يهوديان د خيبر نه اوويستل. داحديث د مزارعت په جواز باندې دلالت کوی

[۲۹۷۳] د مخابره ممانعت

۲۹۷۳-[۲] (۱) ١ وَعَنْهُ قَالَ: «كُنَّا نُخَابِرُ وَلَا نَرَى بِذَلِكَ بَأْسًا ٢ حَتَّى زَعَمَ رَافِعُ بْنُ خَدِيجٍ ٣ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ٤ نَهَى عَنْهَا ٥ فَتَرَكْنَاهَا مِنْ أَجْلِ ذَلِكَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه :** ١ او حضرت عبد الله ابن عمر ﵄ وايي ٢ چې مونږ خلقو به مخابرت کوی او په دې کې مو څه حرج نه ګڼی ٣ د دې پورې چې حضرت رافع ابن خديج ﵁ وښودل ٤ چې رسول الله ﷺ د دې څخه منع فرمايلې ده ٥ نو په دې وجه مونږ دا ترک کړې. (مسلم)

**تسهيلات: قوله** نُخَابِرُ:

**د مانعين مزارعت استدلال:**-دا د مخابرت نه دې د دې ماده هم هغه خيبر دې مزارعت ته وائی دې ته اکراء الارض هم وائی داحديث د مانعين مزارعت دليل دې د دې جواب اول شوې دې

[۲۹۷۴] د پټي د مخصوص ځائي په پيداوار د مزارعت کولو عدم جواز

۲۹۷۴-[۳] (۲) ١ وَعَنْ حَنْظَلَةَ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ٢ قَالَ: "٣ «أَخْبَرَنِي عَمَّايَ ٤ أَنَّهُمْ كَانُوا يُكْرُونَ الْأَرْضَ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَا يَنْبُتُ عَلَى الْأَرْبِعَاءِ ٥ أَوْ شَيْءٍ يَسْتَثْنِيهِ صَاحِبُ الْأَرْضِ، ٦ فَنَهَانَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ

**ترجمه :** ١ او حضرت حنظله ابن قيس ﷫ (تابعي) د حضرت رافع بن خديج ﵁ (صحابي) څخه نقل کوي. ٢ چې حضرت رافع ﵁ وفرمايل ٣ ماته ځما دوه ترونو وښودل

---

١) اخرجه مسلم فى كتاب البيوع/باب كراء الأرض (رقم-١٠٦ - (١٥٤٧) وابن ماجه فى كتاب الرهون/باب المزارعة بالثلث والربع (رقم-٢٤٥٠)

٢) اخرجه البخارى فى كتاب الإجارة/باب كراء الأرض بالذهب والفضة (رقم-٢٣٤٦) واحمد فى المسند: ١٤٢/٤

[٤] چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې به صحابهٔ کرامو ﷺ ناليو باندې د کيدونکي پيداوار په عوض کې خپله زمکه په أجرت ورکوله يعنی صحابه وو ﷺ به[٥] خپله زمکه بل سړي ته په دې شرط په أجرت ورکوله چې هغه سړی خپل محنت او تخم لګولو سره په هغه کې کاشت وکړي او د هغه زمکې د اوبو د ناليو په غاړو چې څه پيدا کيږي هغه به د هغه زمکې په اجرت کې د مالك حق وي) يا خپله زمکه به يې د هغه حصې (د پيداوار) په عوض کې په اجرت ورکوله چې هغه به مالك خپل ځان د پاره جدا کوله (يعني د زمکې په اجرت د ورکولو دويم صورت دا وو چې هغه به خپله زمکه کاشت د پاره چاته ورکوله نو د هغه څه حصه به يې د ځان د پاره مقرر کوله او دا فيصله به کيدله چې کاشت کونکی خپل محنت او تخم لګولو سره په پوره زمکه کې کاشت وکړي بيا د هغه مقررې حصې چې څه پيداوار وي هغه خو به مالك اخلي او د باقي زمکې پيداوار به کاشت کونکی اخلي) [٦] نو رسول الله ﷺ مونږ د دې څخه منع کړو (ځکه چې په دې کې د نقصان او په دهوکه کې د مبتلاء کيدو خوف وو)

**حل اللغات:** - ① يُكْرُونَ: دَ اکراء نه دې، په کرايه به ئې ورکول. ② الْأَرْبَعَاءِ: دَ ربيع جمع ده وړوکی نهر ته ربيع وائي.

| [١] فَقُلْتُ لِرَافِعٍ: [٢] فَكَيْفَ هِيَ بِالدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ؟ [٣] فَقَالَ: لَيْسَ بِهَا بَأْسٌ، [٤] وَكَانَ الَّذِي نُهِيَ عَنْ ذَلِكَ [٥] مَا لَوْ نَظَرَ فِيهِ ذَوُو الْفَهْمِ بِالْحَلَالِ وَالْحَرَامِ لَمْ يُجِيزُوهُ لِمَا فِيهِ مِنَ الْمُخَاطَرَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| --- |

**ترجمه:** [١] د حديث راوي حضرت حنظله ﷺ وايي چې ما د حضرت رافع ﷺ څخه پوښتنه وکړه [٢] چې د درهم ودينار په عوض کې د مزارعت څه حکم دی؟ (يعني خپله زمکه چاته د کاشت کولو د پاره ورکول شي او د هغه په عوض کې بطور لګان روپۍ وآخستی شي. نو څه حکم يې دی؟) [٣] حضرت رافع ﷺ وفرمايل چې په دې کې څه حرج نشته [٤] او دکوم څيز څخه چې حضور ﷺ منع فرمايلي ده (يعني د مزارعت مذکوره دواړه صورتونه) [٥] هغه داسې څيز دی که د حلال او حرام پوهه لرونکی سړی په دې کې غور وکړي نو د نقصان رسيدو د خوف څخه به دا خوښ نه کړي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ④ الْمُخَاطَرَةِ: خطره، ويره، د نقصان رسيدو احتمال

**تسهيلات: قوله:** يُكْرُونَ الْأَرْضَ:

**د مزارعت دويم نوم:** - زمکه په مزدورئی باندې دَ ورکولو په معنی کښې دې مراد مزارعت دې

**قوله:** الْأَرْبَعَاءِ:

**په يوه کښې د مخصوص ځائې په پيداوار باندې د مزاعت عدم جواز:** - مطلب دا چه دَزمکې مالك به زميندار ته زمکه ورکوله هغه به زمکه کرله اومالك به دَ ځان دَپاره دَ نهر

په غاړو باندې غله مقرر کړې وه یا بل څه حصه د زمکې مستثنی کولو سره ساتله ددې نه حضور پاك منع اوفرمائیله ځکه چه دا یونامعلوم څيز دې کیدې شي چه هم دې ځائي کښې غله راشي اوباقي یوحصه کښې هم رانه شي اوکیدې شي چه باقي حصه کښې غله راشي او د نهر په غاړو باندې رانه شي نود مالك نقصان به وي دا معامله د قمار او جوارئي په شان کیږي په دې وجه منع کړې شوه او هم دا خبره حضرت رافع رضي الله عنه په توګه د علت بیان کړې ده او د فقهاؤ نه ټول ددې د حرمت قائل دی پاتې شو هغه صورت کوم کښې چه په نقود باندې معامله وي نو ددې د جواز ټول فقهاؤ قائل دی

**[٢٨٥٨] دَمزارعت یوممنوع صورت**

٢٨٥٨ – [٣] (١) ① عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ: ② «كُنَّا أَكْثَرَ أَهْلِ الْمَدِينَةِ حَقْلًا ③ وَكَانَ أَحَدُنَا يُكْرِي أَرْضَهُ فَيَقُولُ: ④ هَذِهِ الْقِطْعَةُ لِي وَهَذِهِ لَكَ، ⑤ فَرُبَّمَا أَخْرَجَتْ ذِهِ وَلَمْ تُخْرِجْ ذِهِ؟ ⑥ فَنَهَاهُمُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت رافع ابن خدیج رضي الله عنه وایي ② مونږ اکثره مدیني والابه کاشتکاري کوله ③ او په مونږ کې به بعضې خلقو خپله زمکه کرایه وغیره باندې کاشت کولو د پاره (بل چاته) ورکوله او هغه ته به یې دا ونیل (چې په دې پوره زمکه کې کاشت کوه، د دې په عوض کې) ④ د دې زمکې داحصه زما د پاره ده (یعني د دې حصې پیداوار به زه اخلم) او دا حصه ستا د پاره ده (یعني د دی دویمې حصې پیداوار ته اخله) ⑤ او اکثره به داسې کیدل چې یوه حصه کې به پیداوار کیدی لیکن په دویمه حصه کې به هیڅ نه پیدا کړي دل. ⑥ رسول الله ﷺ (د مزارعت د دې صورت څخه) منع وفرمایله (ځکه چې د دې په وجه یو سړي ته خو به د زمکې پوره پیداوار حاصلیدی او د بل سړي حق به بالکل ضائع کیدی) بخاري مسلم

**حل اللغات** - ① حَقْلًا: کاشتکاري، زمینداري، ② ذِهِ: اسم اشاره ده

**تسهیلات:**

**قوله فَيَقُولُ: هَذِهِ الْقِطْعَةُ لِي وَهَذِهِ لَكَ:**

**په مزارعت کښې یو اتفاقي ممنوع صورت:**- ددې صورت په عدم جواز باندې د ټولو فقهاؤ اتفاق دې ځکه چه داهم د جوارئي یوقسم جوړیږي د زمکې کومه حصه چه زمیندار ته په مزدورئي باندې ورکولې شي کیدې شي چه په هغې کښې غله راشي اوکیدې شي چه په هغې کښې یودانه غله هم رانه شي په دې وجه دا صورت منع دې.

١) اخرجه البخاري في كتاب الإجارة/باب ما يكره من الشروط في المزارعة (رقم-٢٣٣٢) ومسلم في كتاب البيوع/باب كراء الأرض بالذهب والورق (رقم-١١٧ - (١٥٤٧))

**[٢٨٧٦] زمکه په عاريت دورکولو ترغيب**

**٢٨٧٦—[٥] (١) [١] وَعَنْ عَمْرٍو قَالَ: قُلْتُ لِطَاوُسٍ: [٢] لَوْ تَرَكْتَ الْمُخَابَرَةَ [٣] فَإِنَّهُمْ يَزْعُمُونَ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَهَى عَنْهُ [٤] قَالَ أَيْ: عَمْرُو: إِنِّي أُعْطِيهِمْ وَأُعِينُهُمْ [٥] وَإِنَّ أَعْلَمَهُمْ أَخْبَرَنِي - يَعْنِي ابْنَ عَبَّاسٍ - "أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَمْ يَنْهَ عَنْهُ [٦] وَقَالَ: «إِنْ يَمْنَحْ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَأْخُذَ عَلَيْهِ خَرْجًا مَعْلُومًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

**ترجمه:** [١] او حضرت عمرو ابن دينار (تابعي) رحمه الله وايي چي ما حضرت طاوس (تابعي) رحمه الله ته اوويل [٢] که تاسو مزارعت ترك کولی نو ښه به وه [٣] ځکه چي علماء وايي چي رسول الله ﷺ د دې څخه منع فرمايلي ده، [٤] طاوس رحمه الله اوويل چي اې عمرو! زه (خپله زمکه د کاشت کولو د پاره) خلقو ته ورکوم او د هغوی مدد کوم [٥] او د ټولو څخه لوی عالم حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ماته ښودلي دي چي رسول الله ﷺ د دې څخه منع نه وه فرمايلي [٦] ليکن حضور ﷺ دا فرمايلي دي چي خپل يو ورور ته خپله زمکه د کاشت کولو د پاره ورکول د دې څخه ښه دی چي په هغه د هغه زمکي څه لګان وغيره مقرر کولو سره ورڅخه واخستی شي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① إِنْ يَمْنَحْ: که کاشت دپاره زمکه ورکړي، ② خَرْجًا: مزدوري

**تسهيلات:**

**قوله: إِنْ يَمْنَحْ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَأْخُذَ عَلَيْهِ خَرْجًا مَعْلُومًا**

**په مزارعت باره کښې د ابتداء اسلام نقشه:** —په دې حديث کښې دَ مزارعت ممانعت نه دې بلکه حضورپاك غوښتل چه انصار خپلې زمکې دَ عاريت په توګه اوعطيه منحه مشكوره خپلو مهاجرينو رونړو ته ورکړي په دې وجه ئې دا ترغيب ورکړو چه خپل رونړه دهقانان مه جوړوئې دا خو جندالله او جندالاسلام دی دوی له دَعطيه په توګه باندې دکر دَپاره زمکه ورکړئې بيا به ئې دوی واپس کړی. تاسو دَدوی نه مزدورئې مه اخلئې. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَ اسلام دَ شروع نقشه داسې پيش کړه. په دې روايت کښې چه دَ طاؤس نه مخکښې کوم دَ عمرو ذکر دې دې نه مراد عمرو بن دينار دې کوم چه جليل القدر تابعی دې

١) اخرجه البخاري في كتاب الإجارة/باب إذا لم يشترط السنين في المزارعة (رقم-٢٣٣٠) ومسلم في كتاب البيوع/باب الأرض تمنح (رقم-١٢٠ - (١٥٥٠) واخرجه ابو داود في السنن كتاب البيوع/باب في المزارعة (رقم-٣٣٨٩) والنسائي في كتاب المزارعة/باب ذكر الأحاديث المختلفة في النهي عن كراء الأرض بالثلث والربع، وإختلاف الفاظ الناقلين للخبر (رقم-٣٨٧٣) واحمد في المسند: ٢٣٤/١

**[٢٠٧٧] په عاريت باندې د زمكې وركولو استحبابي حكم**

٢٠٧٧—[١] (١) ① وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ـ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ: ② «مَنْ كَانَتْ لَهُ أَرْضٌ فَلْيَزْرَعْهَا ③ أَوْ لِيَمْنَحْهَا أَخَاهُ ④ فَإِنْ أَبَى فَلْيُمْسِكْ أَرْضَهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① او حضرت جابر ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د كوم سړي سره چې زمكه وي، نو هغه ته پكار دی چې په هغه كې خپله كرونده وكړي، ③ يا (كه خپله كرونده نشي كولی، نو) خپل يو ورور ته دې عارية وركړي ④ او كه دا دواړې خبرې يې خوښې نه وي نو بيا دې خپله زمكه د خان سره وساتي (داامر دزورني دپاره دي مرقاة) بخاري مسلم.

**حل اللغات** - ① يَمْنَحْهَا: چه عطيةً او عاريةً وركړی دا (زمكه)

**تسهيلات:**

**قوله** يَمْنَحْهَا: دا دَ منحة نه دې دَ عطيه په معنى كښې دې چه دَ بل دَ نفع اوچتولو دَپاره وركړی بيانی واپس كړی

**قوله** فَإِنْ أَبَى:

**د فان ابى په مطلب كښې دوه اقوال: -**

① يعنې پخپله نی هم نه كرى اوبل ته نی هم نه عطيه كوی نوده له پكار دی چه خپل خان سره نی اوساتی يعنی بې كاره دې پريږدی په دې صورت كښې داحديث دَتوبيخ تشديد او تهديد په توگه دې چه دا سړې احسان ولې نه كوی او جندالله دهقان جوړوی

علامه طيبی رحمه الله فرمانی چه خپل خان سره دې اوساتی بل ته دې په مزارعت نه وركوی په دې كښې توبيخ او تنبيه ده

② بعض علماؤ دا مطلب اخستې دې كه چرې دَ هغه رور دَ اخستلو نه انكار كوی نوبيا دې خپله زمكه خپل خان سره اوساتی

**[٢٠٧٨] دآخرت څخه غافله كونكی زميندارئی كښې د مشغوليدو كيدو وعيد**

٢٠٧٨—[٢] (٢) ① وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ: «وَرَأَى سِكَّةً وَشَيْئًا مِنْ آلَةِ الْحَرْثِ، ② فَقَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ ـ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ يَقُولُ: ③ لَا يَدْخُلُ هٰذَا بَيْتَ قَوْمٍ إِلَّا أَدْخَلَهُ الذُّلَّ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① منقول دی چې حضرت ابوامامه ﷺ (په يو خای كي) هل او د كيتي و كرهنی څه

---

١ ) اخرجه البخارى فى كتاب الإجارة باب ما كان من أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم يواسى بعضهم بعضا فى الزراعة والثمرة (رقم-٢٣٤٠) ومسلم فى كتاب البيوع/باب كراء الأرض (رقم-٨٩ - (١٥٣٦)) والنسائى فى كتاب المزارعة/باب ذكر الأحاديث المختلفة فى النهى عن كراء الأرض بالثلث والربع. وإختلاف ألفاظ الناقلين للخبر (رقم-٣٨٧٤) وابن ماجه فى كتاب الرهون/باب المزارعة بالثلث والربع (رقم-٢٤٥١) واحمد فى المسند: ٣٧٣/٣

٢ ) اخرجه البخارى فى كتاب الإجارة/باب ما يحذر من عواقب الاشتغال بآلة الزرع. أو مجاوزة الحد الذى أمر به (رقم ٢٣٢١)

سامان ولیدلو. [٢] نو هغه اوویل چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي [٣] چې دا سامان په کوم کور کې داخل شي، الله ﷻ په هغه کور کې ذلت داخلوي (د جهاد د پریښودلو په وجه نه په عام حالت کې) بخاري

**حل اللغات** - ①سِكَّةٌ: یبوه، د یبوې نوکداره اوسپنه. ②الذُّلّ: ذلت، خوارې، رسوائي

**تسهیلات:**

**قوله**: مِنْ آلَةِ الْحَرْثِ:

**د زمیندارۍ اوزار**: - یعنې دَ زمیندارئې چه کوم سامان هم اولیدلو په هغې باندې حضرت ابوامامه ﷺ خفه شو او یوحدیث ئې واؤرولو

**په کور کښې د زمیندارۍ د ممانعت دوه وجوهات**: - رسول الله ﷺ دَزمیندارئې ترغیب هم ورکړې دې اوفضیلت اوثواب ئې هم بیان کړې دې په یوحدیث کښې داسې دی «اطلبوا الرزق من خبایا الارض» یعنې دَ زمکې دَ پټو مقاماتونه (په ذریعه دَ کر) رزق اولټوئې دَدې ترغیب نه باوجود دلته په کورکښې ایوه او دَ زمیندارئې په سامان باندې نکیر څنګه اوکړو؟

① حضور پاك په اصل کښې دَ جهاد ترغیب ورکړې دې دَ زمیندارئې نه ئې منع نه ده کړې بلکه مقصود دادې چه مثلاً یوسړې جهاد پریږدی اوزمینداری کوی نودَ دې بنیادی وجه دَ هغه بزدلی او بې همتی ده او بادشاهانوته ټیکس جدا ورکوی که چرې هم دغه خلق دَ زمیندارئې په ځائې دَ جهاد لار اختیارکړی نو په زیات مقدار کښې به هغوی ته دنیا ملاؤشی دوی به پخپله دَ ټیکس ورکولو په ځائې دَ نورو نه ټیکس وصول کوی دین به هم راشی اودنیا به هم راشي یوحدیث کښې دی «العز في نواصي الخيل والذل في اذناب البقر»

② داحکم دَهغه خلقودَپاره دې دَ چا په سرونوچه دښمن رارسیدلې دې دښمن راځی اودا خلق په زمیندارئې کښې اخته دی بعض علماؤ داجواب ورکړې دې چه دا حکم دَ اسلام په شروع کښې دَ صحابه کرامو دَپاره وو څکه چه هغوی جندالاسلام وو که چرې هغوی دهقانان جوړیدو سره زمکې آبادولې نو په مشرق اومغرب کښې به چا دین غالب کولو؟

حکیم الامت حضرت تهانوی ﷫ په ملفوظات کښې فرمائي چه مسلمان دَ ډنډې والاوی اوهندو دَ ډنډئې والاوی (یعنې تلې والا) دَ ابوداؤد شریف دَ یوحدیث یوځو الفاظ د اسې دی «اذا تبايعتم بالعينة واتبعتم الزرع واخذتم باذناب البقر وتركتم الجهاد سلط الله عليكم الذلة اوكما قال عليه السلام»

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[٢٩٧٩] بلا اجازته د غير په زمکه کښې د کرونديځ عدم جواز**

٢٩٧٩-[٩] (١) ١ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ٢ قَالَ: «مَنْ زَرَعَ فِي أَرْضِ قَوْمٍ بِغَيْرِ إِذْنِهِمْ ٣ فَلَيْسَ لَهُ مِنَ الزَّرْعِ شَيْءٌ وَلَهُ نَفَقَتُهُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ١ حضرت رافع ابن خديج ﷺ د رسول الله ﷺ څخه نقل کوي ٢ چې حضور ﷺ وفرمايل کوم سړی چې د چا په زمکه کې د هغه د اجازت څخه بغير (يعنى د مالک د رضا او حکم بغير) کاشت وکړي، ٣ نو د هغه د پاره د هغه زمکي د پيداوار څخه علاوه د دې څخه چې هغه څه خرڅ کړي وي نور هيڅ به نه وي، (ترمذي ابوداود) امام ترمذي ﷫ ويلي دي چې دا حديث غريب دی.

**تسهيلات:** **قوله** وَلَهُ نَفَقَتُهُ:

**د چا په زمکه کښې بغير د اجازت نه د کر کولو حکم:-** يعنى که چا دَ يوسړى دَ اجازت نه بغيرَ هغه په زمکه کښې کر اوکړو نو ټول پيداوار به دَ زمکې مالك ته ملاويږي اوکر والا چه کوم تخم په زمکه کښې اچولي دې هغه به ده ته ملاويږي باقي به هيڅ نه ملاويږي دَ امام احمدبن حنبل ﷫ هم دغه مسلك دې اودَ حديث هم دغه مطلب دې ليکن څه نور علماء او بعض احناف وائي چه دَ زمکې پيداوار به کرلو والاته ملاويږي البته چه دَځومره مودې دَپاره هغه زمکه مشغول ساتلې ده دَهغې معاوضه به ورکوی ظاهری حديث حنابله سره دې

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٢٩٨٠] د مزارعت جواز**

٢٩٨٠-[١٠] (٢) ١ عَنْ قَيْسِ بْنِ مُسْلِمٍ عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ ٢ قَالَ: مَا بِالْمَدِينَةِ أَهْلُ بَيْتِ هِجْرَةٍ إِلَّا يَزْرَعُونَ عَلَى الثُّلُثِ وَالرُّبُعِ، ٣ وَزَارَعَ عَلِيٌّ وَسَعْدُ بْنُ مَالِكٍ، وَعَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُودٍ وَعُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، وَالْقَاسِمُ، وَعُرْوَةُ، وَآلُ أَبِي بَكْرٍ، وَآلُ عُمَرَ، وَآلُ عَلِيٍّ، وَابْنُ سِيرِينَ،

**ترجمه:** ١ حضرت قيس ﷫ ابن مسلم د حضرت ابو جعفر ﷫ (يعني امام محمد باقر) څخه نقل کوي ٢ چې هغه وفرمايل په مدينه کې د مهاجرينو هيڅ داسې کور نه وو چې په

١) اخرجه ابو داود فى السنن كتاب البيوع/باب فى زرع الأرض بغير إذن صاحبها (رقم-٣٤٠٣) والترمذى فى كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فيمن زرع فى أرض قوم بغير إذنهم (رقم-١٣٦٦) وابن ماجه فى كتاب الرهون/باب من زرع فى أرض قوم بغير إذنهم (رقم-٢٤٦٦) واحمد فى المسند: ٣/٤٦٥

٢) اخرجه البخارى فى كتاب الإجارة/باب المزارعة بالشطر ونحوه

دریمه یا په څلورمه حصه کاشت نه کولی[٣] او حضرت علي رضي الله عنه حضرت سعد ابن مالك یعنی سعد بن ابي وقاص، حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله قاسم، عروه، د حضرت ابوبکر رضي الله عنه اولاد، د حضرت عمر رضي الله عنه اولاد، د حضرت علي رضي الله عنه اولاد او ابن سیرین رحمه الله دي ټولو به کیتی کولی.

[١] وَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْأَسْوَدِ: [٢] كُنْتُ أُشَارِكُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ يَزِيدَ فِي الزَّرْعِ، [٣] وَعَامَلَ عُمَرُ النَّاسَ عَلَى: [٤] إِنْ جَاءَ عُمَرُ بِالْبَذْرِ مِنْ عِنْدِهِ فَلَهُ الشَّطْرُ، [٥] وَإِنْ جَاءُوا بِالْبَذْرِ فَلَهُمْ. كَذَا رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] د حضرت عبد الرحمن ابن اسود (تابعي) رحمه الله بیان دی [٢] چې ما به د حضرت عبد الرحمن ابن یزید په شرکت کې مزراعت کولی. [٣] او حضرت عمر رضي الله عنه د خلقو سره په دې شرط (د مزارعت) معامله کړې وه [٤] که عمر رضي الله عنه تخم د خپل خان څخه ورکوي نو د پیداوار نیمه حصه به د هغه وي [٥] او که خلق تخم ورکوي نو په پیداوار کې به د هغه مطابق د هغه حصه وي (یعني نیمه یا دریمه یا څلورمه څه چې مقرره شي) بخاري

**حل اللغات:** - ① الْبَذْر: تخم، بزغلې، ② الشَّطْرُ: نیمه حصه،

**تسهیلات:**

**قوله:** هِجْرَةٍ:

یعنی مهاجرینو به ټولو په تقسیم سره کارکولو دَمزارعت په پټی کښې به دا تقسیم کله یو په دریِ باندې وو کله به یو په څلوره وو.

**قوله:** وَزَارَعَ:

**صاحب مشكوة باندې يو اعتراض:** - میرك شاه ونیلی دی چه دَ وزراع نه تر آخره پورې عبارت دَ امام بخاری رحمه الله خپل دې په دې کښې امام بخاری رحمه الله دَ یو څو صحابه کرامو آثار نقل کړی دی دکوم نه چه دَ مزارعت جواز ملاویږی امام بخاری رحمه الله پخپله هم دَ مزارعت دَ جواز قائل دې امام بخاری رحمه الله دَ آثار په توګه دَ تطبیق نقل کړی دی صاحب مشکوة له پکار وو چه هغه په آخره کښې رواه البخاری تعلیقاً الفاظ لیکل دې دَپاره چه پته لګیدله چه حدیث دکوم ځائی پورې دې او تعلیق او اثر ترکوم ځائی نه دې

# [١٣] بَابُ الْإِجَارَةِ

د اجاره بیان

**خلاصة الباب: -**

**فيه عشرة أحاديث مشتملة على أربع مسائل:**

① جواز الإجارة: ١.

② جواز الأجرة على بعض الأعمال المخصوصة: ٢، ٣، ۴، ۵، ۶، ٩.

③ الحث على إعطاء الأجرة للأجير والزجر بمنعه: ۴، ٧، ٨. وفيه ذكر الأجرة الحكمية.

④ حرمة الأجرة على بعض الطاعات: ١٠.

**د قرآن څخه د اجارې ثبوت:** ① ﴿فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ﴾ [سورت طلاق الاية: ۶]

② ﴿إِنِّي أُرِيدُ أَنْ أُنكِحَكَ إِحْدَى ابْنَتَيَّ هَاتَيْنِ عَلَى أَن تَأْجُرَنِي ثَمَانِيَ حِجَجٍ﴾ [سورت قصص الایه: ٢٧]

**دتملیک دوه قسمونه: -**

① تملیک الاعیان ② تملیک المنافع.

**دتملیک دویم تقسیم:** - بیا ددې دوه قسمونه دی.

① تملکیک بالعوض ② تملیک بغیرالعوض

**مجموعی طور د تملیک څلور قسمونه: -**

① تملیک العین بالعوض دا بیع ده،

② تملیک العین بلا عوض دا هبه ده،

③ تملیک المنافع بالعوض دا اجاره ده

④ تملیک المنافع بلاعوض عاریة او اعاره ده

**د اجاره لغوی معنی:** - په لغت کښې اجاره یو څیز په کرایه ورکولو ته وائی

**د اجاره اصطلاحی تعریف:** - په اصطلاح کښې په یواجرت دَخپل څه څیز دَمنفعت مالک جوړولو ته اجاره وائی "الاجارة تملك المنافع بعوض" دَ احادیثو اوآثارونه اجاره ثابته ده سره ددې چه دَ قواعد بیوعاتو په رڼاکښې اجاره نه وو جائزکیدل پکار خودَ خلقو دَ احتیاج او ضرورت دَ وجې نه دا شریعت جائزګرځولې ده

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

[٢٩٨] د اجارې جواز

٢٩٨-[١] (١) [١] عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ [٢] قَالَ: زَعَمَ ثَابِتُ بْنُ الضَّحَّاكِ [٣] «أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - نَهَى عَنِ الْمُزَارَعَةِ [۴] وَأَمَرَ بِالْمُؤَاجَرَةِ وَقَالَ: لَا بَأْسَ بِهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

١) اخرجه مسلم في كتاب البيوع/باب في المزارعة والمؤاجرة(رقم-١١٩ - (١۵۴٩)

**ترجمه:** [١]حضرت عبد الله ابن مغفل وایي[٢] چې حضرت ثابت ابن ضحاك رضي الله عنه دا بیان وکړي[٣] چې رسول الله ﷺ د مزارعت نه منع فرمایلي ده[٣] او د اجاره حکم ورکولو سره يې وفرمایل چې په دي کې څه حرج نشته. (مسلم)

**حل اللغات** - ①الْمُؤَاجَرَةِ: زمکه په اجاره ورکول

**تسهیلات:**

**قوله** نَهَى عَنِ الْمُزَارَعَةِ:

**د مزارعت د ممنوع صورت مصداق:** - دا د مزارعت هم دغه ممنوع صورت طرف ته اشاره ده د کوم بیان چه په تفصیل سره شوي دي علامه طیبی رحمه الله فرمائی "المزارعة" کښې الف لام عهدی دي د کوم نه چه د مزارعت ممنوعه صورت مراد دي

**[٢٩٨٢]د حجام د کټې جواز**

٢٩٨٢—[٢] (١)[١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ [٢]«أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - احْتَجَمَ[٣] فَأَعْطَى الْحَجَّامَ أَجْرَهُ وَاسْتَعَطَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١]او حضرت عبد الله ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي[٢] چې رسول الله ﷺ (یو ځل) ښکر راوښکلو (وینه يې وخکله)[٣] او ښکر راښکونکی ته يې د هغه اجرت عطا کړي او حضور ﷺ په خپله پوزه کې دوائي واچوله. (بخاري مسلم)

**حل اللغات** - ①الْحَجَّامَ: ښکر لګونکي، ښکر راښکونکي. ②اسْتَعَطَ: پوزه کښې ني دوائی واچوله

**تسهیلات:**

**قوله** فَأَعْطَى الْحَجَّامَ أَجْرَهُ وَاسْتَعَطَ:

**د ښکر لګولو حکم:** - د دي حدیث نه معلومه شوه چه ښکر لګولو پیشه مباح ده او په دي سره علاج کول جائز دی

**[٢٩٨٣]د نبی کریم ﷺ په مزدورئی د چیلو څرول**

٢٩٨٣—[٣] (٢)[١]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[٢]قَالَ «مَا بَعَثَ اللَّهُ نَبِيًّا إِلَّا رَعَى الْغَنَمَ[٣] فَقَالَ أَصْحَابُهُ: وَأَنْتَ؟[٤]فَقَالَ: نَعَمْ[٥]كُنْتُ أَرْعَى عَلَى قَرَارِيطَ لِأَهْلِ مَكَّةَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١]او حضرت ابوهریره رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه نقل کوی [٢]چې رسول الله ﷺ وفرمایل الله ﷻ هیڅ داسې نبي نه دی رالیږلی چې هغه بزی نه وي څرولي (د دي اوریدو سره)[٣] صحابه وو رضي الله عنهم پوښتنه وکړه چې آیا تا هم بزې (چیلې) څرولي دي؟[٤] رسول الله

١ ) اخرجه البخاری فی کتاب الطب/باب السعوط (رقم-٥٦٩١) ومسلم فی کتاب المساقاة/باب حل أجرة الحجامة (رقم-٦٥ - (١٢٠٢) واخرجه ابو داود فی السنن أبواب الإجارة/باب فی کسب الحجام (رقم-٣٤٢٣) وابن ماجه فی کتاب التجارات /باب کسب الحجام (رقم-٢١٦٢)واحمد فی المسند: ٢٥٨/١

٢ ) اخرجه البخاری فی کتاب البیوع/باب النهی للبائع أن لا یحفل الإبل. والبقر والغنم وکل محفلة (رقم-٢١٤٩) وابن ماجه فی کتاب التجارات /باب الصناعات (رقم-٢١٤٩)

ﷺ وفرمايل چې هو(اه) مابه د څو قيراطو په اجرت د اهلِ مکې بزې (چيلئ) څرولې . بخاري

**حل اللغات**: ①قَرَارِيطَ. د قيراط جمع ده ، د يودرهم د شپږمې حصې برابر وي

**تسهيلات**: **قوله** إِلَّارَعَى الْغَنَمَ:

**په پيغمبرانو د ګډو په څرولو کښې حکمت**:- چيلئ يومسکين حيوان دې دې سره تعلق لرونکی انسان کښې دعاجزئ صفت راځي بيا په حيواناتوکښې چيلئ يوداسې څناوردې دکوم چه رمې وی دادې د برکت نښه ده انبياء کرام چونکه د انسانانودعوت دپاره دنياته راغلی دی بيا د انسانانو تربيت ددوی منصب دې په دې وجه د تجربه برداشت، صبر اوتحمل ډيرزيات ضرورت وی هم ددې مقصد دپاره انبياء کرامو چيلئ څرولې دی دې دپاره چه د انسانانو په نګرانئ اوتربيت کښ آسانی وی او مزاج کښې ډير تحمل او برداشت پيدا شی چيلئ يوکمزورې څناوردې که چرې په يوړوکی کټرې بندې هم اوويشتلې شی نو مړه کيږی او په طبعي توګه باندې په دې کښې يوقسم شرارت هم دې او شورش هم په دې کښې چه يوه پانړه د يوې ونې نه خوری نو فوری بل طرف ته ځی که چرې د برداشت والاسړې نه وی نو روزانه به يوه چيلئ وژنی په دې وجه د ډير زيات تحمل ضرورت دې دغه شان د انسانانو مزاج هم مختلف وی دوی په نيغه لاړ راوستل او ددوی تربيت کولودپاره هم ډير زيات صبرېکاردې هم ددې حکمتونو لاندې انبياء کرامو په شروع کښې چيلئ څرولې دی دا پيشه اوکسب په ظاهره خو ادنی دې ليکن د انجام په اعتبارسره اعلی دې په دې وجه د انبياء کرامو دپاره مناسب شو د نن صبا خلق د داعی جوړيدو ډير شوق لری ليکن ناتجربه کار او بې علم کيدو د وجې نه د فائدې په ځائې نقصان زيات کيږی معصوم نبی خواول د تجربه دمرحلې نه تيريږی اودا صاحب يودم د خلقو مينځ ته راټوپ کوی اود علامه جوړيدو کوشش کوی

**قوله**: قَرَارِيطَ:

**د قيراط په استعمال کښې وجوه**:- ① کله قيراط د تحقيردپاره ذکرکولې شی لکه څنګه چه دلته دې د کوم مطلب چه پيسه يا دوه پيسې دي

② کله د قيراط ذکر د ډيرې زياتې معاوضه دپاره کيږی لکه د جنازې کونکی ته به يو قيراط ثواب ملاويږی اوهغه قيراط د احد د غربرابر وی دلته د قيراط ذکر دتعظيم دپاره نه دې

**[٢٨٣] مزدورته دهغه مزدوری نه ورکولو وعيد**

٢٨٣—[٢] (١) ①وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②«قَالَ اللهُ تَعَالَى ③ثَلَاثَةٌ أَنَا خَصْمُهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ: ④رَجُلٌ أَعْطَى بِي ثُمَّ غَدَرَ، ⑤وَرَجُلٌ بَاعَ حُرًّا فَأَكَلَ ثَمَنَهُ ⑥وَرَجُلٌ اسْتَأْجَرَ أَجِيرًا فَاسْتَوْفَى مِنْهُ ⑦وَلَمْ يُعْطِهِ أَجْرَهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

١ ) اخرجه البخاری فی كتاب البيوع /باب إثم من باع حرا (رقم-٢٢٢٧) وابن ماجه فی كتاب الرهون /باب أجر الأجراء (رقم-٢٤٤٢) واحمد فی المسند: ٣٥٨/٢

**ترجمه:** ١ او حضرت ابوهریره ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ الله ﷻ ارشاد فرمایلی دی ٣ چې دري سړي داسې دي چې د قیامت په ورځ به ورسره زه جګړه کوم ٤ یو خو هغه سړی دی چې هغه خما دنوم او خما د قسم په ذریعه څه عهد وکړي او بیا یې هغه مات کړي ٥ دویم هغه سړی دی چې هغه یو آزاد شړی خرڅ کړي او د هغه قیمت یې وخوړلی ٦ او دریم هغه سړی دی چې هغه یو مزدور په مزدوري ولګولی د هغه څخه یې کار واخستلی یعني په کوم کار چې یې لګولی وو هغه کار یې څني پوره پوره واخستلی ٧ لیکن هغه ته یې د هغه مزدوري ورنه کړه. (بخاري)

**حل اللغات** - ①غَدَرَ: دهوکه، عهد شکنی

**تسهیلات:**

**قوله: أَنَا خَصْمُهُمْ:**

**د قیامت په ورځ دري قسمه خلقو سره د الله تعالی جګړا:-** یعنی دري قسمه خلق داسې دی چه دَ قیامت په ورځ به زه دَهغوی په مقابله کښې راځم نوهغوی به زما دَ قهر اوغضب په خاص توګه نشانه جوړیږي.

① رجل اعطی بی: یعنی اولنی هغه سړې چه دَ الله تعالی په نوم باندې قسم خوړلوسره وعده کوی اوبیا په هغې کښې دهوکه کوی. وعده خلافی خوپخپله یو جرم دې لیکن چه کله نی دَ الله تعالی په نوم باندې وعده اوکړه قسم نی هم اوخوړلو اوبیائې دهوکه کړه دا وریسې نور جرم دې په دې وجه دَ الله تعالی دَ غضب مستحق دې

② باع حراً: دویم سړې هغه دې چه یوآزاد سړې غلام ګرځوی اودَ بازار مال نی جوړکړی داپخپله یوډیر لوئی جرم دې که دَهغه اجرت اوخوری اوکه اونه خوری لیکن که دَدې په بدله کښې پیسې هم اوخوری نودا نور قباحت دې په دې وجه داسړې دَ الله تعالی دَ غضب مستحق دې

③ دریم هغه سړې دې چه یومزدور په مزدورنی اولګوی اوکله چه هغه کار پوره کړی ډیرمحنت نی اوکړو دَ پیسې دَپاره خوله نی اوبهیوله کله چه پیسې اوغوښتې نودَ خاص امیدپه وخت هغه سړی دَ پیسوورکولونه انکاراوکړو دا هم دَ یوظلم دَپاسه بل ظلم دې په دې وجه دا سړې هم دَ الله تعالی دَ غضب مستحق دې په حدیث کښې دَ دریوکسانونه صرف دري کسان نه دی بلکه دَدې په شان ټول خلق مراددی نن صبا په عرب ملکونوکښې دا بیماری ډیره په زور ده ښه ښکلې مطوع خلق دَ یوغریب پردیسی نه کاراخلی او بیا دَ معاوضه ورکولونه انکارکوی اودَ دغه پردیسی نه دَ غریب الوطنی ناجائز فائده اوچتوی

[٥٠٥٠] د سورة فاتحه په دم کولو شفا، ملاويدل او په دم اجرت اخستل

٥٠٥٠ - [د] (١) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ «أَنَّ نَفَرًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَرُّوا بِمَاءٍ فِيهِمْ لَدِيغٌ أَوْ سَلِيمٌ فَعَرَضَ لَهُمْ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْمَاءِ فَقَالَ: هَلْ فِيكُمْ مِنْ رَاقٍ؟ إِنَّ فِي الْمَاءِ رَجُلًا لَدِيغًا أَوْ سَلِيمًا، فَانْطَلَقَ رَجُلٌ مِنْهُمْ فَقَرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ عَلَى شَاءٍ فَبَرَأَ، فَجَاءَ بِالشَّاءِ إِلَى أَصْحَابِهِ فَكَرِهُوا ذَلِكَ،

**ترجمه:** [١] او حضرت ابن عباس ﷺ وايي [٢] چې يو ځل، د رسول الله ﷺ د صحابه وو ﷺ يو جماعت [٣] په يو داسې کلي تير شو چې په هغوئ کې [٤] يو سړی لړم يا مار خوړلی وو. يو سړی هغه صحابه وو ﷺ ته راغلی او پوښتنه يې وکړه [٥] چې آيا په تاسو خلقو کې څوك دم چف کونکی شته؟ [٦] ځکه چې زمونږ په کلي کې يو سړی لړم يا مار چيچلی دی که داسې څوك وي نو زماسره دې ولاړ شي چې په هغه سړي دم وکړي، [٧] نو هغوئ ته يو صحابي ورغلو او هغه د بزو په عوض کې سورة فاتحه ووېله يعنی هغه اوويل چې زه به دې سړي په دې شرط دم کوم چې په دې عوض کې به زه دومره بزې (چيلی) اخلم هغه کلي دا منظوره کړه. نو هغه صحابي سورة فاتحه ويلو سره په هغه سړي دم وکړي. ځکه چې منقول دی چې فاتحة الکتاب شفاء من السّم يعنی سورة فاتحه د زهر د پاره شفاء ده. [٨] هغه سړی ښه شو. بيا هغه صحابي بزې (چيلی) اخستو سره خپلو ملګرو ته راغلی. [٩] هغه ملګرو يې دا خبره خوښه نه کړه

**حل اللغات** - ① لَدِيغٌ: مار يا لړم چيچلی. ② سَلِيمٌ: مار يا لړم چيچلی. ③ رَاقٍ: چُف کونکی. دم چونکی. ④ شَاء: بزه، چيلی

[١] وَقَالُوا: أَخَذْتَ عَلَى كِتَابِ اللَّهِ أَجْرًا [٢] حَتَّى قَدِمُوا الْمَدِينَةَ [٣] فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَخَذَ عَلَى كِتَابِ اللَّهِ أَجْرًا [٤] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ أَحَقَّ مَا أَخَذْتُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا كِتَابُ اللَّهِ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ، [٥] وَفِي رِوَايَةٍ "«أَصَبْتُمْ [٦] اقْسِمُوا وَاضْرِبُوا لِي مَعَكُمْ سَهْمًا»".

**ترجمه:** [١] او ورته يې اوويل چې (د لوی تعجب خبره ده چې) تا په کتاب الله ويلو مزدوري واخستي [٢] ده ددې پورې چې هغه ټول صحابه ﷺ مدينې ته ورسيدل [٣] او هغوئ (حضور ﷺ ته) عرض اوکړو چې يا رسول الله ﷺ فلانی صحابي په کتاب الله ويلو مزدوري آخستلو ده [٤] حضور ﷺ وفرمايل چې په کومو څيزونو چې تاسو اجرت اخلئ په هغه کې د ټولو ځخه ښه کتاب الله دی. (بخاري)

[٥] او په يو روايت کې داسې دي چې حضور ﷺ (د دې اوريدو سره) وفرمايل چې تاسو ښه وکړل. [٦] دا بزې (چيلی) په خپلو کې تقسيم کړئ او د ځان سره څما حصه هم ولګوئ

١) اخرجه البخاري في كتاب الجهاد والسير/باب إرداف المرأة خلف أخيها (رقم-٢٩٨٥) وابن ماجه في كتاب التجارات/باب البيعان بخلفان (رقم-٢١٨٦) واحمد في المسند: ٨٣/٣

**تسهیلات:**

**قوله مِنْ رَاقٍ:**

**په لدیغ او سلیم کښې دوه احتمالات:-**

① لدیغ او سلیم: دَ راوی دَ حدیث په لفظ کښې شك شوجه لفظ لدیغ وو که سلیم وو کنی دَ معنې په اعتبار سره دواړه الفاظ مترادف دی سلیم په توګه د نیك فال مار ټك وهلی ته وائی یعنی څه خطره نشته ان شاء الله دا سړې صحیح سالم دې

② علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه لدیغ دَلړم ټك وهلی سړی ته وائی او سلیم دَ مار ټك وهلی سړی ته وائی که چرې داسې وی نو بیا راوی ته په الفاظو کښې شك نه دې شوې بلکه په معنی کښې ورته شك شوې دې

**قوله فَانْطَلَقَ رَجُلٌ:**

**د رجل مصداق:-** وائی چه دې نه مراد حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه دې دا ټول ۳۰ کسانو باندې مشتمل قافله وه او حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه په اجرت کښې ۳۰ چیلئی مقرر کړې وې

**قوله إِنَّ أَحَقَّ مَا أَخَذْتُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا كِتَابُ اللّٰهِ**

**د مذکوره جملې مفهوم:-** مطلب چه خلق غلط منتر ونیلوسره دَ جادو او ټوټکې کولوسره معوضه اخلی دَ دم درها دَپاره دَ ټولو نه بهتر خودَ الله تعالی کتاب دې کوم چه دَخلقو دَپاره شفاء ده تاسو ښه اوکړه په هغې کښې زما دَپاره هم حصه کیږدئی حضورپاك دَ هغه صحابه کرامو حوصله زیاته کړه څکه چه دوی ویریدلی وو چه مونږ څه جرم کړې دې دَ حضورپاك فرمان سره هغوی خوشحاله هم شو او مسئله هم ورته معلومه شوه او دا تسلی نی هم اوشوه چه چیلئی اخستل حلال او جائزوو

**په دم درها باندې د اجرت اخستلو جواز:-** دَدې حدیث نه معلومه شوه چه دَ قرآن او حدیث وظائف ونیلوسره دم کول او تعویز لیکل تعویز جوړول او په دې باندې معاوضه اخستل جائز دی دا استیجار علی الطاعات په زمره کښې نه راخی بلکه دَ طب او علاج په زمره کښې راخی په کوم باندې چه اجرت اخستل اتفاقاً جائز دی

**په طاعاتو باندې اجرت اخستلوکښې مذاهب:-**

① دَ امام ابوحنیفه رحمه الله اسحاق بن راهویه رحمه الله او دَ امام زهری په نیز په طاعات باندې اجرت اخستل صحیح نه دی

② لیکن دَ نورو فقهاؤ او علماؤ په نیز استیجار علي الطاعات جائز دی او هغوی دَ زیربحث حدیث نه استدلال کوی متاخرین فقهاؤ احناف هم په وجه دَ ضرورت په اندازه دَ ضرورت دَ جواز فتوی ورکړې ده

**په اجرت علی الطاعات کښې د جمهورو مسلک اختیارول :-**

① په تنویر الابصار کښې دی «لاتصح الاجارة للاذان والحج والامامة وتعلیم القرآن والفقه» دَدې په شرح کښې صاحب لیکی «ویفتی الیوم بصحتها لتعلیم القرآن والفقه والامامة والاذان» شامی ج٩ص٩٣.

**دمجبورۍ په صورت کښې د استیجار علی الطاعات جواز :-** دَشرح عقود رسم المفتی مؤلف په دې مسئله کښې دَ یوې ضابطه طرف ته اشاره کړې ده په کوم سره چه دَ فقهاؤ کرامو دَ عبارتونو په تضادونو کښې تطبیق پیدا کیدې شی دَدې ضابطه خلاصه داده چه صاحب شرح عقود رسم المفتی فرمائی چه استیجار علی الطاعات دَ سلف صالحین په نیز ناجائز دی. فقهاء متاخرین دَ جواز باقاعده څه فتوی نه ده ورکړې بلکه په درجه دَ مجبورئی دې ته جائز وئیلی دی.

**دحکم په اعتبار سره داستیجار علی الطاعات دوه صورتونه :-**

① بیا صاحب شرح عقود رسم المفتی دا ضابطه لیکلې ده چه دَشریعت دَ مناصبو نه که یو منصب دَ اجرته نه بغیر قائم اوباقی نشی پاتې کیدې نودَ باقی ساتلو دَپاره اجرت ورکول جائز دی لکه چه امامت دې اذان دې دَ قرآن عظیم تعلیم دې درس اوتدریس وغیره دی که چرې په دې باندې اجرت اخستل ورکول بند شی نودا مناصب به ختم شی په دې وجه دَ باقی ساتلودَپاره اجرت ورکول جائز دی.

② دَ اجرت نه ورکولوسره که یوشرعی منصب نه ختمیږی نودَدې دَپاره اجرت اخستل یا ورکول جائز نه دی لکه چه په تراویح کښې دَ قرآن پاك ختم دې که په دې باندې یو قاری ته اجرت ورنه کړې شو نوزیات نه زیات به ختم قرآن په تراویح کښې نه کوی نفس تراویح خو په وړو سورتو باندې هریوامام کولې شی لهذا دلته دَ قاری په ختم قرآن باندې معاوضه اخستل جائز نه دی دغه شان دَ ایصال ثواب دَ پاره ختمونه دی په دې باندې اجرت اخستل جائز نه دی ځکه چه په دې باندې هم څه دینی منصب نه ختمیږی هم دغه شان معامله دَ تیوشن هم ده په دې سره هم څه دینی منصب نه ختمیږی.

**خلاصه د خبرې :-** متاخرینو په اندازه دَ ضرورت استیجار علی الطاعات دَ جواز قول کړې دې نن صبا چه خلق په علماؤ باندې په دې وجه اعتراض کوی چه دا خلق په طاعات باندې اجرت اخلی دا ملحد خلق دی دوی غواړی چه دَ اسلام کوم دا معمولی شان کارباقی دې داهم ختم شی که چرې په حقیقت باندې نظرواچولې شی نواستیجار علی الطاعات مسئله دَ صحابه کرامو دَ دور نه راروانه ده ځکه چه خلفاء راشدین ﷺ چه به کوم وظائف دَ بیت المال نه اخستل هغه آخر هم دَ طاعات معاوضه خو وه که نه. دغه شان که دَ قاضیانو صاحبانو تنخواه ته اوګورې اودَ مجاهد یو وظائف ته که اوګورې دا ټول هم دَ طاعات اعمال وو په کومو چه به هغوی ته وظائف ملاویدل.

# الفصل الثاني

**[٢٩٨٦] په باطل دم دورها د اجرت اخستلو حرمت**

٢٩٨٦- [١] [١] [١] وعن خارجة بن الصلت عن عمه [٢] قال: «أقبلنا من عند رسول الله - صلى الله عليه وسلم - [٣] فأتينا على حي من العرب [٤] فقالوا: إنا أنبئنا أنكم قد جئتم من عند هذا الرجل بخير [٦] فهل عندكم من دواء أو رقية [٧] فإن عندنا معتوها في القيود؟

**ترجمه:** [١] حضرت خارجة ابن صلت رضي الله عنه د خپل تره څخه نقل کوي [٢] چې هغه او ويل کوم وخت چې مونږ د رسول الله ﷺ څخه رخصتيدو سره خپل وطن طرف ته روان شو. [٣] نو په لار کې مونږ د عربو په يوه قبيله تير شو. [٤] د هغه خنې خلقو مونږ ته او ويل چې مونږ ته معلومه شوي ده [٥] چې تاسو د هغه سړي (يعني رسول الله ﷺ) څخه خير ښيګڼه (يعني قرآن کريم او ذکر الله) اخستو سره راغلي يئ. [٦] نو آيا تاسو سره څه داسې دوايي يا دم چف هم شته؟ [٧] چې زمونږ د قبيلې يو سړی پاګل شوی دی په زنځيرونو کې تړلی پروت دی.

**حل اللغات** - ① أقبلنا: واپس شو مونږ. ② حي: قبيله. ③ رقية: دم، چف. ④ معتوها: مجنون، مدهوش، ليونی. ⑤ في القيود: په زنځيرونو کښې تړلی شوی پروت دی

[١] فقلنا: نعم فجاءوا بمعتوه في القيود [٢] فقرأت عليه بفاتحة الكتاب ثلاثة أيام غدوة وعشية أجمع بزاقي ثم أتفل [٣] قال: فكأنما أنشط من عقال [٤] فأعطوني جعلا فقلت: لا حتى أسأل النبي - صلى الله عليه وسلم - [٥] فقال: كل فلعمري [٦] لمن أكل برقية باطل لقد أكلت برقية حق». رواه أحمد، وأبو داود.

**ترجمه:** [١] مونږ او ويل چې هو (زمونږ سره داسې عمل شته چې د هغه سره د داسې سړي علاج کول کيږي)، نو هغه پاګل يې په زنځيرونو کې تړلی مونږ ته راوستلو. [٢] او ما په هغه تر دريو ورځو سورة فاتحه سحر او ماښام داسې ويله چې د ويلو په وخت به مې خپلې ناړې جمع کولې او بيا د ويلو څخه وروسته به مې په هغه پاګل توکلې. [٣] راوي وايې چې څما تره وفرمايل د دې څخه روسته (هغه دومره زر ښه شو چې) تړلې لاسونه کولاؤ شو. [٤] بيا هغوئ ماته د هغه د اجرت (په طور څه شی) راکړي. نو ما او ويل چې دا شی زه د هغه وخته نه خورم د څو پورې چې په دې باره کې د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه ونه کړم (ما د حضور ﷺ څخه پوښتنه وکړه) [٥] نو حضور ﷺ وفرمايل څه چې ناته درکول شوي دي هغه وخوره خکه زما دی قسم وی د خپل ژوند په بخښونکي [٦] چې کوم سړی په باطل منتر اجرت واخلي هغه بد کوي، تا خو د حق او ريښتني دم اجرت خوړلی دی. (احمد ابوداود)

**حل اللغات** - ⑥ بزاق: لاړې. ⑦ أتفل: توکلې به مې. ⑧ أنشط: خلاص شو. ⑨ عقال: تړلې رسۍ

**تسهيلات: قوله هذا الرجل:**

**د اشارې توضيحات:** - دا اشاره ذهنيه ده مراد رسول الله ﷺ دي

١) اخرجه ابو داود في السنن أبواب الإجارة باب في كسب الأطباء (رقم ٣٤٢٠) واحمد في المسند: ٢١٠/٥

**قوله** بِخَيْرٍ

**د خیر څخه مراد:**- دلته د خیر او ښیګړې نه مراد قرآن کریم دې کوم چه شفاء اللناس دې

**قوله** ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ

**د ثلاثة ایام په ذکر کښې یو تنبیه او فائده:**- دې سره امت ته داتعلیم ملاؤشو چه فاتحه شف ۰ ۰ ۰ لیکن یوخل دم کولوسره به کارنه جوړیږی د څه وخته پورې دم کول پکاردی لکه څنګه چه دې صحابی اوکړه دغه شان نن صبا علماء اوصلحاء یوخل توجیه سره چف کوی په دې سره به څه اثر اوشی د علاج هریوه نسخه وخت غواړی

**قوله** فَلَعَمْرِي:

**اشکال:**- سوال دادې چه غیرالله د نوم قسم خوړل منع دی دلته څنګه قسم اوخوړلې شو؟

**د اشکال دوه جوابونه:**-

① دا باقاعده قسم نه دې بلکه دعربو په محاوره کښې عام خبرې اترې هم دغه شان کیږی

② دا دحضوراکرم دخصوصیاتونه دی الله تعالی دحضورپاك د عمر قسم خوړلې دې (لَعَمْرُكَ إِنَّهُمْ لَفِي سَكْرَتِهِمْ يَعْمَهُونَ) (سورت حجر)

**قوله** لَمَنْ أَكَلَ:

**د مذکوره جملې ترکیب:**- په دې کښې لام قسمیه دې دې اومن متضمن دې دشرط په معنی کښې دې او لقداکلت جواب قسم دې کوم چه د جزاء قائمقام دې اې لعمری لئن کان ناس یاکلون برقیة باطل فانکم اکلتم

**قوله** بِرُقْيَةِ حَقٍّ

**د باطل منتر تعریف:**- باطل منتر هغه دې په کوم کښې چه جنات او شیطانان او ارواح خبیثه نه مدد غوښتلې شی یا د ستورو او غیرالله نومونو په دې کښې تذکره کیږی

[۲۹۸۰] دخولې اوچیدو نه وړاندې مزدورله د مزدورۍ ورکولو ترغیب

۲۹۸۷- [۱] (۱) ① وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «أَعْطُوا الْأَجِيرَ أَجْرَهُ قَبْلَ أَنْ يَجِفَّ عَرَقُهُ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① او حضرت عبد الله ابن عمر ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② مزدور ته د هغه مزدوري د هغه د خولې د اوچیدو څخه مخکې ورکړي (یعني مزدور چې خپل کار پوره کړي نو د هغه مزدوري سمدستي ورکړي په هغه کې تاخیر مه کوئ) ابن ماجه

**حل اللغات** - ① يَجِفَّ چه اوچې شی ② عَرَقُ - خوله.

**قوله** أَعْطُوا الْأَجِيرَ أَجْرَهُ قَبْلَ أَنْ يَجِفَّ عَرَقُهُ:

**مزدور ته د مزدورۍ زر ورکولو حکم:**- دا کنایه ده د جلدۍ او سرعت نه چه څومره هم زر کیدې شی ده ته مزدوری ورکړی کیدې شی چه د تاخیر په وجه تاسو دواړو کښې یو کس داسې حالت کښې مړ شی چه په بل باندې ئې قرض وی

۱) اخرجه ابن ماجه في السنن کتاب الرهون/باب أجر الأجراء (رقم-۲٤٤۳)

**[٢٩٨٨] سائل ته خامخا څه ورکول**

٢٩٨٨—[٨] (١) [١] وَعَنِ الْحُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ قَالَ: [٢] قَالَ رَسُولُ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: «لِلسَّائِلِ حَقٌّ وَإِنْ جَاءَ عَلَى فَرَسٍ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُودَاوُدَ، وَفِي الْمَصَابِيحِ مُرْسَلٌ.

**ترجمه:** [١] او حضرت حسین ابن علي ﷺ وايي [٢] چې رسول الله ﷺ د سوالګري په باره کې وفرمايل هغه (په هر صورت د ورکړې) مستحق دی اګر چې که په آس باندې سور راغلی وي، (احمد ابوداود) او په مصابيح کې ونيل شوي دي چې دا حديث مرسل دی

**تسهيلات: قوله:** عَلَى فَرَسٍ:

**د حديث مقصد:** - قاضي عياض ﷺ فرمائي چه دَحديث مطلب دادې چه سائل خالي لاس مه پريږده سره دَدې چه په ظاهره هغه غني ښکاري او په اس باندې سور راغلي وی ځکه چه که هغه واقعي غني وی نو دَ سوال دَپاره لاس خورولوسره به ئي خپل خان نه ذليل کولو

**د حديث ترجمة الباب سره مناسبت:** - داحديث په ظاهره باب سره ربط نه لري الايه چه دااوونيلي شي چه دَ سوال هم يو معاوضه ده ته دَهغه دَ سوال اجرت هغه له ورکړه هغه ته چه څه ورکولي شي دادَهغه دَ سوال اجرت دې امام احمد ﷺ فرمائي دَدې حديث هيڅ بنياد نشته دا بې اصل دې چه بازارونوکښې ګشت کوی امام ابوداؤد ﷺ په دې خاموشی اختيار کړې ده چه دَدې خبرې دليل دې چه حديث قابل استدلال دې مصابيح دې ته مرسل ونيلي دې ممکن ده چه په بعض طرق کښې دا حديث مرسل وی اوبعض کښې مسندوی

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٢٩٨٩] دطعام او مهر په عوض مزدوری کول**

٢٩٨٩—[٩] (٢) [١] عَنْ عُتْبَةَ بْنِ الْمُنْذِرِ قَالَ: [٢] «كُنَّا عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٣] فَقَرَأَ "طسم" حَتَّى بَلَغَ قِصَّةَ مُوسَى، [٤] قَالَ: إِنَّ مُوسَى - عَلَيْهِ السَّلَامُ - آجَرَ نَفْسَهُ ثَمَانِ سِنِينَ أَوْ عَشْرًا عَلَى عِفَّةِ فَرْجِهِ وَطَعَامِ بَطْنِهِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] حضرت عتبه ابن منذر ﷺ وايي [٢] چې (يوه ورځ) مونږ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر وو، [٣] چې حضور ﷺ طسم اوونيلو. او کوم وخت چې حضور ﷺ د حضرت موسی ﷺ قصې ته ورسيدلی [٤] نو وي فرمايل چې موسی ﷺ د خپلې شرمګاه د ساتلو د پاره او د خيټې د ډکولو د پاره خپل ځان تر اتو کلونو يا لسو کلونو په مزدوري کې ساتلی وو

**حل اللغات:** - ① عِفَّةِ: ساتل. حفاظت کول. ② فَرْجِ: شرمګاه.

**تسهيلات: قوله:** طسم:

**د شرم ګاه د حفاظت دپاره خدمت کول:** - يعني سورت قصص ئې اولوستلو په دې کښې

١) اخرجه ابو داود في السنن كتاب الزكاة/باب حق السائل(رقم-١٦٦٥) ومالك في الموطا كتاب الصدقة /باب الترغيب في الصدقة (رقم-٣) واحمد في المسند: ٢٠١/١

٢) اخرجه ابن ماجه في السنن كتاب الرهون/باب إجارة الأجير على طعام بطنه (رقم-٢٤٤٤)

دحضرت موسی علیه السلام قصه په پوره تفصیل سره ذکر ده هغه دمصرنه د ویرې اوخطرې په حالت کښې مدین ته اوتختیدو هلته دمدین په کوهي باندې نی د حضرت شعیب علیه السلام د لونړو امداداوکړو بیا حضرت شعیب علیه السلام ملاقات اوشو هغوی دخپلې یوې لور نکاح حضرت موسی علیه السلام سره په دې شرط اوکړه چه هغه به اته کالوپورې دهغوی چیلئی څروی هم دغه خدمت به دهغه د ښځې مهر وی حضور پاك هم دې طرف ته اشاره اوکړه چه موسی علیه السلام د شرمګاه د حفاظت په خاطر اودخپلې خیټې ساتلوپه خاطر اته یا لس کاله خپل ځان په مزدورئی کښې اوساتلو

**خدمت لره مهر جوړولو کښې مذاهب:-**

① شوافع حضرات فرمائی چه د بعض کارونو مزدوری او خدمت د نکاح د پاره حق مهرجوړیدې شی کله چه خدمت معلوم اومتعین وی

② احناف علماء فرمائی د آزاد خاوند خدمت د ښځې مهر نه شی جوړیدې اودا جائزدی چه د خاوندغلام د یوکال پورې د آقاد ښځې خدمت اوکړی

**داول فریق مستدل:-** داول فریق علماء د حضرت موسی علیه السلام د قصې اودې حدیث نه استدلال کړې دې

**داول فریق د مستدل ځخه جواب:-** دا د پخوانو شریعتونو معامله وه زمونږ په شریعت کښې داسې نه ده

**[٢٩٠] د دین په تعلیم باندې د اجرت اغستل**

[٠] (١) ١ وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ: قُلْتُ: ٢ «يَا رَسُولَ اللَّهِ رَجُلٌ أَهْدَى إِلَيَّ قَوْسًا ٣ مِمَّنْ كُنْتُ أُعَلِّمُهُ الْكِتَابَ وَالْقُرْآنَ وَلَيْسَتْ بِمَالٍ فَأَرْمِي عَلَيْهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ؟ ٤ قَالَ: إِنْ كُنْتَ تُحِبُّ أَنْ تُطَوَّقَ طَوْقًا مِنْ نَارٍ فَاقْبَلْهَا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ١ او حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه وايي چې ما عرض اوکړو ٢ يا رسول الله صلی الله علیه وسلم يو سړي ماته په طور د تحفې لينده راليږلي ده ٣ او هغه سړی د هغه خلقو ځخه دی چې ما ورته د کتاب او قرآن تعليم ورکړي وو، او (زه ګنم چې په لينده قبلولو کې څکه څه حرج نشته چې) لينده څه مال نه دی. زه به د دې لينده په ذريعه د الله تعالی په لار (يعني جهاد) کې تير اندازي (د غشو ويشتل) کوم. ٤ حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل که ستا دا خوښه وي چې ستا په ځټ کې دې د اور طوق واچول شي نو دا قبوله کړه. (ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات** - ① أَهْدَى: هديه. تحفه راکړي ده. ② قَوْسًا: لينده. ③ أَنْ تُطَوَّقَ: چه تاته طوق (غاړکی) واچولې شي

**تسهيلات: نوټ:-** د دې حديث ځخه د استيجار على الطاعات عدم جواز معلوميږی خو ددې تفصيل د حديث نمبر (٢٩٨٥) په تشريح کښې ذکر شوې دې

(الحمد لله ! شپږم جلد ختم شو)

١) اخرجه ابو داود في السنن ابواب الإجارة باب في كسب المعلم (رقم-٣٤١٦) وابن ماجه في كتاب التجارات باب الأجر على تعليم القرآن (رقم-٢١٥٧) واحمد في المسند: ٣١٥/٥